سره دحوالو او تخريجه

مُکمله او مُدلله

# فتاوىٰ يوسفيه

مشهوره په

# ستاسو جديد مسائل او دهغې حل

اول جلد

تاليف

حضرت مولانا محمد يوسف هيانوي رحمه الله

مفتي اعظم پاکستان

تقريظونه

شيخ الحديث حضرت مولانا سيد شير علي شاه مدني رحمه الله

سابق شيخ الحديث دار العلوم حقانيه اکوړه خټک

شيخ الحديث حضرت مولانا محمد ادريس صاحب مدظله

شيخ الحديث دار العلوم نعمانيه اتمانزئی

جديد مکتبه رشيديه

جاده ميوند سر چوک مارکيت مرحوم حاجي حسين گل کابل

0782690850 | 0775681606

بسم الله الرحمن الرحيم
فتاوى يوسفيه
مشهوره په
ستاسو جديد مسائل
او دهغې حل
مکمل او مدلل
۱
سره د حوالو او تخريجه
د اول جلد اجمالي فهرست
ايمانيات او عقائد، د تقدير مسائل، محاسن اسلام، نبی کريم ﷺ نور دي که بشر، عقيده حيات النبی، انبياء کرام سره ملاقات، د معراج مسائل، په خوب کې نبي کريم ﷺ ليدل، صحابه او صحابيات، حضرت حسين ؓ يزيد، د اجماع او تقليد مسائل، د سنت او بدعت تعريف، مروجه ميلاد، اصلاح مفاهيم، د داروِن نظريه اعتقاد او اسلام
تاليف
حضرت مولانا محمد يوسف لدهيانوی رحمه الله
مفتي اعظم پاکستان
تقريضونه
شيخ الحديث حضرت مولانا
سيد شير علی شاه مدني رحمه الله
سابق شيخ الحديث دار العلوم حقانيه اکوړه ختک
شيخ الحديث حضرت مولانا محمد ادريس صاحب مدظله
شيخ الحديث دار العلوم نعمانيه اتمانزئی
جديد مکتبه رشيديه
جاده ميوند سر چوک مارکيت مرحوم حاجي حسين گل کابل
0782690850 | 0775681606

بسم الله الرحمن الرحيم



د کتاب نوم : ستاسو جدید مسائل او د هغې حل

مؤلف : حضرت مولانا محمد یوسف هیانوی رحمه الله

ترجمه کونکي : دار الترجمه عبدالغني مارکیټ پشاور

جلد : اول

صفحات : ٥٨٤

تاریخ : ٢٠١٧ء

د چاپ زیار : مولانا سید محمد پرواني

جدید مکتبه رشیدیه

جاده میوند سر چوک مارکیت مرحوم حاجي حسین گل کابل

0782690850 | 0775681606

د کتاب تر لاسه کولو ځایونه

| | | |
|---|---|---|
| پشاور | کندوز | بغلان |
| اکوړه خټک | غزني | لوګر |
| کوټه | جلال آباد | خوست |
| پروان | قندهار | |

# فهرست

| مضمون | صفحه |
| --- | --- |

## ❖ایمانیات❖

### ا د مسلمانانو بنیادي عقیدې ا

| مضمون | صفحه |
|---|---|

| مضمون | صفحه |
| --- | --- |

## تقدير



## محاسن د اسلام



## ❖ آنبياءِ کرام علیهم السلام ❖

| مضمون | صفحه |
| --- | --- |



## ❖ عقيده د حيات النبي ﷺ ❖

| مضمون | صفحه |
|---|---|

### ❖ انبياء كرام عليهم السلام سره ملاقات ❖



### ❖ د حضور ﷺ د حيات عقيده او څلور واړه مذهبونه ❖



### ❖ د نبي كريم ﷺ د حيات عقيده او دامت اكابرين ❖

| مضمون | صفحه |
|---|---|



### ❖ د حضور ﷺ د حيات په عقيده باندې اجماع ❖

| مضمون | صفحه |
|---|---|

| مضمون | صفحه |
|---|---|

### ❖ د حضرت حُسین رضی الله عنه او د یزید په باره کې د اهل سُنت والجماعت مسلک ❖



### ❖ اجتهاد او تقلید ❖



### ❖ سنت او بدعت ❖



### مروج میلاد

| مضمون | صفحه |
|---|---|

## مروج میلاد



## ❖ یو څه د اصلاح مفاهیم باره کې ❖



## ❖ د ډارون نظریې ارتقا او اسلام ❖

# ❖ ایمـــانیـــات ❖

## [د مسلمانانو بنیادي عقیدې]

## د ایمان حقیقت

**سوال:** ایمان څه شی دی؟ د حدیث په رڼا کې یې وضاحت وکړئ؟

**جواب:** په حدیث جبرائیل کې د حضرت جبرائیل علیه السلام اول سوال دا و چې اسلام څه شی دی؟ دهغه په ځواب کې ورته پیغمبر علیه السلام د اسلام پنځه ارکان ذکر کړل.[۱] د حضرت جبرائیل علیه السلام دویم سوال دا و چې ایمان څه شی دی؟ نبي کریم ﷺ وفرمایل "ایمان دادی چې ته ایمان راوړې په الله باندې.دهغه په فرښتو باندې، دهغه په کتابونو باندې اودهغه په رسولانو باندې اود قیامت په ورځ باندې او ایمان راوړې په ښه او بد تقدیر باندې.[۲]

ایمان یوه رڼاده چې د رسول الله ﷺ د تصدیق سره په زړه کې راشي اوکله چې دا رڼا په زړه کې راشي، نود کفراوعناد او د جاهلیت د رسمونوتیارې ختمې شي اوانسان هغه ټولې خبرې د کومو چې نبي علیه السلام خبرورکړی دی په بصیرت سره یقیني وګڼي. دنبي علیه السلام فرمان دی چې په تاسوکې هیڅوك ترهغې پورې کامل مومن نشي جوړیدی ترڅوچې دهغه خواهشات دهغه دین تابع نه شي کوم چې مادنیاته راوړي دی.[۳] دهغه په راوړل شوي دین کې دټولونه زیات ضروري دا شپږ خبرې دي کومې چې په دې حدیث کې ذکر دي.چې دپوره دین نچوړ په دې شپږو خبروکې دی.

(۱) په الله تعالی باندې دایمان راوړلومطلب دادی چې الله تعالی په ذات اوصفاتوکې یواځې وګڼي. هغه په خپل وجود. ذات او صفاتو کې دهرعیب نه پاك دی اوپه ټولو کمالاتو

---

[۱] عن عمربن الخطاب رضی الله عنه قال: بینما نحن عند رسول الله صلی الله علیه وسلم ذات یوم اذ طلع علینا رجل شدید بیاض الثیاب شدید سواد الشعر لا یرٰی علیه اثر السفر، ولا یعرفه منا احد. حتی جلس الی النبی صلی الله علیه وسلم فاسند رکبتیه الی رکبتیه ووضع کفیه علی فخذیه وقال: یا محمد! اخبرنی عن الاسلام. قال: الاسلام ان تشهد ان لا اله الا الله وان محمدا رسول الله، وتقیم الصلوة، وتؤتی الزکوٰة وتصوم رمضان، وتحج البیت ان استطعت الیه سبیلا.قال: صدقت!.فعجبنا له یساله ویصدقه. قال: فاخبرنی عن الایمان ...الخ. (مشکوة ص:۱۱)

[۲] ....قال: ان تؤمن بالله وملائکته وکتبه ورسله والیوم الآخر وتؤمن بالقدر خیره وشره...... (مشکوة. کتاب الایمان، الفصل الاوّل ص:۱۱ طبع قدیمی کراچی)

[۳] ...لایؤمن احدکم حتی یکون هواه تبعا لما جئت به.. (مشکوة باب ۱ لاعتصام بالکتاب والسنة، الفصل الثانی ص:۳۰ طبع قدیمی کراچی)

سره متصف دی په کایناتوکې هرشی دهغه دارادې تابع دی هرڅه دهغه محتاج دي اوهغه دهیڅا محتاج نه دی ، دکایناتوټول یواځې دهغه په قبضه کې دي.دهغه هیڅوک شریك اوبرخه دار نشته.[۱]

(۲) په فرشتوباندې ایمان راوړل دادي چې دا فرشتې دالله یومستقل نوراني مخلوق دي، هغوی دالله تعالی نافرماني نه کوي بلکې هرحکم چې وکړي هغه پوره کوي اوکومې فرشتې چې الله په څه کارباندې مقررې کړې دي.نوهغوی یوه لحظه هم په هغه کې څه کوتاهي نه کوي.[۲]

(۳) په رسولانوباندې ایمان روارړل دادي چې الله تعالی دخپلو بنده ګانو دهدایت له پاره اودوی دخپلې رضا اوناراضګي له کارونو دخبرولوله پاره څه داسې غوره انسانان مقرر کړل چې هغوی ته رسولان اونبیان وایي، انسانانوته دالله خبرې درسولانوپه ذریعه سره رسیږي. دټولونه اول پیغمبر حضرت ادم علیه السلام و اوله ټولونه اخري پیغمبر حضرت محمد صلی الله علیه وسلم دی. له هغه نه وروسته به ترقیامته پورې چاته نبوت نه ورکول کیږي. بلکې دهغه صلی الله علیه وسلم راوړل شوی دین به ترقیامته پورې وي.[۳]

(۴) په کتابونوباندې ایمان راوړل دادي چې الله تعالی پېغمبرانو ته دخپلو بنده ګانو دهدایت له پاره ډېرې اسماني هدایت نامې ورکړې دي، په هغو کې څلورکتابونه زیات مشهور دي. تورات په حضرت موسی علیه السلام باندې نازل شوی و، زبور په حضرت داود علیه السلام باندې نازل شوی و، انجیل په حضرت عیسی علیه السلام باندې نازل شوی و، قران مجید په حضرت محمد صلی الله علیه وسلم باندې نازل شوی و، دا اخرې هدایت نامه ده چې دالله تعالی له طرفه بنده ګانوته رالیږل شوې ده، ددې تابعداري په ټولو انسانانو باندې لازمي ده.اوپه دې کې دټولو

---

[۱] قال ان تؤمن بالله.....ای بتوحید ذاته وتفرید صفاته وبوجوب وجوده وبثبوت کرمه وجوده وسائرصفات کماله من مقتضیات جلاله وجماله.....الخ (مرقاة شرح مشکوة ج۱،ص:۴۹ طبع قدیمی)

[۲] (وملائکته .....معناه اطلقت بالغلبة علی الجواهر العلویة النورانیة المبراة عن الکدورات الجسمانیة وهی وسائط بین الله وبین انبیائه وخاصة اصفیائه وقال بعضهم : هی اجسام لطیفة نورانیة مقتدرة علی تشکلات مختلفة .....وانهم عباد مکرمون یسبحون اللیل والنهار لا یفترون ولا یعصون الله ما امرهم ویفعلون ما یؤمرون (مرقاة شرح مشکوة کتاب الایمان ج۱،ص:۴۹، ۵۰)

[۳] (ورُسله ) بان تعرف انهم بلغوا ما انزل الله الیهم وانهم معصومون، وتؤمن بوجودهم فیمن علم بنص او تواتر تفصیلاً، وفی غیرهم اجمالاً (مرقاة شرح مشکوة ج:۱،ص:۵۰) اول الرسل آدم وآخر الرسل محمد صلی الله علیه وسلم (کنزالعمال ج:۱۱،ص: ۴۸۰، حدیث نمبر ۳۲۲۶،طبع بیروت) وعن انس بن مالک رضی الله عنه قال قال رسول الله صلی الله علیه وسلم : ان الرسالة والنبوة قد انقطعت فلا رسول بعدی ولا نبی (ترمذی،ابواب الرؤیا ج:۲،ص:۵۱)

انسانانو خلاصون دی. څوك چې له دې اخري كتاب نه مخ واړوي. نو هغه به ناكام وي.[۱]

(۵) په قيامت باندې ايمان راوړل دا دي چې يو وخت به راځي چې دا ټوله دنيا به ختمه شي. ځمكه و اسمان به فناشي اودې نه وروسته به الله پاك ټول ژوندي كوي اوپه دنياكې چې خلكوكوم نيك يا بدعملونه كړي دي. له ټولوسره به حساب اوكتاب وشي. دانصاف تله به ودرول شي او دهر سړی نيكي او بدي به په كې تلل كيږي دچاچې دنيكي تله درنه شي هغه ته به دالله تعالى رضاپه برخه شي اوهغه به همېشه له پاره دالله په رضا اوقرب كې وي. چې هغه ته جنت وايي اودچاچې دګناهونوتله درنه شي. نوهغه ته به دالله پاك خفګان ورپه برخه شي. هغه به دالله په بندي خانه كې چې دهغه نوم جهنم دی قيدي كيږي او سزا به ويني او كافران او بې ايمانه خلک به دهمېشه له پاره په جهنم كې اوسي په دنيا كې چې چاپه بل باندې ظلم كړی وي دهغه نه يې رشوت اخستی وي دهغه مال يې په ناحقه خوړلی وي هغه ته يې كنځل كړي وي. دهغه يې بې عزتي كړې وي . دقيامت په ورځ به ددې حساب وشي اود مظلوم بدل به له ظالم نه پوره پوره واخستل شي. دالله پاك ددغې ورځې نوم قيامت دی چې په دې كې به نيك اوبدچاڼ كيږي. هرسړي سره به ذخپل پوره ژوند حساب وشي او په چابه د ذرې برابرظلم نه كيږي.[۲]

(۶) په ښه او بدتقدير باندې دايمان راوړلومطلب دا دی چې ددنيا نظام پخپله نه چليږي. بلكې يوعليم اوحكيم ذات يې چلوي. په دې كائنات كې چې داخوښ اوناخوښه واقعات مخې ته راځي داټول دهغه دارادې اوحكمت سره راځي، دكائناتو دذرې ذرې ټول حالات دهغه عليم او خبيرپه علم كې دي اودكائناتودپيداكولو نه مخكې دا ټول حالات د الله تعالى له لوري په لوح محفوظ كې ليكل شوي وو. په دې كائناتوكې چې څه كيږي دا دالله تعالى د علم ازلي مطابق كيږي اودهغه په ارادې اوخوښې سره كيږي. غرض داچې په كائناتو كې چې كوم نظام الله تعالى دازل نه تجويزكړی و داكائنات دهغه فيصله شوي نظام مطابق چليږي[۳]

---

[۱] (وكتبه) اى ونعتقد بوجود كتبه المنزلة على رسله تفصيلاً فيما علم يقيناً كالقرآن والتوراة والزبور والانجيل، واجمالاً فيما عداه وانها منسوخة بالقرآن وانه لا يجوز عليه نسخ ولاتحريف الى قيام الساعة (مرقاة شرح مشكوة ج:۱،ص:۵۰)

[۲] (واليوم الآخر) اى يوم القيامة لانه آخر ايام الدنيا....وذلک بان تؤمن بوجوده وبما فيه من البعث الجسمانى والحساب والجنة والنار وغيرذلک مماجاءت به النصوص (مرقاة شرح مشكوة ج:۱،ص:۵۱)

[۳] (خيره وشره) اى نفعه وضره وزيد فى رواية وحلوه ومره .......والمعنى تعتقد ان الله تعالى قدر الخير والشر قبل خلق الخلائق وان جميع الكائنات متعلق بقضاء الله تعالى مرتبط بقدره، قال الله تعالى : قل كل من عندالله وهو مريد لها.....ثم القضاء هو الحكم بنظام جميع الموجودات على ترتيب خاص فى ام الكتاب اولاً ثم فى اللوح المحفوظ ثانياً على سبيل الاجمال والقدر تعلق الارادة بالاشياء فى اوقاتها وهو تفصيل قضائه السابق بايجادها ....هذا تحقيق كلام القاضى (مرقاة شرح مشكوة ج۱،ص:۵۱،ايضاً شرح فقه اكبر ص:۱۳ تا ۱۵)

## د نجات له پاره ايمان شرط دی

**سوال:** موږ اوريدلي دي چې الله تعالی به په اخرکې د دوزخ نه هر هغه کس راوباسي د چا په زړه کې چې د سپېلني د داني برابر ايمان وي. ځکه چې الله تعالی فرمايي چې زه دا نه خوښوم چې يو موحد ديو مشرك سره په يوځای وساتم. نو ايا د نن سبا عيسايان او يهوديان به هم د دوزخ نه راويستل کيږي. ځکه چې هغوی هم الله مني خو زموږ رسول ﷺ نه مني او حضرت عيسی علیه السلام او حضرت عزير علیه السلام د خدای زامن ګڼي. نو ايا دا عيسايان او يهوديان په دغو ايمان والاوو کې شماردي او که نه؟

**جواب:** د همېشه خلاصي له پاره ايمان شرط دی. ځکه چې کفراوشرك هيڅکله نه معاف کيږي.[1] او د صحيح ايمان له پاره يوازې الله منل نه کافي کيږي. بلکې د هغه ټول رسولان منل هم ضروري دي[2] او خوك چې محمد رسول الله ﷺ د الله تعالی اخري پيغمبر نه مني هغه په الله هم ايمان نه لري ځکه چې نبي کريم ﷺ د الله اخري پيغمبر دی او الله تعالی د هغه د خاتم النبيين شهادت پخپله ورکړی دی[3]. نو کوم خلک چې د نبي علیه السلام په رسالت. نبوت او ختم نبوت باندې ايمان نه لري. هغوی د الله تعالی شهادت دروغ ګڼي او خوك چې د الله خبرې ته دروغ وايي هغه الله نه مني. نو د نبي کريم ﷺ دين قبلول د خلاصي له پاره شرط دی د غير مسلمو نجات به نه کيږي.[4]

---

[۱] انَّ اللهَ لَا يغفرُ اَنْ يشْرَکَ به ويغفرُمادُوْنَ ذٰلک لمنْ يشاء وَمَنْ يشْرِکْ بِالله فَقَدِ افْتَرٰی اِثْمًا عَظيمًا(النساء:٤٨)

[۲] اٰمَنَ الرَّسُوْلُ بما اُنْزِلَ اليه منْ رَّبّه والْمُؤْمنُوْن كُلٌّ اٰمن بالله وَمَلٰئكته وَكُتُبه وَرُسُله لَا نُفرّقُ بين احد مِّنْ رُّسُله وَقَالُوْا سمعْنَا واطعْنَا غُفْرانک رَبّنَا واليک الْمصيرُه(البقرة : ٢٨٥)(لا نفرق) بل نؤمن بالكل بين احد من رسله احد فی معنی الجميع (تفسير نسفی ج:١، ص: ٢٣٣، طبع دار ابن كثير بيروت)

[۳] قال الله تعالی : مَا كَانَ مُحَمَّدٌ اَبَا اَحَدٍ مِّنْ رِّجَالِكُمْ وَلٰكِنْ رَّسُوْلَ اللهِ وَخَاتَمَ النَّبِيِّنَ وَكَانَ اللهُ بِكُلِّ شَيْءٍ عَلِيمًا ٥ (الاحزاب : ٤٠)

[٤] عن ابی هريرة رضی الله عنه قال : قال رسول الله صلی الله عليه وسلم والذی نفس محمد بيده ! لا يسمع بی احد من هذه الامة يهودی ولا نصرانی ثم يموت ولم يؤمن بالذی ارسلت به الا كان من اصحاب النار (رواه مسلم ج:١، ص:٨٦،مشكوة ص:١٢) عن ابن عباس رضی الله عنه قال: قال رسول الله صلی الله عليه وسلم : ما من احد يسمع بی من هذه الامة ولا يهودی ولانصرانی ولايؤمن بی الا دخل النار،فجعلت اقول اين تصديقها فی كتاب الله ؟ حتی وجدت هذه الاية : ومن يكفربه من الاحزاب فالنارموعده قال: الاحزاب الملل كلها(مستدرک حاکم ،كتاب التفسير ج:٢،ص:٣٤٢)

## د مسلمان تعریف

**سوال:** د مسلمان تعریف څه دی؟

**جواب:** دنبي كريم ﷺ دراوړل شوي دين منونكي مسلمان دي [۱] ددين اسلام هغه كارونه چې دهغه په دين كې داخليدل په قطعي دليل اوتواتر سره ثابت اوخاص تهولوته معلوم وي دې ته ددين ضروريات وايي له دې ضروورياتوددين نه انكار كول ياتاويل كول كفر دي. [۲]

## د قرآن او سنت په رڼا کې د مسلمان تعریف

**سوال:** دقران اوحديث په حوالې سره مختصردمسلمان تعريف وكړئ؟

دا خبره بيا كوم چې يواځې د قران شريف اودحديث شريف حواله وركړئ دبل څه حواله مه وركوئ كه نه بيابه خلكوته دابانه په لاس ورشي چې دا خوديو بزرګ خبره ده څه قران اوحديث خو نه ده.

**جواب:** ايمان دنبي كريم ﷺ له لوري دراوړل شوي پوره دين قبلولو نوم دی اوددې په مقابل كې دنبي كريم ﷺ ددين له يوې قطعي اويقيني خبرې نه انكار كول كفردي. په قران كريم كې بې شماره ايتونه راغلي دي"مآأنزل إلى الرسول" چې رسول ته كوم حكمونه راغلي دي هغو منلوته "ايمان" او"ما أنزل إلى الرسول" چې په هغو كې ديو نه منلوته كفرويل شوي دي همدارنګه په حديثونوكې هم دا مضمون ډيرراغلی دی. لكه دصحيح مسلم په اول جلد ۳۷ صفحه كې يو حديث كې دي چې :(هغوی ايمان راوړی دی په ما اوپه هغه څه چې ماراوړي دي" [۳].له دې نه دمسلمان اوكافرتعريف معلوميږي. يعنې كوم څوک چې

---

[۱] الايمان وهو تصديق محمد صلى الله عليه وسلم فى جميع ما جاء به عن الله تعالى مما علم مجيئه ضرورة ( در مختار ج:٤، ص: ٢٢١، باب المرتد ، طبع ايچ ايم سعيد)

[۲] وايضاً قلت والضابط فى التكفير ان من رد ما يعلم ضرورة من الدين فهو كافر (اكفار الملحدين ص:۸۸ وايضاً ص : ۲، ۳) ايضاً : ثم اثبتنا فى الفصول الآتية اجماع اهل الحل والعقد على ان : تاويل الضروريات واخراجها عن صورة ما تواتر عليه وكما جاء وكما فهمه وجرى عليه اهل التواتر انه كفر (اكفار الملحدين ص:۷) فمنكر الضروريات الدينية كالاركان الاربعة التى بنى الاسلام عليها : الصلوة والزكوة والصوم والحج وحجية القرآن ونحوها كافر آثم (فواتح الرحموت شرح مسلم الثبوت ص :٦١١ طبع لكهنؤ)

[۳] عن ابى هريرة رضى الله عنه عن رسول الله صلى الله عليه وسلم قال: امرت ان اقاتل الناس حتّى يشهدوا ان لا اله الا الله ويؤمنوا بى وبما جئت به، فاذا فعلوا ذٰلك عصموا منّى دمائهم واموالهم الا بحقها وحسابهم على الله.(مسلم ج:۱ ص:۳۷ طبع قديمى كراچى)

د محمد رسول الله ﷺ د راوړل شوي دين ټولې خبرې يقيني مني هغه مسلمان دى او څوک چې د دين د قطعي يوې خبرې نه هم منکرشي يامعنى اومفهوم يې بدل کړي هغه مسلمان نه بلکې کافر دى.[۱]
دمثال په توګه قران مجيد پيغمبر عليه السلام ته خاتم النبيين فرمايلي دي[۲] او په ډېرو حا يثونو کې يې ددې تفسيرکړى دى چې دهغه ﷺ نه وروسته به بل پيغمبرنه وي [۳] اودامت مسلمه ټولې فرقې (له خپلو اختلافاتو باوجود) داعقيده لري. خو مرزاغلام احمد قادياني ددې عقيدې نه انکار وکړاودنبوت دعوه يې وکړه[۴].له دې وجې قاديانان کافروګرځول شول.
همدارنګه په حديثونوکې دحضرت عيسى عليه السلام په اخره زمانه کې د راکوزېدو خبرورکړل شوى دى[۵]مرزاقادياني اودهغه تابعداردې عقيدې نه منحرف دي اوهغوى دمرزا قادياني دعيسى کيدودعوه کوي[۶] په دې و جه هم هغوى مسلمانان نه دي.همدارنګه په قرآن مجيد اوحديثونوکې دنبي کريم ﷺ تابعداري ترد قيامته پورې دخلاصي ذريعه ګرځول شوې ده. خو دمرزاقاديانى دعوه ده چې زماوحې دشريعت تجديدکړى دى.له دې وجې نه اوس زماوحې اوتعليم دخلاصي ذريعه ده.(اربعين نمبر۴ص۷۰حاشيه) غرض داچې قادياني د بې شمېره قطعي احکامونه انکارکړى دى ځکه ټولې اسلامي فرقې ددوى په کفرمتفق دي[۷]

## دوحې له شروع کيدو نه درې کاله وروسته د عام دعوت او تبليغ حکم وشو

**سوال:** دوحې دبنديدوپه زمانه کې داسلام تبليغ جاري و اوکه نه؟ ديو صاحب وينا ده چې دهغه درايې مطابق له لومړۍ وحې وروسته درې کلوپورې پيغمبرته نبوونه (ټرېننګ) ورکړل

---

۱] لا نزاع فى تكفير من انكر ضروريات الدين (اكفار الملحدين ص: ۱۲۱ طبع پشاور)
۲] مَاكَانَ مُحَمَّدٌ اَبَااَحَدٍمِّنْ رِّجَالِكُمْ وَلٰكِنْ رَّسُوْلَ اللهِ وَخَاتَمَ النَّبِيِّنَ وَكَانَ اللهُ بِكُلِّ شَيْءٍ عَلِيمًا (الاحزاب: ۴۰)
۳] عن ثوبان رضى الله عنه قال:قال رسول الله صلى الله عليه وسلم:وانا خاتم النبيِّن لاَ نبى بعدى (ترمذى شريف ج:۲،ص:۴۵) تفصيل له پاره وګورئ ختم نبوت کامل،تاليف حضرت مفتى محمد شفيع صاحب رحمه الله
۴] زمونږ دعوه ده چې زه نبي او رسول يم ......زمونږ مذهب خو دا دى چې په کوم دين کې د نبوت سلسله نه وي نو هغه مړ دى (ملفوظات ج : ۱۰،ص: ۱۲۷)
۵] وان من اهل الكتاب الا ليؤمنن قبل موته (النساء :۱۵۹) ايضاً عن ابى هريرة رضى الله عنه قال : قال رسول الله صلى الله عليه وسلم ......... والذى نفسى بيده ليوشكن ان ينزل فيكم ابن مريم حكماً عدلاً ........ الخ (باب نزول عيسى عليه السلام ،مشكوة ص: ۴۷۹) تفصيل له پارهه اوګورئ التصريح بما تواتر فى نزول المسيح لامام العصر العلامة محمد انور شاه الكشميرى.)
۶] مرزا په آئينه کمالات اسلام کى قسم خوړلو سره ليکى چه الله تعالى زهٔ مسيح موعود او مسيح ابن مريم جوړ کړې ووم (آئينه کمالات ص: ۵۵۱ روحانى خزائن ج:۵، ص: ۵۵۱)
۷] تفصيل له پارهه فتاوى ختم نبوت طبع ملتان اوګورئ.

شو اوله هغه وروسته د تبليغ حکم وشو هيله ده ځواب به راکړئ!

**جواب:** دلومړی وحې له نازليدو وروسته دوحې نزول دريوکلوپورې بند و. دغې زمانې ته د"فترة وحې" زمانه ويل کيږي. په دغه زمانه کې ددعوت اوتبليغ عمومي حکم نه و[١]. دزمانه فترت"نه وروسته دسورة مدثر لومړني ايتونه نازل شول اوهغهﷺ ته ددعوت او ويرولوحکم ورکړل شو[٢]. په فترت وحی کې ډېرحکمتونه وو[٣]. دې صاحب چې دښو ونې اوتړښننګ کومه خبره کړې ده . دادهغه دخپلې فکري سطحې مطابق ده.

## د ګونګي اسلام ښکاره کول

**سوال:** زموږ سره يوګونګی دی. موراوپلاريې مړه دي اونوموړی له پيدايښ نه تراوسه پورې هندو پاتې شوی دی اوس هغه مسلمانيدل غواړي دهغه عمر٢٨ کاله دی اوهغه بې تعليمه دی. پوښتنه داده چې ده ته کلمه څنګه وښودل شي سره له دې چې هغه اوريدلای هم نه شي. يومولوي صاحب وويل چې کلمه طيبه وليکئ اوپه اوبوکې يې ويلې کړئ اوهغه بيا پرې وڅښئ. نومسلمان به شي؟

**جواب:** په کلمه څښلو باندې خونه مسلمانيږي خو که هغه په اشارې سره دتوحيداورسالت اقراروکړي، نومسلمان به شي.[۴]

---

١] وقع فى تاريخ احمد بن حنبل عن الشعبى ان مدة فترة الوحى كانت ثلاث سنين ....... وليس المراد بفترة الوحى المقدرة بثلاث سنين وهى ما بين نزول اقراء ويايهاالمدثر عدم مجئ جبريل اليه بل تاخر نزول القرآن فقط(فتح البارى ج:١،ص:٢٧،باب بدء الوحى ، طبع دار نشر الكتب الاسلاميه لاهور)

٢] ان المراد اولية مخصوصة بالامر بالانذار وعبر بعضهم عن هذا بقوله اول ما نزل للنبوة اقراء باسم ربک، واول ما نزل بالرسالة يا ايها المدثر (الاتقان فى علوم القرآن ج:١، ص: ٢٤) واعلم ان اختلف يعنى اول ما نزل من القرآن فقيل وهو الصحيح انه اقراء باسم ربک وهو الظاهر من هذا السياق وله ادلة اخرى مذكوره فى موضعها والقول الثانى : ياايها المدثر ويؤيده ما فى الصحيحين عن ابى سلمة عن جابر سمعت رسول الله صلى الله عليه وسلم وهو يحدث عن فترة الوحى ..... ان المراد منه نزولها بعد زمن الفترة كما يؤيد السياق (فيض البارى ج:١، ص:٢٥، الكلام فى اول السور نزولاً)

٣] وفتور الوحى عبارة عن تاخره مدة من الزمان ، وكان ذلک ليذهب ما كان صلى الله عليه وسلم وجده من الروع وليحصل له التشوف الى العود فقد روى المؤلف فى التعبير من طريق معمر ما يدل على ذلک (فتح البارى ج: ١، ص: ٢٧، باب بدء الوحى)

٤] واعلم ان اشارة الاخرس تعتبر كالبيان فى وصية واقرار ..... الخ (شرح المجلة ص:٤٩، مطبوعة مكتبه حبيبيه كوئته) وايضاً الاجماع منعقد على ايمان من صدق بقلبه وقصد الاقرار باللسان ومنعه منه مانع من خرس ونحوه-(شرح عقائد ص:١٢٣ طبع خير كثير)

## هر مسلمان کولی شي چې کافر مسلمان کړي

**سوال:** ایا یو عام مسلمان (چې دلمانځه او روژې پابندوي) یو کافر مسلمانولی شي؟ او که مسلمانولی یې شي نو طریقه به یې څنګه وي؟

**جواب:** هغه به دې کافرته کلمه شهادت ووایي او په کوم ډول کفر کې چې هغه اخته وي له هغه نه دې توبه پرې اوباسي[۱]. بس مسلمان به شي او دهغه نه وروسته به هغه ته د اسلام دضروري خبرو تعلیم ورکړي.

## په دین او مذهب کې څه فرق دی؟

**سوال:** مذهب او دین کې څه فرق دی؟ همدارنګه اسلام مذهب دی او که دین؟

**جواب:** ددین او دمذهب یو مطلب دی. نن سبا دځینو خلکو خیال دادی چې دین او مذهب بېل بېل شیان دي خو دهغوی دا خیال غلط دی.[۲]

## د صراط مستقیم نه څه مراد دي؟

**سوال:** ډېرو بزرګانو صراط مستقیم یواځې جومات پورې محدود کړی دی دوی نیک کارونه یواځې لمونځ، روژه او زکات ګڼي، څوک چې لمونځ نه کوي ایا هغه ته کافرویل صحیح دي؟ ایا دیو مسلمان بل مسلمان ته کافرویل صحیح دي؟ لمونځ فرض دی. مثلاً که یو سړی په دریاب کې ډوبیږي او دمرستې غوښتنه وکړي، نو دا زمونږ باندې فرض دي چې بچ یې کړو، په داسې حال کې چې دوه منټه که مونږ صبر وکړو، نو لمونځ قضا کیږي، نو مونږ په داسې حالت کې جای نمازونه ددریاب په غاړه وغوړوو او لمونځ وکړو او که ددغه ډوب شوي انسان ژوند بچ کړو؟

الله پاك په قران کریم کې فرمایلي دي چې ترجمه یې داده: "او ښایه مونږته سمه لار" دا په سورة فاتحه کې دي چې په هرلمانځه کې لوستل کیږي چې دهغې په نه ویلو سره لمونځ نیمګړی وي، دا مونږ په هرلمانځه کې پنځه وخته وایو چې وښایه مونږته سمه لار. ایا مونږ په غلطه لاره یو که نه نو مونږ کومه صحیح لار غواړو. ددې مطلب خو دادی چې صراط مستقیم

---

۱] واسلامه ان یاتی بکلمة الشهادة ویتبرا عن الادیان کلها سوی الاسلام وان تبرا عما انتقل الیه کفی کذا فی المحیط (عالمگیری ج:۲، ص: ۲۵۳ طبع کوئته)

۲] الدین بالکسر وضع التی یدعوا اصحاب النقول الی قبول ما هو عند الرسول علیه السلام والدین والملة متحدان بالذات مُختلفان بالاعتبار فإنَّ الشَّریعةَ مِنْ حَیْثُ إنَّها تُطاعُ تُسَمَّی دینًا ومِنْ حَیْثُ إنَّها تجمَعُ تُسَمَّی ملَّةً وَمنْ حَیْثُ إنَّها تُرْجَعُ إلَیْها تُسَمَّی مذْهبًا(قواعد الفقه ص: ۲۹۵، ۲۹۶ طبع صدف پبلشرز کراچی)

څه بل شی دی، نیغه لاره بله ده. چې هغه جنت ته تللې ده. ایاموږ به په هغه لاره باندې ځو چې یواځې جومات ته تللې ده؟

مهربانی وکړئ تاسو موږته هغه طرز اوطریقه وښیئ چې په هغې عمل وکړو او په نیغه لاره یعنې په صراط مستقیم باندې روان شو؟

**جواب:** قران کریم چېرته چې موږ ته دادعا ښودلې ده "وښیه موږته نېغه لاره"، نوهلته یې ددې نېغې لارې وضاحت هم کړی دی چې لاردهغو خلکوچې تا پرهغوی انعام کړی دی. چې نه الله تعالی پرې غوسه شوی دی او نه هغوی گمراه دي"[۱]

له دې نه معلومه شوه چې صراط مستقیم دنبي کریم ﷺ، صحابه کرامو رضی الله عنهم اوددین د بزرگانو دلارې نوم دی، هم ددې صراط مستقیم مختصرعنوان اسلام دی[۲]. قران کریم اود پیغمبر علیه السلام پاك ارشادات هم ددې لارې تشریح کوي، نبي علیه السلام دالله پاك له طرفه چې څومره عملونه امت ته ښودلي دي اودکوم کوم وخت له پاره یې چې کوم کوم عمل ښودلي دي دخپلې درجې مطابق هغه په ځای کول ضروري دي او په دې عملونوکې یوهم معمولي او سپك گڼل صحیح نه دي، که په یوه وخت کې څوعملونه راجمع شي، نوموږته دا اصول هم ښودل شوي دي چې کوم یو به وړاندې کوو او کوم یوبه ورسته کوو، مثلاً: تاسوچې کوم مثال لیکلی دی چې یو سړی ډوبیږي، نوپه دغه وخت کې دهغه بچ کول اوله فریضه ده، همدارنگه که یوسړی لمونځ کوي اودهغه په مخکې یوړوندسړی په کوهي یا کنده کې غورځیږي، نوهغه به لمونځ مات کړي اودهغه ژوندبچ کول فرض دي.[۳]

له دې تفصیل نه معلومه شوه چې صراط مستقیم دجومات پورې محدودنه دی اوهغه سړی کم عقل دی چې اسلام ترجومات پورې محدودگڼي، خو ددې دا معنا نه ده چې دجومات داعملونه زیاتي اوبې فایدې دي، بیشکه چې اسلام یواځې دروژې، لمانځه ،حج اوزکات نوم نه دی، خو ددې دا معنا نه ده چې دا لمونځ ،روژه ، زکات اوحج ضروري نه دي، بلکې داخوداسلام ډېرلوی اواهم ارکان دي اوداسلام له ټولونه ښکاره نښې دي کوم سړی چې دمسلماني ددعوې سره سره دلمانځه او روژې بوج نه پورته کوي دهغه قدم دصراط مستقیم په اولنې پوړ هم نه دی.

---

۱] اهْدِنَا الصِّرَاطَ الْمُسْتَقِيمَ صِرَاطَ الَّذِينَ أَنْعَمْتَ عَلَيْهِمْ غَيْرِ الْمَغْضُوبِ عَلَيْهِمْ وَلَا الضَّالِّينَ (الفاتحة : ٥ تا ٧)

۲] والمستقیم المستوی والمراد به طریق الحق وقیل ، هو ملة الاسلام (قوله والمراد به ) ای بالصراط المستقیم الطریق الحق المطلق سواء کان نفس ملة الاسلام او ما ینطوی علیه مما هو حق فی باب الافعال والاقوال و الاخلاق والمعاملات بین الخلق والخالق. .الخ(حاشیه شیخ زاده علی البیضاوی ج:۱ص:۹۵طبع قدیمی کتب خانه)

۳] (یجب قطع الصلوة) ولو فرضاً (باستغاثة) شخص (ملهوف) لملهم اصابته کما لو تعلق به ظالم او وقع فی ماء (مراقی الفلاح علی هامش الطحطاوی ص:۲۰۳، فصل فیما یوجب قطع الصلوة وما یجیزه)

پاتې شوه داخبره چې مونږ په صراط مستقيم باندې قائم يو. نوبيادهغه دعاولې غواړو چې "وښيه مونږته نيغه لاره" ددې ځواب دادی چې دلته دوه شيان دي. يوپه صراط مستقيم باندې برابرېدل اوبل په صراط مستقيم باندې تراخره پورې قائم اوسيدل. دا دواړه خبرې ښخې جلاجلا دي. ځينې وخت داسې وي چې يوسړی به نن په صراط مستقيم قائم وي. خو الله مه کړه چې دهغه پښه به سباله صراط مستقيم نه ښوېدلې وي اودګمراهې ژورې کندې ته به غورځېدلی وي. دقران کريم ښودل شوې دعا "اهدناالصراط المستقيم" دموجوده او راتلونکې دواړو زمانوله پاره ده اومطلب دادی چې په اينده هېڅ باور نشته. نوځکه داينده له پاره په صراط مستقيم باندې دقائم پاتې کېدو دعاغوښتل کيږي چې اې الله! څنګه چې تايواځې په خپل کرم اوفضل سره مونږ دخپلو مقبولو بنده ګانوپه لار( صراط مستقيم) باندې روان کړي يو. اينده موهم تر مرګه پورې پرې قائم اوساتې.[1]

تاسوپوښتنه کړې ده چې کوم سړی لمونځ نه کوي. نوهغه ته کافرويل صحيح دي؟ددې ځواب دادی چې کوم سړی لمونځ نه کوي خو هغه دلمونځ دفرضيت قايل وي اودامنې چې زه ددې سترې فريضې دپريښودلوپه وجه لوی ګنهګاريم اوزه مجرم يم. داسې سړي ته کافرنه شي ويل کېدای اونه څوک ده ته دکافر ويلو جرات کولی شي.[2]

خو که داسړی لمونځ فرض نه ګڼي اونه دلمونځ پريښودل څه ګناه اوجرم ګڼي. نوته اووايه چې ده ته به څوک مسلمان ووايي ځکه چې دده دمسلمان ګڼلومعنا خو دا ده چې الله او رسول ﷺ چې په مسلمانانوباندې دلمانځه دفرض کېدو ذکرکړی دی هغه (نعوذبالله) غلط دی. آيا دخدای او درسول ﷺ خبرې ته غلط ويلو والا هم مسلمان پاتې کېدای شي؟[3]

تاسوداپوښتنه کړې ده چې ايايومسلمان بل مسلمان ته کافر ويل صحيح دي؟دهغه ځواب دادی چې دا هېڅکله صحيح نه دي بلکې لويه ګناه ده[4] خو په دې ځان ښه پوهول پکاردي چې مسلمان څوک وي؟

---

۱] اهدنا الصراط المستقيم ......... فالمطلوب اما زيادة ما منحوه من الهدى اوالثبات عليه او حصول المراتب المترتبة عليه .........الخ (تفسير بيضاوى مع حاشيه شيخ زاده ج:۱،ص: ۹۲، ۹٤) ان الحاصل اصل الاهتداء والمطلوب زيادته والثبات عليه او حصول مرتبته لم تحصل بعد (حاشيه شيخ زاده على البيضاوى ج:۱، ص: ۹۳ سورة الفاتحه آيت ٦ مزيد تفصيل له پارهه حاشيه شيخ زاده اوګورئ)

۲] والكبيرة لا تخرج العبد المؤمن من الايمان ولا تدخله فى الكفر (شرح عقائد ص: ۱۰٦ تا ۱۰۸)

۳] فنقول الصلوة فريضة واعتقاد فرضيتها فرض وتحصيل علمها فرض وجحدها كفر (اكفار الملحدين ص:٦)

٤] عَنِ ابْنِ عُمَرَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صلى الله عليه وسلم « أَيُّمَا رَجُلٍ مُسْلِمٍ أَكْفَرَ رَجُلاً مُسْلِمًا فَإِنْ كَانَ كَافِرًا وَإِلاَّ كَانَ هُوَ الْكَافِرَ ».(ابوداؤد ج:۲،ص:۲۸۸ كتاب السنة طبع ايچ ايم سعيد)

حضرت محمد ﷺ چې د الله د طرف نه کوم دین راوړې دی او امت ته یې ورکړې دی دغه پوره دین اوددې یوه یوه خبره منل اسلام دی او منلو والا ته یې مسلمان وایي.[۱] د دین اسلام کومې خبرې چې نبي ﷺ بیان کړې دي په هغوکې یوه خبره نه منل یا په هغو کې د شك او شبهې اظهار کولو ته کفر ویل کیږي.[۲] نو کوم سړی چې د دین اسلام یوه یقیني خبره دروغ ګڼي یا ټوکې پسې کوي، نو هغه مسلمان نه دی د نبي ﷺ له لوري دراوړل شوي پوره دین د منلو یو مختصر عنوان کلمه طیبه "لااله الاالله محمدرسولُ الله" ده. مسلمان د دې کلیمې ویلو سره د الله د توحید او د حضرت محمد ﷺ د رسالت او نبوت اقرار کوي او ددې اقرار معنا داده چې هغه به د خدای هر حکم مني او د محمد رسول الله ﷺ هر فرمان به د الله فرمان ګڼي. ددې کلیمې طیبې ویلو باوجود چې کوم سړی د نبي علیه السلام یوې خبرې ته (نعوذبالله) غلطه ووایي، هغه په خپل اقرارکې یقیني دروغژن دی په دې وجه داسې سړي ته مسلمان ویل د پیغمبر علیه السلام تکذیب دی. خلاصه داده چې نه یو مسلمان ته د کافر ویلو اجازه شته او نه یو کافر ته د مسلمان ویلو اجازه شته. په قران کریم کې راغلي دي:

"اې نبي ته ووایه چې حق ستا درب له لوري راغلی، او س چې د چا خوښه وي (هغه دې د حق منلو سره) مومن جوړشي او چې د چا خوښه وي (ددې نه دې انکار وکړي او کافر دې جوړشي) خو دا یاد ساتئ چې بیشکه موږ (داسې) ظالمانو له پاره (چې د حق نه انکارکوي) اور تیار کړی دی "[۳] (سورة کهف: ۲۹)

## آیا په امت محمدیې کې غیرمسلم هم شامل دي؟

**سوال:** ایا په امت محمدي ﷺ کې غیرمسلم هم شامل دي دیو صاحب وینا ده چې د امت محمدي ﷺ د مغفرت دعا کول نه دي پکار. بلکې دا ویل پکار دي چې امت مسلمه ته بښنه وغوښتل شي ځکه چې کافران هم په امت محمدي کې شامل دي.

**جواب:** د پیغمبر ﷺ امت په دې اعتبار سره خو کافران هم دي چې د هغه دعوت او پیغام د هغوی له پاره هم دی خو کله چې د امت محمدي ﷺ لفظ وویل شي، نو ددې نه مراد هغه خلک دي چې چا د هغه دعوت ته لبیك وویل او د هغه د پیغام تصدیق یې وکړ او په هغه یې

[۱] الایمان وهو تصدیق محمد صلی الله علیه وسلم فی جمیع ما جاء به عن الله تعالی مما علم مجیئه ضرورة (فتاوی شامی ج: ٤، ص: ۲۲۱ باب المرتد)

[۲] فمن انکر شیئاً مما جاء به الرسول کان من الکافرین (شرح عقیده طحاویه ص: ۲۹۲)

[۳] وَقُلِ الْحَقُّ مِنْ رَّبِّكُمْ فَمَنْ شَاءَ فَلْيُؤْمِنْ وَّمَنْ شَاءَ فَلْيَكْفُرْ إِنَّا أَعْتَدْنَا لِلظّٰلِمِيْنَ نَارًا ٥ (الکهف: ۲۹)

ايمان راوړي. له دې وجې دامت محمدي ﷺ په حق کې دخيردعابالکل صحيح ده اودهغه صاحب خبره صحيح نه ده.[1]

## آيا له ليدونه پرته يقين معتبر نه دى

**سوال:** وکذلک نرى ابراهيم ملکوت......الى موقنين، له دې نه معلومه شوه چې دليدونه پرته يقين معتبرنه دى. حضرت ابراهيم عليه السلام په جليل القدرپيغمبرانوکې دى. هغه باندې صحيفې هم نازلې شوې دي (صحف ابراهيم وموسى) اودقدرت ډيرعجيبه کارونه هغه ليدلي و. هروخت به يې دالله تعالى سره دزړه تعلق قايم و. هغه باندې د **ملکوت السموت والارض** سيل هم شوى و. ددې باوجود هغه ته دزړه اطمينان نه و؟ اود **کيف تحى الموتى** به يې کولو. نوبيا يوعام کس چې دالله تعالى په لارروان وي اودخپلولذتونوقربانولو سره خپل ځان ته تکليف ورکوي اودالله تعالى له طرفه هغه ته فائده نه رسيږي. بياهم دهغه په بندګي کې څه کمى نه راځي، دې صورت کې هغه ددې خبرې ډيرحقدار دى چې هغه باندې دملکوت سيل وکړل شي، چې دهغه حوصله افزايي وشي اواستقامت يې نصيب شي. انبياء عليهم السلام خوبه هسې هم هروخت دملکوت سيل کولو.

**جواب:** ديقين درجې مختلفې دي، ديقين يوه درجه عين اليقين ده. کومه چې په سترګو باندې دکتلونه وروسته حاصليږي اويوحق اليقين ده کومه چې دتجربې نه وروسته حاصليږي، همدارنګه عام مومنان. نېکان. صديقين اوانبياء عليهم السلام هم په درجوکې فرق لري، د ايمان درجه خوعامو مومنانوته هم حاصل ده. نېکانواوصديقنوته دهغوى ددرجومطابق ديقين دولت ورکړل شوى دى اودانبياء عليهم السلام دمرتبومطابق هغوى نه ديقين درجې ورکړل شوي دي.

د حضرت ابراهيم عليه السلام (**کيف تحى الموتى**) داسې قسمه يقين او اطمينان کوم چې دليدونه پرته وي، مخکې هم هغه ته حاصل و. سالکينو او اولياء الله ته هم دمشاهدې دولت نصيب کيږي اود ليدونه پرته هم هغوى ته يقين او اطمينان په غيبو دايمان په طور حاصل وي. خودهغوى ايمان او اطمينان دانبياء عليهم السلام دايمان او اطمينان په شان نه شي کيداى اوهغوى دانبياء عليهم السلام دايمان او اطمينان برداشت کولوقابل هم نه شي کيداى، که نه هغوى به ليوني شي.

---

[1] أصل الأمة فامة نبينا صلى الله عليه وسلم هم الجماعة الموصوفون بالإيمان به والإقرار بنبوته ، وقد يقال لكل من جمعتهم دعوته أنهم أمته إلا أن لفظ الأمة إذا أطلقت وحدها وقع على الأول ، ألا ترى أنه إذا قيل أجمعت الأمة على كذا فهم منه الأول....الخ(تفسير كبيرج:٨،ص: ١٧٩، سورة آل عمران آيت :١١١)

## دالله تعالى دذات له پاره د واحد او جمعي دصيغې استعمالول

**سوال:** الله تعالى په خپل پاک کلام کې کله دخپل ځان له پاره دانا (واحدصيغه) استعمال کړې ده اوکله د نحن (جمعي صيغه) لکه: انى اناالله. نحن نزلناعليک القران، ددې فرق څه وجه ده؟

**جواب:** اصل خودواحد صيغه ده. خوکله کله دعظمت داظهارله پاره دجمعي صيغه استعمال شوې ده. انى اناالله. کې توحيددى اود توحيدله پاره دواحدصيغه صحيح ده اواناحن نزلناعليک القران کې ددې عظيم الشان کتاب دنازلېدو اودحفاظت ذکردى اودا دواړه منزل (نازلونکى) اومحافظ (حفاظت کونکى) عظمت اوقدرت سره تعلق لري. له دې وجې دلته دجمعي صيغه استعمالول زيات صحيح و. والله اعلم باسراره![1]

## د تحريف شويو اسماني کتابونو منونکي اهل کتاب دي؟

**سوال:** د الله پاك له طرف نه نازل شويو څلوروکتابونونه چې په يو کتاب کې تبديلي يا په هغوکې دخپلې خوښې سره سم څه کمې يا زيات وکړل شي اودهغه تابعداري وکړل شي. نوپه دې صورت کې ايا ددې تابعداري کونکو ته اهل کتاب ويل صحيح دي؟

**جواب:** قران کريم خودلفظي تحريف نه محفوظ دى[2]. له دې وجې نه دقران کريم په باره کې خو دا بې ځايه دى. په مخکې کتابونو کې تحريف شوي دى.[3] خو دغه خلک داصل کتاب دمنلو دعويداردي: نوځکه دوى ته اهل کتاب ويل صحيح دي.[4]

## مسلمان ته اهل کتاب ويل څنګه دي؟

**سوال:** مسلمانان داسماني کتاب لرونکي دي او محمد رسول الله ﷺ اخري پيغمبر مني.

---

۱] (فاما قوله : انا نحن نزلنا الذكر) فهذه الصيغة وان كانت للجمع الا ان هذا من كلام الملوك عند اظهار التعظيم فان الواحد منهم اذا فعل فعلاً او قال قولاً ، قال : انا فعلنا كذا وقلنا كذا فكذا ههنا (تفسير كبيرج:۱۹، ص:۱۶۰، سورة الحجر)

۲] قال تعالى : انَّا نَحْنُ نَزَّلْنَا الذِّكْرَ وَانَّا لَه لَحٰفِظُوْنَ (الحجر:۹) وهوحافظه في كل وقت من الزيادة والنقصان والتحريف والتبديل (تفسيرنسفى ج:۲ ص:۱۸۴،طبع دار ابن كثير ،بيروت)

۳] قال تعالى : يُحَرِّفُوْنَ الْكَلِمَ عَنْ مَّوَاضِعِه وَنَسُوْا حَظًّا (المائدة:۱۳ ) يفسرونه على غير ماانزل ..... وتغيير وحيه.(تفسير نسفى ج:۱ ص:۴۳۴، طبع دار ابن كثير ،بيروت)

۴] واعلم ان من اعتقد ديناً سماوياً وله كتب منزل كصحف ابراهيم وشيث وزبور داؤد فهو من اهل الكتاب.(ردالمحتار مطلب مهم في وطى السرارى ج:۳ ص: ۴۵)

نو ایا دوی ته هم اهل کتاب ویل د شریعت یالغت په لحاظ جائزدي او که نه؟

**جواب:** اهل کتاب یو اصطلاحي لفظ دی چې د قران مجید نه مخکې د منسوخ شویو کتابونو منلو والو ته ویل کیږي. د مسلمانانو له پاره نه دی.[۱]

## د نبي کریم ﷺ د مور و پلار په ایمان باندې بحث کول جائز نه دي

**سوال:** مولانا صاحب یوه ډېره اهمه مسئله ده، چې زه یې د دریو څلورو ورځو نه ډېر پریشانه کړی یم، مسئله داده چې زموږ په محله کې یوه مېرمن ده هغه درې څلور ورځې وړاندې زموږ په کور کې ناسته وه او دا یې ویل چې د رسول الله ﷺ مور بی بی (نعوذ بالله) کافره وه ځکه چې د رسول کریم ﷺ نه مخکې اسلام نه و. ایا داسې ویل روا دي؟

**جواب:** دا مسئله ډېره نازکه ده. محققینو په دې کې د بحث کولو نه منع کړې ده.[۲] امام سیوطي رحمه الله په دې اړه درې رسالې لیکلې دي چې په هغو کې یې د نبي ﷺ د مور و پلار ایمان یې ثابت کړی دی او که په دې تحقیق باندې د چا اطمینان نه وي، نو بیا چوپ پاتې کېدل (توقف) غوره ده. د غې محترمې ته وو ایه چې له تا به په قبر کې یا حشر کې دا پوښتنه نه کیږي چې د نبي ﷺ مور او پلار متعلق ستا څه عقیده وه. په دی وجه دې په دې غلط بحث کې نه اخته کیږي او خپل ایمان دې نه خرابوي او نه دې د مومنانو جذبات بې ځایه زخمي کوي.[۳]

## فیض الباري او رافضي افواه

**سوال:** مهرباني وکړئ او دا راته ووایئ چې د مشهور کتاب بخاري شریف تراوسه پورې څو مره شرحې د دیوبند عالمانو لیکلې دي؟ او په دې ټولو کې د ټولو نه مستنده او بهتره شرحه کومه ده. کومه چې په اعتماد سره وړاندې کړل شي، ویل کیږي چې د علامه محمد انور شاه کشمیري صاحب رحمه الله څنګه شرح لیکلې ده ایا هغه شرحه د خپل صحیح او مستند متن سره په چاپ شوي ډول پیدا کیږي؟ او ایا دغه مطبوعه شرح بخاري په اعتماد او یقین سره وړاندې کېدای شي؟

---

۱] قال تعالی : قُلْ يٰاَهْلَ الْكِتٰبِ تَعَالَوْا اِلٰى كَلِمَةٍ سَوَاءٍ بَيْنَنَا وَبَيْنَكُمْ(آل عمران :٦٤) هذ الخطاب یعم اهل الکتاب من الیهود والنصاری (تفسیر ابن کثیر ج:٢،ص: ٥٠ طبع رشیدیه کوئته)

٢] وبالجملة كما قال بعض المحققين: إنه لا ينبغي ذكر هذه المسألة إلا مع مزيد الادب، وليست من المسائل التي يضر جهلها أو يسأل عنها في القبر أو في الموقف، فحفظ اللسان عن التكلم فيها إلا بخير أولى وأسلم، (شامی ج:٣، ص: ١٨٥ باب نكاح الكافر ، طبع ایچ ایم سعید)

٣] تفصیل له پاره اوګورئ شامی ج:٤، ص:٢٣١ (بحث فی احیاء ابوی النبی صلی الله علیه وسلم بعد موتهما وایضاً شامی ج:٣، ص: ١٨٥ باب نكاح الكافر والحاوی للفتاوی ج:٢، ص:٢٠٢ تا ٢٣٤)

**جواب:** دصحیح بخاري کومه مستقله شرحه خودې وخت کې په ذهن کې نشته چې اکابر دیوبند لیکلي وي، خو دهغوی درسي افادات دهغوی شاګردانو قلم بندکړي اوخپاره کړې یې دي، په هغو کې ..لامع الدرار. دحضرت ګنګوهي صاحب تقریردی. چې دهغه شاګرد حضرت مولانا محمد یحیی کاندهلوي رحمة الله علیه راجمع کړی و اوزموږ شیخ حضرت مولانا محمد زکریا رحمة الله علیه ابن مولانا محمد یحیی له حاشي سره خپور شوی دی. هم دغه راز دامام العصر حضرت علامه مولانامحمدانورشاه کشمیري رحمة الله علیه درسي افادات دهغه شاګردسیدبدرعالم میریټهي مهاجرمدني د..فتح الباري..په نوم سره خپره کړې ده. حضرت شاه صاحب به په اردوکې تقریرفرمایلو،مولاناسیدبدرعالم هغه عربي ته منتقل کړی اوقلم بندکړی یې دی. (همدارنګه دحضرت ګنګوهي ذکر شوي تقریرونه هم حضرت مولانامحمدیحیی په عربي کې قلمبندکړي وو)

له دې نه وروسته هرکال په دوره حدیث کې طالبانو داکابروتقریرونه قلمبندکول اودهغې نه ځینې خپاره شوي هم دي، چې په هغو کې دشیخ الاسلام مولاناحسین احمد مدني، مولانا شبیر احمد عثماني اومولانافخرالدین (نورالله مراقد) هم تقریرونه زیات مشهور دي اوداټول په اردوکې دي

**سوال:** یوکس چې خپل ځان ته ددین عالم وایي اوخپل ځان داهل سنت والجماعت غړی ثابتوي، هغه په قران شریف کې دتحریف لفظي قایل وي. دهغه په باره کې شرعي حکم څه دی؟ سره له دې چې په قران شریف کې هیڅ قسمه تحریف ممکن نه دی، ځکه چې ددې د حفاظت ذمه واري خپله الله تعالی اخستې ده.امیدلرم چې قطعي اوتحقیقي ځواب به راکړئ.

**جواب:** په اهل سنت کې هیڅ یوکس په قران کریم کې دتحریف لفظي قایل نه دی. بلکې داهل سنت په نزدداسې کس داسلام نه خارج دی. دامسئله دې زماپه کتاب ..شیعه سني اختلافات اوصراط مستقیم..کې وکتل شي. زماخیال دی چې ستاسوته به دهغه کس په باره کې غلط فهمي شوې وي.

**سوال:** ستاسوپه خدمت کې مې یو سوال دقران مجیددتحریف لفظي دقایل په باره کې په شرعي حکم باندې دپوهیدوله پاره وړاندې کړی و. تاسودځواب نه وروسته فرمایلي و چې زماخیال دې چې تاسوته به ددغه صاحب په باره کې غلط فهمي شوې وي؟ له دې جملې نه وروسته ماضروري وګڼله چې ستاسو مزیداطمینان وکړم. چې دتحریف لفظي دقایل په باره کې زمایقین وي، نو دشریعت څه حکم دی؟ له دې وجې نه ستاسوپه خدمت کې دهغه عالم دین اصلي الفاظ وړاندې کوم هغوی فرمایي:

(زماپه نزدتحقیق دادی چې په قران کې محققانه طورسره (یواځې معنوي نه) تحریف لفظي هم ذي، یاخوخلکو قصدا کړي دي ، یا دځه غلطي له وجې نه شوي دي)

په دې الفاظو سره هغه فرمايي چې په قران کريم کې تحريف لفظي شته. سره له دې چې موږ اوريدلي دي چې قران کريم دخپل نزول نه واخله تراوسه پورې دهرقسمه تحريف نه محفوظ دی. په قران کې دمخې نه ياشانه باطله لارنه موندل کيږي اوقران پاک دحفاظت ذمه واري الله تعالی په خپله اخستې ده اوداموهم اوريدلي دي چې په قران کې دهر ډول تحريف هيڅ يو مسلمان قايل نه شته اوکه څوک څان ته مسلمان ويلووالا داسې ووايي. نو هغه مرتد شي. تراوسه پورې دشيعه فرقې په باره کې مې اوريدلې و چې هغوی په قران کې دتحريف قايل دي. خو يواهل سنت والجماعت ويونکي عالم په تحقيقی طورسره داسې کړې دي. له دې وجې نه زماسره ډيرتشويش شو. چې دقران پاک هرقسمه ذمه واري الله تعالی په خپله اخستې ده اوددې باوجودپه قران پاک کې تحريف منل کيږي. له دې وجې په حقيقت باندې دپوهيدوله پاره ماستاسورلابنوونه غوښتې ده. داراته ووايئ چې په پخوا هم چرته يوسني عالم په قران پاک کې دمعنوي يالفظي تحريف قايل و؟ اميدلرم چې تاسوبه مې دقطعي شرعي احکامونه خبرکړئ .مننه.

**جواب:** مادرته په لومړي خط کې ليکلي و چې په اهل سنت کې هيڅ يوکس دتحريف في القران قايل نه شته. مادرته داهم ليکلي و چې تاسوته به ددغه صاحب په باره کې غلط فهمي شوي وي. زماخيال صحيح شو. تاسوچې کوم عبارت دغه صاحب ته منسوبوئ. هغه دده عبارت نه دی. بلکې په غلط فهمي کې هغه ته منسوب شوی دی.

ددې شرح داده چې فيض الباري (ج:۳ ص:۳۹۵)کې دحضرت ابن عباس رضی الله عنه قول (کوم چې صحيح بخاري ج:۱ ص:۳۶۹کې منقول دي) چې الله تعالی تاسومسلمانانوته ويلي دي چې اهل کتابو دالله تعالی کلام بدل کړ اوپه کتاب کې يې په خپلولاسونوبدلون وکړ. ددې په شرح کې امام العصرمولانامحمدانورشاه کشميري رحمة الله عليه ليکي:

پوهيدل پکاردي چې تحريف (ففي الکتب السابقه) کې درې مذاهب دي:

۱: ډله دې طرف ته تللې ده چې په اسماني کتابونوکې هرقسمه تحريف شوی دی. لفظي هم اومعنوي هم.ابن حزم رحمة الله عليه هم دې طرف ته مائل دی.

۲: ډلې دامذهب دی چې داتحريف قليل دی.غالبادحافظ ابن تيميه هم دې طرف ته رجحان دی.

۳: ډله دتحريف لفظي نه قطعي منکردي. تحريف ددوی په نزدټول په ټوله معنوي دی. زه وايم چې په دې (موخرالذکر) مذهب باندې به لازم راځي چې (نعوذبالله) قران هم محرف دی. ځکه چې تحريف معنوي په دې کې هم څه کم شوی نه دی.(**واللازم باطل فالملزوم مثله**)کوم شی چې زمانه نزدمحقق شوی دی هغه دادی چې په دې کې (يعنې کتب سماوي کې) تحريف لفظي شوی دی يا هغوی قصداً غلطي کړې ده يادځه وجې نه؟ الله تعالی په دې ټولوښه پوهيږي.داد حضرت شاه صاحب دپوره عبارت ترجمه ده اوس په دوو خبروباندې غوروکړئ:

۱: داچې دابن عباس رضی الله عنه په ارشاد کې داهل کتاب په خپل کتاب کې تحریف کول ذکرشوې و، حضرت شاه صاحب په دې سلسله کې درې مذاهب نقل کړل.
۱: د اهل کتاب په کتاب کې تحریف په کثرت سره دی. ۲: تحریف شته خو کم دی.
۳: تحریف لفظي نشته یواځې تحریف معنوي دی. حضرت شاه صاحب دادرې واړه اقوال نقل کولونه وروسته خپل محققانه فیصله کړې ده چې داهل کتاب په کتاب کې تحریف لفظي موجوددی اوس پاتې شوه داخبره چې داتحریف هغوی قصداً کړې دی یاپه غلطي سره شوی دی په دې باندې الله تعالی ښه پوهیږي. غرض داچې ټوله خبره په دې باندې ده چې داهل کتابوپه کتاب کې تحریف لفظي شوی دې یانه؟ که شوی دی. نوکم دی که زیات؟ ددې په باره کې یې ددریو مذاهبوذکر کړي دي اوهم ددې تحریف فی الکتاب په باره کې یې خپله محققانه فیصله کړې ده. دقران پاک دتحریف لفظي خو هیڅ ذکرنشته. چې دهغه په باره کې حضرت شاه صاحب وفرمایي چې کوم شی چې زماپه نزد محقق شوی دی چې په دې کې تحریف لفظي شوی دی.
۲: شاه صاحب دویم قول دانقل کړی و چې سابقه کتابونوکې یواځې معنوي تحریف شوی دی، تحریف لفظي نه دی شوی. حضرت شاه صاحب داغلط ګرځوي اوددې قول منونکو باندې الزام لګوي چې که یواځې دتحریف معنوي له وجې نه داکتابونه محرف وګرځول شي. نودې سره به دالازم شي چې قران کریم نه هم محرف وویل شي (نعوذبالله)ځکه چې په دې کې هم خلکوتحریف معنوي کولوکې څه کمې پرېښې نه ده،له دې سره دوه خبرې واضحې کیږي:
۱: په قران کریم کې تحریف معنوي سره ددې، مذهب منونکوباندې الزام لګول ددې امردلیل دی چې په قران کریم کې دتحریف لفظي څوک هم قایل نه شته.
۲: خبره داواضحه کیږي چې که شاه صاحب (نعوذبالله) دقران کریم دتحریف لفظي قایل وي. نویواځې دریم مذهب والاوو باندې به یې الزام نه لګاو. بلکې په اولني اودویم مذهب والاوو باندې به یې هم الزام لګولی و.
دایواځې ما ددې عبارت تشریح کړې ده. دکومې وجې نه چې تاته دشاه صاحب خبره باندې پوهیدوکې غلطي شوې ده. که نه دقران پاک دتحریف لفظي نه پاک کیدل یوداسې حقیقت دی چې دهغه نه څوک منکر نه دي. دحضرت شاه صاحب کتاب مشکلات القران مقدمه دې وکتل شي.
داتفاق خبره ده چې همدارنګه پوښتنه له امام اهل سنت حضرت مولاناابوزاهد محمد سرفرازخان صفدر زیدمجدهم نه هم وکړل شوه. هغه دفیض الباري ددې عبارت وضاحت وکړ. دکومې له وجې نه چې شیعه ګان تحریف قران باندې استدلال کوي اوهغه په مناظرو کې وړاندې کوي. شیعه ګان داناټرورکول غواړي چې(نعوذبالله) په فیض الباري کې دي چې

امام العصر حضرت مولانامحمدانورشاه کشمیري اومولانابدرعالم میرټهي قدس الله اسرارهما هم دتحریف قایل وو.
حضرت مولانامحمدسرفرازخان دامت برکاتهم العالیه ددې پروپیګنډې ځواب اودغلط فهمي وضاحت په خپل یوخط کې چې هغه دمولاناعبدالحفیظ صاحب په نامه لیکلی و او هدایت یې کړی و چې دادې عام کړل شي، چې موصوف مونږ ته فوټوسټیټ رالیږلوسره احسان کړی دی. دمولاناسرفرازخان صفدرمدظله په مکتوب سامي کې د فیض الباري عربی عبارتونه و اردو ترجمه نه وه. دعامې فایدې په خیال دهغې اردوترجمه کړل شوې ده. لاندې دحضرت مولاناابوزاهد سرفرازخان صفدروضاحت هم دهغه په الفاظوکې وړاندې کیږي.

## دامام اهل سنت خط

باسمه سبحانه وتعالی..... عزیزالقدرجناب حضرت مولاناعبدالحفیظ صاحب دام مجدهم.

السلام علیکم ورحمة الله وبرکاته.........مزاج ګرامي.

عزیزالقدر! په فیض الباري ج:۳ ص:۳۹۵کې دي:

"واعلم! أن فی التحریف ثلاثة مذاهب، ذهب جماعة إلی أن التحریف في الکتب السماوية قدوقع بلکل نحوفي اللفظ والمعنی جمیعا، وهوالذي مال إلیه ابن حزم، وذهب جماعة إلی أن التحریف قلیل، ولعل الحافظ ابن تیمیة جنح إلیه، وذهب جماعة إلی انکار التحریف اللفظي راسا فالتحریف عندهم کله معنوي، قلت یلزم علی هذا المذهب أن یکون القران ایضاً محرفا، فإن التحریف المعنوي غیر قلیل فیه ایضاً, والذي تحقق عندي أن التحریف فیه لفظي أیضاً أما أنه عن عمد منهم أو لمغالطة، فالله تعالی أعلم به!"

ترجمه: پوهېدل پکاردي چې دتحریف په باره کې درې مذاهب دي.دیوې ډلې خیال دی چې په اسماني کتابونوکې تحریف لفظي اومعنوي دواړه شوي دی.ابن حزم هم ددې قایل دی.دبلې ډلې نظریه داده چې په اسماني کتابونوکې لږ شان تحریف شوی دی، غالباً دابن تیمیه رُجحان هم دې طرف ته دی، ددریمې ډلې رایه داده چې تحریف لفظي خونه دی شوی، خو تحریف معنوي شوی دی، ددې ډلې دنظریې مطابق به دا لازم راځي چې قران مجیدهم دتحریف نه خالی نه ده، ځکه چې په دې کې هم تحریف معنوي شوی دی، خو زماپه نزد محققه خبره داده چې تحریف لفظي شوی دی یا خوهغوی داسې قصداً کړي دي یادغلطي له وجې نه داسې شوي دي،والله اعلم.

عزیزالقدر! په دې عبارت کې د فیها په ځای ،،فیه،، لیکل شوي ده .اصل عبارت داسې دی: "أن التحریف فیها (ای الکتب السماوية کالتوراة والإنجیل وغیرهما) لفظي ایضاً.

ترجمه: دفيها ضمير مرجع كتب سماويه ته دى. يعني په كتب سماويه تورات. انجيل وغيره كې تحريف شوى دى. نه چې په قران كې. خود . فيه . . ضمير مفرد مذكر په وجه مغالطه شوې ده، چې شايد په قران كې هم تحريف شوى وي.

په فيض الباري كې ج ۴ ص ۵۳۷ كې داعبارت دى: "واعلم أن أقوال العلماء فى وقوع التحريف ودلائلهم كلها قد قضى عنه الوطر المحشي فراجعه".

دبخاري شريف دپنځويشتمې سپارې په حاشيه كې حضرت مولانا احمد على سهارنپوري ليكلې دي: دفالج دحملې نه وروسته دباقي پنځو سپارو حاشيه حضرت مولانا محمد قاسم نانوتوي رحمة الله عليه كړې ده، سوانح ازقاسمي ازمولانا محمد يعقوب صاحب او په دې مقام باندې حاشيه كې محشى يعني حاشيه ليكونكي دحضرت نانوتوي حق پوره كړى دى اودمقام حق يې اداكړى دى. (وګورئ، بخاري ج ۲ ص ۱۱۲۷ حاشيه نمبر ۱)

فيض الباري كې نوروضاحت كولوسره حضرت ليكلي دي:

والذي ينبغي فيه النظرههنا أنه كيف ساغ لإبن عباس إنكارالتحريف اللفظي، مع أن شاهدالوجود يخالفه. كيف! وقدنعى عليهم القران أنهم كانوا يكتبون بأيديهم ثم يقولون هومن عندالله وما هومن عندالله وهل هذا إلاتحريف لفظي ولعل مراده أنهم ماكانوا يحرفونها قصداً، ولكن سلفهم كانوا يكتبون مرادها كما فهموه ثم كان خلفهم يدخلونه في نفس التوراة فكان التفسير يختلط بالتوراة من هذا الطريق. انتهى. (ج: ٤ ص: ٥٣٧)

ترجمه: دلته قابل غورخبره داده چې حضرت ابن عباس رضي الله عنه دتحريف لفظي نه كيدوقول كړى دى، سره له دې چې شواهد ددې خلاف دي. بيادتحريف لفظي قول دځه وجې نه ممكن دى سره له دې چې قران ددوى دافعل قبيح ذكركړى دى، چې هغوى په خپلولاسونوسره وليكي اوبيا وايي چې: داد الله تعالى كتاب دى، حالانكه هغه دالله تعالى دطرف نه نه وي: اوهم دغه تحريف دى. غالباً دتحريف لفظي نه كيدونه دهغه دامراد دى چې هغوى قصداً داسې نه كول بلكې دهغوى اسلافو به په خپلو كتابونو كې دخپلې پوهې مطابق يومفهوم وليكه. خو دهغوى نه وروسته راتلونكو دتورات په متن كې شامل كړ. چې له دې وجې په اصل متن كې التباس وشواوهمداسې تحريف لفظي وشو.

له دې ټول عبارت نه داواضحه شوه چې تحريف لفظي په تورات، انجيل اوزبوركې شوى دى، خوپه قران كريم كې نه اوحضرت ابن عباس رضي الله عنه دقول تشريح هم اوس وشوه. چې مشرانوبه دخپل يادښت له پاره په كتابونوكې تفسيري الفاظ ليكل. وروسته خلكوهغه هم په متن كې شامل كړل.

داتحریرپه غورسره ولولئ بیا ددې کاپیانې جوړې کړئ اوله خپل طرف نه یې په عالمانو تقسیم کړئ. ددین لوی خدمت به ورسره وشي. کوروالوته ډیرډیرسلامونه وایئ اوپه خپلو دعاګانوکې مونږ مه هیروئ والسلام.

ابوالزاهد محمد سرفراز

## په قران کریم کې نازلې شوې د نوروخلکوخبرې قران دی

**سوال:** قران کریم کې الله تعالی دنوروخلکوقولونه هم ذکرکړي دي، لکه دعزیزمصرقول "إن کیدکن عظیم" یادبلقیس قول "إن الملوک اذا دخلوا". ایاددې قولونو هم هغه اهمیت او حقیقت دی کوم چې دالله تعالی دکلام دی؟ ځینې وعظ کونکې داسې بیان کوي چې ګورئ الله تعالی فرمایي: "إن کیدکن عظیم" حالانکه دادغیرالله قول دی. الله تعالی یوائې نقل کړی دی.

**جواب:** چې الله تعالی داقولونه نقل کړي دي، نوداهم دالله تعالی دکلام برخه شوه اوددې په لوستلوباندې به هم هغه شان ثواب ورکول کیږي (زه کله کله دلطیفې په طورباندې وایم چې قران کریم کې دفرعون، هامان، قارون اوابلیس نومونه راځي اودهغه په تلاوت باندې هم پنځوس پنځوس نیکۍ ورکول کیږي) اوبیاقران کریم کې چې کوم قولونه نقل شوي دي، هغو کې ځینوباندې رد شوی دی، لکه دکافرانوخبرې اوځینې پرته دتردید نه نقل شوي دي، نومردود قولونه خوښکاره خبره ده چې مردود دي، خوکوم قولونه چې پرته دځه نکیرنه نقل شوي دي، هغه زمونږ له پاره حجت دي. دعزیزمصراودبلقیس قول، هم په دې دویم قسم کې شامل دي اوددې باره کې داسې ویل چې دادالله تعالی ارشاد دی صحیح دي.[1]

## دالله تعالی په کلام کې دا نسان کلام به هم نفسي وي؟

**سوال:** تاسووفرمایل چې دغیرالله کوم قولونه الله تعالی په خپل کلام کې نقل کړي دي هغه هم دالله تعالی دکلام برخه شوه، له دې نه دا سوال پیداکیږي که چېرې دغه قولونه دالله تعالی دکلام برخه شي، نوبیاهم نفسي کلام خونه دی؟ ځکه چې نفسي کلام خوقدیم دی اودغه قولونه په څه زمانه کې انسان اداکړي دي. دهغه نه وروسته الله تعالی په دویم ځل باندې اداکړي دي، نوداقولونه خومخلوق شول اوزمونږ داعقیده ده چې قران کریم ټول غیرمخلوق دی.

---

1] وما ذکره الله تعالی فی القرآن ای المنزل والفرقان المکتمل عن موسی وغیره من الانبیاء علیهم السلام ....... وعن فرعون وابلیس ای ونحوهما من الاعداء والاغنیاء ..... فان ذلک ای ما ذکر من النوعین کله کلام الله تعالی ای القدیم اخبارا عنهم (شرح فقه اکبر لملا علی قاری ص:۳۳)

**جواب:** دمخلوق کلام دالله تعالی په کلام کې راتلل په ښکاره طور مشکل دي. خو که دې ته نظر وکړل شي چې دالله تعالی په علم کې پخوانۍ زمانه، اوسنۍ اوراتلونکې زمانه ټولې یو شان دي، نو دا مشکل بیانه پاتې کیږي. یعنې مخلوق پیداشو. هغوی څه خبرې وکړې او الله تعالی دادا کیدونه وروسته هغه نقل کړې. نو په ریښتیا باندې مشکل دي. خو د مخلوق پیدا کیدونه او ددې خبرو کیدونه مخکې دالله تعالی په علم کې وا ودالله تعالی علم قدیم دی[۱]

## انګریزان، امریکایان او نور کافران د رحمت زیات حقداردي او که مسلمانان؟

**سوال:** ایا په اروپایي او امریکایي قومونو باندې رحمتونه نازلیږي؟ دهغه ځای عام خلک خوشحاله. نیکاو انسانان په نظر راځي. زموږ دمسلمانانو په نسبت د (حقوق العباد) له ټولونه زیات احترام کوي. نوایاهغوی دالله د رحمتونو نه زموږ په نسبت زیات ګټه اخستونکي نه دي؟ سره له دې هغوی سره سپي او تصویرونه ډیر زیات دي. ایاموږ یواځې له دې وجې درحمت حقداریوچې موږ مسلمانان یو. زموږ بدعملونه ددین او اسلام په نوم باندې خراب داغ نه لګوي. درحمت حقدار څوک دي؟ پاکستانیان؟ کوم چې دحقوق العباد قاتلان دي او که کافران؟

**جواب:** دالله تعالی رحمت په دوه قسمه دی یو عام رحمت او بل خاص رحمت دی. عام رحمت خو په هرخاص وعام او مومن او کافر باندې دی او خاص رحمت یواځې په ایمان والاوو باندې دی، داول تعلق ددنیا سره دی او ددویم تعلق داخرت سره دی. کفار چې په دنیا کې خوشحاله ښکاري. دهغه وجه داده چې هغوی ته دټولو نیکو اعمالو بدله په دنیاکې ورکول کیږي او دهغوی دکفر او بدو عملونو سزا اخرت له پاره ساتل کیږي. ددې په خلاف مسلمانانو ته دهغوی دبدو عملونو سزا په دنیاکې ورکول کیږي. خو په هرحال دکافرانو اود بدکارو په دنیاکې خوشحالیدل ددوی دمقبولیت ښنبه نه ده، بلکې د کافرانو په دنیاکې خوشحاله ساتل داسې دي لکه چې دپهانسي (دار) بندي په جیل کې ښه پالل کیږي.

## د قران په نسخ کې د جمهور اهل سنت مسلک

**سوال:** مسئله دا ده چې مولانامحمدتقي عثماني صاحب مدظله په علوم القران کې په ص۱۲۴ باندې لیکلي دي چې دجمهور اهل سنت مسلك دادی چې په قران کریم کې داسې ایتونه موجود دي چې دهغو حکم منسوخ شوی دی، خو دمعتزله وو کې دابومسلم اصفهاني

---

۱] والقرآن كلام الله تعالى فهو قديم ........ وقد كان الله تعالى متكلماً اى فى الازل ولم يكن كلم موسى اى والحال انه لم يكن كلم موسى بل ولا خلق اصل موسى وعيسى وقد كان الله تعالى خالقاً فى الازل ولم يخلق الخلق (شرح فقه اكبر ص:۳۵)

داوینا ده چې په قران کریم کې یو ایت هم منسوخ نشته. بلکې ټول ایتونه اوس هم واجب العمل دي. دابومسلم په تابعداري کې ځینې نوروحضراتو هم دغه رایه ښکاره کړې ده اوزموږ دزماني دنوي خیال خاوندان هم ددې قایل دي. په کومو ایتونوکې چې نسخ معلومیږي دا حضرات یې داسې تشریح کوي چې په هغه کې دنسخ دمنلوحاجت نه راځي.
خو حقیقت دادی چې دا موقف ددلائلو په لحاظ سره کمزوری دی اوددې په اختیارولو سره د ځینې قراني ایاتونوپه تفسیر کې داسې وړاندې والی ورستوالی راځي چې هغه داصول تفسیر نه بالکل خلاف دي." دا خودتقي صاحب بیان و. بل ځای حضرت مولاناانورشاه کشمیري رحمه الله په فیض الباری ج ۳ ص ۱۴۷ باندې لیکي:
"أنكرت النسخ رأسًا وادعيت أن النسخ لم يرد في القران رأسًا."
دهغه په تشریح کې فرمایي: "أعني بالنسخ كون الأية منسوخة في جميع ماحوته بحيث لاتبقى معمولة في جزئي من جزئياتها فذلك عندي غيرواقع ومامن أية منسوخة إلاوهي معمولة بوجه من الوجوه وجهة من الجهات." (فیض الباری ج ۳ ص ۱۴۷)
نومهرباني وکړئ داروښانه کړئ چې دمولانامحمدانورشاه صاحب رحمه الله په باره کې به څه تاویل کوو. ایادابښکاره دنسخ نه انکارنه دی. په الله قسم: زمادهغه په باره کې ښه گمان دی. یواځې دخپل ناقص ذهن اطمينانِ غواړم. بل داچې زه جینکوته سبق ښایم. نو ددې قسمه مسائلو توجیه کول د ېرمشکل شي. مهرباني وکړئ داواضحه کړئ چې دانورشاه کشمیري رحمه الله په نزدباندې په دی ایت کې په کوم جزء باندې عمل باقي دی؟
﴿يَٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُوٓاْ إِذَا نَٰجَيۡتُمُ ٱلرَّسُولَ فَقَدِّمُواْ بَيۡنَ يَدَيۡ نَجۡوَىٰكُمۡ صَدَقَةٗۚ ذَٰلِكَ خَيۡرٞ لَّكُمۡ وَأَطۡهَرُۚ فَإِن لَّمۡ تَجِدُواْ فَإِنَّ ٱللَّهَ غَفُورٞ رَّحِيمٌ ﴿١٢﴾﴾ (المجادلة: ۱۲)
زماددې وینانه مقصود دادی چې یوخواته دمولانامحمدتقي عثماني صاحب فرمان دادی چې پرته دمعتزله وونه یاددوی دهم فکرو نه بل چادنسخ نه انکار نه دی کړی اوبل خواته ددیوبندیوجلیل القدر بزرگ وایي چې "إن النسخ لم يرد في القران راسًا."
نوزماغوندې ناقص العقل والدین له پاره توجیه ډېره مشکله ده. زما دامسئله حل کړئ اوثواب دارین حاصل کړئ!
**جواب:** دمعتزله وودمذهب اوحضرت شاه صاحب نورالله مرقده دمسلك په مینځ کې فرق دادی چې معتزله خودنسخ فی القران نه بالکل منکردي. لکه نن سباد قادیانانو اود نیچري والاووهم دا رایه ده. دهغوی په نزدباندې چې په قران کریم کې کوم حکم یوځل نازل شوی دی بیادهغه په ځای بل حکم هیڅکله نه دی نازل شوی. حضرت شاه صاحب دنوروااهل حق په شان دنسخ فی القران قایل دی. خو هغه فرمایي چې په قران کې کوم منسوخ ایاتونه باقي

پاتې شوي دي په هغو کې حکمت دادی چې ددې ایت یوجزء به خامخا چېرته په یووخت کې دعمل کولو قابل وي، داسې نه ده چې یو ایت داسې منسوخ کړل شي چې دهغه دجزئیاتونه به یو جزء هېڅکله هم معمول نه وي، مثلاً دروژې دفدیې حکم دهغه خلکو په حق کې خو منسوخ دی چې کوم خلک دروژې دنیولو طاقت لري. خو دیو بوډا سړي له پاره اوس هم د روژې فدیه ورکول جائزدي اوهغه ددې ایت دلاندې ذکردی. له دې وجې نه دا ایت دخپلو ځینو مشمولاتو په اعتبارسره خومنسوخ دی لکه چې په صحیح حدیثونوکې ددې تصریح موجوده ده، خو ددې په بعضې جزئیاتو اوس هم عمل کیدای شي ددې وجې نه دا ټول منسوخ نه دی، بلکې دځینې اعتباراتو او دجزئیاتو په اعتبار سره منسوخ دی. ددې دویم مثال دمناجات ایت دی:﴿ يَٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُوٓاْ إِذَا نَٰجَيۡتُمُ ٱلرَّسُولَ ﴾ (الاية)

کوم چې تاسو نقل کړی دی، ایت کې چې کوم حکم شوی و هغه مخکې واجب و چې هغه منسوخ شو . دهغه دنسخ ښکاره حکم ددې نه په وروسته ایت کې موجوددی. خو ددغه حکم استحباب وروسته هم باقي و . ځکه چې په دی ایت کې هم بالکلیه نسخ نه دې شوې، بلکې دخپلو ځینو مشمولاتو او جزئیاتو په اعتبار سره دا ایت وروسته هم معمول بها و .

غرض داچې دحضرت شاه صاحب نورالله مرقده ارشاد "ان النسخ لم يرد فى القران راسًا،، دامطلب نه دی چې په قران کې نازلیدونه وروسته یوحکم هم منسوخ شوي نه دی ځنګه چې معتزله وایي، بلکې مطلب دادی چې دقران کریم کوم ایاتونه منسوخ شوي دي په هغه کې نسخ دټولو وجهونه نه ده شوي بلکې ددغو ایاتونوځه جزئیات خامخاپه ځینو وختونوکې په هغو باندې عمل باقي وي دحضرت شاه صاحب رحمه الله دارشاد تصریح پخپله دهغه ددې عبارت نه واضحه ده کوم چې هغه نقل کړی دی هغه فرمایي:

**"ان النسخ لم يردفي القران راسًا اعنى بالنسخ كون الاية منسوخة فى جميع ماحوته بحيث لاتبقى معمولة فى جزئى من جزئياتها. فذلك عندى غيرواقع ومامن اية منسوخة الاوهى معمولة بوجه من الوجوه وجهة من الجهات،،**

ترجمه: بیشکه په قرانکریم کې نسخ بالکلیه نه ده واقع شوې اوددې نسخ بالکلیه نه زمامراددادی چې یو ایت دخپلو مشمولاتو په اعتبار سره منسوخ شي، په داسې طریقه باندې چې دهغه په جزئیاتو کې دهغه په یوجزئي باندې هم عمل ونه شي. داسې نسخ زما په نزدباندې نه ده واقع شوې بلکې کوم ایت چې منسوخ شي. نو د هغه په څه نا څه برخه باندې عمل کیږي.

په دې ضمن کې دفدیې دایت مثال ورکولونه وروسته فرمایي:

**"وبالجملة ان جنس الفدية لم ينسخ بالكلية فهى باقية الى الان فى عدة مسائل وليس لهاماخذ**

عندی غیر تلك الایة فدل علی انها له تنسخ بمعنی عدم بقاء حکمها فی محل ونحوه.
ترجمه: خلاصه دا چې جنس فدیه بالکل منسوخ نه ده. بلکې فدیه په ګڼو مسائلو کې تراوسه باقي ده او په دې مسائلو کې دفدیې داخستلو ځای زما په نزد له دې ایت نه پرته بل څه نشته. نو ددې نه معلومیږي چې دا ایت په دې معنا سره منسوخ نه دی چې ددې حکم په یو ځای کې هم باقي نه دی.

## په جمعه اودجمعې په شپه مړه کیدونکي ته په عذاب کې کمی

**سوال:** تاسو دجمعې په ورځ په ۹ اګست باندې دیو سوال په ځواب کې لیکلي و. چې دجمعې په ورځ یادجمعې په شپه که څوک وفات شي، نودقبردعذاب نه خلاصیږي، جناب که یو سړي جوارګر، شرابي، سودخوراوپه هرقسمه ګناهونوکې مبتلاوي اوهغه دجمعې په ورځ یادجمعې په شپه باندې وفات شي. نوایاداسې کس هم دقبرله عذاب نه بچ کیږي؟ که داسې سړی مړشي اودهغه خپلوان دهغه له پاره قران پاک ولولي. صدقه اوخیرات ورکړي. نوایاداسې قسمه مرحوم ته یې ثواب رسیږي؟

**جواب:** ستاسو مشکل ختمولو له پاره یو څو خبرې په ذهن کې یادساتل ضروري دي:

۱: ګناهګارخو موږ ټول یو. څوک په نېکاره باندې ګناه کې مبتلا دي، چې موږ ټول یې ګناه ګارګڼو او څه خلک داسې ګناهونوکې مبتلادي چې عام طورباندې ګناهونه نه ګڼل کیږي، دمثال په طورباندې دغیبت ګناه ده، کومه چې دزنا نه بدتره ګڼل شوې ده اودمثال په طورباندې دیومسلمان دبې حرمتي ګناه ده، کومه چې دسودنه هم بدتره ګڼل شوې ده، دې ګناهونوکې موږمبتلایو. کومې چې دزنا، شراب څښلواوسودخوري نه بدترې دي، که موږداسې ګناه ګاروته دالله تعالی له رحمت څخه نه مایوس کیږو. نویوګناه ګارموږ دالله تعالی درحمت نه ولې مایوسه کړو؟

۲: حدیث کې راغلي دي چې په فلاني فلاني کارونو باندې دقبرعذاب کمیږي اوپه فلاني فلاني کارونو باندې دقبرعذاب زیاتیږي، داهرڅه بالکل حق دي، که دکم عقلي په وجه په دې موږ پوه نه شو، نودې باندې اعتراض کولو سره خپل دین او ایمان ولې غرق کړو.

۳: دمرګ نه وروسته دانسان دښواوبدوعملونو مطابق فیصلې کیږي، دچا دښو تله درنه وي او دچا بدو، داخبره دالله تعالی په علم کې ده. موږ دې باره کې دفیصلې کولو اختیارنه لرو. بلکې ټول د ارحم الراحمین دفیصلې انتظارکونکي دي اودامیداو وېرې په حالت کې دي.

۴: په خاصو ورځوکې دقیدیانوپه قیدکې دکمي کولورواج په دنیاکې هم موجوددی، که دجمعې دورځې یادجمعې دشپې دعظمت په وجه باندې الله تعالی دشرابیانواوجوارګروپه قیدکې هم کمی وکړي، نومااوتاته د اعتراض څه حق دی؟ اوکه دا کمي د غټو ګناهګارو په حق کې وي، نوبیاهم څه مشکل نشته. دحدیث مطلب دادی چې دجمعې په شپه اودجمعې

په ورځ باندې دقبرعذاب بندکړل شي. پاتې شوه داخبره چې دکومو کومو خلکوله پاره بندیږي، ددې پوهه الله تعالی ته پته ده.

## کشف اوکرامات حق دي

**سوال:** یوصاحب ویل چې یوبزرګ و، هغه ته یومریدراغی او ویې ویل: چې زه به سبا مړ شم، په دویمه ورځ مسجدحرام ته راغی، طواف یې وکړ، چې لږ لیرې ولاړ، نومړشو، ماهغه ته غسل ورکړاوخښ مې کړ. ماچې کله هغه قبرکې کیښود، نوهغه سترګې وغړولې، ماورته وویل: چې دمرګ نه وروسته هم ژوندشته، وې ویل چې زه ژوندی یم، اودالله تعالی هر یو عاشق ژوندی وي، داخبرترکومه حده پورې صحیح ده؟ اوکه غلطه ده، نوددې خلکو باره کې باید مونږ څه ډول عقیده ولرو اودوی سره څه ډول تعلق ساتل پکاردي؟

**جواب:** داواقعه صحیح کیدای شي، کله ناکله بزرګانوته کشف کیږي اودمرګ نه وروسته دخبرو کولو واقعې په حدیثونوکې هم موجودې دي.

## داولیاوو کرامت حق دی

**سوال:** همدارنګه یوه بله واقعه بیانوي چې یوبزرګ و، هغه به فرمایل :چې کله زما پلار وفات شواوهغه یې دلمبولوله پاره په تختته باندې واچولو، نوهغه په خنداشو. چاچې لمبولوهغوی پریښود اولاړل، چاکې دهغه دلمبولوهمت نه و. دهغوی یوبل بزرګ ملګری راغی اوهغه ورته غسل ورکړ.
ایاداواقعه صحیح ده یاغلطه؟ کوم بزرګان چې خپلومریدانو ته داسې خبرې کوي دهغوی باره کې ستاسو څه خیال دی؟ مهرباني وکړئ زمالارښو ونه وکړئ، داسې نه وي چې زه هغه خلکو ته په لاس ورشم اوخپل ایمان خراب کړم، ځکه چې زمونږدیوبند په عقیده کې خواوسه پورې داشیان مانه دي اوریدلي، په دې وجه ماته نوې ښکاري. داخلک خوهم اهل سنت والجماعت والادي، خوعقیده کې زمونږدعقیدې سره ډیرزیات خلاف دي.

**جواب:** دکرامت په طورباندې داواقعه هم صحیح کیدای شي، دیوبندپه اهل سنت کې دی اوداهل سنت عقیدې په ټولوکتابونوکې لیکل شوي دي، چې داولیاووکرامات حق دي[1]، په دې وجه باندې دداسې واقعاتو نه انکارکول داهل سنت اودیوبندي مسلک خلاف دي اودې واقعاتوکې دعقیدې دخرابېدو هیڅ خبره نشته. که نه اهل سنت به داولیاوو دکراماتودحق کیدوقایل نه وو.

---

[۱] والکرامات للأولیاء حق,اي ثابت بالکتاب والسنة.شرح فقه أکبر:۹۵

## د حضرت مهدي رضي الله عنه په اړه څو سوالونه

**سوال:** تاریخ اسلام کې د بنو فاطمه د خلافت د بنو دلو وخت کې زموږ استاذې موږ ته وویل چې د شیعه ګانو د عقیدې مطابق د هغوی دولسم امام "امام محمد المهدي. چې د یوولسم امام حضرت امام عسکري زوی و. دی د خپل پلار له کوره په ماشوموالي کې ورک شوې و، د هغوی دا عقیده ده چې قیامت ته نږدې وخت کې به د مسلمانانو د اصلاح له پاره راځي. په دې وجه باندې هغه امامت ته نه دی ورانډې شوی او د هغه لقب "المنتظر.. دی. تاسو چې د امام مهدي رحمه الله په باره کې بیان کړی دی نو ایا دا هم هغه امام مهدي رحمه الله دی، کوم چې د امام حسن عسکری زوی و؟

۲: تاسو په خپل ځواب کې "حضرت مهدي رضي الله عنه.. لیکلی دی، زما د علم مطابق د دې نه دا سې ښکاري چې هغه د حضور صلی الله علیه وسلم صحابي دی. ځکه چې موږ خو عام طور باندې د صحابه کرامو رضي الله عنهم او د هغوی د بیبیانو نومونو سره .. رضی الله عنهن.. لیکل لیدلي دي، چا ته چې د حضور صلی الله علیه وسلم لیدل نصیب شوي دي ایا هم دا سې ده؟

۳: امامت څه شی دی؟ ایا د الله تعالی له طرفه ورکړل شوې څه درجه ده. یا د حضور صلی الله علیه وسلم انعام یا بل څه دی؟

۴: یو امام هغه دی چې د جومات امام وي، د هغه باره کې خو مو ډیر څه لوستلي دي، خو هغه څلور امامان یعنې امام مالک رحمه الله او امام احمد رحمه الله وغیره او هغه امامان کوم چې د شیعه ګانو او اسماعیلیه فرقو دولس امامان دي، هغوکې څه فرق دی؟ او حدیثونو کې د هغوی څه مقام دی؟

۵: زه الحمدلله مسلمان او سني فرقې سره تعلق ساتم، خو زما اکثر سني خلکو سره د ا بحث وي او زه وایم چې د سني عقیدې مطابق یوا ځې څلور امامان دي، کوم چې موږ منو او هغه امام ابو حنیفه رحمه الله، امام مالک رحمه الله، امام شافعي رحمه الله او امام احمد بن حنبل دي، ما ته د دې خبرې پته د خپلو استاذانو نه لږیدلې ده. هغه خلک اکثر وایي چې دولس امامان دي، کوم چې دنیا ته راغلي دي او موږ هغوی هم منو. بالکل هم هغه شان څنګه چې دنیا ته زرګونه پیغمبران راغلي دي او هغوی باندې ایمان لرل د مسلمانانو له پاره ضروري دي، خو یوا ځې د حضور صلی الله علیه وسلم په تعلیماتو باندې عمل کول فرض دي، د نورو په تعلیماتو باندې نه. اوس وو ایئ چې موږ کې څوک صحیح دي؟

او که په ربښتیا باندې د مسلمانانو دولس امامان وي. نو د هغوی نومونه څه دي؟

۶: دجال څوک دی؟ ایا هغه هم ژوند پورته شوی دی، یا هغه غایب شوې و؟

**جواب:** نه! زموږ عقیده دا نه ده، زموږ عقیده دا ده چې امام مهدي رضي الله عنه به پیدا کیږي او کله چې د هغوی عمر څلوېښت کاله شي، نو د مسلمانانو امیر او خلیفه به وي.

۲: د حضرت مهدي رضي الله عنه په زمانه کې به حضرت عیسی علیه السلام نازل شي، په دې وجه باندې

حضرت مهدي رضی الله عنه د حضرت عیسی علیه السلام صحابي دی او هغه ته رضی الله عنه ویل صحیح دي.
۳: مسلمانان چې کوم کس خپل امیر جوړ کړي، هغه د مسلمانانو امام دی. امام د الله تعالی له طرفه نه مقرریږي او نه رسول الله صلی الله علیه وسلم څوک دانعام په طور باندې امام جوړ کړی دی.
۴: دجومات امام د لمونځ ورکولو له پاره د مسلمانانو مشر دی. څلور امامان دخپل علم، عمل، فضل، زهد او تقوا په وجه د مسلمانانو مشران دي او شیعه ګان او اسماعیلیان چې کوم خلک خپل امامان ګڼي، هغوی د الله تعالی له طرفه مقرر شوي او معصوم ګڼي او دهغوی درجه د نبیانو برابر بلکې دهغوی نه پورته ګڼي. دا عقیده د اهل سنت په نزد باندې غلطه بلکې کفر ده. ۵: ما پورته د څلورو امامانو او د شیعه ګانو د دولسو امامانو فرق بیان کړی دی.
۶: دجال به قیامت ته نزدې وخت کې پیدا کیږي. دی به یهودی وي. لومړی به د نبوت او بیا به د خدایي دعوه کوي او دهغه د قتلولو له پاره به حضرت عیسی علیه السلام له اسمانه نازل شي. د دجال د ژوندي پورته کولو خبره غلطه ده.

## ساري مرضونه او اسلام

**سوال:** ایا د جذام د مریض تعلق له اسلام سره ختم شوی دی؟ که نه. نو د داسې مریض نه د ژوند حق ولې اخستل شوی دی او داولې ویل کیږي چې دده نه د زمري پشان تښتئ او ده ته په اوږد لرګي سره خوراک ورکوئ؟

**جواب:** کوم سړی چې په داسې بیماري کې اخته وي چې دهغه نه خلکو ته تکلیف وي، که خلکو ته دده نه د بېل اوسیدو مشوره ورکړل شي. نو دا د عقل غوښتنه ده. باقي د بیماري په وجه دده رشته د اسلام سره نه ختمیږي په دې بیماري به الله ده ته اجور ورکوي. اسلام خو د مرض د ساري کیدو قایل نه دی، خو که د جذامي مریض سره د ناستې پاستې په وجه خدای مه کړه چاته دا مرض ولګیږي، نو د کمزورې عقیدې والو عقیده به خرابه شي او هغه به هم دا وګڼي چې دا مرض ده ته دیو جذامي مریض نه لګېدلی دی. د دغې عقیدې د خرابیدو له وجې نه خلکو ته ویل شوي دي چې دده نه د زمري په شان تښتئ (او د لرګي په ذریعه د خوراک ورکولو مسئله ماته معلومه نه ده او نه مې چرته لوستلې ده) غرض دا چې د جذامي مریض سپکوالي مقصود نه دی، بلکې د خلکو جسماني تکلیف او د عقیدو خرابیدو نه ساتل مقصود دي[1]. که دیوې مضبوطې عقیدې والا او د محکم ایمان والا سړی د جذامي مریض

---

[1] وعنه (ابی هریرة رضی الله عنه) قال رسول الله صلی الله علیه و سلم (لا عدوی ولا طیرة وفر من المجذوم کما تفر من الأسد (وفی حاشیته) وانما اراد بذلک نفی مااعتقدوا من ان العلل المعدیة مؤثرة لا محالة فاعلمهم ان لیس کذلک بل هومتعلق بالمشیة ان شاء کان وان لم یشا لم یکن ...الخ (مشکوة ص: ۳۹۱، باب الفال والطیرة،الفصل الاول)

سره خوراك څښاك وكړي، نو بيا هم څه ګناه نه ده، نبي كريم ﷺ يو جذامي مريض سره په يوه لوښي كې خوراك كړى دى.[1]

## حقيقي اثركونكى الله تعالى دى دوايي نه ده

**سوال:** زما ديو سوال ځواب تاسو راكړې و. له هغه سره زما ذهني پريشاني ختمه نه شوه. زه تاسو ته په دويم ځل تكليف دركوم، اميد لرم چې تاسو به ما معاف كړئ. زما سوال دا و چې:
ايا دوايي خوړلو سره هلك پيدا كيداى شي؟ ددې په ځواب كې تاسو ليكلي وچې: لوراو زوى دالله تعالى په حكم باندې پيدا كيږي او دوايي هم دالله تعالى په حكم باندې اثر كوي. كه داسې عقيده وي، نو دوايي خوړلو كې هيڅ بده خبره نشته.
ګستاخي معاف: مولانا صاحب زه غواړم چې تاسو دا ځواب لږ وضاحت سره وليكئ. ځكه چې زما زړه مطمئن شوى نه دى، كه دوايي خوړلو سره زوى پيدا كيداى شي، نو بيا به هره ښځه دوايي خوړل شروع كړي اودنيا كې به يوازې زامن وي، لوڼې به ختمې شي، ځكه چې زمونږ ملك كې خولامخكې هم جهالت دى، مخكې خو به خلك ددا تا صاحب مزار او نورو مزارونو ته تلل او زوى به يې غوښتلو او اوس كه په دوايي باندې زوى پيدا كېدل شروع شي. نو هغه ځاى كې به دښځو غوبل جوړشي كوم كې چې دا دوايي خرڅيږي او دوايي هم په زرګونو روپو باندې خرڅيږي. ايا دا به شرك نه وي؟ اوالله تعالى فرمايي: چې زه چاته و غواړم زوى وركړم اوچاته چې وغواړم لور وركړم، كله چې الله تعالى په خپلې خوښې سره وركول كوي، نو بيا دوايي څه اثر كولى شي؟
**جواب:** زما خورې! ددوايي تعلق تجربې سره دى، كه چېرې تجربې باندې ثابت شي (يوازې دوكه نه وي) چې دفلانى دوايي په ذريعه باندې هلك پيدا كيږي. نو ددې ځواب كې ما ليكلي و چې ددوايي اثر كول هم دالله تعالى په حكم باندې دي، څنګه چې دبيماري نه شفا وركونكى الله تعالى دى، دوايي وغيره هم دالله تعالى په اراده، فائده كوي. نو داسې ويل سهي دي چې څنګه الله تعالى ددوايي نه پرته شفا وركوي، هغه شان شفا دوايي نه شي وركولى، بلكې دشفا وسيله او ذريعه جوړه شي او كله چې الله تعالى وغواړي ددوايي سره هم فائده نه كيږي.
همدارنګه كه په رښتيا څه دوايي داسې وي چې دهغې په ذريعه باندې زوى پيدا كيږي، نو دهغې حيثيت به هم داوي چې كله الله تعالى ددوايي نه پرته زوى وركوي او كله يې دوايي ذريعه جوړه كړي او كله ددوايي داستعمال سره يې هم نه وركوي، كله چې حقيقي اثركونكى

[1] عن جابر: أن رسول الله صلى الله عليه و سلم أخذ بيد مجذوم فأدخله معه في القصعة (ترمذي ج:٢، ص:٤ باب ما جاء في الاكل مع المجذوم)

الله تعالى وګڼل شي او ددوايي اثرهم دهغه دحکم او ارادې پابند وګڼل شي، نو داشرک نه دی او دداسې دوايي استعمال ګناه نه ده.[۱]

نوټ: زمادې سره هيڅ بحث نشته چې داسې څه دوايي شته او که نه.

د الله او د رسول ﷺ تابعدارې سره دانبياوو ملګرتيا نصيب کيږي دهغوی درجه نه

**سوال:** تاسو دلاندينې ايت کريمه پوره تشريح وکړئ؟

﴿ وَمَن يُطِعِ ٱللَّهَ وَٱلرَّسُولَ فَأُوْلَٰٓئِكَ مَعَ ٱلَّذِينَ أَنْعَمَ ٱللَّهُ عَلَيْهِم مِّنَ ٱلنَّبِيِّـۧنَ وَٱلصِّدِّيقِينَ وَٱلشُّهَدَآءِ وَٱلصَّٰلِحِينَ ۚ وَحَسُنَ أُوْلَٰٓئِكَ رَفِيقًا ﴿٦٩﴾ ﴾ (سورة النساء ايت: ۶۹)

ځينې خلک وايي چې ددې ترجمه داده چې "څوک هم دالله او دمحمد ﷺ تابعداري وکړي، نو هغه په هغو خلکوکې شامل دي چې په هغوی باندې دالله انعام شوی دی يعنې انبياء، صديقين، شهيدان او نيکان خلک او داخلک ډيرښه ملګري دي" او ددې تشريح داسې کوي چې دنبي عليه السلام په تابعداري سره دنبي، صديق، شهيد او صالح درجه نصيب کيږي ايا داډول تشريح سهي دی؟

**جواب:** داتشريح له دوو وجو غلطه ده، يوه داچې نبوت داسې شی نه دی چې انسان ته دې په محنت، کسب، عبادت او دطاعت سره حاصليږي، دويم ددې وجې نه غلطه ده چې داسلام په څوارلسو پيړيو کې هيچاته هم دکاملې تابعداري توفيق نه دی ورکړل شوی.

دايت مطلب دادی چې کوم خلک دخپل طاقت مطابق دالله او درسول ﷺ په تابعداري کې کوشش کوي که دهغوی عملونه دکمې درجې هم وي، خوهغوی ته به دقيامت په ورځ دپيغمبرانو، صديقينو، شهيدانو او دنيکانو خلکو ملګرتيا نصيب شي.[۲]

## ايا د حضور ﷺ دقبرمبارک خاوره د عرش او کعبې نه بهتره ده

**سوال:** ما سره يو کتاب دی چې دهغه نوم "تاريخ المدينة" دی او دهغه ليکونکی جناب محمدعبدالمعبود دی او هغه باندې تقريظ دشيخ القران مولاناغلام الله خان صاحب مدظله مهتمم دارالعلوم تعليم القران راجه بازارراولپنډۍ دی، دتقريظ تاريخ د۱۹۷۸ء دفرورې لومړۍ تاريخ دی، مولاناغلام الله خان صاحب يې ډيرتعريف کړی دی او ان آغامحمدحسين تسبيحي مدظلهم داکتاب دومره خوښ کړی دی چې دفارسي ترجمې کولو هيله يې وړاندې

---

۱] الاشتغال بالتداوی لا باس به إذا اعتقد ان الشافی هو الله تعالى وانه جعل الدواء سبباً ، اما اذا اعتقد ان الشافی هو الدواء فلا (هندية ج:۵، ص: ۳۵۴ طبع كوئته)

۲] ای من عمل بما امره الله به ورسوله، وترك ما نهاه الله عنه ورسوله، فإن الله عز وجل يسكنه دار كرامته، ويجعله مرافقًا للأنبياء ثم لمن بعدهم في الرتبة، وهم الصديقون، ثم الشهداء، ثم عموم المؤمنين وهم الصالحون الخ (تفسير ابن كثير ج:۲، ص:۳۱۹)

کړې ده، دې نه پرته دولي زمان مفسرقران دحضرت لاهوري رحمه الله خلف الرشيد دحضرت مولاناعبيدالله دامت مجدهم تقريظات په دې باندې دافاديت مهرلږولو سره ددې کتاب په افاديت کې نوره هم اضافه کړې ده. ددې کتاب دمضامينو په فهرست کې دادي.

١: مکه مکرمه افضل يا مدينه طيبه. ٢: دمدينه طيبه په مکه معظمه باندې فضيلت

٣: مدينه طيبه دمکې معظمې نه بهتره ده.

اوس دې باره کې ډير زيات تفصيل دی، زه به کوشش کوم چې مختصرطورباندې يې بيان کړم، ليکلي دي چې:

دامت په دې خبره باندې اتفاق دی چې په ځمکه باندې په افضل ځايونواوبزرګ ښارونو کې مکه مکرمه اومدينه منوره دي، **زادهما الله تشريفاوتعظيماً**. اوس دې دواړو ښارونو کې کوم يوته په بل باندې ترجيح ورکړل شي؟ نود عالمانو صاحبانو عقل لرونکي ذهنونه هم حيران دي، ټول عالمان دې باندې متفق دي چې دځمکې کومې برخې باندې دحضور ﷺ بدن لګيدلی وي، دځمکې هغه برخه نه يوازې له مکې مکرمې بلکې دکعبة الله نه هم بهتره ده او و ځمکې خوپرېږدئ دعرش عظيم نه هم لوړه، اعلی، اوښه ده.

مخکې يې يوه حواله داهم ليکلې ده:

اميرالمومنين سيدناعمرفاروق رضي الله عنه اوسيدناعبدالله بن عمر رضي الله عنه اونورصحابه کرام رضي الله عنهم اوحضرت مالک بن انس رضي الله عنه اود مدينې اکثره عالمان. مدينه معظمه دمکې مکرمې په مقابله کې بهتره ګڼي، همدارنګه ځينې عالمان هم دمدينې طيبې دفضيلت قايل دي. هغوی دمدينې ښارته په مکې باندې فضيلت ورکوي، خوکعبة الله ترې مستثنی کوي اوکعبه معظمه دټولونه افضل ګڼي، خوداخبره منل شوې ده اودې باندې دمخکې اووروسته ټولوعالمانواتفاق دی چې دحضور ﷺ قبرمبارک دهريوشي نه افضل دی، که هغه دمدينې ښاروي اوکه دمکې. ياکه کعبة الله وي ياعرش مجيدوي. دې کتاب کې حضرت علامة العصرالشيخ محمد يوسف بنوري مدظله دمعارف السنن جلد٣ ص ٣٢٣ باندې ډير تفصيل سره دې موضوع باندې بحث کړی دی، دهغه خلاصه داسې ده چې مبارک قبر او وواړه اسمانونو، عرش مجيد او کعبة الله نه افضل دی اودې کې دهيچا اختلاف نشته.

زمامحترم بزرګه زه دې خبرې سره مکمل طورباندې اتفاق کوم اودازماايمان دی چې لومړی بهترذات دالله تعالی دی. له هغه وروسته غوره اوبهترذات داخري نبي صلی الله عليه وسلم دی، پاتې ټول شيان په فضيلت کې کم دي. دا ربښتيادی چې دکعبة الله شريف ډيرلوی عظمت اوفضيلت دی اوعرش عظيم، لوح وقلم وغيره خپل خپل عظمت اوفضيلت لري.

ددې نه يومسلمان هم انکارنه شي کولی، که انکاروکړي، نوهغه مسلمان نه پاتې کيږي،

زمامحترم بزرګه! زمادوستانواوخپلوانوکې ځينې خلک دانه مني او وايي چې دحضور ﷺ

مبارکه روضه دکعبة الله اوعرش اعظم نه بهتره نه شي کیدای اوداسې خبرې نه دي کول پکار اوهغوی دقران مضبوط دلیل غواړي. په دې وجه باندې زه ډیرزیات پریشان یم. چې کوم رښتیا ومنم اوچاته غلط ووایم. زه ډیرادب اواحترام سره تاسونه غوښتنه کوم چې دقران دلیل اودحدیثونوپه رڼاکې ددې ځواب راکړئ. چې صحیح څه دي؟

**جواب:** کومه مسئله چې دې کتاب کې ذکرشوې ده. هغې باندې تقریباً داهل علم اتفاق دی. ددې وجه بالکل ښکاره ده. چې حضور ﷺ دټولومخلوقاتونه افضل دی. یومخلوق هم دحضور ﷺ نه افضل نشته اویوحدیث کې دي چې انسان له دکومې خاورې پیداکیږي هلته خښیږی هم[1]، په کومه پاکه خاوره کې چې دحضور ﷺ پاک بدن خښ شوی دی. دهغې نه حضور ﷺ پیدا شوی هم دی اوکله چې حضور ﷺ افضل الخلق شو، نوهغه پاکه خاوره هم دټولومخلوقاتونه بهتره شوه.

له دې نه پرته کومواندامونوته چې دافضل الرسل. افضل البشر. افضل الخلق صلی الله علیه واله وسلم سره دلګېدوشرف حاصل شوی دی. هغه هم دنورومخلوقاتونه په دې وجه افضله دی چې دا شرف دهغوی نه پرته بل چاته نه دی حاصل.

ستاسودا ارشادبالکل صحیح اوحق دی چې "لومړی الله تعالی اوبیاحضور ﷺ دی.، خودې مسئله کې دحضور ﷺ اوالله تعالی په مینځ کې څه مقابله نه شته. بلکې دحضور ﷺ او نورومخلوقاتوپه مینځ کې مقابله ده. کعبه ده اوکه عرش. کرسي ده. داټول مخلوقات دي، اوحضور ﷺ دټولومخلوقاتونه افضل دی اودقبرمبارکه خاوره یې مبارک بدن سره دلګېدوپه وجه افضله ده چې دمبارک بدن سره دلګیدوکوم سعادت دې ته حاصل دی. هغه نه کعبې ته حاصل دی، نه عرش ته اونه کرسي ته.

اوکه دچا داخیال وي چې ددې شیانونسبت دالله تعالی دطرف ته دی اودمبارک قبر نسبت دحضور ﷺ طرف ته دی. په دې وجه باندې داشیان ددې خاورې نه افضل پکاردي. نو ددې ځواب دادی چې ددې پاکې خاورې دحضور ﷺ سره دَ ملابست نسبت دی اودکعبې اوعرش اوکرسي الله تعالی سره دملابست تعلق نه دی. ځکه چې الله تعالی ددې نه پاک دی.[2]

---

[1] عن أبي سعيد الخدري قال : مر النبي صلى الله عليه و سلم بجنازة عند قبر فقال : قبر من هذا فقالوا : فلان الحبشي يا رسول الله فقال رسول الله صلى الله عليه و سلم : لا إله إلا الله لا إله إلا الله سيق من أرضه و سمائه إلى تربته التي منها خلق (مستدرک حاكم ج:١،ص: ٣٦٧،وفاء الوفاء ج:١، ص: ٣٢ طبع بيروت )

[2] فلا شک ان مكة لكونها من الحرم المحترم اجماعا افضل من نفس المدينة ماعدا التربة السكينة ، فانها افضل من الكعبة بل من العرش على ما قاله جماعة(شرح الشفاء ج:٢،ص:١٦٢ ) قال الراقم (المحدث البنورى) وان شئت ان تستانس ذلک بدليل من السنة فلا حظ الى حديث رسول الله ص ان كل نفس تدفن فى التربة التى خلقت منها (كما رواه الحاكم فى مستدركه) معارف السنن ج:٣،ص: ٣٢٤)

## په ولي او نبي کې څه فرق دی

**سوال:** په انبیاوو او اولیاوو کې څه فرق دی؟

**جواب:** نبي ته خامخ دالله تعالی له لوري احکام ورکول کیږي اوولي د خپل پیغمبر ﷺ تابعداري کوي.[1]

## هیڅ ولی، غوث، قطب، مجدد د هیڅ نبي اویا صحابي برابر نه دی

**سوال:** دولي، قطب، غوث، دستري تقواخاوند، ددین عالم یاامام په دې ټولوکې دکوم یو درجه د پیغمبرانو سره برابرېدای شي؟

**جواب:** هیڅ یوولي، غوث، قطب، امام، مجدد دیو ادنی صحابي درجې ته هم نه شي رسیدلی، د پیغمبرانو خوډېرلوی شان دی، علیهم الصلوة والسلام.[2]

## ایا دا د کفر الفاظ دي

**سوال:** مایوه ورځ یوسړي ته وویل: راځه چې دملاصاحب نه دمسئلو باره کې پوښتنه وکړو، که هغه غلط وي، نوموږبه هم هغه پرېږدو اودهغه خبرې به نه اورو، هغه ځواب راکړ چې زه هغه ته بالکل نه ځم، که هرڅه وشي، دهغه خبره به نه منم که زماڅټ هم پرې کړل شي، ما بیااصرار وکړ، چې پوښتنه کولوکې څه بدي نشته. هغه انکارکاو اوما اصرارکاو، تردې پورې چې هغه وویل: چې الله تعالی هم راشي او ووایي چې ددې ملاصاحب اومنهاودده خبره واوره، نوبیابه یې هم زه ونه منم اونه به یې خبره واورم. اوس پوښتنه داده چې داسې ویلوسره هغه له ایمان اواسلام څخه وځي اوکه نه؟

**جواب:** دهغه سړي دا الفاظ "که چېرې الله تعالی هم راشي اودا ووایي"، دکفرکلمه ده، هغه ته ددې الفاظونه توبه کول پکاردي اودخپل ایمان اونکاح تجدید به کوي. والله اعلم!

## مسلوب الاختیار باندې د کفر فتوا

**سوال:** دمولانا اشرف علي تهانوي رحمه الله دیو عقیدت مند بیان په "الامداد" رساله کې دصفر په

---

١] وَمَا يَنْطِقُ عَنِ الْهَوٰي اِنْ هُوَ اِلَّا وَحْيٌ يُوْحٰي (النجم:٣) وعلامة صحة الولی متابعة النبی فی الظاهر لانهما یاخذان التصرف من ماخذ واحد، اذا الولی هو مظهر تصرف النبی .......... (کشاف اصطلاحات الفنون ج:٢، ص: ١٥٢٩ طبع سهیل اکیڈمی)

٢] والحاصل ان التابعین افضل الامة بعد الصحابة (شرح فقه الاکبر ص:١٤٦) الولی لا یبلغ درجة النبی (شرح فقه الاکبر ص: ١٤٨) ایضاً : وانکه گفتیم که اصحاب کرام بهترین بنی آدم اند ........ چه هیچ ولی بمرتبه صحابی نرسد (مکتوباب امام ربانی مکتوب :٩٦ دفتر دوم)

میاشت کې داسې لیکل شوي دي چې:

ویده شوم، څه وخت وروسته خوب وینم چې کلمه شریف لااله الاالله محمدرسول الله لولم. خود محمد ﷺ په ځای باندې دحضورنوم اخلم. دغه وخت مې زړه کې داخیال پیداشوچې تانه دکلمې په لوستلوکې غلطي وشوه. داصحیح لوستل پکاردي. ددې خیال په وجه باندې کلمه شریف په دویم ځل باندې لولم، زړه کې خومې داخبره ده چې صحیح به یې وایم. خودژبې نه مې غیرارادي طور باندې درسول الله ﷺ په ځای باندې داشرف نوم وځي. سره له دې چې ماته ددې خبرې علم شته چې داسې ویل صحیح نه دي، خوپرته داختیارنه مې دخولې نه کلمه داسې اداکیږي. دغه وخت کې راویښ شوم. خوبدن کې مې اوسه پورې بې حسي اوکمزوري وه. کله چې دبیداري په حالت کې راته دکلمې دغلطي خیال پیداشو. نو ددې خبرې اراده مې وکړه چې داخیال دزړه نه لیرې کړم. چې چېرته دا غلطي رانه بیاونه شي، هم دغه خیال کې کیناستم اودکلمې د غلطي دختمولوله پاره مې رسول الله ﷺ باندې درودشریف لوستل شروع کړل، خوبیاهم داسې وایم چې اللهم صلی علی سیدنا ونبینا ومولانا اشرف علي سره له دې چې اوس ویښ یم. خوب نه وینم. خومجبوریم. ژبه مې په خپل واک کې نه ده، هغه ورځ همداسې خیال راغی اوپه بله ورځ مې په بیداري کې ښه وژړل.

کتاب "عبارات اکابر،، کې مصنف مولانامحمدسرفراز خان صفدرمدظله اوکتاب "سیف یماني،، مصنف مولانامنظور نعماني مدظله ددې ځواب داسې ورکړی دی چې دخوب خبره خوپه یوه درجه کې هم داعتبارقابله نه ده، دخوب نه اسلام معتبردی اونه کفر، نه نکاح اونه طلاق. په دې وجه باندې دخوب په حالت کې چې ددې صاحب له خولې نه دکفرکوم الفاظ وتلي دي دهغو په وجه هغه ته نه کافرویل کیدای شي اونه مرتد. ځکه چې هغه کس هغه وخت کې دحضور ﷺ دارشادمطابق مرفوع القلم و اودبیداري په حالت کې چې هغه دبې اختیاري کوم عذر بیانوي، هغه دقران اوسنت مطابق خطاکې داخل ده، دبیداري په حالت کې په درودشریف کې چې دهغه له خولې نه دمحمد په ځای باندې اشرف علي وتلي دي هغه دخطاپه طورباندې وتلي دي اوشریعت کې چې څوک خطاسره دشرک کلمه ووایي. هغه باندې مواخذه نشته اوهغه به دچاپه نزد کافرهم نه وي.

خوزموږ ښارکهپروکې دمخالفې فرقې یوملاصاحب ددې ځواب "ځواب داسې ورکړی دی چې: داخطاکېدونکی بانه کوي اودهغې ډیروجې دي:

١: داچې خطاپه لاشعوري کې کیږي، خطاکېدونکي ته پته نه وي چې هغه څه وکړل، اودلته هغه وایي چې هغه ته شعورشته اوهغه په دې غلطي باندې پوهیږي، مطلب داچې هغه څه وایي، قصداً یې وایي.

٢: دا چې خطا څه وخت له پاره وي، ټوله ورځ خطانه وي

اودلته دهغه دخولې نه ټوله ورځ دحضرت محمد ﷺ نوم په کلمه او درودشريف کې ادانه شو، اوهغه همدارنګه دکفردکلمې ورد کاو، دادخطاشان نه دی.
۳: خبره داده چې که چېرې په خطاباندې مواخذه نشته. نوددې نه دانه ثابتيږي چې دکفر دکلمې داداکونکي، دخطادعوه به هرحال کې مقبوله وي.
شفاقاضي عياض کې دي: "لايعذرأحدفي الكفربالجهالة ولا بدعوی زلل اللسان.(ص ۲۸۵)
يعنې کفرکې دناداني، جهالت او د ژبې دخطاکيدودعوه کونکی کس چېرې هم معذورنه شي ګڼل کېدای اودفقې په کتابونو"بزازيه"او"ردالمحتار" کې تصريح ده که چېرې يوکس دکفر کلمه اداکړي اوبيادخطااوډژبې دخطاکيدوبانه کوي. نوقاضی دې دهغه تصديق نه کوي، په دې وجه باندې په ذکرشوې واقعې کې دهغه دخطادعوه نه قبليږي اوهغه دکفرددې کلمې داداکولوپه وجه باندې کافرشو. مولوي اشرف علی تهانوي رحمه الله ددې داتعبيرښودلی دی چې، دې واقعه کې تسلي وه چې هغه طرف ته رجوع کوي، نوهغه په توفيق دالله دسنت تابعداري کونکی دی، مولوي اشرف علي تهانوي رحمه الله ددې کس په کفرباندې راضي دی او هيڅ قسمه انکاريې نه دی پرې کړی، هغه پخپله هم کافرشو، ځکه چې رضابالكفرهم كفرده.
۴: داچې ددیوبندیانوملامحمدانورشاه کشمیري په خپل کتاب "اکفارالمحلدين،، ص۷۳ کې ليکلي دي: (ترجمه) عالمانو فرمايلي دي چې دانبياء عليهم السلام په شان کې جرآت کول کفردی، اګرچې توهين يې مقصدنه وي اوهم ددې کتاب په صفحه ۸۶ باندې يې ليکلي دي چې دکفرحکم په ظاهره باندې دی، په نيت اوقصدباندې نه.
اوهم ددې کتاب په صفحه ۷۴ باندې ليکل شوي دي چې: په صريح لفظ کې دتاويل دعوه نه قبليږي اوفاسدتاويل دکفرپه شان دی.
ددې عبارتونونه معلومه شوه چې دحضور ﷺ په شان کې دتوهين الفاظ ويل کفردی اودې باره کې به دقايل دنيت اعتبار نه وي.که چېرې الفاظ محاورتاً ياعام طورباندې دتوهين الفاظ وي. نوهغه ته به کافرويل کيږي اودهغه به هيڅ بانه نه قبليږي اوکه چېرې دصراحت باوجودڅه بانه وړاندې کوي، نوهغه بانه به فاسده وي اوفاسده بانه دکفرپه شان ده اودلته دبيداري په حالت کې دې کس په خپله خوله باندې په درودشريف کې اشرف علي ويلي دي، نوپه دې کې به هيڅ تاويل نه قبليږي.
۵: داچې که چېرې داواقعه په طلاق باندې قياس کړل شي. نوطلاق واقع کيږي. يعنې که چېرې يوکس خپل ښځې ته ووايي چې ما تاته طلاق درکړ. طلاق درکړ. طلاق درکړاوبيا دخطا عذر وړاندې کوي او وايي چې مادابې اختياري کې ويلي دي، مجبور وم،ژبه زماپه واک کې نه وه. نوايادهغه سړي مېرمن طلاقيږي اوکه نه؟ که طلاقيږي نوبياعجيبه خبره ده چې طلاق کيدو کې خوداعذرقبول نه دی اومولوي اشرف علي ته خپل نبي او رسول ويلوکې

په دا عذر قبول وي.
اوس مورته د قران او حديث او فقې په رڼاکې ددې خبرو تفصيل وکاردی:
۱: دقران او حديث او فقې په رڼاکې د"خطا". صحيح تعريف څه دی؟ او خطا په هر حالت کې غير شعوري طور باندې وي او که خطا کونکی په شعور کې هم کيدای شي؟
۲: ایا ذکرشوې واقعه کې د شعور باوجود د محمد ﷺ په ځای باندې دخولې نه اشرف علي وتل دهغه خطا وه؟ او ایا خطا يو اځې دلږوخت له پاره وي او که دډېر وخت له پاره هم کيدای شي؟
۳: کوم کس چې په خپله خوله باندې دکفر الفاظ ووايي او بيا وايي چې زما اختيار نه و. مجبوروم، ژبه زما په واک کې نه وه او ما نه خطا شوې ده. نو ایا اسلامي شريعت کې دهغه د بې اختياري او خطا دا دعوه قبوله ده؟ دقبلېدو په صورت کې دصاحب شفا قاضي عياض رحمه الله بيان شوي اعتراضونه او د بزازيه او رد المحتار دبيان شويو عبارتونو مطلب څه دی؟
۴: که چېرې اسلامي شريعت کې دحضور ﷺ شان کې دګستاخي په معامله کې دچا نا پوهي جهالت، دژبې خطا کيدل. بې اختياره کيدل. دڅه خفګان يانشې په وجه باندې ناچاره او مجبوره کېدل. دنګراني د کمي په وجه يا بې پروايي او بې باکي يا قصداً او نيت او ارادې نه پرته ګستاخي کولو عذرونه قبول نه وي او صريح الفاظو کې دتاويل دعوه نه قبليږي، نو دپورته بيان شوې واقعې صحيحه توجيه څه ده؟
۵: که چېرې يو سړی خپلې ښځې ته په ښکاره الفاظو کې طلاق ورکړي او بيا وايي چې بې اختياره وم، مجبور وم، زما نيت دطلاق ورکولو نه و. زما دخولې نه خطا سره دطلاق الفاظ ووتل. نو ایا دهغه طلاق واقع کيږی او که نه؟ که واقع کيږي. نو طلاق کيدو کې دا عذر قبول نه دی او دکفر دالفاظو اداکولو کې دخطا او دژبې دخطا کيدو عذر قبليږي، نو دواړو کې فرق څه دی؟ او که چېرې دکفر دالفاظو داداکولو نه وروسته دخطا عذر نه قبليږي. نو بيا وواييئ چې ددې صاحب کوم چې دبيداري او شعور په حالت کې واو دايې محسوسوله چې زه درود پاک غلط لولم. کافر دی او که نه؟

**جواب:** حديث شريف کې دهغه کس واقعه ذکرشوې ده. دکوم نه چې سورلۍ ورکه شوې وه او دهغه دمرګ په ګمان باندې ونې لاندې څملاسته. کله يې چې سترګې وغړولې. نو وې ليدل چې سورلۍ يې دخپل سامان سره موجوده ده. نو بې اختياره دهغه له خولې نه ووتل.

**اللهم انت عبدی و انا ربک** (اې الله! ته زما بنده يې او زه ستا رب.)

دا دکفر الفاظ دي، خودې باندې حضور ﷺ دکفر فتوا نه ده لګولې. بلکې ويې فرمايل: **خطامن شدة الفرح**، دډيرې خوشحالۍ په وجه دهغه خوله خطا شوه. ستاسو ملا صاحب به ددې کس او دحضور ﷺ باره کې څه فتوا ورکوي؟ او قران کريم کې دي: **الامن اکره وقلبه مطمئن بالايمان**. دمجبوري په حالت کې دکفر الفاظ ويل کله چې زړه په ايمان باندې مطمئن

وي، الله تعالى دايمان فتوا ورکړې ده. دکفرنه. کوم عبارتونه چې دې صاحب نقل کړي دي. دهغو دې واقعې سره هيڅ تعلق نشته. يوکس خپل شيخ سره غير اختياري حالت کې ذکرکوي، که چېرې دهغه په ژبه کې کفر واى اويايې دخولې نه اختياري طورباندې دکفرالفاظ وتلي واى، نوهغه به ددې اظهارخپل شيخ ته ولې کاو؟ کوم کس چې په څه وجه باندې په خپل اختيارکې نه وي هغه باندې اسلامي شريعت دکفرفتوا نه لګوي. **لايكلف الله نفساالاوسعها**، دقران کريم ايت دى. ماته پته نشته چې مسلوب الاختيارباندې دکفرفتوا کوم شريعت ورکړې ده؟ پاتې شوه داخبره چې يوسړى دادعوه کوي چې هغه مسلوب الاختيار و اوکه نه. هغه دکفرالفاظ اداکوي. ياطلاق ورکوي اوکله چې هغه ونيول شي. نوهغه دمسلوب الاختياردعوه کوي، نو دا دعوه دښکاره حالاتوخلاف ده، په دې وجه باندې به هغه نه شي اوربدل کيداى، کوم عبارتونه چې ملاصاحب نقل کړي دي، دهغو هم دامطلب دى. خودمانحن فيه (دې مسئلې) دې صورت سره هيڅ تعلق نشته. ځکه چې دده الفاظ مخکې چانه نه واوريدلي. هغه پخپله باندې شيخ ته ددې الفاظوذکرکولوسره خپل مسلوب الاختيارکيدل ذکرکړي و. په هرحال هغه صاحب خوالله تعالى ته رسيدلى دى اومادقران اوحديث په حواله باندې ذکر وکړ چې الله تعالى اودهغه رسولﷺ په هغه کس باندې دکفرفتوا نه جاري کوي، که ددغه ملاصاحب دالله تعالى اودهغه درسولﷺ په فتوا باندې اعتمادنه وي اوهغه داسې کس باندې دکفرفتوا جاري کوي. نوهغه ته بايدوويل شي چې انشاء الله ته به هم دالله تعالى دربارته حاضريږې. هلته به دډولوخبروعدالت وي. ستاسو مقدمه به هم وړاندې کيږي. خپلې ټولې فتواوې دهغې ورځ له پاره وساتئ، موږبه هم ګوروچې څوک ګټه کوي اوڅوک تاوان؟ الله تعالى دې راته د زړونوله مرضه خلاصى نصيب کړي. بالکل هم دا سوال يوڅوورځې مخکې هم راغلى و. دهغه ځواب کې مې په بل انداز کې ليکلي و، هغه هم ولولئ!

الزامي ځواب خودادى چې تذکرة الاولياء وغيره کې دا واقعه ذکرشوې ده. چې يوکس حضرت شبلي رحمه الله ته بيعت له پاره راغى، حضرت ترې نه پوښتنه وکړه چې کلمه څنګه لولې؟ هغه وويل چې **لااله الاالله محمدرسول الله**، ورته ويې فرمايل چې داسې ولوله، **شبلي رسول الله**. هغه هم هغه شان ولوستله. حضرت ورته وفرمايل چې داشبلي څوک دى؟ ماخو ستا امتحان اخست، وفرمايئ! دحضرت شبلي رحمه الله اودهغه دمريدباره کې ستاسو څه خيال دى؟

اوتحقيقي ځواب دادى چې دهغه صاحب مقصداصل کلمه لوستل و. څنګه چې له ټولې واقعې نه معلوميږي اوعقيده کومه چې دزړه کاردى هغه صحيح وه، البته دخولې نه يې نور الفاظ ووتل اوهغه ددې الفاظ دکفر ګڼلوله وجې توبه کوله اوکوشش يې کاوه چې صحيح

الفاظ اداکړي، خودخولې نه يې نور الفاظ وتل اوهغه پرې ژړل. زارۍ اوژړايې کوله اوترڅو پورې چې دغه حالت نه ختميږي. هغه داضطراب په حالت کې واوکله چې ترې نه غيراختياري حالت ولاړ، نوهغه ددې اطلاع خپل شيخ ته وکړه. چې دهغه ددې غيراختياري کارکفاره اداکړي ، دې ټولې واقعې ته کتلونه وروسته څوک دې ته دکفرالفاظ ويلي شي؟ ايا الله تعالى په غيراختياري حالت باندې هم دمواخذې اعلان کړی دی؟ که چېرې شته. نوهغه کوم ايت دی؟ ياحديث دی؟

۱: دملاصاحب داويل چې دخطابانه فضول ده، صحيح ده. خوکوم کس چې خپل اختيارکې نه وي، دهغه باره کې دافتوا ده؟ که داسې وي. نوپه کوم کتاب کې ده؟ **الامن اکره وقلبه مطمئن بالايمان**، دقران او ددې فتوا ترمنځ خلاف دی.

۲: داصحيح ده چې خطاد لرڅوخت له پاره وي، خومسلوب الاختيار کيدل اختياري شی نه دی، چې دې کې دې وخت معلوم کړل شي، که چېرې يوانسان ټوله ورځ په خپل اختيارکې نه وي، نودې کې دهغه څه قصوردی.

۳: هغه اختياري طورباندې دکفر کلمه نه ده ادا کړې ده اونه هغه ددې دعوه کوي. بلکې هغه خودمسلوب الاختيارکيدوخبره کوي. شفا قاضي عياض رحمه الله دعبارت حقيقت ايامسلوب الاختياردی؟ نه! بلکې په قصدباندې دکفرکلمه اداکولونه وروسته تاويل کونکی ددې نه مراددی.

۴: دجهالت، ناپوهي، يادڼبې دخطاکيدوغيره کومې حوالې چې د الدر المختار او ردالمختارنه ورکړل شوې دي. هغه خودې صورت کې دی چې قاضي ته ديوکس باره کې شکايت شوی وي. قاضي دهغه نه پوښتنه وکړي اوهغه داعذروړاندې کړي چې ماته پته نه وه چې داګستاخي ده، ياخوله مې خطاشوه، ياداچې زه هوش کې نه وم اودهغه ددې دعوې نه پرته هغه سره بل هيڅ دليل نه وي، نوقاضي به دهغه داعذرنه مني، بلکې هغه ته به سزاورکوي،(داسې نه چې هغه دسزانه بري کړل شي)

کله چې دې واقعې کې قاضي ته شکايت نه دی شوی اونه هغه دخپل جرم تاويل کړی دی، هغه صاحب باندې چې غيراختياري طورباندې څه تير شوي دي اوځنګه چې هغه بالکل مسلوب الاختيارو، هغه خپله واقعه خپل شيخ ته کوي اوفرمايي چې دقضا مسئلې سره ددې څه تعلق دی.

۵: ددې واقعې تعلق فيمابينه وبين الله دی اودطلاق الفاظ بوه معامله ده، چې دهغې تعلق ښځې سره دی، ښځې دهغه دخولې نه دطلاق الفاظ اوريدلي دي اودمعاملاتوتعلق ظاهري الفاظوسره دی، په دې وجه باندې ښځه دهغه خبره باندې يقين نه کوي اوعدالت به هم باور نه کوي، خوکه هغه رښتيا مسلوب الاختيارو، نوفيمابينه وبين الله به طلاق نه

کیږي او که چېرې ښځه دهغه په حالت باندې اعتمادوکړي او دهغه مسلوب الاختیارکیدل ومني، نوفتوا به هم داوي، چې فیمابینه وبین الله طلاق نه دی واقع شوی.
۲: دحضرت کشمیري رحمة الله علیه حواله صحیح ده. خوهلته دکفرنه بلکې درضابالکفر سوال دی.

## قضااو دیا نت کې فرق

**سوال:** تاسوچې څه لیکلي دي دهغو خلاصه داده چې کوم صاحب سره واقعه شوې وه. هغه په خپل اختیارکې نه و اوکوم کس چې په څه وجه باندې خپل اختیارکې نه وي. نوهغه باندې اسلامي شریعت دکفرفتوا نه لګوي. خوستاسوپه دې ځواب باندې چې "هغه صاحب مسلوب الاختیار و. یوځوشکونه بیانوي. کوم چې په فتاوي خلیلیه کې حضرت مولانا خلیل احمد سهارنپوري رحمة الله علیه مشرمدرس مدرسه مظاهرالعلوم سهارنپورهم ددې واقعی باره کې لیکلي دي. دایو حقیقت دی چې په لیکلو ډیروخت لګیږي. بیاستاسوپه شان مصروف کس له پاره به نورهم مشکل وي. خوکه چېرې ددې شکونو تفصیل سره تحقیق وشي. نوستاسوتحریربه انشاء الله دزړګونوخلکو له پاره. کوم چې ددیوبنداکابرینو اوعالمانوسره بغض اوکینه لري، دهدایت ذریعه جوړ شي، زماشکونه دادي:
۱: شک چې دهغه دادعوه چې زه بې اختیاره یم اوژبه مې په واک کې نه ده. هغه وخت کې شرعي طورباندې معتبروي.کله چې دهغه دمجبوري اوبې اختیاري سبب دهغه شیانوپه وجه باندې وي، دکوموپه وجه باندې چې عام طورباندې اختیارختمیږي. مثلاً لیونتوب. نشه، زور، په موجوده حالت کې کوم حالت چې هغه سړی ته پیښ شوی دی. دهغه له پاره څه داسې وجه نشته کوم چې عام طورباندې هوش ختمونکی وي، ځکه چې دهغه دبې اختیاري وجه دهغه په کلام کې نشته چې دهغې په وجه باندې دهغه اختیارختم شي.
۲: شک که چېرې داسې څه وجه شته، نوهغه دمولانادمینې غلبه ده اودمینې غلبه په اختیارکې نه ده، دمینې په غلبه کې د اطراء تحقق کیدای شي. کوم چې شارع علیه التحیة والتسلیم منع فرمایلي ده. **لاتطرونی کمااطرت الیهودوالنصاری ولکن قولواعبدالله ورسوله.** اوکه چېرې دمینې غلبه اودهغې وجه اختیارختمونکې وي. نو**نهی عن الاطراء** ته به نه متوجه کیده بلکې معذوربه ګڼل کیده. **نهی عن الاطراء** پخپله باندې ددې خبرې دلیل دی چې دمینې غلبه اختیارختمونکې نه ده. په دې وجه باندې "اطراء. نه حضور صلی الله علیه وسلم منع کړې ده، په دې وجه باندې به شرعي طورباندې دهغه دادعوه نه منل کیږي.
۳: شک که چېرې دالفاظواداکولووخت کې دهغه سړي ژبه په خپل واک کې نه وه، نوداخودهغه په اختیارکې و. چې کله هغه داپته وه چې زه بې اختیاریم اومجبوریم اوصحیح طورباندې خبرې نه شم کولې. نودکفرکلمه اداکول به یې پرې ایښې و. په داسې حالت کې

په هغه ته ددې کلمې داداکولو دا حکم وي چې هغه به شرعي طورباندې معذورنه گڼل کيږي،
علامه شامي رحمه الله دردالمحتار په حاشيه کې په باب المرتد کې ليکلي دي:

**وقوله لايفتى بكفرمسلم أمكن حمل كلامه على محمل حسن ظاهره أنه لايفتى من حيث استحقاقه للقتل ولامن حيث الحكم ببيونة زوجته وقديقال المرادالأول فقط لأن تاويل كلامه للتباعدعن قتل المسلم بأن يكون قصدذلک التاويل وهذالاينافي معاملته بظاهركلامه فيماهوحق العبدوهوطلاق الزوجة بدليل ماصرحوابه من أنه إذا أرادا أن يتكلم بكلمة مباحة فجرى على لسانه كلمة الكفرخطاء بلاقصدلايصدقه القاضي على لسانه كلمة الكفرخطأبلاقصدله يصدقه القاضي وإن كان لايكفر فيمابينه وبين ربه تعالى فتامل ذلک!**

اوعلامه شامي رحمه الله بل ځای په باب المرتد کې ليکي:

**وفى البحرعن الجامع الصغيرإذ أطلق الرجل كلمة الكفرعمداً لكنه لم يعتقدالكفرقال بعض اصحابنالايكفر لأن الكفريتعلق بالضميرعلى الكفروقال بعضهم يكفروهوالصحيح عندي لأنه استخف بدينه.**

دې نه پرته تاسوچې دهغه صاحب د"مسلوب الاختيار والي،. له پاره دقران مجيدکوم ايت وړاندې کړی دی، هغه ايت خوښکاره طورباندې د مکره له پاره دی اودغه صاحب ښکاره خبره ده چې مکره نه و. **الامن اکره وقلبه مطمئن بالايمان.**

**جواب:** ستاسودلومړي خط ځواب مادخپل ناقص علم مطابق بيان کړ. زمادبحث کولو عادت نه دي، بلکې چې کوم کس زمادځواب نه مطمئن نه شي هغه ته وليکم چې په خپل تحقيق باندې عمل وکړه، تاسودې باره کې په دويم ځل باندې سوالونه راوليږل. اوماپرته دځواب نه دروليږل، خوتاسوهم دا سوالونه بياراوليږل. اوضدکوئ چې ځواب درکړم، ستاسوپه اصرارباندې يوځل بياليکم. که شفا ونه شي، نوبيابل چاته رجوع وکړئ. زمادطرف نه بيامعذرت دی.

۱: حضرت اقدس مولاناخليل احمدسهارنپوري مهاجرمدني نورالله مرقده زماشيخ الشيخ دی، اوزماله پاره سنداوحجت دی.

۲: حضرت په دې نکتې باندې بحث کړی دی چې اياقضاء دهغه مسلوب الاختيارکس خبره تسليموي؟ اوحضرت رحمه الله پخپله باندې هم ليکلي دي چې **فيمابينه وبين الله** نه په هغه کس باندې دارتدادحکم کيدای شي اونه دايمان اودنکاح دتجديد اودقضاء مسئله مامخکې واضحه کړې ده، هغه يوځل بياولولئ!

دجهالت، ناپوهي او دخولې دخطاکيدو کومه حواله چې په الدرالمختاراوردالمحتارکې

ورکړل شوې ده، هغه خودې صورت کې ده چې قاضي ته د یو کس باره کې شکایت شوی وي، قاضي د هغه نه پوښتنه وکړي او هغه داعذرو ړاندې کړي چې ماته پته نه وه چې داګستاخي ده. یا مې خوله خطاشوه. یاداچې زه هوش کې نه وم اوله هغه سره ددې دعوې نه پرته بل هیڅ دلیل هم نه وي، نوقاضي به دهغه داعذرنه مني. بلکې هغه ته به سزا ورکوي. (دا نه چې هغه به دسزانه بري کیږي)

کله چې دې واقعې کې نه قاضي ته شکایت شوی دی اونه هغه دخپل جرم تاویل کړی دی. هغه صاحب باندې چې غیراختیاري طورباندې څه تیر شوي دي اوځنګه کې چې هغه بالکل مسلوب الاختیارو. هغه واقعه هغه خپل شیخ ته کوي اوفرمايي چې دقضا مسئلې سره ددې څه تعلق دی؟

کله چې حضرت پخپله باندې تصریح فرمايي چې فیمابینه وبین الله دې باندې نه دمرتدکیدو حکم کیدای شي اونه دایمان اونکاح دتجدیداوداقضیه په عدالت کې هم نه ده وړاندې شوې چې دې باندې خبرې وکړل شي چې قضاء ددې څه حکم دی؟ نودې باندې دبحث کولو څه نتیجه شوه؟

۳: ددې ځای څخه ددریووا ړوشکونوځواب حاصلیږي، کوم چې تاسو دفتاوی خلیله په حواله باندې ذکرکړي و.

۱: داصحیح دی چې دلته داختیارختمونکواسبابوڅخه په ښکاره ډول کوم سبب نشته، خوسالکینو ته کله ناکله داسې حالات پېښیږي. چې دهغوپه حقیقت یواځې دهغه کس نه پرته بل چاته معلومات نه کیږي، قاضي خوبه بې شکه عامو حالاتو ته ګوري، خوشیخ، دهغه کس دهغه حالت له نظره نه شي غورځولی، دکوم حالت نه چې سالک تیریږي، که چېرې هغه مرید ته په خاص خیال باندې نظرنه کوي، نوهغه بیا شیخ نه بلکې نادان دی، دفتاوی خلیله دصاحب بحث خوقضاء ده، خوسلوکي حالات دقضاء په دائره کې داخل نه دي.

۲: دمینې غلبه په اطراءکې داخله ده، له کومې نه چې حضور ﷺ منع کړې ده، دا بالکل صحیح ده، خوداپه هغه صورت کې ده کله چې دامینه قصداً اوپه اختیارکې وي اوکه چېرې دمینې غلبه کې داسې حالت جوړشي چې دی په خپل اختیارکې نه وي، نودې باندې دمنع کړل شوې اطراء حکم نه جاري کیږي، بلکې دبې هوشۍ حکم به پرې جاري کیږي، داولیاء الله د زړګونو شطحیاتو (خلاف شرع خبرو) توجیه آخر ددې نه پرته څه ده؟

۳: کله چې ورته داپته وه چې ژبه مې خپل اختیارکې نه ده. نوهغه خاموشي ولې اختیارنه کړه، تکلم بکلمة الکفر یې ولې وکړ؟ کوم الفاظ چې هغه اداکړي و، دهغو باره کې خوهغه نه پته وه چې دژبې دبې واکه کېدوپه وجه باندې هغه دکفرالفاظ اداکړل، خوهغه دچپ کیدوپه ځای باندې دصحیح الفاظوداداکولو کوشش په دوو وجو وکړ، یوداچې دهغه

دا امیدوچې اوس به دهغه دخولې نه صحیح الفاظ اداشي. چې دهغه په وجه به دمخکې الفاظوګناه ختمه شي، دویم داچې هغه سره داغم وکه چېرې هم دې وخت کې ورته مرګ راشي، نو(نعوذبالله) دکفرپه الفاظوباندې به یې ژوندختم شي، په دې وجه باندې هغه کوشش کاوچې دژبې نه یې صحیح الفاظ اداشي. چې دمخکې الفاظواصلاح هم وشي اود مرګ دخرابېدو ویره یې هم ختمه شي.
غرض داچې دادرې شکونه کوم چې تاسونقل کړي دي هغه دباب قضادي. اولږشان کوشش سره داشکونه ختمیدای شي.

۴: پاتې شوه داخبره چې دغه صاحب خومکره نه و. بیاما ایت شریف الامن اکره، ولې ذکر کړ؟ ددې ځواب دادی چې مکره کې اختیارختم نه وي، بلکې رضاختمه وي. څنګه چې دهدایه مصنف ددې وضاحت کړی دی اوپه هم دې وجه دامام ابوحنیفه رحمه الله په نزد دمکره طلاق واقع کیږي اوددغې واقعې والاصاحب مسلوب الاختیارو. نودایت شریف نه استدلال ددلالت په طورباندې ذی، یعنې کله چې داکراه په حالت کې قلبه مطمئن بالایمان، وي. نو د کفرپه کلمې باندې به مواخذه نه وي. نودکوم کس چې مسلوب الاختیاروي، نوهغه باندې به مواخذه په درجه اولی سره نه وي.

۵: زموږ بریلوي ورونه الله تعالی زموږ داکابرینو ددرجو د اوچتولو له پاره تجویزکړي دي، ددې حضراتودعمل په وجه باندې نه زموږ داکابرینوڅه نقصان کیږی اونه یې دتکلیف نه پرته څه خرابیږي، قران کریم د اخیارو باره کې فرمایي: لن یضروکم الااذی، خودخپل بریلوي ورونودخیر خواهئ له پاره باید عرض وکړم چې:
۱: دکوم صاحب باره کې چې دابحث دی، ډیروخت وشوچې هغه دالله تعالی دربارته رسیدلی دی، اوهغه احکم الحاکمین کوم چې د هرچا له ظاهراوباطن څخه خبردی، هغه به ددې صاحب باره کې فیصله کړي وي، دالله تعالی دفیصلې نه وروسته ستاسوبحث فضول دی اوفضول اوبې ګټې شیانوکې مشغولېدل دمومن دشان خبره نه ده.
۲: په ټولوعدالتونوکې ددعوي ګیردمرګ نه وروسته مقدمه ختمیږي،. دمرحوم دوفات نه وروسته نه تاسوهغه ته دایمان دتجدید مشوره ورکولی شئ اونه دنکاح دتجدید، که دامشوره ورکول کیدای شوه، نودمرحوم په ژوندکې ممکنه وه.
۳: که چېرې تاسوپه هغه صاحب باندې دکفرفتوا جاري کړئ اوالله تعالی دهغه دایمان فیصله کړي وي، نوستاسوفیصله به دالله تعالی دفیصلې خلاف وي، اوس تاسوپخپله ووایئ چې دې کې به نقصان دچاوي؟
۴: حضور ﷺ هم داحقیقت داسې بیان کړی دی
لاتسبواالاموات فانهم قدافضواالی ماقدموا، (مړوته بد رد مه وایئ! ځکه چې هغوی څه مخکې

لیږلي دي، هغه ته وړاندې شوي دي)
تاسو یوه پخوانۍ خبره باربار کولو سره دحضور ﷺ دارشاد مخالفت کوئ. دکومې مقدمې فیصله چې دټولو نه اوچت عدالت کې شوې ده، درجم بالغیب په ذریعه باندې ددې فیصلې مخالفت هم په خپل سر اخلئ. دعقل اوانصاف غوښتنه مو پرېښې ده اوفضول کارونو کې مشغول شوي یئ.
په دې وجه باندې زمامشوره داده چې تاسو ددیوبندیانو په مخالفت کې دخپل ځان له پاره خطرې مه پیداکوئ، که دبحث او مناظرې شوق مووي. نو په سلګونو نور موضوعات هم شته. ولله الحمد اولا واخراً.
مراد ما نصیحت بود وکرد یم حوالت با خدا کر دیم ورفتیم

## ایا ګوتم بُدھ په پیغمبرانو کې شمېرل کیږي؟

**سوال:** تعلیم یافته اودنوي ذهن والا خلک .خوګوتم بدھ هم په پیغمبرانو کې شماري داخبره صحیح ده اوکه نه؟

**جواب:** په قران اوحدیث کې چرته هم دده ذکرنه دی راغلی ځکه موږ په یقین سره هیڅ نه شو ویلی . شرعي حکم دادی چې دکومو پیغمبرانو نومونه په قران کې ذکرشوي دي په هغوی باندې خوپه تفصیل سره یقیني ایمان ساتل ضروري دي اوپه باقي پیغمبرانو باندې اجمالاً ایمان ساتل واجب دي. چې دوی الله پاك دخلکو هدایت له پاره رالیږلي وو. که دهغوی تعلق له هرځای سره وي اوپه هره زمانه کې وي، موږپه ټولو باندې ایمان لرو.[۱]

## یوولي یاپیغمبر وسیله جوړول روادي؟

**سوال:** قران مجید کې خوصفاصفا راغلي دي چې څه غوښتنه کوئ له ماڅخه یې غواړئ. خو بیاهم دیو ولي یا پیغمبر وسیله جوړول څه حکم لري؟

**جواب:** دوسیلې پوره تفصیل اودهغه صورتونه زمادکتاب ( اختلاف امت اورصراط مستقیم ) په اوله برخه کې وګورئ[۲]. بزرګان مخاطب کول اودهغوی نه غوښتنه خوشرك ده. خو دالله نه غوښتل اوداسې ویل چې یاالله! دخپلونیکواومقبولو بندګانو په طفیل زما فلانی مرادپوره کړې شرك نه دی.
دصحیح بخاري په اول جلد کې ص۱۳۷ باندې دحضرت عمر رضی الله عنه دادعانقل شوې ده.

---

[۱] (ورسله) بان تعرف انهم بلغوا ما انزل الله الیهم وانهم معصومون وتؤمن بوجودهم فیمن علم بنص او تواتر تفصیلاً وفی غیرهم اجمالاً (مرقاة شرح مشکوة ج:۱،ص: ۵۰)
[۲] اوګورئ اختلاف امت او صراط مستقیم ص:۶۳ تا ۷۶)

"اللهم انا كنا نتوسل اليك بنبينا فتسقينا وانا نتوسل اليك بعم نبينا فاسقنا".

ترجمه: "یاالله موږ به ستا په دربارکې د خپل نبي ﷺ په ذریعه توسل کاوو. تا به موږ باندې د رحمت باران کاو. اوس موږ د خپل نبي د تره (عباس رضی الله عنه) په ذریعه توسل کوو. نو موږ باندې د رحمت باران وکړې.

د دې حدیث نه په نبي علیه السلام او په اولیاوو دواړو باندې وسیله نیول ثابت شو. په کوم شخصیت سره چې وسیله نیول کیږي. نو هغه به د سفارش په ډول مخکې کول مقصود وي.

## انبیاء او اولیاء وغیره په دعاګانو کې وسیله جوړول

**سوال:** یو صاحب په خپل کتاب "وسیلے واسطے،، کې لیکلي دي چې کوم خلک مړه شوي بزرګان، انبیاء کرام اولیاء یا شهدا په خپلو دعاګانو کې وسیلې جوړوي. دا شرک دی ایا دا همداسې ده؟

**جواب:** د هغه صاحب دا ویل چې د بزرګانو په وسیله باندې دعا کول شرک دي، بالکل غلط دي،له بزرګانو خو غوښتنه نه کیږي. غوښتنه خو د الله تعالی نه کیږي. بیا د الله تعالی نه غوښتل ولې شرک شو؟

## په حق د فلاني سره د دعا کولو شرعي حکم

**سوال:** په حق د فلاني او په حرمت د فلاني سره دعا کول څنګه دي په قران او حدیث کې د دې څه ثبوت شته او که نه؟

**جواب:** په حق د فلاني او په حرمت د فلاني سره دعا کول هم د توسل یو صورت دی. نو د دې وجې نه په دی الفاظو سره دعا کول جایز دي او دا د حضراتو مشائخو معمول هم دی. "حصن حصین" او "الحزب الاعظم" د ماثوره دعاګانو مجموعې دي. په هغه کې په ځینې روایاتو کې "بحق السائلین علیك" "فان للسائل علیك حقًا" وغیره الفاظ منقول دي، چې د هغه نه د دې په جواز او غوره والي دلیل نیولی شو. زموږ په فقه کې دی ته مکروه ویل شوي دي. د دې توجیه مې هم په اختلاف امت اور صراط مستقیم" کې کړې ده.[1]

## د یوې غلطې عقیدې امام باره کې د دیوبند د بزرګانو مسلک

**سوال:** د دین عالمان د دې کس په باره کې څه فرمایي چې د یو جومات امام وي او د قران کریم درس هم ورکوي، جومات د علماء دیوبند د منتسبینوو او امام صاحب هم د دیوبندي په حیثیت ټاکل شوی و. خو د هغه عقیدې دا دي:

[1] تفصیل له پاره د مذکوره کتاب اولنۍ حصه اوګورئ ص: ۶۳ تا ۷۰_

۱:دسورة یوسف په درس کې د حضرت یوسف علیه السلام او د زلیخا دنکاح په بحث کې یې دزلیخا په باره کې وویل چې هغه زانیه، بدکاره او کافره وه، د درس ځینې شریکانو چې کله عرض وکړچې په فلاني فلاني تفسیرکې لیکل شوي دي چې نکاح شوې وه، مثلاً:معارف القران. نوویې ویل چاچې لیکلي دي هغه هم بې ایمانه او لعنتي دی.
۲:د تبلیغی جماعت سخت مخالفت کوي، هغوی په جومات کې نه پریږدي او د حضرت شیخ الحدیث متعلق یې وویل چې هغه مشرک مړشو او کنځل یې ورته وکړې او ویې ویل چې :په دې تبلیغي نصاب کې ګند او شرک ګډ شوی دی، د تبلیغي نصاب په توهین کولو کې دې ته ، ،کتابړی او ،شتابړی، ،په نومو نوسره یادوي.
۳: ځینې د دیوبند اکابر عالمان مثلاً: حضرت مولانا احمدعلي لاړهوي او حضرت محدث العصر مولانا محمد یوسف بنوري په باره کې یې وویل چې دا حضرات مشرکان وو او د شرک په حالت کې مړه شوي دي.
۴:وسیله بالذوات الفاضلة (مثلاً:انبیاء علیهم السلام او صلحاء امت) ته شرک او کفر وایي او څوک چې د چا بزرګ په وسیلې سره دعا وغواړي هغه ته هم مشرک وایي.
۵:دانبیاء علیهم السلام له حیات برزخي في القبور نه انکار کوي او قایلین حیات علماء دیوبند ته مشرکان وایي.
۶:د سماع موتی قایلینو ته هم مشرکان وایي.
۷:د خپلې راې په باره کې وایي چې دا حتما او اخري ده او بل عالم تر دې چې خپل استاذان هم نه منم.
اوس د محلې والا غوسه دي، چې داسې کس موږ امام نه ساتو اوس له ستاسو دلاندې سوالونو ځوابونه مطلوب دي:
۱:ایا داسې کس د اهل سنت والجماعت نه دی؟
۲:ایا داسې کس ته به دیوبندي ویل کیږي؟
۳:ایا د داسې کس امامت او له هغه وروسته لمونځ کول جایز دي او که نه؟
۴:ایا دغه کس به د کفر د حکم مستحق وي او د ده ښځه به مطلقه وي؟
**جواب:** په سوال کې چې د کوم صاحب نظریات بیان شوي دي که هغه رښتیا د دې نظریاتو والا وي، نو د اهل سنت والجماعت نه خارج دی، ځکه چې چا مسلمان ته (بیا عالم او بزرګ ته) بې ایمان، لعنتي او مشرک ویل، د اهل سنت د عقیدې خلاف دي[1]، په وسیله بالوجه

[1] عن عبد الله قال قال رسول الله صلی الله علیه و سلم (سباب المسلم فسوق وقتاله کفر (بخاری ج:۲،ص:۸۹۳)

المشروع اهل سنت قایل دي[۱]. همدارنګه حیات بزرخي في القبور هم مني[۲]. او سماع الموتی دصحابه کرامود دور نه مختلف فیها مسئله ده. دسماع الموتی قایلینو ته مشرک ویل ګویا (نعوذ بالله) صحابه مشرکان ګڼل دي[۳]. نعوذ بالله من الزیغ والضلال.

غرض داچې ددې کس نظریات دخوارجو او روافضو په شان دي. له دې وجې نه دده اهل سنت سره هیڅ واسطه نشته.

۱: حضرات اکابر دیوبند هم داهل سنت یو مکتب فکر دی. څوک چې په کتاب او سنت باندې عمل کونکي، دحنفیت شارحین، سنتو ته بلونکي، دبدعت له منځه وړونکي، دناموس صحابه علم برداردي، نو کوم کس چې داهل سنت نه منحرف وي هغه دیوبندي نه شي کېدای، داکابر دیوبند نظریات په زیربحث مسائلو کې هغه دی کوم چې: المهند علی المفند، کې زموږ شیخ المشائخ حضرت اقدس مولانا الحاج الحافظ الحجة الثقة الامین السیدي خلیل احمد سهارنپوري ثم مهاجرمدني قدس سره لیکلي دي او په هغو باندې زموږ دټولو اکابرو لاسلیکونه او تصدیق دی، کوم کس چې ددې رسالې له مسایلو سره موافق نه وي هغه دیوبندي نه دی، زموږ داکابر دیوبند واقعې ددې شعر په شان دي:

درکف جام شریعت درکف سندان عشق هرهوسناکے نه داند جام سندان باختن!

۲: داکس دطائفه منصوره اهل سنت نه منحرف دی له دې وجې نه دده په اقتداء کې لمونځ کول جائزنه دي[۴] او دی دامام کولو اهل نه دی، دمحلې والا مکلف دي چې دی دامامت دمنصب نه معزول کړي.

---

۱] ان التوسل بالنبی صلی الله علیه وسلم جائز فی کل حال قبل خلقه وبعد خلقه فی مدة حیاته فی الدنیا وبعد موته فی مدة البرزخ وبعد البعث فی عرصات القیامة والجنة (شفاء السقام ص: ۱۲۰)

۲] ...فمحصل الجواب ان الانبیاء احیاء فی قبورهم فیمکن لهم سماع..الخ (مرقاة شرح مشکوة ج۲ ص۲۰۹)

۳] جواب : دې مسئله کښې د حضرات صحابه کرام رضی الله عنهم اجمعین د دور نه اختلاف دی د دې هیڅ فیصله نه کیږي وګورئ! فتاوی رشیدیه ص:۱۰۸ (طبع اداره اسلامیات لاهور) فَقَالَ عُمَرُ يَا رَسُولَ اللَّهِ كَيْفَ تُكَلِّمُ أَجْسَادًا لاَ أَرْوَاحَ فِيهَا قَالَ « مَا أَنْتُمْ بِأَسْمَعَ لِمَا أَقُولُ مِنْهُمْ غَيْرَ أَنَّهُمْ لاَ يَسْتَطِيعُونَ أَنْ يَرُدُّوا عَلَىَّ شَيْئًا...... اعلم رحمک الله ان عائشة رضی الله عنها قد انکرت هذا المعنی واستدلت بقوله تعالی : فانک لا تسمع الموتی وقوله : ومانت بمسمع من فی القبور ولا تعارض بینهما لانه جائز ان یکونوا یسمعون فی وقت ما او فی حال ما فان تخصیص العموم ممکن وصحیح اذا وجدا المخصص (التذکرة فی احوال الموتی وامور الآخرة علامه قرطبی ص: ۱٦٤. طبع بیروت)

٤] ویکره تقدیم المبتدع ایضاً لانه فاسق من حیث الاعتقاد وهو اشد من حیث العمل ........ والمراد بالمبتدع من یعتقد شیئاً علی خلاف ما یعتقده اهل السنة والجماعة (حلبی کبیر ص: ٥١٤، فصل فی الامامة طبع سهیل اکیډمی) ایضاً : ویکره ........امامة مبتدع ای صاحب بدعةٍ هي اعتقاد. [بقیه حاشیه په راروانه صفحه...

۳: د تکفیر په مسئله کې زه ډیرزیات احتیاط کوم. له دې وجې نه ده ته د توبې، انابت او اهل حق سره د تعلق مشوره ورکوم. د دې کس اصلي مرض خودرايي ده. د کوم طرف ته چې په ۷ نمبر سوال کې ارشاره شوې ده.

د خپلې رايې په باره کې وايي چې: د احتما او اخري ده او دی هیڅ یو عالم حتی چې خپل استاذان هم نه مني.

هم د غه خودرايي د ډیرو عا لمانو د ضلالت او انحراف سبب جوړیږي. د خوارجو او روافضو نه واخله تر اوس دورتر خلکو پورې ټول خودرايي په حیرانتیا کې اچولي دي، له دې وجې نه کوم کس چې په صراط مستقیم باندې د تلو او د هدایت په لار د مرګ ارزو لري هغه ته لازم دي چې په خپلې رايې د اعتماد کولو پر ځای د اکابرو په علم او تقوا باندې اعتبار وکړي او د احضرات په علم، معرفت، فهم، فراست، بصیرت، اصلاح، تقوا او د شریعت په تابعداري کې زموږ نه ډیرزیات په اوچت مقام باندې وو. والله اعلم.

## د توفیق د دعا غوښتلو حقیقت

**سوال:** د توفیق تشریح وکړئ په دعاګانو کې ډیرخلک د الله نه د دعا غوارې چې یاالله! د فلانکي کارکولو توفیق راکړې، د مثال په ظوریوسړی دادعاکوي چې یاالله! ماته د لمانځه کولو توفیق راکړې، خو هغه یواځې په دعاباندې بسنه کوي اوداسې وايي چې کله توفیق راکړل شي، نو لمونځ به شروع کړم. په دې باره کې لږ وضاحت وکړئ ترڅو زموږ د ورونو په سترګو د اد توفیق پریوتې پرده لیرې شي.

**جواب:** د توفیق معنا داده چې په یو نیك کارکې د الله د طرف نه د هغه اسباب پیداکیدل[۱] کوم سړي ته چې الله تعالی روغ بدن ورکړی وي او د لمانځه کولو نه څه مانع هم موجود نه وي اوله دې سره بیاهم هغه لمونځ نه کوي او یواځې د توفیق دعا غواړي، هغه په حقیقت کې د زړه له تله دعا نه غواړي. بلکې (نعوذبالله) دی په دعا پورې ټوکې کوي، که ربښتیا هغه له اخلاص سره دعا کولی نو هیڅ وخت به هغه د لمانځه نه محروم نه پاتې کیده.

---

...بقیه د تیر مخ].. خلاف المعروف عن الرسول لا بمعاندة بل بنوع شبهة، وكل من كان من قبلتنا (لايكفر بها) حتى الخوارج الذين يستحلون دماءنا وأموالنا وسب الرسول، وينكرون صفاته تعالى وجواز رؤيته لكونه عن تأويل وشبهة بدليل قبول شهادتهم، إلا الخطابية ومنا من كفرهم (الدرالمختار ج: ۱،ص: ۵۵۹، ۵۶۰)
ايضا : ان من اظهر بدعة وفجوراً لا يرتب اماماً للمسلمين فانه يستحق التعزير حتى يتوب فان امكن هجره حتى يتوب كان حسناً..اذا كان ترک الصلوة خلفه يفوت الماموم الجمعة والجماعة فهنا لا يترک الصلوة خلفه الا مبتدع مخالف للصحابة رضى الله عنهم اجمعين(شرح العقيدة الطحاوية ص:۴۲۳، طبع مكتبه سلفيه لاهور)

۱] قوله: التوفيق: هو توجيه الاسباب نحو المطلوب الخير (كشاف اصطلاح الفنون ج:۲، ص: ۱۵۰۱)
التوفيق: جعل الله فعل عباده موافقاً بما يحبه ويرضاه (التعريفات للجرجانى ص:۵۲)

## د کاروبار (روزګار) اداب

**سوال:** دقران اوحدیث په رڼا کې دمستقبل منصوبه بندي (دخپل ځان له پاره) څنګه ده؟یعنې په جایزه ذریعه دمستقبل له پاره دولت جمع کول او دخپلوائنده نسلونوله پاره سهولتونه او اسانتیاوې برابرول. د رزق دپراختیاله پاره کوشش کول. سره له دې نه چې زموږ عقیده ده چې الله پاك زموږ رازق اوخالق دی. زمادامطلب نه دی چې انسان دې لاس په لاس کیږدي بلکې دبهتر مستقبل دمنصوبه بندي او دهغه له پاره کوششونه کول دي. مولاناصاحب په دې سره زموږ په معاشره کې ډېرې خرابیانې پیداکیږي.

**جواب:** کوم سړی چې په حلاله ذریعه مال ګټي اوشریعت چې په دې مال کې کوم حقونه مقرر کړي دي هغه هم په صحیح طریقه باندې اداکوي اوددې سره دا هم ضروري ده چې دمال په ګټلوکې داسې مشغول نه شي چې داخرت دتیاري نه غفلت اودشریعت په احکاموکې سستي راشي. دغو درې شرطونوسره که مال وګټي اوداولادله پاره یې پریږدي، نوهېڅ ګناه نه ده. او که ددغو دریو نه په یوشرط کې ترې کمی راغی. نو دا مال به ددې سړي له پاره په قبر اوپه حشرکې عذاب جوړشي، دمال په باره کې چې دقران اوسنت کوم تعلیمات دي دهغه خلاصه مې ذکرکړه اوددې دشرح له پاره یودفترپکاردی.

## د اسبابو اختیارول د توکل خلاف نه دي

**سوال:** که یو څوک دبیماري له حملې نه مخکې څه احتیاطی تدبیرونه اختیارکړي ایاداسې کول خوبه دتوکل خلاف نه وي؟ اوبله دا چې په الله باندې دتوکل په صحیح مفهوم مو پوه کړئ.

**جواب:** دتوکل معنا په الله تعالی باندې باور کول دي[1] اود باور مطلب دادی چې کار جوړېدل. داسبابو څخه نه ګڼي بلکې داګڼي چې په دی اسبابوکې دالله اراده کارکوي. دالله دارادې نه پرته ټول اسباب بیکاره دي.

عقل در اسباب مے دارد نظر عشق مے گوید مسبب را نگر

اسباب پرېښودل بالکل توکل نه دی. بلکې په دې کې تفصیل دی چې کوم اسباب ناجایز وي، نوهغه دې بالکل پرېږدي اوکوم اسباب چې جایزدي دهغه درې قسمونه دي اودهریوحکم بېل دی:

١: هغه اسباب چې په هغه باندې دمسبب مرتب کیدل یقیني وي لکه ډوډۍ خوړل، ددې اسبابو اختیارول فرض دي او ددې پرېښودل حرام دي.

---

[1] التوکل : هو الاعتماد علی الله وعدم الالتفات الی ماعداه، قال السید: هو الثقة بما عند الله تعالی والیاس عما فی ایدی الناس (قواعد الفقه ص: ٢٤١)

۲: ظني اسباب لکه دبیمارله پاره ددوايي کول. ددې حکم دادی چې زموږ پشان دکمزوروله پاره ددې اسبابو پرېښودل هم جايزنه دي، خو کوم حضرات چې د ايمان او توکل په قوت کې مضبوط وي. نو دهغوی له پاره ددې ظني اسبابو پرېښودل جايزدي.

۳: وهمي او مشکوك اسباب دي چې دهغه په استعمالولو کې داشك وي چې فائده به وکړي اوکه نه،دداسې اسبابو استعمالول دټولو له پاره دتوکل خلاف دي. اګرچې په ځينې صورتونو کې جائزوي لکه دم درها.[1]

## په اسبابو باندې د يقين کونکو شرعي حکم

**سوال:** د رزق په باره کې مسئله داده چې ترڅو بنده ژوندی وي الله تعالی یې ورکوي : ځکه چې الله تعالی دا دده په تقديرکې ليکلي دي. دالله پاك دومره احسانونو سره چې کوم خلك دانسانانو په مخکې لاس په نامه ولاړوي اوويرېږي چې هسې نه چې دنوکري نه مې اوباسي، نوپوښتنه داده چې ايا داډول انسان مسلمان دی؟ چې دهغه ايمان په خدای باندې کم او په خلکو باندې زيات وي چې داخوشحاله وي. نوهرڅه به صحيح وي که نه ژوندبه مې تنګ وي.

**جواب:** دداسې خلکو په اسبابو باندې نظروي او داسبابو اختيارول دايمان منافي نه دي. خو په دې شرط چې داسبابو اختيارولو کې دالله تعالی ديو حکم خلاف ورزي ونه کړل شي. خودنارروا اسبابو اختيارول دايمان دکمال منافي دي.[2]

## د رزق د پاره د عادت په طوراسباب اختيارول

**سوال:** **ومامن دابة فى الارض الاعلى الله رزقها**، کله چې دټولو خلکو رزق دالله تعالی په ذمه دی، نوهرکال په لکونو خلك دلوږې نه ولې مري؟ اودامرګونه ټول په غريبو ملکونو کې ولې وي؟ مثلاً ايتوپيا، سوډان اودافريقې نورغريب ملکونه. برطانيه، امريکه اوفرانس ياديورپ نورومالدارو ملکونو کې خلك دلوږې نه ولې نه مري؟ قحط اسماني عذاب دی خودې کې هم غريبان دي. مالدارخلك څه نا څه طريقه اختيارکړي، ددې نه معلومه شوه چې دا ايت د معيشت اسبابو سره مشروط دی. يعنې چاچې درزق حاصلولو له پاره دهغې زمانې سره سم اسباب اختيارکړل الله تعالی به هغه ته رزق ضرور ورکوي.

---

[1] الاسباب المزيلة للضرر تنقسم الى مقطوع به .......والى مظنون .........والى موهوم .....اما المقطوع به فليس تركه من التوكل ، بل ترک حرام عند خوف الموت واما الموهوم فشرط التوكل تركه ....... واما الدرجة المتوسطة وهى المظنونة........ ففعله ليس مناقضاً للتوكل ....... (فتاوى هنديه ج:٥،ص:٣٥٥ طبع كوئته براى تفصيل ببينيد: بوادر النوادر ص: ٢٦٧، ٢٦٨)

[2] د وړاندې صفحې دريم (۳) نمبر حاشيه اوګورئ او بوادر النوادر ص: ٢٦٧ ، ٢٦٨)

**جواب:** ستاسو خیال صحیح دی، درزق له پاره اسباب اختیارول ضروري دي، تردې چې دپوره درجې توکل نصیب وي، مرغۍ اوځناور درزق اسباب اختیاروي، خو هغوی کې داسبابو اختیارولو سره سره توکل هم موجودوي.

## شریعت اسباب مهمل نه دي پریښي

**سوال:** ومامن دابة فی الارض ددې سوال په ځواب کې تاسو وفرمایل: ستاسو خیال صحیح دی، ایا بزرګانو هم دې باره کې څه فرمایلي دي؟ ځکه چې مالوستي دي چې چاد قران پاک باره کې دخپل طرف نه څه وویل، هغه... په دې وجه باندې کله چې دیو بزرګ نه ددې خیال تصدیق وشي، نو دا به بیا خپل خیال پاتې نه شي او ددې وعید ددایرې نه به ووځي.

**جواب:** صحیح خبره ده چې شریعت اسباب مهمل نه دي پریښي، اګرچې اسباب، اسباب دي، ارباب نه دي، دهرچا رزق، خود الله تعالی په ذمه دی، خو زموږ نظر د اسبابو نه مخکې نه شي تلی، په دې وجه باندې موږ ته رزق د اسبابو په ذریعه دغوښتلو حکم شوی دی او درزق له پاره داشرط ایښودل شوی دی، که نه دهغه د رضانه پرته نه اسباب، نه اسباب دي او نه رزق حاصلول د اسبابو په ذریعه باندې کیدای شي.[1]

## ایا د عالم ارواح دوعدې پښان به په آخرت کې د دنیا خبرې هم هیرې شي؟

**سوال:** زموږ امام صاحب فرمایي چې دانسان څلور ځله حالت بدلیږي:

١: په دنیاکې دراتلو نه مخکې په عالم ارواح کې دالله سره وعده.

٢: په دنیاکې اوسیدل. ٣: عالم قبر. ۴: عالم اخرت جنت یادوزخ.

مولوي صاحب موږ ته په عالم ارواح کې دخپل روح دموجودیت علم اوس وشواوکومو روحونو چې دالله سره دبنده ګۍ وعده کړې ده په هغه کې زموږ روحونه هم شامل وو، خو موږ ته داپته ونه لګیده، خواوس په دې دنیاکې موږ ته وویل شو چې تاسو دالله سره وعده کړې وه، نو څنګه چې موږ ته دعالم ارواح معلومات نه و داسې خوبه نه وي چې دسزا او جزا او دقبر او داخرت موږ ته داسې پته ونه لګیږي څنګه چې په عالم ارواح کې موږ ته څه پته نه لګېده؟

**جواب:** دعالم ارواح خبره خو تاسو نه هیره شوه، خو ددنیا په ژوند کې چې څه شوي وي دا به په اخرت کې نه هیریږي.[2]

---

[1] و ما من حیوان یدب علی الأرض إلا علی الله تعالی غذاؤه ومعاشه ...... لما وعده سبحانه وهو جل شأنه لا یخل بما وعد ....... وحمل العباد علی التوکل فیه ولا یمنع من التوکل مباشرة الأسباب مع العلم بأنه سبحانه المسبب لها (روح المعانی ج:١٢، ص:٢)

[2] یوم یتذکر الانسان ما سعی (النازعات:٣٥) ای اذا رای اعماله مدونة فی کتابه یتذکرها وکان قد نسیها (تفسیر نسفی ج:٣،ص: ٥٩٩)

## بې عمله صحیح عقیده

**سوال:** دوړوکي اخترپه ورځ باندې زمونږ ملاصاحب یوخو خبرې وکړې چې دچاعلم ته مه ګورئ، دهغه عمل ته مه ګورئ، داګورئ چې عقیده یې صحیح ده او که نه؟ که چېرې عقیده صحیح وي، نو دعمل نه پرته هم جنت ته تلی شي، نوایا دهغه داویل صحیح دي، چې عقیده صحیح کیدل پکاردي، علم باندې عمل کولو ته هیڅ ضرورت نشته؟

**جواب:** دملاصاحب داخبره خوصحیح ده چې عقیده صحیح وي اوعمل کې نقصان وي، نوکله به نجات وموميږي[1] اوکه چېرې عقیده خرابه وي اوهغې کې کفراوشرک ګډ وي، نو بښنه نه کیږي[2]. خوعلم اوعمل ته هم غیرضروري ویل پخپله باندې دعقیدې خرابي ده اودا بالکل غلط دي، ملاصاحب ته ددې نه توبه کول پکاردي.[3]

## کشف، الهام او بشارت کې فرق

**سوال:** کشف، الهام اوبشارت کې څه فرق دی؟ دحضرت محمد ﷺ نه وروسته بل چاته د کشف، الهام یابشارت کیدل ممکن دي دقران اودحدیث په رڼاکې وضاحت وکړئ!

**جواب:** د کشف معنا دیوې خبرې یایوې واقعې ښکاره کیدل دي[4]، د الهام معنا په زړه کې دیوې خبرې راتلل[5] اودبشارت معنا زیری ده[6]، لکه یوښه خوب لیدل.
دحضرت محمد ﷺ نه وروسته کشف، الهام اوبشارت ممکن دي، خو شرعًا دادلیل او حجت نه دی اونه ددې دیقیني کیدودعوه کېدای شي اونه ددې دمنلو دعوت ورکوکول

---

۱] وَأَمَّا مَنْ كَانَتْ لَهُ مَعْصِيَة كَبِيرَة وَمَاتَ مِنْ غَيْر تَوْبَة فَهُوَ فِي مَشِيئَة اللَّه تَعَالَى : فَإِنْ شَاءَ عَفَا عَنْهُ وَأَدْخَلَهُ الْجَنَّة أَوَّلًا وَجَعَلَهُ كَالْقِسْمِ الْأَوَّل ، وَإِنْ شَاءَ عَذَّبَهُ بِالْقَدْرِ الَّذِي يُرِيد سُبْحانه وتَعَالَى ، ثُمَّ يُدْخِلهُ الْجَنَّة فَلا يَخْلُد فِي النَّار من ماتَ أَحَد عَلَى التَّوْحِيد وَلَوْ عَمِلَ مِنْ الْمَعَاصِي مَا عَمِلَ (شرح نووی علی مسلم ج:۱،ص: ٤١ طبع قديمى كتبخانه)

۲] قال تعالى : انَّه مَنْ يشْرِكْ بالله فَقَدْ حَرَّمَ اللهُ عَلَيه الْجَنَّةَ وَمَأْوٰهُ النَّارُ وَمَا للظّٰلمِينَ منْ اَنْصَارٍ (المائدة :۷۲)
انَّ اللهَ لَا يغْفِرُاَنْ يشْرَكَ به وَيغْفِرُمَادُوْنَ ذٰلكَ لمَنْ يشَاءُ وَمَنْ يشْرِكْ بالله فَقَد افْتَرٰي اثْمًا عَظيمًا (النساء :۱۱٦)

۳] بَاب خَوْف الْمُؤْمِن مِنْ أَنْ يَحْبَط عَمَله وَهُوَ لَا يَشْعُر) هَذَا الْبَابَ مَعْقُود للرَّدِّ عَلَى الْمُرْجِئَة خَاصَّة...... لأَنَّهُمْ أَخَّرُوا الْأَعْمَال عَنْ الْإِيمَان..... وقالوا لا يضر مع الايمان ذنب اصلاً .... وقد ذم الله تعالى من امر بالمعروف ونهى عن المنكر وقصر فى العمل فقال : كبر مقتاً عندالله ان تقولوا مالا تفعلون فخشى ان يكون مكذبا اى مشابها للمكذبين (فتح البارى ،كتاب الايمان ج:۱، ص:۱۱۰)

٤] الكشف فى اللغة :رفع الحجاب (قواعد الفقه ص: ٤٤٣)

٥] الالهام : ما يلقى فى الروح بطريق الفيض (قواعد الفقه ص : ۱۸۹)

٦] البشارة : بالكسر، الخبر يؤثر فى البشرة تغيراً ...... الخ (قواعد الفقه ص : ۲۰۷)

کیدای شي.[١]

## کشف اوالهام شته خو هغه دليل نه دی

**سوال:** که یو سړی دا دعوه وکړي چې ماته د کشف په ذريعه الله پاك حكم كړی دی چې فلاني سړي ته ورشه او دافلانی خبره ورته وکړه، دداسې سړي په باره کې شريعت څه وايي؟
**جواب:** دنبي نه پرته هم کشف او الهام کيدای شي، خو هغه حجت نه دی او نه ددې په وجه څه حکم ثابتيدلای شي بلکې دابه دشريعت په تله باندې تلل کيږي؟ که صحيح وي، نو قبلول دي او که صحيح نه وي، نو بيا مردود دا په هغه صورت کې چې دی د سنت نبوي ﷺ تابعدار او دشريعت پابندوي که يو سړی د سنت نبوي ﷺ نه خلاف روان وي، نو د هغه د کشف او الهام دعوه شيطاني مکر دی.[٢]

## مباهله او خدايي فيصله

**سوال:** دمباهلې حقيقت څه دی؟ په دی باره کې دقران مجيد کوم کوم اياتونه نازل شوي دي؟
**جواب:** دمباهلې ذکر دسوره ال عمران (ايت نمبر ٦١) کې شوې ده چې په هغه کې دنجران د نصاراوو په باره کې فرمايل شوي دي "بياچې څوک جګړه وکړی تاسو، نوووايئ راشئ، راوغواړو موږ خپل زامن او تاسو خپل زامن (او موږ خپلې ښځې او ستاسو ښځې او خپل ځانونه او ستاسو ځانونه بيابه دعا وکړو موږ ټول او لعنت دې وکړي الله په هغه باندې څوک چې دروغژن وي" ( ترجمه شيخ الهند).
ددې ايت کريمه نه دمباهلې حقيقت واضح کيږي، چې کله يوفريق دحق واضح کيدلو باوجود هغه نه مني، نو هغه ته دې دعوت ورکړل شي چې راشئ موږ به دواړه ډلې خپلې ښځې او بچي

---

١] فالالهام ليس بحجة عند الجمهور الا عند المتصوفة بخلاف الالهام الصادر من الرسول ص فانه حجة عند الكل (رمضان آفندی ، شرح شرح عقائد ص:٦٥ ، ٦٦) ايضاً حاشية شرح عقائد ص :٢٢ حاشيه نمبر :٤، ومجال خطا در کشف بيسار است فلا اعتداد به مع كونه مخالفاً لاجماع المسلمين مكتوبات دفتر اول حصه چهارم مكتوب ٢٦٦، غايت ما فى الباب ..... چه الهام وكشف برغير حجت نيست مكتوبات دفتر اول حصه اول مكتوب :٣١ اعلم ان الالهام : هو الالقاء فى القلب من علم يدعو الى العمل به من غير استدلال بآية ولا نظر فى حجة وهو ليس بحجة ولا يجوز العمل به عند الجمهور لان ما يقع فى قلبه قد يكون من الله تعالى وقد يكون من الشيطان لقوله تعالى : وان الشيطن ليوحون الى اوليائهم وقد يكون من النفس ..... فما يكون من الله تعالى يكون حجة ، وما يكون من الشيطان او النفس لا يكون حجة فلا يكون الالهام حجة مع الاحتمال ولا يمكن التمييز بين هذه الانواع الا بعد النظر والاستدلال باصول الدين (تيسير الاصول الى علم الاصول ص: ٢٣٦، بحث فى الاحتجاج بالالهام)
٢] ايضاً_

په یومیدان کې جمع کړو اوپه منت زارۍ به الله تعالی ته دعا وکړو چې الله تعالی دې په دروغژن باندې خپل لعنت وکړي. باقي دا چې ددې مباهلې نتیجه به څه وي؟ لاندې ذکر شویو حدیثونو نه معلومیږي.

۱: مستدرك حاکم(۲، ۵۹۴) کې دي چې: دنصاراوو سید وویل چې صاحب (یعني نبي علیه السلام سره) مباهله مه کوئ په الله قسم! که تاسو مباهله وکړه، نو دواړه فریقینو نه به یو په ځمکه کې خسف شي.

۲: دحافظ ابونعیم په دلائل النبوة کې دی چې سید عاقب ته وویل په الله قسم! تاسو ته معلومه ده چې دا صاحب په حقه نبي دی اوکه چېرې تاسو ده سره مباهله وکړه. نو ستاسو بنیاد به ووځي کله هم یوقوم دیونبي سره مباهله نه ده کړې چې بیا څوک مشر دهغوی پاتې شوی یادهغوی بچي لوی شوي دي.

۳: ابن جریر، عبدبن حمید اوابونعیم په دلائل النبوة کې دحضرت قتاده رضي الله عنه په روایت سره دنبي کریم صلی الله علیه وسلم داارشاد نقل کړی دی چې" په اهل نجران باندې عذاب نازلیده اوکه هغوی مباهله کړې وی، نو دځمکې نه به دهغوی صفایي شوې وه".

۴: ابن ابی شیبه، سعیدبن منصور، عبدبن حمید، ابن جریر او حافظ ابونعیم په دلائل النبوة کې دامام شعبي رحمة الله علیه په سندسره دنبي کریم صلی الله علیه وسلم دا ارشاد نقل کړی دی چې "ماته فرشته داهل نجران دهلاکت دزیرې له پاره راغلې وه، که چېرې هغوی مباهله کړې وای، نودهغوی په ونوکې به مرغان هم نه و پاتې شوي".

۵: په صحیح بخاري، ترمذي، نسائي اوپه مصنف عبدالرزاق وغیره کې دحضرت ابن عباس رضي الله عنه ارشاد نقل شوی دی چې" که اهل نجران دنبي کریم صلی الله علیه وسلم سره مباهله کړې وای. نو په داسې حالت کې به بېرته تلل چې خپل بال بچ اومال نه به یې هیڅ موندلي نه وو". (داټول روایات په درمنثور، ج ۲ ص ۳۹ کې دي)

له حدیثونو نه څرګندیږي چې دریښتوني نبي سره مباهله کونکي په الهي عذاب کې داسې مبتلا کیږي چې دهغوی د کور، مال اولاد او هرڅه تباه کیږي اودهغوی یوفرد هم ژوندی نه پاتې کیږي.

دا خو دریښتوني نبي سره مباهلې کولو نتیجه وه اوس ددې په مقابل کې د مرزا غلام احمد قادیاني دمباهلې نتیجه هم واورئ!

۱۰ذی القعده ۱۳۱۰ھ بمطابق ۲۷مئ ۱۸۹۳ء باندې دمولانا عبدالحق غزنوي مرحوم سره یوځل دمرزاصاحب سره د عیدګاه په میدان کې مباهله وشوه. (مجموعه اشتهارات مرزا غلام احمد قادیاني ج۱ص۴۲۷، ۴۲۸) دمباهلې په نتیجه کې د مرزا صاحب دمولانا مرحوم په ژوندکې مړ شو، (مرزا صاحب په۲۶مئ ۱۹۰۸ء باندې مړشو اومولانا عبدالحق مرحوم د مرزا صاحب نه نهه کاله وروسته ژوندی و دهغه انتقال ۱۲مئ ۱۹۱۷ء کې وشو. ( ریکس قادیاني

ج۲ص۱۹۲)، مرزاصاحب دخپل وفات نه اوو میاشتې ثلېریشت ورځې مخکې(۲ اکتوبر ۱۹۰۷ء باندې) ویلي و: "مباهله کونکونه چې کوم یو دروغژن وي هغه به د رینښتوني په ژوند کې هلاکیږي" (ملفوظات مرزا غلام احمد قادیاني ج۹ص۴۴۰)
مرزا صاحب د مولانا مرحوم نه مخکې مړشو اود پورته بیان شوي قول تصدیق یې وکړ او ددوه او دوه څلورو پشان واضحه شوه چې څوک رینښتونی و او څوک دروغژن.

## د غیرمسلم په تعریف کې څوک څوک راځي

**سوال:** د۲۳فروري دجمعې په ورځ په جنګ اخبارکې دغیرمسلم له پاره دجومات دشیانو استعمالولو. په عنوان کې تاسو د دوو سوالونو په ځواب کې لیکلي و. چې دغیرمسلم دجنازې لمونځ جائزنه دی. دغیرمسلم لاش ته غسل ورکول جائزنه دي. غیرمسلم دمسلمانانوپه هدیره کې خښول جائزنه دي، داهرڅه کولوسره دکونکې اوهغه سره دشریکوخلکوایمان ختمیږي اودهغوی نکاح ماته شوه. مهرباني وکړئ داخبره ښکاره طورباندې وکړئ چې ایا دغیرمسلم تعریف کې هغه خلک هم شامل دي کوم چې د مسلمان کورکې پیداشوي وي اودځوانېدو وروسته دمرګ پورې دهری وي. یاډېروخت پورې یې داسلام پابندي کړې وي اوبیایې اسلام پرېښی وي. دواړه قسمه خلک که په ښکاره طورباندې ووایې چې هغوی مسلمانان نه دي، هغوی خنزیرخوري، شراب څښي. ایادغه خلک هم په غیرمسلموکې شامل دي؟ اوایادهغوی په جنازو کې هم دغه قباحتونه موجوددي؟ یعنې دایمان اونکاح تجدیدلازم دي؟ زموږمعاشره کې داسې ډېرخلک موجوددي، زماپه یورپ کې داوسیدوپرمهال د داسې خلکوسره ملاقات هم کیده، ماهغوی لیدلي دي اوډېر پیژنم هم. ددې سوال ځواب معاشرتي حیثیت لري.

**جواب:** اسلام دحضور ﷺ دراوړل شویو ټولوخبرودمنلونوم دی او دهغې یوې خبرې نه منل هم چې له حضور ﷺ څخه یقیني ثابته وي کفر دی،کوم کس چې دداسې ښکاره اوددین په ضرور تو نو کې دیومنکروي، یاهغه ښکاره طورباندې ووایي چې زه مسلمان نه یم، دهغه حکم د مرتد دی. که څه هم هغه دمسلمان په کورکې پیداشوی وي اونوم یې هم دمسلمانانوپه شان وي.

## د صبراو بې صبرې معیار

**سوال:** ۱: د،،بشرالصبرین الذین اذااصابتهم مصیبة،، نه څه مراددي؟ نن سبا دعالمانواو مشائخوپه وفات باندې چې کومې مرثیې لیکل کیږي، لکه داچې ،،زما په آرزو اور ولګیده.،یا،،هی افسوس ! ګردش دزمانې څه وکړل،، وغیره الفاظ صحیح دي؟ په خیرالقرون کې ددې څه مثال شته؟

**سوال:** ۲: اوبیادوفات شوي له پاره تعزیتي جلسې کول. اودځینې خو مستقل طورباندې هرکال جلسې کول. داعرس خونه دی؟ جائزدي اوکه بدعت ؟ دقران اوحدیث اوخیرالقرون نه ددې څه عملي مثال شته؟

**سوال:** ۳: بزرګان عام طورباندې دهدیرې په ځای باندې مدرسه یا خانقاه کې خښیږي اوتاریخ صفابیانوي چې په اسلافوکې پنځوس یاسل کاله وروسته دبزرګانومقبرې دشرک اوبدعت اډې جوړې شوي دي. ایا داسې کول روا دي اوکه نه؟

**سوال:** ۴: نن سبا زموږپه ملک کې ډیرزیات تقریرکونکي موجوددي، بلکې عوام هغوی عالمان ګڼي اوتقریرکونکي حضرات یاد شوي تقریرونه ته وکړي، په اوریدوکې ډیرزیات خوندکوي، دباطل رد هم پرې ډیرښه کیږي. نودداسې حضراتو جلسه کول څنګه دی؟ شرعي طورباندې پکې ثواب شته؟ دامت له پاره ښه ده؟ اوکه چېرې ځواب په نفي کې وي. نوپه غټوغټو جلسواو اداروکې عام طورباندې دوی ولې په نظرراځي؟

**جواب:** مزاج ګرامي! زما خودومره علمي استعدادنشته چې دعالمانوپه متنازعه مسئلوباندې فیصله کونکي خبره وکړم، خو تاسو زحمت کړئ دی، په دې وجه باندې به دخپل ناقص خیال مطابق ځواب درکړم، که چېرې څه خبره صحیح وي، نو"ګاه باشدکه کودک نادان.به غلط برهدف زنده تیرے. په شان به وي. که نه د "کالا ئے بد بریش خاوند،په شان به وي.

**جواب:** ۱: قران کریم اوحدیثونوکې دصبرکولو حکم اود ژړا فریاد منع کیدل خوبالکل ښکاره دي اوداهم معلومه ده چې مصیبتونو باندې غم اوخفه کیدل یوغیرارادي کار دی اوددې غم او تکلیف دښکاره کولوله پاره ځینې الفاظ هم دانسان دخولې نه وځي اوس دحل کولومسئله داده چې دصبراوبې صبرې څه معیار دی؟ دې باره کې چې دکتاب اوسنت اوداکابرینودارشاداتونه چې څه مفهوم دي هغه دادې چې دیوې حادثې دوران کې که داسې الفاظ وویل شي چې هغوکې دالله تعالی نه شکایت شوی وي (نعوذبالله) یادهغې حادثې په وجه باندې غیرشرعي کارونه وشي، مثلاً لمونځ قضاکړي، یایومنع شوی کاروکړي، مثلاً ویخته ویستل، مخ وهل وغیره داخوبې صبرې ده اوکه داسې څه خبره نه وي، نودصبرخلاف نه ده، خیرالقرون کې هم مرثیې ویل کیدې ، خودهغه معیار، هغه اصول دنن سباپه مرثیوباندې وګورئ!

**جواب:** ۲: دتعزیت مفهوم دمړي وارثانوته تسلي ورکول دي اودهغوی سره په غم کې د شرکت اظهارکولوسره دهغوی غم سپکول دي، کوم چې عام طورباندې کیږي اود,,اذکروا موتاکم بخیر، ، کې دوفات شویو خلکوپه ښوالفاظوباندې د ذکرکولوحکم دی،که تعزیتي

جلسه ددې دوه مقصدونوله پاره وي اودمرحوم په تعریف کې غیرحقیقي مبالغه نه کیږي .
نو دا جائز دي ، دهرکال جلسه کول خو ښکاره خبره ده چې فضول کاردی اودیومرحوم ددروغوتعریف کول هم غلط دي. په هرحال که تعزیتی جلسه دپورته بیان شویو دوو مقصدونو له پاره وي، نودې ته بدعت نه شي ویل کیدای.ځکه چې دا جلسې نه پخپله باندې مقصد تصور کیږي اونه داعبادت ګڼل کیږي.
**جواب:** ۳: اکابرین اومشائخ په جوماتونواومدرسو کې ځنبولو ته فقهاء کرامومکروه ویلي دي.
**جواب:** ۴: داسې وعظ کونکي اوتقریرکونکي حضرات که صحیح مضمون بیانوي. نو هغوی باندې تقریرکولو کې هیڅ خبره نشته.که عوام هغوی عالمان ګڼي.نوهغوی معذوردي.

## [تقدیر]

## تقدیر څه شی دی؟

**سوال:** زمایه ذهن کې دتقدیریا دقسمت متعلق خبره هغه وخت راغله چې کله زمونږ دنهم یا دولسم استاد په کلاس کې دا خبره وځېړله.هغه وویل چې هرانسان خپل تقدیر پخپله جوړوي. که الله پاك زمونږ تقدیر جوړولی. نوبیادجنت او دوزخ څه مقصددی؟مطلب دا دی چې مونږ کوم بدکارونه کوو که چیرې هغه الله پاك زمونږ په قسمت لیکلي وي. نو زمونږ د هغه نه بچ کیدل ناممکن دي، بیا د دوزخ او دجنت معامله ولې او څنګه ده؟
زما په خیال کې خو انسان خپل تقدیر پخپله جوړوي ماخپل یو نژدی دوست سره په دی اړه خبرې وکړې، نو هغه وویل چې "الله پاك ځینې اهمې فیصلې دانسان په تقدیرکې لیکلي دي، باقي ورې ورې فیصلې انسان پخپله کوي. د اهمو فیصلو نه مراد دا دی چې انسان لوی شي،نوڅه به کوي، کوم کوم ځای به اوبه څښي اوداسې نور...خو انسان دخپل صلاحیت او قوت په بنیاد باندې دا فیصلې بدلولی هم شي.
تاسو دڅه حدیثونو وغیره حوالې ورکړې دي اودهغه څه وضاحت مونه دی کړئ. یواځې دا ویل چې"دقسمت په باره کې خبره مه کوئ" زما په نظر کې خوبه هیڅوک هم په دې خبره مطمئن نشي. نبي کریم ﷺ چې هرکله دا خبره کړې ده. نوهغوی دا هم فرمایلي دي چې "مخکني قومونه هم په دی وجه تباه شو . چې هغوی دتقدیر په مسئله کې نیښتي وواوس که تاسو ددې خبرې وضاحت وکړئ.شاید چې زمونږ زړونو ته تسلي وشي.
**جواب:** ګرانه روره السلام علیکم!
د اسلام عقیده دا ده چې د کائناتو هروړوکی ،غټ ، ښه او خراب شیان یواځې دالله پاك په

اراده، قدرت، مشیت او علم سره په وجود کې راغلي دي[۱]. بس زه په دومره خبره پوهېږم چې په تقدیر باندې ایمان راوړلو نه پرته ایمان نه صحیح کیږي[۲]. ددې نه وړاندې نور زه معذور یم.

تقدیر دالله پاك صفت دی[۳]. دا د انساني عقل په تله باندې تلل داسې دي لکه یو عقلمن د سرو زرو په تله باندې د همالیه غر تلي، عمرونه به تیرشي خو دا مقصد به یې پوره نشي. موږ نه دکولو کار کول پکار دي. دتقدیرمسئله نه چاحل کړې اونه به یې حل کړي. بس داسې ایمان ساتئ چې دهرشي پیدا کونکی الله دی او هرشی دهغه په تخلیق سره په وجود کې راغلی دی. انسان ته الله تعالی اختیار او اراده ورکړې ده، مګر دا اختیار مطلق نه دی[۴]. دحضر علي رضی الله عنه نه چا پوښتنه وکړه چې انسان مختاردی که مجبور؟، نو هغه وویل: یوه پښه پورته کړه هغه پورته کړه. حضرت علي صاحب ورته وویل دویمه هم پورته کړه! هغه وویل: چې ترڅوچې دا لومړی پښه په ځمکه باندې کېښږدم، نودویمه پښه نشم پورته کولی. نو حضرت علی رضی الله عنه وفرمایل: بس انسان دومره مختار دی او دومره مجبور[۵]، په هرحال زه په دې مسئله کې د زیات قیل وقال نه معذور یم اودا د ایمان د بربادي ذریعه ګڼم.

## آیا د تقدیر تعلق یواځې څلورشیانو سره دی؟

**سوال:** زه دډېروخت نه امریکه کې اوسیږم، اکثردعیسایانو، یا نورو غیرمسلموسره د مذهب باره کې خبره کیږي، اسلام کې چې دکوموشیانومنل ضروري دي، هغو کې تقدیر باندې ایمان راوړل هم ضروري دي، خوعجیبه خبره داده چې موږته داپته هم نشته چې تقدیر څه شی دی؟ زه دې خبرې باندې هم ایمان لرم چې تقدیر باندې پوره طورباندې نه پوهیدل زموږله پاره بهتردي، خویوڅوغټې غټې خبرې معلومیدل پکاردي. موږته خودومره پته ده چې یوتقدیرمعلق وي، اوبل تقدیرمبرم ، اوس که چېرې یوکس زماپه لاس باندې مسلمانیدل غواړي اوزه هغه ته ووایم چې تقدیرباندې ایمان راوړل ضروري دي، نوهغه به

---

۱] ولا يكون فى الدنيا ولا فى الآخرة شئ اى : موجود حادث فى الاحوال جميعها الا بمشيته اى مقروناً بارادته وعلمه وقضائه اى : حكمه وامره وقدره اى : بتقديره .....الخ(شرح فقه اكبر ص: ۴۹)

۲] عَنْ عَلِىٍّ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صلى الله عليه وسلم « لاَ يُؤْمِنُ عَبْدٌ حَتَّى يُؤْمِنَ بِأَرْبَعٍ .......وَيُؤْمِنُ بِالْقَدَرِ(مشكوة باب الايمان بالقدر ص:۲۲ طبع قديمى كتب خانه)

۳] والقدرة وهى صفة ازلية تؤثر فى المقدورات عند تعلقها بها (شرح عقائد ص:۱۱۳ طبع ايچ ايم سعيد)

۴] ومجمل الامر ان القدر : وهو ما يقع من العبد المقدر فى الازل من خيره وشره ...... كائن عنه سبحانه وتعالى بخلقه وارادته ما شاء كان ومالا فلا (شرح فقه اكبر ص:۴۹)

۵] علم الكلام ص:۸۰، از حضرت مولنا محمد ادريس كاندهلوى رحمة الله عليه ، طبع مكتبه عثمانيه بيت الحمد لاهور_

ضروردا پوښتنه کوي چې تقدیرڅه شی دی؟ اودې کې کوم کوم شیان شامل دي؟ زما په خیال باندې یوڅو اهمې خبرې ضرور معلوممول پکاردي. ماچې کوم لږ شان تحقیق وکړ. نوماته پته ولګېده چې کم نه کم داشیان زموږ په تقدیرکې دلومړي ورځې نه لیکل شوي دي. هغو کې پیدائش یعنې دمور دخیټې نه پیداکیدل. مرګ. دکوم کس چې کله،کوم ځای اوڅه ډول مرګ لیکل شوی وي. دهغه یووخت مقررشوی دی. رزق. دکوم باره کې چې قران کریم کې دي چې الله تعالی په رزق زیاتوي اوکموي. چاته ډیرورکوي اوچاته کم. که انسان خپل کوشش وکړي اوکه نه ، رزق یوخاص مقدارکې مقرردی. دسفردوران کې هم موږته رزق پیداکیږي. داسې ښکاري چې سفرهم زموږدمقدربرخه ده. خوځینې شیانوکې شک دی. لکه واده.دانسان خوشحالي اوخفګان. شهرت. بیماري. غرض داچې نورهم ډیرشیان دي. چې دهغې باره کې ماتحقیق ونه کړ اونه یې کول غواړم. خوعالمانونه مې غوښتنه ده چې یوڅو اهمې خبرې بیان کړي. چې دادتقدیربرخه ده. ایاتاسوبه زمامددوکړئ؟ ډیره مهرباني به مووي، خاص طور باندې ماته داووایئ چې واده دتقدیر برخه ده؟ یعنې دمخکې نه لیکل شوي وي چې دفلانکي هلک واده به دفلانکۍ انجلۍ سره کیږي. یاڅه داسې خبره ده چې کوشش کولوسره دهرچاسره کیدای شي. ماداسې یوحدیث لوستلی دی چې یو صحابی رضی الله عنه دیوې کونډې سره واده وکړ. نوزموږ نبي جناب حضرت محمد صلی الله علیه وسلم ورته وفرمایل چې تادپېغلې انجلۍ سره واده ولې نه کاوچې هغې تاسره لوبې کولې اوتاهغې سره، ددې حدیث نه داسې معلومیږي چې دایوه داسې معامله ده که چیرې انسان کوشش وکړي. نوهرچاسره کولې شي، خوکیدای شي چې نوراحادیث هم موجودوي. تاسوزمادسوال ځواب راکړئ. مهرباني به مووي.

**جواب:** دتقدیرتعلق یوازې دې څلورو شیانوسره نه دې کوم چې تاسو بیان کړي دي. بلکې دمخلوق هرورکی،غټ ،ښه اوبدشی دتقدیر تابع دي[1]. انسان ته داپته نه وي چې دفلانکي شی باره کې زماڅه قسمت دی؟ په دې وجه باندې هغه ته حکم ورکړل شوی دی چې هغه دخپلې ارادې اواختیار، دخپل عمل اوپوهې مطابق دښه نه ښه حاصلولوله پاره کوشش وکړي، مثلاً: رزق مقدر دی اودقسمت نه زیاتي چاته یوه دانه هم نه ورکول کیږي، خوچاته داپته نه وي چې دهغه په رزق کې څومره برخه ده؟ په دې وجه باندې هغه دررزق حاصلولوله پاره زیات نه زیات کوشش اومحنت کوي، خوهغه ته ورکول کیږي یوازې هغه څومره چې

---

[1] ولا یکون فی الدنیا ولا فی الآخرة شئ ای : موجود حادث فی الاحوال جمیعها الا بمشیته ای مقروناً بارادته وعلمه وقضائه ای : حکمه وامره وقدره ای : بتقدیره..الخ(شرح فقه اکبرص: ۴۹) ایضاً الایمان بالقدر فرض لازم، وهو ان یعتقد ان الله تعالی خالق اعما العباد خیرها وشرها، وکتبها فی اللوح المحفوظ قبل ان خلقهم والکل بقضائه وقدره وارادته ومشیته..الخ(مرقاة شرح مشکوة ج۱ص۱۲۲باب الایمان بالقدر طبع بمبی)

دهغه په قسمت کې لیکل شوي وي. هم داصورت داواده هم دې. مورپلار دخپلو بچو له پاره دښې نه ښه رشته کول غواړي اودخپل علم اواختیارمطابق دښې نه دښې رشتې پلټنه هم کوي، خو کیږي هغه څه چې قسمت کې وي، حضور ﷺ چې حضرت جابر رضی اللہ عنہ ته څه فرمایلي و، چې: تاپېغلې انجلۍ سره واده ولې ونه کړ؟ ددې مطلب هم دادی چې تاته دپېغلې انجلۍ رشته کتل پکارو.[1]

**سوال:** زه پخپله باندې ډېرخوش قسمته یم. خوماډېرداسې بدنصیبه لیدلي دي. چې هغوی دپیدائش نه تراخره پورې بدنصیبه وي، قران کریم کې دي چې الله تعالی یوبنده ته دهغه دبرداشت نه زیات تکلیف نه ورکوي. خوماځینې داسې خلک لیدلي دي چې هغوی په تکلیفونو اومصیبتونوکې داسې مبتلاشي چې ځان وژنه وکړي. اخرداسې ولې وي؟ کله چې قران کریم کې موجوددي چې د چا دبرداشت نه زیات تکلیف چاته نه ورکول کیږي. نوخلک خودکشي ولې کوي؟ ولې لېونی کیږي؟ اوکه ځینې ژوندي هم وي، نوپه بدترین حالت کې به وي.

ددې سوال ځواب دقران کریم اوحدیثونوپه رڼاکې راکړئ ځکه چې دانسان دعقل په ځواب باندې تسلي نه کیږي، دنیاکې یو نه یو ارسطو موجوددی اوهریودخپل عقل مطابق ځواب ورکوي اودټولوځوابونه دبل نه مختلف وي. د قرآن کریم اوحدیثونونه ځواب راکړئ. امیدلرم چې ځواب به ضرورراکوئ، ستاسوبه ډېره مهرباني وي.

**جواب:** دقران کریم دکوم ایت حواله چې تاسوورکړې ده، دهغه تعلق خوشرعي حکمونوسره دی، اومطلب یې دادی چې الله تعالی خپل بندګان دداسې حکمونوپابندنه جوړوي کوم چې دهغوی دهمت او طاقت نه بهروي اودکوم حدپورې چې دتکلیفونواومصیبتونوتعلق دی. اګرچې دا ایت مبارک دهغو باره کې نه دی، خوداخبره هم په خپل ځای باندې صحیح ده چې الله تعالی چاباندې دومره مصیبت نه اچوي. چې دهغه دبرداشت نه بهروي، لکه چې یوبل ځای کې یې ارشادفرمایلی دی: "انسان فطرتي طورباندې کمزوری دی،، هغه ته که معمولي شان تکلیف ورسیږي، نوهغه چغې وهل شروع کړي اوچغې یې اسمان ته رسیږي، بزدله خلک دمصیبتونوپه وجه خودکشي کوي، دهغه وجه دانه وي چې مصیبت دهغوی دبرداشت دحدنه بهروي، بلکې هغوی دخپلې بزدلۍ په وجه باندې هغه دبرداشت قابل ونه ګڼي اوهمت له لاسه ورکړي، که چېرې هغه دلږشان صبر او همت نه کاروا خلي، نودغه تکلیف برداشت کولی شي، غرض داچې انسان باندې داسې مصیبت کله هم نه نازلیږي،

---

[1] عَنْ جَابِرٍ.....قَالَ أَبِكْرًا أَمْ ثَيِّبًا؟ قَالَ قُلْتُ بَلْ ثَيِّبًا، قَالَ فَهَلَّا بِكْرً .....الخ(مشکوة ص: ۲۷۶، کتاب النکاح ، طبع قدیمی)

کوم چې هغه نه شي برداشت کولی، خواکثردانسان دناپوهي په وجه باندې خپل همت اوقوت نه کار وانه خلي، یوشی دانسان دبرداشت نه بهرکیدل بېله خبره ده اودیوشی دبرداشت کولوهمت اوقوت نه استعمالولو بېله خبره ده اودې دواړوکې دځمکې اواسمان فرق دی، یو دیوشی دانسان دطاقت نه بهرکیدل اویودانسان یوشی دخپل طاقت نه بهرګڼل دي، که چېرې تاسودې دواړوپه فرق باندې پوه شئ نوستاسومشکل به ختم شي

## د تقدیر د مسئلې مزید وضاحت

**سوال:** تاسودجنګ اخبارپه کالم کې دیوې مېرمنې دسوال په ځواب کې.تقدیرالهی څه دی؟ ځواب لیکلی و،ستاسوځواب مې په ذهن کې بیاشک راپیداکړ.تاسولیکلي دي چې هرشی دتقدیر الهي پابنددی اودانسان دژوندپه باره کې ټولې خبرې له مخکې نه لیکل شوي دي دمخلوق هرشی دالله تعالی تابع دی. داباالکل ښکاره خبره ده. په ذهن کې مسئله هغه وخت پیداکیږي کله چې تاسوداولیکل چې دانسان دژوندټول معاملات له مخکې نه متعین اومقرر شوي دي، مثلاً رزق،واده وغیره معاملات

بیادانسان په ژوندکې دعمل له پاره څه پاتې کیږي؟ داضرورده چې دانسان له پاره چې الله تعالی څه معاملات دمخکې نه مقرروي، مثلاً دژوند،مرګ او واده په شان معاملات (حقیقت خو دادی چې هیڅ دتعجب خبره نه ده چې الله تعالی درحمت دجوش په حالت کې دغو مقدرومعاملاتوکې تغیر وکړي) خو که په ټولو معاملاتوکې دغه صورت حال وي، نوانسان کمزوری کوشش هم دڅه له پاره وکړي؟

تاسودژونددټولو معاملاتوله پاره چې کوم ځواب لیکلی دی له هغه نه دامعلومیږي چې دانسان ټول کوششونه بې فائدې دي، ددې ټولوکوششونوهماغه نتیجه راوځي،کومه چې دهغه دکوشش نه مخکې لیکل شوې وه، بیاهغه دڅه له پاره کوشش وکړي؟ سره له دې چې هغه ته معلومه ده چې دهغه دهرکوشش نیتجه محض دصفرپه شکل کې راوځي،نه مولاناصاحب!

زه ستاسوتوجه دې ایت ته هم راګرځول غواړم چې ترجمه یې داده:

هرکس ته به دومره ورکول کیږي څومره چې هغه کوشش کوي.

اوس محترم یوسف صاحب! دادلیل مه راته وایئ چې دانسان دکوششونوفیصله هم له مخکې نه شوې ده، یعنې داچې هغه به څومره کوشش کوي. دادلیل به بحث برایې بحث وي،ځکه چې ددې به هم هغه مطلب شي چې دهرې خبرې فیصله دمخکې نه شوې ده. سره له دې نه چې دپورتنې ایت مطلب هیڅ کله هم دا نه شي کېدای.

ویره ده چې په لکونوکسان داکالم لولي اوستاسوکالم سره به یې دژوندټولې هیلې ختمې شوې وي اوپه فکرکې به راګیرشوي وي.

## د دعا فلسفه

**سوال:** ١: ستاسو په ځواب کې چې په مذهب اسلام کې د دعاچې کومه فلسفه اوتصوردی ، چې د اسلام د بنیادي عقائدو څخه دي نفې کیږي، کله چې تاسو وایئ چې الله تعالی د انسان دژوندټول معاملات مخکې فیصله کړي اومقررکړي دي ،که انسان هرڅه وکړي هغه څه به کیږي کوم چې دهغه په تقدیرکې لیکل شوي دي اوس دالله تعالی یوبنده دخپل یومشکل اومصیبت له پاره الله تعالی ته سوال اودعاکوي. نوستاسودځواب نه معلومیږي چې ګویاهغه دیوال سره سروهي، بیاددعاله پاره څه معنا پاتې کیږي؟اوبیاددې څه مطلب دی؟ ..الله تعالی دعااوریدونکی دی...

اودالله تعالی داد شفقت نه ډک الفاظ چې:دالله تعالی درحمت نه مایوسه کیږئ مه...څه معنا لري؟

٢:داهم یادساتئ چې (Rigidity) اورحمت یوځای کیدای نه شي اوتاسوچې په خپل ځواب کې چې څه فرمایلي دي دهغه مطابق، خوانسان ته دالله درحمت دامید په خلاف مایوسه کیدل پکاردي، ځکه چې ستاسو د وینا مطابق دالله تعالی په نزد دانسان دعاګانې ،دهغه سوالونه اود هغه دژوندټول کوششونه هیڅ معنا نه لري.

٣:خبره چې ستاسودځواب تردیدکوي هغه داقوام عالم تاریخ دی، نن امریکه اوټوله اوروپا د ترقي په لاره روان دي،کم نه کم دمادي ترقي په لحاظ سره(هسې اخلاقي لحاظ سره هم هغوی دمسلمانانونه ډیربنه دي) اودهغوی دترقي یواځې اویواځې دهغوی دمحنتونو او مسلسلو کوششونو نتیجه ده اوس که تاسووایئ چې الله تعالی دهغوی په تقدیرکې د مخکې نه داسې لیکلي وو، نوبیا خو به تاسو داټولې خبرې منئ:

١:الله تعالی ددې قومونوتقدیر چې موږ ورته کافراوګمراه قوم وایو،کامیابي اوارامتیا لیکلې ده اوداچې دهغوی دکوششونو اجرورکوي.

٢:هغه دخپلو منونکواونوم اخستونکوقومونوپه تقدیرکې ناکامي اوذلت لیکلی دی او د هغوی دکوششونومحض ضائع کیدل یې لیکلي دي اواوس چې په ټوله دنیاکې مسلمان ذلیل اوخواردي اودچینجوپه شان مړه کیږي، نوپه دې ټولواموروکې هغوی بالکل بې قصوره اوبری الذمه دي، ځکه چې داڅه کیږي هغه خومحض دتقدیرلیک دی، محترم یوسف صاحب!داقوم دمخکې نه دخپلې نااهلۍ او (corruption) انتهاء ته رسیدلی دی اواوس ورته داسې بې علمي (Tranqulizer) مهٔ ورکوئ. دوی دمخکې نه دبې غمي په خوب ویده پراته دي، دوی ته ووایئ چې:

ستاره کیا تیری تقدیر کی خبر دے گا — وہ خودفراخی افلاک میں ھے خاک زبوں
عطاهو، رومی هو، رازی که غزالی هو — کچھ هاته نهیں آتا هے بے آه سحرگاهی!

**جواب:** ستاسو د دربو وارو سوالونو ځواب زما په تحريرکې موجود و. خو تاسو جناب غور ونه کړ، په هرحال ستاسوله پاره څه امورپه دويم ځل ليکم:

۱: دتقديرمسئله په قران پاک[۱] او احاديث شريف کې ذکرده[۲] او دا دحضور ﷺ اوصحابه کرامورضوان الله اجمعين اوټولو اهل حق متفق عليه عقيده ده[۳]، ددې وجې ددې نه انکارکول يادې پورې ټوکې کول دځپل دين اوايمان پورې ټوکې کول دي.

۲: داسمان اوځمکې دجوړولونه مخکې الله تعالى ته داينده کيدونکيوټولو واقعاتوعلم و، داعلم الله تعالى په لوح محفوظ باندې وليکه. په دنياکې چې څه کيږي دالله تعالى دعلم اوليک مطابق کيږي. ددې خلاف نه شي کيداى. ووايئ چې ددې عقيدې دکومې حصې سره ستاسواختلاف دى؟ ايا ستاسوايمان نه دى چې هرشى کوم چې په وجودکې راتلونکى دى الله تعالى ته دازل نه ددې علم و؟ اوکه تاسوددې نه انکارکوئ. نوددې مطلب دادى چې تاسوخداى بې علمه يابې علمه خداى منئ؟ اودا کفردى، که تاسووايئ چې الله تعالى ته پته وه خوضروري نه ده چې څنګه هغه ته علم وهمغه شان دې شيان هم په وقوع کې راشي. نوددې به دامعنا وي چې دالله تعالى علم غلط شو. دمثال په توګه زمادپيداکيدونه واخله ترمرګ پورې حالات، افعال، حرکات، سکنات، وغيره، ټول الله تعالى ته معلوم و که نه؟که معلوم نه وو(نعوذبالله) بې علمه کيدل لازميږي اوکه ورته معلوم وو. نوايادعلم الهي خلاف کيدلى شي او که نه؟که تاسووو وايئ چې ددې خلاف کيدلى شي. نودالله تعالى دعلم غلط کيدل لازم راغلل(نعوذبالله)اوکه خلاف کيدلى نه شي. نوهم دغه دتقديرعقيده ده. معلومه شوه هرهغه کس څوک چې په الله تعالى باندې ايمان لري دهغه دتقديرباندې ايمان راوړل لازمي دي، که نه دهغه دايمان دعوه باطله ده.

---

۱] قال تعالى : انا كل شيء خلقناه بقدر (القمر :۴۹)

۲] عَنْ عَلِيٍّ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صلى الله عليه وسلم «لاَ يُؤْمِنُ عَبْدٌ حَتَّى يُؤْمِنَ بِأَرْبَعٍ يَشْهَدُ ...وَيُؤْمِنُ بِالْقَدَرِ (مشكوة باب الايمان بالقدر ص:۲۲ طبع قديمى كتب خانه ترمذى ج۲ ص۳۶ ابواب القدر، طبع سعيد)

۳] واعلم أن مذهب أهل الحق اثبات القدر ومعناه أن الله تبارك وتعالى قدر الاشياء فى القدم وعلم سبحانه أنها ستقع فى أوقات معلومة عنده سبحانه وتعالى وعلى صفات مخصوصة فهي تقع على حسب ما قدرها سبحانه وتعالى (شرح مسلم للنووى ج:۱،ص: ۲۷ كتاب الايمان) قلت : وقد تظاهرت الادلة القطعية من الكتاب والسنة واجماع الصحابة على اثبات التقدير ....الخ (تحريرات الحديث مولنا حسين على ص:۴۹۲، طبع جامعه عربيه احسن العلوم) ايضاً : عن عبدالله بن عمرو بن العاص قال : قال رسول الله صلى الله عليه و سلم : كتب الله مقادير الخلائق قبل أن يخلق السماوات والأرض بخمسين ألف سنة ومعنى كتاب الله اجرى الله القلم على اللوح المحفوظ بايجاد ما بينهما من التعلق واثبت فيه مقادير الخلق ماكان وما هو كائن الى الابد على وفق ما تعلقت به ارادته اولاً (مرقاة شرح مشكوة ج:۱،ص: ۱۲۲ باب الايمان بالقدر)

۳: تاسو دا اوليدل چې: هرکس ته هغه څه ورکول کيږي د کوم څه چې کوشش وکړي. خو تاسو دا ولې ونه ليدل چې د کوم قران تاسو حواله ورکوئ، نو په هغه قران کې دا هم ليکل شوي دي چې: إِنَّا كُلَّ شَيْءٍ خَلَقْنَاهُ بِقَدَرٍ ○ وَكُلُّ صَغِيرٍ وَكَبِيرٍ مُسْتَطَرٌ (القمر: ۴۹ او ۵۳)

ترجمه: مونږ هر يو شی په يوې خاصې اندازې سره پيدا کړې دی.... او هر وړوکی او لوی شی موليکلی دی.

هم د غه قدر کوم چې قران ذکر کوي، تقدير، بلل کيږي او د هر شی د مخکې نه د ليکلو اعلان قران کوي او س وواييء چې دا د تقدير مسئله زما له لوري جوړه کړل شوې ده که قران کريم بيان کړې ده؟

۴: پاتې شو د انسان د مجبور کيدو سوال! د دې ځواب ما مخکې ذکر کړی دی، چې په تقدير کې دا ليکل شوي دي چې بنده به فلانی کار په خپلې ارادې او اختيار سره کوي او د جزا او سزا مستحق به ګرځي، د تقدير سره د انسان د اختيار او ارادې نفی نه کيږي او د انسان اختيار د تقدير مقابل نه دی، بلکې د تقدير ماتحت دی[1]، خو که دا خبره ستا په پوهه کې نه راځي، نو زه تاسو نه پوښتنه کوم چې د تقدير په منلو سره ستاسو د وينا مطابق مجبور کيدل لازميږي او د تقدير نه د نفې په صورت کې د هغه قادر مطلق کيدل او خالق کيدل لازم راځي، ستاسو په خيال د انسان قادر مطلق کېدل او د خپل تقدير په خپله خالق کيدل منل ايا هغه د خدايي په منصب باندې کينول نه دي؟

۵: ستاسو دا ګڼل چې که تقدير په حقه شي، نو د انسان کوشش بې نتيجې کيږي، دا خبره ځکه غلطه ده چې انسان ته د ارادې او اختيار ورکولو سره د محنت او کوشش حکم ورکړل شوی دی او تقدير (علم الهي) کې دا ويل شوي چې فلانې کس به دومره کوشش کوي او د هغه به دا نتيجه راوځي، کله چې محنت او کوشش هم په تقدير کې ليکل شوی دی او د هغه نتيجه هم، نو کوشش او محنت ولې بې نتيجې شو؟ او نګاه مرد مومن سے بدل جاتی هين تقديرين،، خو زما د عقيدې تفسير، په تقدير کې ليکل شوی دی چې د فلانی مرد مومن نظر سره به فلانی کار وشي، دا بدل شوی تقدير هم د اصل تقدير لاندې دی. له دې نه خارج نه دی.

۶: ته د تقدير په مسئله پوه نه شوې. له هم دې وجې دې دعا د تقدير خلاف وګڼله، سره له دې چې دعا هم د اسبابو نه يو سبب دی او په تقدير کې ټول اسباب ليکل شوي دي، چې فلانی بنده به الله تعالی نه سوال کوي، د الله تعالی په وړاندې به ژاړي او د هغه فلانی کار به کيږي.[2]

---

۱] وللعباد افعال اختيارية، يثابون بها ان كانت طاعة، ويعاقبون عليها ان كانت معصية، لا كما زعمت الجبرية....الخ (شرح عقائد ص: ۸۱ طبع خير كثير)

۲] واعلم: ان القدر لا يزاحم سببية الاسباب لمسبباتها، لانه انما يتعلق بالسلسلة المترتبة جملة مرة واحدة، وهو قوله صلى الله عليه وسلم في الرقى والدواء والتقاة هل ترد شيئاً من قدر الله ؟[بقيه حاشيه په راروانه صفحه.

۷: له دې نه داهم معلومه شوه چې د تقدیر مسئله د اسبابو اختیارول نه منع کوي او نه مایوسي پیدا کوي، بلکې د دې برخلاف دلا زیات محنت دعوت ورکوي او د مایوسو کسانو له پاره له ټولونه لویه اسره او سبب دی، هم دغه وجه ده چې کوم کسان د تقدیر د عقیدې نه ناخبره دي هغوی په اکثرو ځنونوکې د حالاتونه چې تنګ شي. نود خودکشي په شان بې وقوفي وکړي، خو یو رښتونی او پوخ مومن چې په الله تعالی باندې پوره ایمان او باور لري هېڅکله به دې دهغه د خودکشي خبر نه وي اوریدلی، د تقدیر په عقیده باندې ایمان لرونکي چې څومره دعاګانې او سوالونه الله تعالی ته کوي نورخلک یې هغومره نه کوي او د تقدیر په عقیده باندې ایمان لرونکي چې څومره کوش او محنت کوي نوریې نه کوي، په خپله زمامثال ستاسو په وړاندې دی، د الله تعالی شکر دی چې د کمزورۍ سره سره د دریو کسانو براب رکار کوم، له دې وجې نه ستاسو دا نظریه غلطه ده.

۸: ته د مغربي قومونو په مقابله کې د زیاتې کمترۍ ښکارېږې، د هغوی د مادي ترقي نه مرعوب کیدوسره تا هغوی ته د مسلمانانو په مقابله کې د اخلاقي تفوق سند هم ورکړ. زه نه پوهیږم چې هغوی ته کومه اخلاقي برتري حاصله ده؟ ایا په هغه ملکونو کې زنا او شراب څښل د اسلامي ملکونو په نسبت کم دي، تاسو ته به یادوی چې په نیویارک کې د څو ګنټوله پاره بجلي تللې وه، نو هلته دغلا، ډاکو او بدمعاشي څنګه بازار ګرم شوی و؟ ایا دغه د هغوی اخلاقي برتري ده؟ دچاچې تاسو صفتونه کوئ او بیا تاسو د هغوی مقابله د ننن مسلمانانو سره کوئ، دچاپه لیدوسره چې به یهودیان هم وشرمیږي ایا د دې مسلمانانو بدعملي د تقدیر د عقیدې له وجې نه ده؟ بلکې د تقدیر او نورصحیحو عقیدو د نه لرلو له وجې ده او د مغربي قومونو مادي ترقي خو اول زما په نظرکې د دې لائق نه ده چې د هغې طرف ته دې وکتل شي، دې قومونوته چې کومه مادي ترقي حاصله ده ایا زمونږ خوږ پیغمبر ﷺ او د حضور ﷺ نه مخکې نبیانوته هم حاصله وه؟ او د موسی علیه السلام په واقعه باندې لږ شان غور وکړئ. چې مادیات د فرعون سره ډیر ود که د موسی رحمة الله سره؟ د حضرت ابراهیم علیه السلام په مقابله کې نمرود ته وګورئ، کوم مادي شان او شوکت چې نمرود ته سره و ایا هغه ابراهیم علیه السلام ته هم حاصل و؟ زمونږ پیغمبر ﷺ او د هغوی هم عصر قیصر او کسری ته وګورئ ایا حضور ﷺ ته هم هغه مادي شان حاصل و، کوم چې قیصر او کسری ته حاصل و؟ که ستاسو دونیا سره سم غربیان د مسلمانانو نه د مادي ترقي په وجه بهتر دي نو لږ شان د قومونو په تاریخ باندې نظر هم واچوئ چې ایا د دنیا اسانتیاوې د انبیاوو کرامو علیهم السلام په مقابله کې ګمراه او بې ایمانه قومونو ته حاصله نه وه؟

---

...بقیه د تیر مخ].. قال : هی من قدر الله ...... الخ (حجة الله البالغة ج:۱،ص: ۶۷ باب الایمان بالقدر ،طبع ادارة الطباعة المنیریة ،دمشق)

ترکومې پورې چې دمحنت او کوشش تعلق دی پورته ماوویل چې داد تقدیر خلاف نه دی. که ستاسو دونیا سره سم کافرانو ته کامیابي او ارامي حاصله ده. نو داد هغوی دمحنت په بدله کې په تقدیرکې لیکل شوي دي او ستاسو دونیا سره سم که مسلمانان له ذلت او رسوایي سره مخ دي . نو داددوی دبد عملي په نتیجه کې لیکل شوی تقدیر دی.
۹:ستاسو دا نظر سراسر غلط دی چې دتقدیر عقیده. نااهلي،مایوسي او بې عملي پیداکوي. هر هغه مومن چې په تقدیرباندې صحیحه عقیده لري هغه به کله هم نااهله،مایوسه او بې عمله نه وي،ددې نااهلي او بې علمي سبب دخپل دین نه انحراف دی نه د تقدیر عقیده.
۱۰:په پای کې غوښتنه کوم چې دتقدیردعقېدې نه انکارکولو سره دقران کریم اوحدیث شریف له احکامونه انکار ونه کړل شي. دتقدیرعقیده حق ده،که مونږ یې ومنو اوکه انکار ترې وکړو، دتقدیر عقیده حق ده،ددې عقېدې صحیح کېدل زمونږ په منلویانه منلوباندې موقوف نه دي اوترڅوپورې چې دالله تعالی دعلم اوقدرت نفي ونه کړل شي د تقدیردعقیدې نفي ممکن نه ده،تاسوته اختیاردی چې عقیده تقدیرباندې ایمان راوړلو سره دالله تعالی علم محیط اوقدرت کامله هم ومنئ،یاعقیده تقدیرنه انکارکولو سره دالله تعالی دعلم اوقدرت له منلونه هم انکاري شئ،مشکل خودادی چې تاسوددین بنیادي عقیدې زده کړي نه دي. ددې وجې نه دې ذهن ګډوډ دی، که تاسودین زده کول غواړئ نوپه خپلونیم ګړو معلوماتو باندې ملامه تړئ بلکې ددین کتابونه په صحیح طورسره ولولئ ،زماخیال دی چې د مولانا اشرف علي تهانوي‌رحمه‌الله کتاب ،،بشهتي زیور،، تراوسه پورې ستاسوله نظره نه دی تیرشوی،تاسو دهغه مطالعه وکړئ او که بیاهم درته څه شک وي. نو دهغه دلیرې کولو له پاره حاضریم

## تقدیر حق دی او منل یې د ایمان شرط دي

**سوال:** (۱) د انسان دنیا ته له راتګ نه مخکې تقدیر لیکل کیږي،چې دا سړی به په دنیا کې دا کار کوي ،ایا په تقدیر کې لیکلي وي چې کله داسړی له دنیا نه رخصتیږي. نو د ده به دومره نیکي وي او دومره به یې بدي وي. نو بیا په عمل نامه او تقدیر کې څه فرق دی؟
(۲): که چیرې څوک په مصیبتونو او تکلیفونوکې مبتلا وي. نو خلک وایي چې دده په تقدیرکې به داسې لیکل شوي وي او که چیرې څوک په عیش او عشرت سره ژوند تیروي، نو خلک وایي چې دده تقدیر ښه دی،سره له دې چې دالله تعالی فرمان دی چې څومره چا کوشش وکړ هغو مره یې وموندل. نوتقدیر څه شی دی؟
(۳): اوپه یوځای کې مې لوستي دي چې په تقدیرکې کوم څه لیکل کیږي هغه نشي بدلیدلی،سره له دې چې امام المرسلین ﷺ فرمایلي دي: دمظلوم ښېرې نه رد کیږي دهغه د دعا له پاره داسمانونو دروزاې پرانستل کیږي او الله تعالی فرمایي چې زما دې پخپل عزت

قسم وي چيَ زه به ستا مدد كوم". نو ايا ددې مطلب هم دادی چې په دعا سره تقدير بدليږي؟
(۴): نجومي يا عامل وغيره دلاس كتلو سره ښيي چې ستا تقديرداسې دی. همدارنګه په پياده رو(فوټ پاټ) باندې ناست په نظر راځي چې دطوطي په ذريعه فال معلوموي اود عوامونه بې وقوف جوړوي.ايا دالله تعالى نه پرته بل چاته معلومه ده چې اينده به څه کيږي؟
(۵): لنډه دا چې ايا تقدير انسان باندې راڅرخي چې څنګه يې جوړوي يا له مخکې نه ليکل شوی وي؟كه چېرې له مخکې نه ليکل شوی وي، نو ايا بدليدای شي اوكه نه؟كه چېرې نشي بدليدای نو خلک دې بيکاره کيني، ځكه چې هغه څه به کيږي چې کوم په تقديركې ليکل شوي وي.

**جواب:** تقدير حق دی او منل يې د ايمان شرط دي[۱]،خو د تقدير مسئله بې حده نازكه او باريكه ده،ځکه چې تقدير د الله صفت دی او انسان د الله د صفتونو احاطه نشي كولی[۲]، بس دومره عقيده ساتل پكار دي چې په دنياكې چې څه هم کيږي الله تعالى ته دمخکې نه دهغه علم وي او الله تعالى هغه دمخکې نه په لوح محفوظ کې ليکلي و[۳]،په دنيا كې چې څه کيږي دهغه دوه قسمونه دي، ځينوكې دانسان ارادې او اختيار ته هم دخل دی او په ځينوكې نشته چې په كومو كارونو كې دانسان د ارادې او اختيار دخل دی او په هغه كې د كار كولو حكم وي، كه چېرې دا كارونه پخپله اراده او اختيار سره پرېږدي ،نوپه دې باندې به مواخذه وي[۴]او د كومو كارونوكې چې د پرېښودلو حكم دی، نودهغه پخپله اراده او اختيار سره پرېښودل ضروري دي كه هغه نه پرېږدي نو مواخذه به يې وي،لنډه دا چې څه کيږي د تقدير مطابق کيږي،خو په اختياري كارونوكې چونكې د انسان د ارادې او اختيار هم دخل دی،ځکه به په نيكو او بدو اعمالو باندې جزا او سزا ويني،زموږ له پاره له دې نه زيات په دې مسئله كې تحقيق جايز نه دی اونه يې څه فائده شته.

۱] عَنْ عَلِيٍّ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللَّه صلى الله عليه وسلم «لاَ يُؤْمِنُ عَبْدٌحَتَّى يُؤْمِنَ بِأَرْبَعٍ ....وَيُؤْمِنُ بِالْقَدَرِ (مشكوة ج۱ص:۲۲) نيز:قال الامام الاعظم: يجب اى يفرض..ان يقول آمنت بالله...والقدر(شرح فقه الاكبرص: ۱۳ تا ۱۵)

۲] والقدرة ، وهى صفة ازلية تؤثر فى المقدورات عند تعلقها بها (شرح عقائد ص:۱۱۳ طبع ايچ ايم سعيد)

۳] ولا يكون فى الدنيا ولا فى الآخرة شئ... الا بمشيته وعلمه وقدره اى بتقديره بقدر قدره وكتبه .....الخ (شرح فقه اكبر ص:۴۹)

۴] فللعباد افعال اختيارية يثابون بها ان كانت طاعة، ويعاقبون عليها ان كانت معصية...(شرح فقه اكبرص:۵۱)

## په تقدير او تدبير کې څه فرق دی؟

**سوال:** جناب تاسو ته يو وړانديز دی ،زما او زماد دوستانو په مينځ کې يوسوال مطرح شوی دی،که چېرې موږ په دی مسئله باندې پخپله بحث کوو ،نو ددې نتيجه غلطه هم راوځي.زما له تاسو نه غوښتنه ده چې دا مسئله حل کړئ او موږ ټول مطمئن کړئ!
دا حقيقت دی چې تقديرونه الله تعالی جوړ کړي دي خو چې کله يو سړی ديوکار کولو سره سره بياهم ناکام شي،نوهغه ته دا ويل کيږي چې ستاتقدير خراب دی په دې کې ستاڅه قصور دی، نوايا ددې مطلب دا نه شو چې دانسان کوششونه ضائع کيږي؟ترڅوپورې چې دهغه په تقدير کې ددې کار کېدل ليکل شوي نه وي خو چې کله يوسړی دخپل تدبير او کوشش په هيله باندې کارکوي، نو دالله پاك جوړ شوی تقدير په مينځ کې راشي.

**جواب:** حضرت ابوهريره ﷛ فرمايي چې موږ د تقدير مسئله باندې بحث کاوو چې رسول الله ﷺ تشريف راوړ،موږ يې په دې بحث کې چې وليدو نو ډېرغوسه شو تردې پورې چې مخ مبارك يې دانار په شان سور شو او ډېره په تيزه لهجه کې يې وفرمايل:
"ايا تاسو ته ددې خبرې حکم درکړل شوی دی؟ ايا زه تاسوته په دې شی سره رالېږل شوی يم؟ ستاسو نه مخکې خلک هغه وخت هلاك شول،چې کله هغوی په دی مسئله کې بحث او جدال وکړ ،زه تاسو ته قسم درکوم چې په دی کې بالکل بحث او جدال مه کوئ"[1] ،(ترمذي، مشکوة صفحه۲۲)

ام المومنين حضرت عائشه ﷞ فرمايي چې کوم سړی د تقدير په مسئله کې لږ بحث هم وکړي دقيامت په ورځ به په دې باره کې دهغه نه پوښتنه کيږي او کوم سړی چې په دی باره کې خبرې ونکړي دهغه نه به پوښتنه نه کيږي[2] .(ابن ماجه مشکوة صفحه۲۳)

نبي کريم ﷺ وفرمايل چې هيڅ يوسړی مومن نشي کيدای ترڅو پورې چې په دې څلورو خبرو باندې ايمان رانه وړي:
(۱): ددې خبرې ګواهي ورکړي چې دالله تعال نه پرته بل معبود نشته.
(۲): په مرګ او له مرګ نه وروسته ژوند باندې ايمان راوړي.
(۳): او بل په دې ايمان ولري چې زه دالله رسول يم.الله تعالی زه له حق سره رالېږلی يم.

---

۱] عَنْ أَبِى هُرَيْرَةَ قَالَ خَرَجَ عَلَيْنَا رَسُولُ اللَّهِ صلى الله عليه وسلم وَنَحْنُ نَتَنَازَعُ فِى الْقَدَرِ فَغَضِبَ حَتَّى احْمَرَّ وَجْهُهُ حَتَّى كَأَنَّمَا فُقِئَ فِى وَجْنَتَيْهِ الرُّمَّانُ فَقَالَ « أَبِهَذَا أُمِرْتُمْ أَمْ بِهَذَا أُرْسِلْتُ إِلَيْكُمْ إِنَّمَا هَلَكَ مَنْ كَانَ قَبْلَكُمْ حِينَ تَنَازَعُوا فِى هَذَا الأَمْرِ عَزَمْتُ عَلَيْكُمْ أَلاَّ تَتَنَازَعُوا فِيهِ (مشکوة ص:۲۲ باب الايمان بالقدر)
۲] عن عائشة رضى الله عنها قالت : سمعت رسول الله صلى الله عليه وسلم يقول : من تكلم فى شئ من القدر سئل منه يوم القيامة ، ومن لم يتكلم فيه لم يسئل عنه (مشکوة ص:۲۳، باب الايمان بالقدر)

(۴): او په تقدير باندې ايمان راوړي.[1] (ترمذی ابن ماجه مشکوة صفحه ۲۲):

د نبي کريم ﷺ له دې ارشاداتو لاندې شيان معلوم شو:

(۱): تقدير حق دی او په تقدير باندې ايمان راوړل فرض دي.

(۲): د تقدير مسئله نازکه ده په دی کې بحث او خبرې کول منع دي او په دې باندې د قيامت په ورځ د پوښتنې وېره ده.

(۳): تدبير د تقدير خلاف نه دی بلکې د تقدير يوه برخه ده.

## په تقدير باندې ايمان راوړل ضروري دي

**سوال:** په کومو شيانو باندې د ايمان راوړلو نه پرته چې بنده نشي مسلمانيدای په هغو کې تقدير هم شامل دی، خو موږ ته دا معلومه نه ده چې په تقدير کې څه شی دي، ځينې خلک وايي چې په تقدير کې مرګ، رزق او له چاسره چې واده کېدونکی وي شامل دي تاسو دا ووايئ چې اخر په کوم تقدير باندې زموږ ايمان دی؟ په هغه کې کوم کوم شيان شامل دی؟ او ايا دا رښتيا ده چې الله تعالی هر شی د مخکې نه مقرر کړی دی؟

**جواب:** په تقدير باندې ايمان راوړل فرض دي او د تقدير يو مطلب مخلوق دی او د کائناتو د پيدا کولو نه مخکې هر شی د الله په علم کې يوه اندازه و، هم د دې مطابق ټول شيان په وجود کې راځي، که په هغه کې د انسان د ارادې دخل وي يا نه وي. که د اسبابو په ذريعې سره په وجود کې راشي يا له ظاهري اسبابو نه پرته.[2]

کوم شيان چې الله پاك د اسبابو ماتحت ساتلي دي د هغو د جائزو اسبابو د اختيارولو حکم دی په هغو کې د ناجائزو اسبابو نه پرهيز کول فرض دي.

## تقدير جوړول

**سوال:** ايا انسان خپل ښه مستقبل پخپله جوړي. که الله تعالی د ده مستقبل جوړوي. زما نظريه داده چې انسان خپل دماغي صلاحيتونه په کار راولي او خپل قسمت پخپله جوړوي

---

[1] عَنْ عَلِيٍّ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللَّه صلى الله عليه وسلم « لاَ يُؤْمِنُ عَبْدٌ حَتَّى يُؤْمِنَ بِأَرْبَعٍ يَشْهَدُ أَنْ لاَ إِلَهَ إِلاَّ اللَّهُ وَأَنِّى رَسُولُ اللَّهِ بَعَثَنِى بِالْحَقِّ وَيُؤْمِنُ بِالْمَوْتِ وَبِالْبَعْثِ بَعْدَ الْمَوْتِ وَيُؤْمِنُ بِالْقَدَرِ(مشکوة باب الايمان بالقدر ص:۲۲)-

[2] قال فی الشرح السنة الْإِيمَان بِالْقَدَرِ فَرْض لَازِم وَهُوَ أَنْ يَعْتَقِد أَنَّ اللَّه تَعَالَى خَالِق أَعْمَال الْعِبَاد خَيْرهَا وَشَرّهَا وَكَتَبَهَا فِي اللَّوْح الْمَحْفُوظ قَبْلَ أَنْ خَلَقَهُمْ ، وَالْكُلّ بِقَضَائِهِ وَقَدَره وَإِرَادَته وَمَشِيئَته....الخ (مرقاة شرح مشکوة ج:۱،ص: ۱۲۲ باب الايمان بالقدر طبع بمبئ) کتب الله مقادير الخلائق ...... ومعنى کتاب الله اجرى الله القلم على اللوح المحفوظ بايجاد ما بينهما من التعلق واثبت فيه مقادير الخلق ماکان وما هو کائن الى الابد على وفق ما تعلقت به ارادته اولاً (مرقاة شرح مشکوة ج:۱،ص: ۱۲۲ باب الايمان بالقدر)

اوزما د يو دوست نظريه زما نه مخالفه ده دهغه وينا ده چې انسان خپل ښه مستقبل پخپله نشي جوړلی بلکې دهرسړي قسمت الله تعالی جوړوي. ايا همداسې ده؟

**جواب:** انسان ته دنيکي او بدي اختيار ضرور ورکړل شوی دی[۱]، خو هغه دخپل قسمت مالك نه دی. قسمت دالله په قبضه کې دی. په دی وجه داويل چې انسان د خپل تقديرپخپله خالق دی يا دا چې خپل تقديرپخپله جوړوي. داسلامي عقيدې نه خلاف خبره ده.[۲]

## ايا ظاهري اسباب د تقدير خلاف دي؟

**سوال:** په تقدير باندې ايمان راوړل دهرمسلمان فرض دي. يعنې په ښه او بد تقدير باندې ايمان راوړل. خو چې کله ده ته نقصان ورسيږي ياپه مصيبت کې راګيرشي. نوهغه ظاهري اسباب ددې ذمه وار ګڼي هغه ولې داسې وايي چې که چيرې داسې نه مې کړي وای نوداسې به شوي وو. دا نقصان به نه و اودامصيبت به نه راته؟ نو ايا په داسې خبرو کې ګناه شته؟ايا دداسې ويلوسره په تقديرباندې په ايمان کې څه فرق راځي؟اوايا انسان ته دتقدير په باره کې سوچ کول نه دي پکار؟

**جواب:** شرعي حکم دا دی چې څه کار کوئ ښه سوچ اوسړو دماغو سره يې وکړئ، دهغه له پاره چې څومره جائز اسباب تيارولی شئ په هغه کې کمی مه کوئ. هرکله چې دخپل همت، طاقت او د اختيارد حده پورې چې کوم څه ته کولې شې هغه دی وکړل د دې نه وروسته نتيجه الله ته حواله کړه . که چيرې الله دې نه کوي که څه د نقصان صورت پېښ شو ، نودا خيال کوه چې الله ته به هم داسې منظوره وه. کوم څه چې الله ته منظور و هغه وشواو هم په دې کې حکمت و، په داسې صورت کې دا ويل چې که داسې مې کړي وای. نو داسې به شوي و، په دې سره طبعيت خراب او پريشانه شي او څه چې کېدل هغه خووشو. هغه خوپه هيڅ صورت کې بيا نه راګرځي. نواوس کاش چې داسې مې کړي وای او داسې نه کولای له د پرخفګان اوپښېمانتياپرته نور څه دي؟ ځکه په حديث کې ددې نه منع فرمايل شوې ده اودې ته د شيطان دعمل کيلي ويل شوې ده[۳]، په حقيقت کې دا دايمان اوهمت کمزورتيااوله الله تعالی سره دصحيح تعلق دنشتوالي نښه ده.

---

۱] والله تعالى خالق لافعال العباد....... وللعباد افعال اختيارية يثابون بها ان كانت طاعة ، ويعاقبون عليها ان كانت معصية ......الخ(شرح عقائد ص:۷۵ تا ۸۱)

۲] عن ابن عمر رضى الله عنه ........ كل شئ بقدر حتى العجز والكيس (رواه مسلم ) مشكوة ص:۱۹ ،باب الايمان بالقدر)

۳] عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰه صلى الله عليه وسلم وَفِي كُلٍّ خَيْرٌ احْرِصْ عَلَى مَا يَنْفَعُكَ وَاسْتَعِنْ بِاللّٰه وَلاَ تَعْجِزْ وَإِنْ أَصَابَكَ شَيْءٌ فَلاَ تَقُلْ لَوْ أَنِّي فَعَلْتُ كَانَ كَذَا وَكَذَا. وَلَكِنْ [بقيه حاشيه په راروانه صفحه...

[بقيه حاشيه په راروانه صفحه...

## د انسان د حالاتو سبب د هغه عملونه دي

**سوال:** یو انسان چې هغه ته په هر ځای کې له خپل قسمت نه شکست وي. یعنې یو انسان چې غریب او محتاج هم وي اوغریبي وهلی وي .دعلم شوق یې وي. خو علم دده په نصیب کې نه وي .خوشحالي یې کمه وي غم یې زیات وي،مرضونه یې ډېر وي، د مور و پلار خویندو رونړو په موجودیت کې دمحبت نه محروم وي.خپل خپلوان ورسره ملاقات نه خوښوي.محنت زیات کوي او میوه یې کمه وي.داسې انسان په دې ویلو باندې مجبور وي چې یاالله ! څنګه چې زه بدنصیبه یم داسې ته بل څوک مه جوړوې.دهغه دا الفاظ دهغه په حق کې څنګه دي؟ که چېرې هغه پخپل تقدیر باندې صبر کوي اودصبرطاقت یې نه وي نو څه کول ورته پکار دي؟

**جواب:** انسان ته چې کوم ناخوښه حالات مخ ته راشي په هغه کې زیاترد انسان د اعمالود سزاپه وجه سره راځي[1]اوښکاره خبره ده په دې کې دالله نه شکایت بې ځایه دی.انسان ته دخپلوعملونو صحیح کول پکاردیاو کوم کارونه چې بې اختیاره مخې ته راشي په هغه کې د الله تعالی څه ذاتی غرض نه وي بلکې د بنده مصلحت پکې وي.ځکه په ډېر سوچ سره صبرپکار دی چې په دې کې دالله تعالی هرڅه مقصد وي ماته منظوره ده.له دې سره چې الله تعالی کوم بیشمېره نعمتونه درکړي دي هغه هم یاد ساتل پکار دیاو"الحمد لله علی کل حال" ویل پکار دي.[2]

## د انسان په ژوندکې چې څه کیږي ایا هغه ټول له مخکې نه لیکل شوي وو؟

**سوال:** د انسان په ژوندکې چې څه کیږي ایاهغه دمخکې نه لیکل شوي وي یا دانسان دعملونو په وجه ظاهریږي؟

---

...بقیه د تیر مخ]..قُلْ قَدَرُ اللّٰه وَمَا شَاءَ فَعَلَ فَإِنَّ لَوْ تَفْتَحُ عَمَلَ الشَّيْطَان (صحیح مسلم ج:۲، ص: ۳۳۸ باب الایمان بالقدر والاذعان له ، وایضاً فی ابن ماجه ص:۳۰۷) عَنْ أَبِی هُرَيْرَةَ....فان علیك امر فقل قدرالله ماشاء الله فعل، وایاك واللّو فان اللّوَ تفتح عمل الشیطان.(ابن ماجه ص:۳۰۷)

[1] وَمَا اَصَابَكُمْ مِّنْ مُّصِيبَةٍ فَبِمَا كَسَبَتْ اَيْدِيكُمْ وَيَعْفُوْا عَنْ كَثِيرٍ (الشوری ۳۰) وعن أَبِى مُوسَى أَنَّ رَسُولَ اللّٰه صلى الله عليه وسلم قَالَ « لاَ يُصِيبُ عَبْدًا نَكْبَةٌ فَمَا فَوْقَهَا أَوْ دُونَهَا إِلاَّ بِذَنْبٍ وَمَا يَعْفُو اللّٰهُ عَنْهُ أَكْثَرُ ». وَقَرَأَ ( وَمَا أَصَابَكُمْ مِنْ مُصِيبَةٍ فَبِمَا كَسَبَتْ أَيْدِيكُمْ وَيَعْفُوا عَنْ كَثِيرٍ (رواه الترمذی (مشکوة ج:۱،ص: ۱۳۶ باب عيادة المريض)

[2] عن ابن عمر : أن رسول الله صلى الله عليه و سلم كان يقول إذا أخذ مضجعه " الحمد لله الذي كفاني وآواني فأجزل، الحمد لله على كل ...الخ(مشکوة ج:۱،ص: ۲۱۲، باب الدعوات فی الاوقات،ابوداؤد ج:۲،ص: ۳۳۳ کتاب الادب ، باب ما يقال عند النوم)

**جواب:** دا د تقدير مسئله ده په دې کې زيات پلټنه او بحث جائز نه دی ، بس دومره ايمان لرل پکار دي چې په دنيا کې کوم څه اوسه پورې وشو يا کيږي يا به اينده کيږي .ددې ټولو شيانو الله تعالی ته د دنيا له پيداکيدونه مخکې علم و ، د دنيا هيڅ شی دهغه د علم او قدرت نه خارج نه دی او الله تعالی ددغه علم مطابق د کايناتو دهرشی او دهرانسان په اړه ليکي دي ،ددنيا ټول نظام ددې خدايي ليکلو مطابق چليږي.دې ته تقدير وايي اوپه دې باندې ايمان راوړل واجب دي کوم سړی چې ددې نه منکروي هغه مسلمان نه دی.[١]

دا هم ايمان دی چې الله تعالی انسان ته اراده، اختيار ، عقل او تميز ورکړی دی[٢]او دا فيصله يې کړې ده چې هغه به دخپل ښه تجويز مطابق او پخپله اراده او اختيار سره فلانی کار کوي.[٣]

دا هم ايمان دی چې دانسان د ښه يا بدعمل نتيجه به هغه ته د ثواب يادعذاب په شکل کې په اخرت کې ورکول کيږي.دا ټولې خبرې په قران او حديث کې[٤] په ډېر وضاحت سره بيان شوي دي،په دی باندې ايمان ساتل پکار دي،له دې زيات په دې مسئله کې بحث کول نه دي پکار،په دی کې د بحث کولو نه منع شوې ده اونبي کريم ﷺ په دې باندې سخت خفګان ښکاره کړی دی.[٥]

---

١] خلق الله تعالى الاشياء ....... وكان الله عالماً فى الازل بالاشياء قبل كونها .... ومن زعم ان التقدير الخير والشر من عند غيرالله كان كافراً بالله (شرح فقه اكبر ص:٤٧، ٤٨)

٢] وهداية الله تتنوع انواعاً لا يحصيها...... الاول افاضة القوى التى بها يتمكن المرء من الاهتداء الى مصالحة كالقوة العقلية والحواس الباطنة والمشاعر الظاهر .......الخ (تفسير بيضاوى ص:٩) ان العقل آلة للمعرفة .... ووجوب الايمان بالعقل مروى عن ابى حنيفة (شرح فقه اكبر ص: ١٦٨)

٣] والله تعالى خالقها اى موجد افعال العباد وفق ما اراد لقوله تعالى : الله خالق كل شئ وفعل العبد شئ (شرح فقه اكبر ص:٦٠) فللعباد افعال اختيارية...... (شرح فقه اكبر ص:٥١)

٤] وَاَنْ لَيسَ لِلْاِنْسَان اِلَّا مَا سَعٰي وَاَنَّ سَعْيه سَوْفَ يرٰي ثُمَّ يجْزٰهُ الْجَزَاءَ الْاَوْفٰي(النجم ٣٩ تا ٤١) لها ما كسبت وعليها مَااكتسبَت (البقرة :٢٨٦) تُجْزٰي كُلُّ نَفس بمَا كَسَبَتْ لَا ظُلْمَ الْيوْمَ انَّ اللهَ سَرِيعُ الْحسَاب (غافر :١٧) وَمَنْ يعْمَلْ منَ الصّٰلحٰت وَهُوَ مُومنٌ فَلَا يخٰفُ ظُلْمًا وَّلَا هَضْمًا (طه :١١٢) وَمَا أَصَابَكُمْ منْ مُصيبَة فَبمَا كَسَبَتْ أَيْديكُمْ وَيَعْفُو عَنْ كَثير (الشورى : ٣٠) عَنْ أَنَس بْن مَالك قَالَ قَالَ رَسُولُ اللَّه صلى الله عليه وسلم « إنّ اللّهَ لاَ يَظْلمُ مُؤْمنًا حَسَنَةً يُعْطَى بهَا فى الدُّنْيَا وَيُجْزَى بهَا فى الآخرَة وَأَمَّا الْكَافرُ فَيُطْعَمُ بحَسَنَات مَا عَملَ بهَا للّه فى الدُّنْيَا حَتَّى إذَا أَفْضَى إلَى الآخرَة لَمْ تَكُنْ لَهُ حَسَنَةٌ يُجْزَى بهَا رواه مسلم (مشكوة ص: ٤٣٩ كتَابَ الرقاق) عن ابى أَبى مُوسَى اشعرى أَنَّ رَسُولَ اللَّه صلى الله عليه وسلم قَالَ « لا يُصيبُ عَبْدًا نَكْبَةٌ فَمَا فَوْقَهَا أَوْ دُونَهَا إلاَّ بذَنْب وَمَا يَعْفُو اللَّهُ عَنْهُ أَكْثَرُ ». وَقَرَأَ ( وَمَا أَصَابَكُمْ منْ مُصيبَة فَبمَا كَسَبَتْ أَيْديكُمْ وَيَعْفُوا عَنْ كَثير (رواه الترمذى (مشكوة ج:١،ص: ١٣٦ باب عيادة المريض)

٥] عَنْ أَبى هُرَيْرَةَ قَالَ خَرَجَ عَلَيْنَا رَسُولُ اللَّه صلى الله عليه وسلم وَنَحْنُ [بقيه حاشيه په راروانه صفحه..

## بد کار کولو سره تقدير ذمه وارګرځول صحيح نه دي

**سوال:** يو سړی چې کله بدکار کوي دده نه که چېرې پوښتنه وکړل شي. نو وايي چې دا زما په تقدير کې ليکل شوي و. نوکله چې الله تعالی دهغه په تقديرکې داسې ليکلي و. نوبيا دهغه څه قصور دی؟

**جواب:** د بنده قصور خو ښکاره ده چې هغه بد کار پخپل اختيار سره کړی واوپه مقدر کې بې هم دا ليکل شوي و چې دی به دا بدکار په خپل اختيار سره کوي او د سزا مستحق به ګرځيږي.[۱]

تنبيه: بد کار کول او د تقدير حواله ورکول د ادب نه خلاف هم دي انسان ته په خپلې غلطې اعتراف کول پکار دي

## خير او شر ټول د خدای مخلوق دي خو شيطان د شر سبب او ذريعه ده

**سوال:** جنګ اخبارپه يو مضمون کې په عنوان" د ايمان بنيادونه" کې د صحيح مسلم په حواله سره دا حديث نقل کړی دی. چې د حضرت عمر رضي الله عنه نه ( په يو اوږد حديث کې) روايت دي چې يو سړی چې په حقيقت کې جبرائيل عليه السلام و، نبي کريم صلی الله عليه وسلم ته په انساني شکل کې راغلی و. نبي عليه السلام نه يې پوښتنه وکړه چې ايمان څه شی دی ؟ نبي عليه السلام وفرمايل چې ايمان دا دی چې ته الله پاك، دهغه فرشتې، دهغه رالېږل شوي کتابونه، دهغه رسولان او خرت حق وګڼې او دا خبره هم ومنې چې په دنياکې چې څه کيږي دا د الله له طرف نه دي، که هغه خير وي يا شر و. (صحيح مسلم).

موږ به تراوسه پورې دا اوريدل چې خير دالله د طرف نه او شر د شيطان د طرف نه دی اوس پورته ذکر شوي حديث لوستلو سره ايمان ګډوډيږي اوپته نشته چې زما پشان به څومره د کمزوري ايمان والا هم په شك کې پراته وي ځکه چې کله شر هم د الله تعالی له طرف نه دی، نو انسان بيا ولې مجرم دی؟

**جواب:** د هر شي پيدا کول د الله پاك له طرف نه دي که هغه خير وي يا شر، شيطان د شرخالق نه دی بلکې د شر ذريعه او سبب دی، که چېرې د شرنسبت شيطان طرف ته د سبب په

---

...بقيه د تېر مخ] .تَتَنَازَعُ فِى الْقَدَرِ فَغَضِبَ حَتَّى احْمَرَّ وَجْهُهُ حَتَّى كَأَنَّمَا فُقِئَ فِى وَجْنَتَيْهِ الرُّمَّانُ فَقَالَ « أَبِهَذَا أُمِرْتُمْ أَمْ بِهَذَا أُرْسِلْتُ إِلَيْكُمْ إِنَّمَا هَلَكَ مَنْ كَانَ قَبْلَكُمْ حِينَ تَنَازَعُوا فِى هَذَا الأَمْرِ عَزَمْتُ عَلَيْكُمْ أَلاَّ تَتَنَازَعُوا فِيهِ (مشكوة ص: ۲۲ باب الايمان بالقدر)

[۱] وهي اى افعال العباد كلها اى جميعها من خيرها وشرهاوان كانت مكاسبهم بمشيئته اى بارادته وعلمه وقضائه وقدره اى على وفق حكمه وطبق قدر تقديره ......الخ (شرح فقه اكبر ص: ٦٧)

حیث وکړل شي، نو غلطه نه ده .خو څنګه چې الله پاك د خیر خالق دی .دغسې که شیطان د شر خالق وګڼل شي. نو دا د مجوسیانو عقیده ده.[1] دمسلمانانو په نزد د هر شی خالق یواځې الله تعالی دی.[2]

## هر څه د الله په حکم سره کیږي

**سوال:** زما یوخپلوان په هره خبره کې ښه وي که بده" دخدای په حکم سره" د ویلو عادت لري. یعني که خوشحالي وي اوکه بدحال دی هم دغه وایي .ایا داسې ویل صحیح دي؟ .

**جواب:** ایا څه شی دالله تعالی د حکم نه پرته هم کیږي؟ نه هر شی د الله په حکم سره کیږي. خو د خیر په کارونو کې د الله تعالی رضا هم وي او په شر او بدي کې دالله رضا نه وي.[3]

## د نظر لګېدو حقیقت

**سوال:** زموږپه معاشره کې یاداسې به ووایو چې مشران دنظر لګېدو ډیرزیات قایل دي، خاص طوربانديې دوړوماشومانوباره کې ډیر وخت ویل کیږي(که چیرې هغوی ښېدې نه څنبې یایې طبیعت خراب وي) چې داماشوم له نظره شوی دی. بیایې دنظرختمولوکوشش کیږي، مهرباني وکړئ او داووایئ چې اسلامې معاشره کې ددې څه توجیه ده؟

**جواب:** نظرګېدل حق دیاوختمول یې جائزدي، په دې شرط باندې چې دنظرختمولوطریقه دشریعت خلاف نه وي.

## قاتل ته سزا ولې ورکول کیږي؟

**سوال:** یوچا زموږ نه دا سوال کړی دی چې د یوسړي په تقدیر کې دا لیکل شوي دي چې دده دلاسه به فلانی قتل کیږي، نو بیا الله تعالی ده ته سزا ولې ورکوي؟ سره له چې دده په

---

[1] القدرية مجوس هذه الامة حيث ذهبوا الى ان للعالم فاعلين ، احدهما سبحانه وتعالى ، وهو فاعل الخير ، والثاني شيطان وهو فاعل الشر (شرح فقه اكبر ص:٦١) وعنه ابن عمر قال قال رسول الله القدرية مجوس هذه الأمة أي أمة الإجابة لأن قولهم افعال العباد مخلوقة بقدرهم يشبه قول المجوس القائلين بأن للعالم الهين خالق الخير وهو يزدان وخالق الشر وهو أهرمن أي الشيطان ........الخ (مرقاة المفاتيح ج:١،ص: ١٤٩ كتاب القدر، طبع بمبئ دهلى)

[2] الله خالق كل شئ وهو على كل شئ وكيل (الزمر :٦٢) والله تعالى خالق لافعال العباد من الكفر والايمان والطاعة والعصيان لا كما زعمت المعتزلة : ان العبد خالق لافعاله....الخ (شرح عقائد ص:٧٥ طبع خير كثير)

[3] وهي اى : افعال العباد كلها اى : جميعها من خيرها وشرها وان كانت مكاسبهم بميشته اى : بارادته وعلمه .....اى : على وفق حكمه وطبق قدر تقديره فهو مريد لما يسميه شراً من كفر ومعصية كما هو مريد الخير (شرح فقه اكبر ص:٦٧)

تقدیر کې یې داسې لیکلي و،له دې نه پرته څه چاره نه وه،ځکه چې زموږ په تقدیر باندې ایمان دی چې کوم څه په تقدیر کې دي هغه به کیږي. نو الله پاك بیا سزا ولې مقرره کړې ده؟

**جواب:** په تقدیرکې دا لیکل شوي دي چې فلانی سړی به پخپله اراده او اختیار سره فلانی قتل کوي او د سزا مستحق به ګرځي. ګویا ده خپله اراده او اختیار غلط استعمال کړل ځکه د سزا مستحق شو.[1]

## خود کشي ولې حرامه ده؟

**سوال:** هرکله چې د یوسړي مرګ له خودکشي نه وي. نو خودکشي ولې حرامه ګرځول شوې ده ؟سره له دې چې هغه ته په تقدیر کې داشان مرګ لیکل شوی دی، له تاسو څخه غوښتنه ده چې زموږ رهنمايي وکړئ او تفصیل سره ځواب راکړئ الله دی تاسوته د خیربدله درکړي

**جواب:** مرګ خو یې هم دغسې لیکل شوی و[2] خو ده پخپل اختیار سره خودکشي وکړه،ځکه دده فعل حرام وګرځول شو[3] او دتقدیر عقیدې ساتلو سره دبل په اختیاري بدو افعالو باندې سړي ته غوسه ورځي،مثلاً یو سړي چاته د مور خور کنځلې وکړې، نو په دې به ضرور غوسه ورځي،سره له دې چې زموږدا عقیده ده چې د الله تعالی د حکم نه پرته یوه پاڼه هم نشي ښوریدلی.

## دښځې نیک بختي اوبد بختي له خاوند نه په وړاندې یا وروسته مرګ کې نه ده

**سوال:** د ځینې خلکو داخیال دی هغه ښځه چې هغه دخپل خاوند له وفات نه وروسته ژوندۍ وي،هغه بدبخته ده اوکومه ښځه چې دخاوند نه مخکې وفات شي هغه ډېره نیک بخته ده.ایا دا خبره صحیح ده اوکه نه؟

---

۱] والمقتول میت باجله ای : الوقت المقدر لموته .... ان وجوب العقاب والضمان علی القاتل تعبدی، لارتکابه المنهی وکسبه الفعل الذی یخلق الله تعالی عقیبه الموت بطریق جری العادة ، فان القتل فعل القاتل کسباً (شرح عقائد ص:٦٦ طبع ایچ ایم سعید کراچی)

۲] ان المقتول میت باجله ووقته المقدر بموته فقد قال الله تعالی : فَاِذَا جَاءَ اَجَلُهُمْ لَا یَسْتَاْخِرُوْنَ سَاعَةً وَّلَا یَسْتَقْدِمُوْنَ ..... ان وجود العقاب والضمان علی القاتل تعبدی لارتکابه المنهی عنه ......الخ (شرح فقه اکبر ص:۱۵۲، ۱۵۳)

۳] عَنْ اَبِی هُرَیْرَةَ رضی الله عنه عَنِ النَّبِیِّ صلی الله علیه وسلم قَالَ «مَنْ تَرَدَّی مِنْ جَبَلٍ فَقَتَلَ نَفْسَهُ ، فَهُوَ فِی نَارِ جَهَنَّمَ ، یَتَرَدَّی فِیهِ خَالِدًا مُخَلَّدًا فِیهَا اَبَدًا ، وَمَنْ تَحَسَّی سَمًّا فَقَتَلَ نَفْسَهُ ، فَسَمُّهُ فِی یَدِهِ ، یَتَحَسَّاهُ فِی نَارِ جَهَنَّمَ خَالِدًا مُخَلَّدًا فِیهَا اَبَدًا ، متفق علیه (مشکوة ص:۲۹۹، کتاب القصاص)

**جواب:** نیك بختي او بدبختي خو د انسان په نیکو او بدو اعمالو پورې تعلق لري[1]، په مخکې یا روستو مرګ باندې نه ده.

## یوائې قسمت کافي دی که کوشش هم پکار دی؟

**سوال:** زمادوست وايي که چېرې دانسان قسمت ښه وي، نودمحنت کولو نه پرته به‌هم ښه ګټه کولی شي، دهغه ده نظر مطابق داګټه دهغه په قسمت کې وه اودهغه قسمت ښه و. زماخیال دی که چېرې انسان محنت وکړي اوقسمت يې ملګری وي، نوکارکيږي دمحنت کولونه پرته قسمت ښه نه شي کيدای، زمادوست وايي چې يوانسان ټوله ورځ محنت کوي اوبل په يوه ګنټه کې دهغه غوندې پيسې وګټي، مهرباني وکړئ ددې ځواب راکړئ چې په موږ دواړوکې دکوم يوخيال صحيح دی؟

**جواب:** داخوصحیح ده چې څه په قسمت کې لیکل شوي وي هغه پیداکيږي، دهغه نه زيات نه شته، خودحلال رزق له پاره کوشش اومحنت کول ضروري دي، دقسمت حال چاته معلوم نه وي، اودحلال رزق له پاره دشرعي فرائضوپابندي کول هم ضروري ده.

## د رضا بالقضا مراد

**سوال:** رسول الله ﷺ فرمايي: الله تعالیٰ چې کله يوبنده ځان ته محبوب کړي، نوهغه په يومصيبت کې ګرفتارکړي، که چېرې هغه صبر کونکی واوسيږي، نوهغه منتخب کړي اوکه چېرې دهغه په قضا باندې راضي وي، نوهغه غوره کړي، مصيبت باندې دصبر. يا په قضاباندې دراضي اوسيدوڅه مطلب دی؟

**جواب:** مطلب داچې دالله تعالی په فيصلوباندې په زړه کې تنګي اوتکليف نه محسوسوي، په خولې باندې شکايت نه کوي، بلکې داسې وګڼي چې مالک څه وکړل ښه يې وکړل، طبعي خفګان ددې خلاف نه دی، همدارنګه دهغه تکليف دلرې کولوله پاره جائزاسباب اختيارول او دعاکول، درضابالقضاخلاف نه دي، والله اعلم.

**سوال:** يوځل حضور ﷺ ديوڅوصحابه کرامو رضي الله عنهم نه پوښتنه وکړه: تاسو څوک يئ؟ هغوی ځواب ورکړ: يارسول الله ﷺ موږمومن مسلمانان يو. حضور ﷺ وفرمايل چې ستاسو د ايمان نښه څه ده؟ هغوی عرض وکړچې مصيبت باندې صبرکوو، راحت باندې شکر اداکوو

---

[1] عن ابی بکرة ان رجلاً قال : يا رسول الله ! ای الناس خير ؟ قال: من طال عمره وحسن عمله قال : فای الناس شر ؟ قال : من طال عمره وقصر عمله (مشكوة ص: ٤٥٠) قال الطيبي رحمه الله وقد سبق أن الأوقات والساعات كرأس المال للتاجر فينبغي أن يتجر فيما يربح فيه وكلما كان رأس ماله كثيرا كان الربح أكثر فمن مضى لطيبه فاز وأفلح ومن أضاع رأس ماله لم يربح وخسرخسراناً مبيناً (مرقاة شرح مشكوة ج:٥،ص: ٧٨)

اوقضاباندې راضي اوسيږو. حضور ﷺ وفرمايل چې والله تاسو په رښتيا مسلمانان يئ. اوس پوښتنه داده چې دې حديث مبارک کې:

١: مصيبت باندې دصبر کولونه څه مراددي؟ ٢: راحت باندې د شکرنه څه مراددي؟

٣: اوقضاباندې دراضي اوسيدونه څه مراد د؟

**جواب:** نمبر١ اونمبر٣ خوپورته بيان شوي دي، راحت اونعمت باندې دشکرکولو مطلب دادی چې هغه نعمت يواځې دالله تعالى داحسان او لطف ميوه وګڼي. خپل ذاتي هنراوکمال يې ونه ګڼي، په ژبه باندې الحمدالله ووايي اوشکراداکړي اودغه نعمت دالله تعالى په رضاکې مصرف کړي، هغه نعمت باندې کبراوغرور ونه کړي. والله اعلم

**سوال:** حضرت داؤد عليه السلام باندې وحې نازله شوه چې: اې داوده! ته هم ديو کارقصداواراده کوې اوزه هم اراده کوم، خو هغه کيږي دکوم چې زه اراده وکړم. که چېرې ته زماپه اراده اوخوښې باندې راضي شوې، فرمانبرداراوحکم منونکی شوې. نوبيابه زه ستاګناهونه معاف کړم اوستا نه به خوشحاله شم اوکه چېرې زماپه اراده باندې راضي نه شوې، نوتا به په تکليف اومشقت کې واچوم اواخرکې به هغه کيږي. څه چې زه غواړم اوستاپه سربه يواځې پريشاني وي، دې حديث کې مسلمانانوته څه نصيحت شوی دی؟

**جواب:** داچې دالله تعالى په اراده اورضاباندې راضي اوسئ. که چېرې دخپل خواهش خلاف يوکار دالله تعالى له طرف نه وشي، نوهغه باندې په زړه اوخوله باندې شکايت مه کوئ.

# [محاسنِ اسلام]

## اسلام د فطرت دين دی

**سوال:** زماديوعيسايي دوست سوال دقران او سنت په رڼا کې ځواب کړئ! هغه وايي چې اسلام ډېرسخت مذهب دی او دفطري دين دعويدارهم دی، په اسلام کې دتفريح څه تصور هم نشته هرطرف ته سختي ده، دزړه دخوشحالولو والا ټول شيان پکې ناجائز دي، دموسيقئ طرف ته دهرانسان ميلان وي اوهر روح په وجدکې راځي، اسلام انسان ددې فطري غوښتنو څخه ولې منع کوي، دخوندا خستلو اجازه ولې نه ورکوي، په موجوده زمانه کې مشيني دور له وجې هرسړی مصروف دی اوټوله ورځ دکارکولونه وروسته دهرسړي زړه تفريح کول غواړي، ادايوزې ريډيو، ټيلي ويژن، سنيما، ډانس کلب اودلوبو ميدانونه دي، د ځوانو هلکانو هاکي او فټ بال کول تره ډېرحده پورې زړه تنګي ختموي، اُميددی چې تاسوبه ضرور ځواب راکړئ ستاسوبه ډېره مهرباني وي.

**جواب:** ستاسو دعيسايي دوست دا غلط فهمي ده، اسلام دفطرت دين دی اوفطرت دروح د

خوشالولو غوښتنه کوي او اسلام دروح دخوشالولو اوتفريح پوره سامان ورکوي او ددې کامل او مکمل نظام ورکوي اوداسلام نه سوا په بل مذهب کې دروح صحيح تفريح اود خوشحالي فطري نظام موجودنه دی .ريډيو ټيلي ويژن. سندرې او موسيقی اوداسې نور خرافات چې هغه دتفريح سامان ګڼل کيږي دا دنفس.دتفريح سامان دی دروح دتفريح نه .هم دا وجه ده چې دحضرت عيسیٰ عليه السلام اوداسې نورو دالله دمقبولو بنده ګانو ژونددې لوبو او تماشو دتفريح نه بالکل خالي و اونن هم دې تفريحاتونه د فاسقانواوفاجرانوميلان دی. خو کوم حضرات چې دروحانيت سره اشنااودالله دمعرفت دجام نه سيراب دي.هغوی داشيان بې فايدې ګڼي.له دې نه معلوميږي چې دا تفريح نفس غټوي او انسان دالله دياد نه غافله کوي ځکه اسلام دفطرت دغوښتنوسره سم دې ډول شيانوته غلط وايي اودپرهيزلائق يې ګڼي.[1]

## اسلام د نورو مذهبونو نه په کوموشيانوکې غوره دی؟

**سوال:** تقريبًا ددنياټول مذهبونه دانسان ته دکاميابۍ اوهميشه سکون (اخرت دبهتري) لاربښوونه کوي،بيشکه اسلام په دنياکې دالله تعالی له لوري راغلی اخري دين اوربښتونی مذهب دی چې ددې تاييد ددنيالوی لوی مذهبونه اودتورات ،انجيل او زبورپه شان کتابونه کوي ،لږ په تفصيل سره وښيئ چې داسلام کوم يوشی اوکوم حقيقتونه له دې نورومذهبونونه غوره دي؟

**جواب:** يوتابعي حضرت عائشې رضي الله عنها ته عرض وکړچې ماته دنبي کريم صلی الله عليه وسلم څه عجيبه خبره وکړه! هغې رضي الله عنها په ځواب کې وفرمايل:بچيه! دنبي عليه السلام کومه خبره داسې وه چې عجيبه نه وه.[2] دام المومنين هم دا وينا ستاذسوال ځواب دی.تاسوپوښتنه کړې چې اسلام په کومه خبره کې دنورو مذهبونو نه غور دی؟

زماعرض دادی چې داسلام کوم يوشی دنورو مذهبونونه افضل او غوره نه دی؟دعقائدو او دعبادت چې کوم تفصيل اسلام وړاندې کړی دی. نوايادډنيا بل مذهب داتفصيل وړاندې کړی دی؟د اخلاقو، معاملاتو، معاشرات او دسياست په باره کې چې اسلام کوم تفصيلي

---

١] وَمِنَ النَّاسِ مَنْ يَشْتَرِي لَهْوَ الْحَدِيثِ لِيُضِلَّ عَنْ سَبِيلِ اللهِ لهو الحديث على ما روى عن الحسن كل ما شغلک عن عبادة الله تعالى وذكره من السمر والاضاحيک والخرافات والغنا ونحوها ( تفسير روح المعانى ج:٢١، ص: ٦٧ سورة لقمان آيت :٦) وفى التاتارخانية : اعلم ان التغنى حرام فى جميع الاديان .....الخ (ايضاً روح المعانى ج:٢١،ص: ٦٨)

٢] عن عطاء قال : دخلت انا وعبدالله بن عمر وعبيد بن عمير على ام المؤمنين عائشة رضى الله عنها ...اخبرينا باعجب ما رايت من رسول الله صلى الله عليه وسلم :قال :فبكت وقالت : كل امره كان عجباً.....الخ (تفسير ابن كثير ج:٢،ص: ١٦٩)

هدايات ورکړي دي،ايادا هدايات دنورو مذهبونو په کتابونو کې په لټون سره هم پيدا کيږي؟
بيا چې اسلام په خپل هريوحکم کې دکوم کامل اعتدال لحاظ ساتلی دی ايادډنياپه بل مذهب کې ددې اعتدال مثال شته؟ ټولې خبرې پريږده تاسويوائې په يوه نکته باندې غور وکړئ چې هغه ټول لوی لوی مذهبونه چې نن په دنياکې موجود دي.هغوی په څه نا څه ډول دانسان سرډمخلوق په مخکې کښته کړی دی.چاداور او داوبوپه مخکې. چاد حيواناتو په مخکې. چاد نمر. سپوږمۍ .ستورو او اسمان په مخکې او چا پخپله دانساني هستويو په مخکې. اسلام ددنيا هغه واحدمذهب دی چې انسان ته يې داشرف المخلوقات لوړ مرتبه ورکړې ده. هغه يې دخپل صحيح مقام نه خبرکړی دی اوهغه يې دځان پشان دمخلوق دبندګي نه خلاص کړی دی او دخپل خالق بنده ګي يې ور ښودلې ده. يوائې اسلام دنياته اوښودله چې انسان دمخلوق دعبادت له پاره نه دی بلکې داټول مخلوقات دده دخدمت له پاره دي .داداسلام په انسانيت باندې هغه احسان دی چې انسان ددې دشکريې نه کله هم نه خلاصيږي اودا د اسلام هغه امتياز دی چې ددنيا هيڅ يومذهب هم ور سره د برابري دعوه نه شي کولی. دا ستا دسوال يومختصرشان ځواب دی چې ددې په تفصيل کې ديو لوی تصنيف ضرورت دی.

## په اسلامي ملک کې د غيراسلامي مذهب په تبليغ بنديز تنګ نظري نه ده

**سوال:** اول تاسو زما ددې سوال ځواب راکړئ چې زموږ اسلام تنګ نظره مذهب دی؟که چېرې ستاسوځواب په نفې وي او يقينًا په نفې به وي. نوبيا داصل پوښتنې ځواب راکړئ! چې هرکله اسلام دخپل تبليغ حکم ورکوي، نوبيابه په نورو مذاهبو ولې بنديز لګوي؟ايا اسلام منونکو ته په استقلال اوثابت قدمي باندې شك دی کوم چې ددوی د لومړنيو اوصولوڅخه يو دی،په اسلامي ملکونوکې د نورو مذهبونو تبليغ قانونًا منع دی. نوايا داخطره نشته چې غير اسلامي ملکونه د اسلام دتبليغ په باره کې هم داسې قوانين جوړ کړي؟که چېرې داسې وشي. نوداسلام تبليغ به چرته اوڅنګه کيږي؟او ايا په دې طريقې سره به د نورو مذهبونو (کوششونو) ته پټه ترقي حاصله نه شي؟ اميددی زماددې سوالونوبه تفصيلي ځواب راکړئ او تاسوبه زما اوزما په شان د ډېرو ځوانانوپه ذهن کې موجود داپوښتنه اوشك ليرې کړئ!

**جواب:** پخپله چارديوالي کې دننه څوک نه پريښودلوته تنګ نظري نشي ويل کېدای دې ته غيرت ويل کيږي،اسلام که تنګ نظره نه دی نوبيې غيرته هم نه دی،که چېرې څوک دچا ښځې ته په ښکاره خپل طرف ته دعوت ورکوي نوايا خاوندبه يې دا وزغمي؟ اوايا څوک عقلمند به هغه ته دتنګ نظري پيغور ورکړي؟اوايا دابه وويل شي چې دده پخپله ښځه

باندې اعتماد نشته ځکه بده ګڼي،تاسوته دی معلومه وي چې الله تعالی زموږ نه زیات غیرتي دی او دهغه دین د انساني عزت نه زیات مقدس دی.[۱]

پاتې شو ستاسو دا اعتراض چې په اسلامي ملکونوکې که چېرې غیرمذهبوته د خپل مذهب دتبلیغ کولواجازه نه وي،نو غیر اسلامي ملکونه به هم پخپلو ملکونوکې په مسلمانانو باندې بندیزولګوي چې هغوی دې هم خپل مذهب ته تبلیغ نه کوي،نوجناب حقیقت دادی چې دمغرب عیسایي ملکونه چې هغوی ته عام طورباندې ډېر د پراخه زړه والا،لبرل" ویل کیږي،دمسلمانانو دتبلیغ په معامله کې ډېرمصیبت دی،ددوی په ملکونو کې عیسایانوته داسلام دعوت خوپرېږده! تاسو یواځې مسلمانانوته داسلام دتعلیم ورکولو له پاره یوجومات یامدرسه جوړه کړئ نوبیاوګورئ !داچې تاسو کوم اورئ چې په انګلینډ کې دومره سوه جوماتونه دي دا زیاتر پټ په کورونو کې وي چې دهغه دننه دروازې بندې وي او اذان کولې شي اوهغه هم پرته دمالك داجازې نه اوپه معمولي اواز سره اوتاسو چې کوم جوماتونه په لندن یاپه نوروښارونوکې ښکاره وینئ دهغه شاته د کلونو د صبر محنت پروت وي،تاسو ته دوه مثالونه وړاندې کوم.لندن د دنیا لوی مرکز دی، د مسلمانانو د ډېرې ابادې نه پرته هلته دځلو ښتو مسلمان ملکونو سفیران اودهغوی متعلقین اوسیږي،د کلونو محنت او دعربو بادشاهانو په زوروباندې په ریجنټ پارك کې دجومات جوړولو اجازه وشو،خودهغه مینار به دلندن سینټ پال دچرچ نه پورته نه وي، سره له دې چې هغه چرچ د ریجنټ پارك نه لیرې دی او داذانوپه اواز باندې هم یو قسم پابندي ده.

اوس واورئ دمسلمانانو دتعلیم له پاره د یوې مدرسې جوړولو له پاره د مانچسټر بولټن نزدې دپنځوکالو نه ستړې کېدونکي کوشش نه وروسته اجازه ورکړل شو چې تاسو د مسلمانانوبچیانوله پاره اسلامي دیني مدرسه جوړولی شئ.دادکراچۍ یاپاکستان پراخ دله، لبرل، مشنري مشنونو، د رموزونه بې پروا حکومت خونه دی چې چېرته د عیسایانو "سیلویشن ارمي" ( دنجات فوج) دی او چېرته په بهترین علاقوکې څنګه چې په صدرکې ترټولو لوړ کور چې د سرو زرو پشان ځمکه باندې په پراخه رقبه باندې جوړوي داټول له دې پرته چې مشنري سکولونه اوکالجونه ورځ په ورځ زیاتیدونکي دي،چې که چېرې مرتد کولی یې نشي نو دمضبوطې عقیدې مسلمان هم نه پرېږدي،د امریکې"د پراخ نظرې" مثال یو پاکستانی درد من مسلمان بیان کړ هغه په شکوکې اوسیږي چې کله هغه دلته د عیسایانو دا ډېرزیات مشنري سکولونه، مشنري هسپتالونه او دعیسایانو نمایده ګان

---

۱] عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بن مسعودٍ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صلى الله عليه وسلم « لاَ أَحَدٌ أَغْيَرُ مِنَ اللّٰهِ وَلِذٰلِكَ حَرَّمَ الْفَوَاحِشَ مَا ظَهَرَ مِنْهَا وَمَا بَطَنَ (صحيح بخارى ج:۲،ص: ۶۶۸ طبع نور محمد کراچی)

ولیدل کوم چې په قومي او صوبايي اسمبلوکې ناست وي، نوهغه وويل چې په امريکه کې
خوبو مسلمان "سني سکول" پرانستلو له پاره هم کلونه لګيږي اول خو چې په کومه محله کې"
سني سکول" پرانستل شوی وي دهغه ابادي"پبك هيرنګ" کيږي .باقاعده ووټونه کيږي.چې
څومره اوسيدونکي دسکول ياجومات دتعمير په حق کې دي،بنکاره ده چې عيسايي ابادي
دخپل کثرت په بناء باندې دا رد‌وی، بيا په ضلعي کورټ هايي کورټ کې مقدمه وړاندي
کيږي هرځای نه په ناکامي سره اخر د سپريم کورټ نه دمسلمان سکول په حق کې فيصله
کيږي.په دی لس کاله تيرشي.د امريکې د کورټ په ډېرو خرچوکې د مسلمانانوفنډختم
شوی وي، اودمسلمانانو د سني سکول" خوب په دی "لبرل" ملك کې رښتيا نشي.پاتې دا
چې څوک مسلمان بواځې د اقليت په بناء باندې د پارليمنټ ياصوبايي اسمبلۍ
ممبرجوړشي دا غير ممکن ده.دغه لبرل، پراخ دله، وسيع النظر" ملکونو د اقليتونو نمائنده
ګانوته پارليمنټ او اسمبلۍ ته د رسيدلو فساد نه دی پاللی.

## ❖ انبياءِ کرام عليهم السلام ❖

### دانبياء عليهم السلام بشر دي

**سوال:** جناب معزز مولاناصاحب السلام عليکم ... عرض دادی چې ستاسو رساله "البينات"
شايد دتيرشوي ۱۹۸۰ءکال ده، دهغه مطالعه مې وکړه په هغه کې يوڅوخبرې داسې په نظر
راغلې چې دهغه وضاحت ضروري دی ځکه چې مادنورو حضراتو دکتابونو مطالعه هم کړې
ده،چې په هغو کې ستاسودخبرو او دهغوی دخبروترمنځ ډېرفرق دی ياخوتاسودهغوی
خلاف يئ؟يادهغوی ليکل تاسونظر انداز کوئ!

مثلاً نمبر۱صفحه۳۷، نبي کريم صلی الله عليه وسلم دخپل ذات په لحاظ سره نه يواځې بشرو بلکې افضل
البشر و،دانسانانوسردار دی،د ادم عليه السلام دنسل نه دی."بشراوانسان د دواړو يوه معنا ده"
خو کله چې مادنورو حضراتوتصانيف وکتل، نو د ځمکې او اسمان فرق مې محسوس کړ،
آخر ددې څه وجه ده؟ سره له دې چې شاه ولي الله محدث دهلوي رحمة الله فرمايي چې" په تحقيق
سره امت په دې باندې اجماع کړې ده چې دشريعت په پيژندلوکې دې په سلفوباندې اعتماد
وکړل شي . تابعينواعتماد وکړ په صحابه وو باندې او تبع تابعينوپه تابعينوباندې
همدارنګه په هره طبقه کې علماوو په خپلومخکې عالمانواعتماد کړی دی" (عقدالمجيد
صفحه ۳۲،مطبع دهلي)

اميددی چې که څېرې ددين پوهه طبقه ياکم نه کم هغه حضرات چې ددين په تبليغ کې قدم
ږدي هغه خودې داطريقه اختيارکړي چې په دين کې تواترقائم پاتې شي اوس په دې پورته
ذکرشوې مسئله کې تاسوددې دثابتولو کوشش کړی دی چې نبي عليه السلام بواځې بشر دی خو

افضل البشر دی .دانسانانو سردار او د آدم علیه السلام له نسل نه دی یعنې د حضور پاک ﷺ حقیقت بشر دی.خو حکیم الامت مولانا اشرف علي تهانوي رحمة الله عليه په خپل "تصنیف" نشرالطیب" کې اول باب په نورمحمدي ﷺ باندې لیکلی دی چې په هغه کې یې دنبي کریم ﷺ پیدایش دنورنه اودهغوی ﷺ دنورنه دټول مخلوق دپیدایش اظهارکړی ده اوپه ضمن کې یې ځوحدیثونه هم روایت کړي دي،چې په هغه کې داذکرهم دی چې نبي کریم ﷺ دادم علیه السلام دپیدائش نه څوارلس زره کاله مخکې دالله په دربارکې نور و"اوداهم ېکلي دي چې زه هغه وخت نبي وم کله چې ادم علیه السلام داوبو اوخاورې په مینځ کې و.

اوجناب رشیداحمد گنگوهي رحمة الله عليه په امدادالسلوك کې وایي چې دمتواترحدیثونو نه داثابته ده چې دنبي کریم ﷺ سوری نه و اوظاهره ده چې دنور نه پرته دهرشي سوری وي.

حضرت مجدد الف ثاني رحمة الله عليه (په دریم دفترمکتوب نمبر ١٠٠کې) فرمايي چې دهغه نه د یو څو خبرو اظهارکیږي:

١:نبي کریم ﷺ یو نوردی ځکه چې نبي علیه السلام فرمایلي دي"**خلقت من نورالله**" زه دالله دنور نه پیداشوی یم.

٢:حضور ﷺ نور و اودهغه سوری نه و.

٣:نبي کریم ﷺ نور دی چې الله تعالی دحکمت اودمصلحت په وجه دانسان په شکل کې ښکاره کړی دی.

مطلب دادی چې مجددصاحب رحمة الله عليه هم دهغوی ﷺ حقیقت نورگڼي،خو الله تعالی دڅه مصلحت له وجې نه دانسان په شکل کې ښکاره کړی دی.

رساله"التوسل"چې دمولوي مشتاق احمد(دیوبندي)تصنیف دی اودمولوي محمودالحسن صاحب،مفتي کفایت الله صاحب او مفتي محمدشفیع صاحب دعلماء دیوبندپه تصدیقاتو سره دهغه تاییدشوی دی،په هغه کې لیکلي دي چې:﴿ قَدْ جَآءَكُم مِّنَ ٱللَّهِ نُورٌ وَكِتَـٰبٌ مُّبِينٌ ﴾ دې کې دنورنه مرادحضرت رسول کریم ﷺ دی اودکتاب نه مرادقران دی، د نوراودسراج منیراطلاق په نبي علیه السلام باندې له دې وجې چې نبي کریم ﷺ نورمجسم او رښانه ډیوه ده، نور اوډیوه دهمیشه له پاره دصراط مستقیم دلیدلو اود خطرناك ژوندنه دبچ کیدو ذریعه او وسیله وي،اودمرگ نه وروسته هم وسیله ده.بلکې دنبي علیه السلام دنیاته دراتلونه مخکې د دوی ﷺ نیکه عبدالمطلب به قریشو دمصیبت په وخت کې ددې نورپه وجه د مشکلاتو دحل له پاره وسیله نیوله. (التوسل صفحه ٢٢،تفسیرکبیر٥٢٢/٣)

**﴿ قَدْ جَآءَكُم مِّنَ ٱللَّهِ نُورٌ وَكِتَـٰبٌ مُّبِينٌ ﴾ ان المراد بالنور محمد صلی الله علیه وسلم وبالکتب القران،** (تفسیرکبیرج١،ص١٨٩).

تاسو ته داغرض دی چې تاسو ووایئ چې داعقیده صحیح ده؟
نوټ: ددې حضراتو دعقیدو نه نبي کریم ﷺ دنورحقیقت ثابت دی چې د ادم علیہ السلام نه مخکې پیداشو.

**جواب:** دحکیم الامت شاه ولي الله محدث دهلوي قدس سره په حواله چې تاسو کوم اصول نقل کړي دي، چې د شریعت په پیژندلو کې دې په سلفو اعتماد وکړل شي "دابالکل صحیح دي. خو جناب ستاسو دا خیال صحیح نه دی چې راقم الحروف دنور او بشر په بحث کې ددې اصولو نه انحراف کړی دی ماچې څه لیکلي دي دهغه خلاصه دا ده چې نبي کریم ﷺ په یو وخت کې نور هم دی او بشر هم دی او داچې دنبي علیہ السلام په نور او بشر کیدو کې هیڅ منافات نشته چې دیو اثبات وشي او دبل دې نفی وشي، بلکې هغوی ﷺ د هدایت په صفت او دباطني نورانیت په اعتبارسره نورمجسم دی او د خپل ذات په اعتبارسره خالص او کامل بشر دی.
بشراوانسان کیدل څه دشرم اودعیب شی نه دی چې خدای مه کړه نبي علیہ السلام طرف ته ددې نسبت عیب وګڼل شي. ځکه انسانیت او بشریت ته الله تعالی "احسن تقویم" فرمایلي دي[1] په دې وجه بشریت دنبي علیہ السلام له پاره عزت دی اودنبي علیہ السلام انسان کیدل دانسانیت له پاره دسونو عزتونو اوفخرونو سبب دی.
زما په علم کې نشته چې په سلفو صالحینو کې به چا دنبي علیہ السلام دبشریت نه انکارکړی وي اوهغه به یې دانسانیت ددایرې نه خارج کړی وي. بیشکه نبي علیہ السلام په خپل بشریت کې منفرددی اود شرافت اومرتبې په اعتبارسره په ټولو مخلوقاتو کې بهتردی او "بعد از خدابزرګ توئی قصه مختصر" مصداق دی، په دې وجه دنبي ﷺ اکمل البشر، افضل البشراوسیدالبشرکیدل دټولو شکونو نه غوره ذیاو ولې به نه وي ځکه چې هغوی پخپله فرمایي: انا سید ولد آدم یوم القیمة ولا فخر (مشکواة ص۵۱۱ ۵۱۳).
زه به دقیامت په ورځ دادم علیه السلام دولاد سردار یم "او دا خبره دفخر له پاره نه کوم"
قران کریم کې که چیرې الله تعالی په یو ځای کې ﴿ قَدْ جَآءَكُم مِّنَ ٱللَّهِ نُورٌ وَكِتَـٰبٌ مُّبِينٌ ۝ ﴾ فرمایلي دي (یعنې که چیرې دنورنه دنبي ﷺ ذات مرادواخستل شي) نو په بل ځای کې یې دا هم فرمایلی دي:
﴿ قُلْ سُبْحَانَ رَبِّى هَلْ كُنتُ إِلَّا بَشَرًا رَّسُولًا ۝ ﴾ (بنی اسرائیل ایت ۹۳)
"ته ورته ووایه چې سبحان الله! زه پرته له دې نه چې انسان یم او پیغمبر یم نور څه یم"

[1] لقد خلقنا الانسان فی احسنِ تقویم ٥ (التین : ٥)

﴿ قُلْ إِنَّمَآ أَنَا۠ بَشَرٌ مِّثْلُكُمْ يُوحَىٰٓ إِلَيَّ أَنَّمَآ إِلَٰهُكُمْ إِلَٰهٌ وَٰحِدٌ ﴾ (کهف: ۱۱۰)

"ته ورته ووايه چې بیشکه زه خو ستاسو پشان بشریم.بس ماته دا وحې راځي چې ستاسو معبود يو دی".

﴿ وَمَا جَعَلْنَا لِبَشَرٍ مِّن قَبْلِكَ ٱلْخُلْدَ ۖ أَفَإِين مِّتَّ فَهُمُ ٱلْخَٰلِدُونَ ﴾ (الانبياء ۳۴)

"او موږ ستاسو نه مخکې دیو بشرله پاره هم همیشه له پاره او سیدل نه دي مقرر کړي.بیا که چېرې تاسو ﷺ وفات شئ نو ایا دا خلک به په دنیا کې همیشه وي؟"

قران کریم دا اعلان هم کوي.چې انبیاء کرام علهم السلام همیشه له پاره په انسانانو کې لیږل شوي دي: ﴿ مَا كَانَ لِبَشَرٍ أَن يُؤْتِيَهُ ٱللَّهُ ٱلْكِتَٰبَ وَٱلْحُكْمَ وَٱلنُّبُوَّةَ ثُمَّ يَقُولَ لِلنَّاسِ كُونُوا۟ عِبَادًا لِّى مِن دُونِ ٱللَّهِ ﴾ (ال عمران: ۷۹)

"دیو بشر نه دا خبره نه شي کیدای چې الله تعالی هغه ته کتاب .پوهه او نبوت ورکړی بیا هغه خلکو ته ووایي چې زما بنده ګان شئ او الله تعالی پریبږدئ"

﴿ وَمَا كَانَ لِبَشَرٍ أَن يُكَلِّمَهُ ٱللَّهُ إِلَّا وَحْيًا أَوْ مِن وَرَآئِ حِجَابٍ أَوْ يُرْسِلَ رَسُولًا فَيُوحِىَ بِإِذْنِهِۦ مَا يَشَآءُ ﴾ (الشوری: ۵۱) "او دیو بشر دا شان نه دی چې الله تعالی د هغه سره خبرې وکړي.خو (په درې طریقو سره) یا خو په الهام سره یا د پردې ترشا دیو ې فرشتې په ذریعې سره. وحیې وکړي په اجازه دده سره هغه چې څه یې خوښه وي."

او الله تعالی د انبیاء کرام علیهم السلا په ذریعه دا اعلان هم کړی دی:

﴿ قَالَتْ لَهُمْ رُسُلُهُمْ إِن نَّحْنُ إِلَّا بَشَرٌ مِّثْلُكُمْ وَلَٰكِنَّ ٱللَّهَ يَمُنُّ عَلَىٰ مَن يَشَآءُ مِنْ عِبَادِهِۦ ﴾ (ابراهیم. ۱۱) "د دوی رسولانو دوی ته وویل چې موږ هم ستاسو پشان انسانان یو خو الله تعالی په خپلو بنده ګانو کې چې په چا باندې وغواړي احسان وکړي."

قران کریم دا هم ښودل چې د بشر سپکاوی له ټولو مخکې ابلیس وکړا اول انسان حضرت آدم علیه السلام ته یې له سجدې کولو نه انکار وکړا او دا یې وویل:

﴿ قَالَ لَمْ أَكُن لِّأَسْجُدَ لِبَشَرٍ خَلَقْتَهُۥ مِن صَلْصَٰلٍ مِّنْ حَمَإٍ مَّسْنُونٍ ﴾ (الحجر ۳۳)

"ویې ویل چې نه یم زه چې بشر ته دې سجده وکړم.چې هغه تا د کړنګېدونکې تورې خټې نه پیدا کړی دی."

قران کریم دا هم ښودلي دي چې کفارو همیشه د انبیاء کرام علیم السلام د اتباع نه کولو دلیل دا ویلی دی چې دا خو بشر دی، ایا موږ بشر رسول ومنو؟

﴿ فَقَالُوٓا۟ أَبَشَرًا مِّنَّا وَٰحِدًا نَّتَّبِعُهُۥٓ إِنَّآ إِذًا لَّفِى ضَلَٰلٍ وَسُعُرٍ ﴾ (القمر: ۲۴)

"دوی وویل چې ایامونږ دداسې سړي اتباع وکړو چې زمونږ دجنس سړی دی او یواځې دی،په دې صورت کې به مونږ په لویه غلطۍ او لیونتوب کې یو."

﴿وَمَا مَنَعَ ٱلنَّاسَ أَن يُؤْمِنُوٓا۟ إِذْ جَآءَهُمُ ٱلْهُدَىٰٓ إِلَّآ أَن قَالُوٓا۟ أَبَعَثَ ٱللَّهُ بَشَرًا رَّسُولًا ﴿٩٤﴾ قُل لَّوْ كَانَ فِى ٱلْأَرْضِ مَلَٰٓئِكَةٌ يَمْشُونَ مُطْمَئِنِّينَ لَنَزَّلْنَا عَلَيْهِم مِّنَ ٱلسَّمَآءِ مَلَكًا رَّسُولًا ﴿٩٥﴾﴾ (بنی اسرائیل:۹۴-۹۵)."اوخه وخت چې دې خلکوته هدایت راغی هغه وخت دوی له ایمان راوړلونه پرته له دې بل هیڅ شي منع نه کړل،چې هغوی وویل ایاالله تعالی بشررسول رالیږلی دی.ته ورته ووایه: چې که چیرې په ځمکه کې فرشتې اوسیدلی نوموږبه خامخا په دوی باندې له اسمان نه فرشته رسول رالیږلې وه."

له دې ارشاداتونه معلومیږي چې انبیاء کرام علیهم السلام انسانان او بشروي اګرچې دیونبي په نبوت باندې دایمان راوړلو مطلب هم دادی چې هغه بشراورسول ومنل شي،په دی وجه دټولو اهل سنتوپه نزدباندې درسول تعریف دا دی چې: رسول هغه انسان دی چې هغه الله تعالی دخپلو پیغامونو او احکامو بنده ګانوته درسولوله پاره لیږلی وي."

ځنګه چې قران کریم دانبیاء علیهم السلام دبشریت اعلان کړی دی،دغسې په حدیثونو کې هم نبي کریمﷺ هم دخپل بشریت اعلان کړی دی. نبي علیه السلام دا فرمایي چې له ټولونه اول زمانورپیدا شو،که چیرې داروایت صحیح ومنل شي) هلته داهم فرمایي:

**۱: اللهم انماانابشرفای المسلمین لعنتهاوسببته فاجعله له زکوة واجرًا(مسلم ص۳۲۳ج۲عن عائشة رضي الله عنها)**."اې الله!زه هم یوانسان یم. په کوم مسلمان چې مالعنت کړی وي اویامې ورته بد رد ویلي وي. نودغه دده له پاره دپاکي اودَ اجر ذریعه وګرځوې!"

**۲:اللهم انی اتخذعندك عهدًا لن تخلفنیه فانما انابشرفای المؤمنین اذیته شتمته لعنته جلدته فاجعلها له صلوة وزکوة وقربة تقربه بها الیك یوم القیمة (مسلم ص۳۲۴ج۲عن ابی هریرة رضي الله عنه).**

"اې الله! زه ستانه یوه وعده اخستل غواړم ته به دهغه خلاف نه کوې ځکه چې زه هم یوانسان یم کوم مومن ته چې ماتکلیف ورکړی وي.کنځل مې ورته کړي وي.لعنت مې کړي وي،وهلی مې وي،نودغه دده له پاره رحمت او پاکي وګرځوې چې ددې په وجه ته هغه ته دقیامت په ورځ خپل قرب ورکړې."

**۳: ,, اللهم انمامحمدصلی الله علیه وسلم بشریغضب کمایغضب البشر،،(الحدیث عن ابی هریرة رضي الله عنه مسلم ص۳۲۴ج۲).** "اې الله! محمدﷺ هم یوانسان دی هغه ته هم غوسه ورځي ځنګه چې نوروانسانانوته غوسه ورځي."

۴:انی اشترطت علی ربی فقلت انما انابشرارضی کمایرضی البشرواغضب کمایغضب البشر،
(مسلم ص۳۲۴ ج۲عن انس رضي الله عنه).
"ما دخپل رب سره دا شرط کړی دی .ماوویل چې زه هم یوانسان یم زه هم خوشالیږم څنګه چې یوانسان خوشحالیږي او غوسه کیږم څنګه چې یوانسان غوسه کیږي"

۵:انما انابشروانه یاتینی الخصم فلعل بعضهم ان یکون ابلغ من بعض فاحسب انه صادق فاقضی له فمن قضیت له بحق مسلم فانماهی قطعة من النارفلیحملها اویذوها.(صحیح بخاري ص۳۳۲ ج۱مسلم ۷۴ ج۲عن ام سلمة رضي الله عنها).
"زه هم یوانسان یم اوماته دمقدمې یوفریق راشي.کیدای شي چې په دوی کې څینې ډېر چالاك وي . زه هغه ریښتنی وګڼم اوفیصله دهغه په حق کې وکړم. دچاله پاره چې زه دبل مسلمان دحق فیصله وکړم هغه یواځې داورتکړه ده اوس که هغه دغه اخلي اوکه پریږدي یې"

۶:انما انابشرمثلکم انسی کماتنسون فاذانسیت فذکرونی.(صحیح بخاري ص۵۸ ج۱،صحیح مسلم ص۲۱۲ ج۱عن ابن مسعود رضي الله عنه).
زه هم ستاسوپشان انسان یم.زه هم هیروم څنګه چې تاسونه هیریږي، کله چې زه څه هیرکړم نوماته یې یادوئ"؛

۷:انما انابشراذاامرتکم بشيء من دینکم فخذوابه واذا امرتکم بشيء من رائی فانما انا بشر.
(صحیح مسلم ص۲۶۴ ج۲عن رافع بن خدیج).
"زه هم یوانسان یم چې کله تاسوته ددین دیوې خبرې حکم وکړم. نوهغه واخلئ اوچې کله تاسوته(په دنیاوي معامله کې) دخپلې رایې نه دمشورې په طورڅه حکم وکړم. نوزه هم یوانسان یم"

۸:،،، الاایهاالناس!فانماانابشریوشك ان یاتی رسول ربی فاجیب،،، الخ ،،(صحیح مسلم ۲۷۹ ج۲عن زیدبن ارقم رضي الله عنه)،
"واورئ اې خلکو! زه هم یو انسان یم نږدې ده چې زمادرب قاصد(له دې ځایه دکوچ پیغام راوړي)،راشي اوزه هغه ته لبیك ووایم"

د قران کریم اودنبي کریم ﷺ دارشاداتونه داښکاري چې دنبي علیه السلام دنورپه صفت سره د موصوف کیدو دامطلب نه دی چې دنبي علیه السلام دبشریت نفې دې وکړل شي اونه ددې دومره قطعي دلائلوسره دهغوی ﷺ دبشریت نه انکار ممکن دی.

ماداهم لیکلي و چې بشریت څه دشرم او دعیب شی نه دی چې ددې نسبت دنبي علیه السلام طرف ته کول دې دبې ادبي موجب وي بشر او انسان خواشرف المخلوقات دی، بشریت خودهغه

کمال دی نقص یې نه دی اوبیادنبي علیه السلام په اشرف المخلوقات کې دټولونه اشرف اوافضل کیدل پخپله دانسانیت له پاره فخردی.

"په دې وجه دنبي کریم ﷺ بشراوانسان کیدل نه یواځې د هغوی ﷺ له پاره فخردی بلکې دهغوی ﷺ بشرکیدل دانسانانو له پاره ترفرشتودغوره کېدو ذریعه هم ده" اختلاف امت اورصراط مستقیم صفحه ۳۵ ج ۱،

هم داعقیده داکابرو اوسلف صالحینووه، څنګه چې قاضي عیاض رحمه الله په "الشفاء بتعریف حقوق المصطفی ﷺ" القسم الثانی ص ۱۵۷ مطبوعه ملتان کې لیکلي:

**قد قدمنا انه صلی الله علیه وسلم وسائرالانبیاء والرسل من البشروانه جسمه وظاهره خالص للبشریجوز علیه من الافات والتغیرات والالام والاسقام وتجرع کاس الحمام مایجوز علی البشر وهذا کله لیس بنقیصة لان الشيء انمایسی ناقصًا باالاضافة الی ماهواتم منه واکمل من نوعه وقدکتب الله تعالی علی اهل هذه الدارفیهایحیون وفیهایموتون ومنها یخرجون وخلک جمیع البشر بمدرجة الغیر،**

"مونږ وړاندې ذکرکړي دي چې دنبي کریم ﷺ جسم مبارك اوظاهر خالص دبشر و،دنبي علیه السلام په جسم اطهرباندې هغه ټول افتونه، تغیرات، تکلیفونه، مرضونه اومرګ راتلای شي، کوم چې په انسانانو باندې راځي اوداټول کارونه څه نقص اوعیب نه دی ځکه چې یوشی هغه وخت ناقص ګڼل کیږي، کله چې په دغه قسم کې یوبل شی ښه پوره اوکامل وي ددې دنیاپه اوسیدونکوالله تعالی دامقررکړي دي، چې هغوی به په ځمکه کې ژوندی وي اوپه دې کې به مري اوددې ځمکې نه به ویستل کیږي اوټول انسان الله تعالی دتغیرځائ جوړکړی دی."

دنبي کریم ﷺ دتکلیفونوځومثالونووړاندې کولونه وروسته په صفحه ۱۵۸-۱۵۹باندې لیکي: **وهکذا سائرانبیائه مبتلی ومعافیً وذلك من حکمته لیظهرشرفهم فی هذه المقامات ویبین امرهم ویتم کلمته فیهم ولیحقق بشریتهم ویرتفع الالتباس من اهل الضعف فیهم لئلایضلوا بمایظهرمن العجائب علی ایدیهم ضلال النصاری بعیسی بن مریم قال بعض المحققین وهذه الطواری والتغیرات المذکورة انماتختص باجسامهم البشریة المقصودة بهامقاومة البشرومعانات بنی ادم لمشاکلة الجنس وامابواطنهم فمنزهة غالبًا عن ذالك معصومة منه متعلقة بالملا الاعلی والملائکة لاخذها عنهم وتلقیها الوحی منها (الشفاء بتعریف حقوق المصطفی)(ص۱۵۸ ج۲ص۱۵۹ج۲).**

"همدارنګه نورانبیاء علیهم السلام هم په تکلیفونوکې مبتلاشوي وواو هغوی ته عافیت هم ورکړل شوی و او دا د الله تعالی کامل حکمت و، ددې له پاره چې په دې مقاماتوکې ددې حضراتو

شرف ښکاره شي او دهغوی معامله واضحه شي او دالله تعالی خبره ددوی په حق کې پوره شي او دې له پاره چې الله تعالی ددوی بشریت ثابت کړي او دامت دضعیفو خلکو ددوی په باره کې چې کوم التباس و هغه لیرې شي دی له پاره چې ددې عجائباتو په وجه کوم چې ددې حضراتو په لاس ظاهریږي چې په هغه سره خلک ګمراه نشي.څنګه چې نصاری دحضرت عیسی علیه السلام په باره کې ګمراه شو.ځینې محقیقینو فرمایلي دي چې دا عوارض او تغیرات ددې بشري جسمونو سره خاص وو.چې دهغه نه مقصود دبشر مضبوطول او د انسان مشقتونو زغمل دي.دې له پاره چې دهم جنسو سره په شکل کې بوشان شي.خو ددوی پاک روحونه ددې نه څه اثر نه اخلي بلکې هغه معصوم او منزه او دملاء الاعلی او فرشتو سره تعلق لري ځکه چې دوی دفرشتونه علوم او وحې اخلي".

غرض دا چې دنبي کریم صلی الله علیه وسلم دنور کیدو دا معنا بالکل نه ده چې هغه په انسانانو کې داخل نه دی،تاسو چې کومې حوالې نقل کړي دي په هغه کې دنبي صلی الله علیه وسلم له پاره دنور دصفت اثبات شوی دی،خو په دې سره دهغوی صلی الله علیه وسلم دبشریت نه انکار نه لازمیږي ځکه هغه دمدعا نه خلاف نه دیا و نه زما عقیده ددغه بزرګانو څخه بېله ده.

حکیم الامت حضرت مولانا اشرف علي تهاونوي رحمه الله په نشر الطیب[1] کې دټولونه اول نوردمحمد صلی الله علیه وسلم دپیدائش بیان کړی دی او دهغه دلاندې یې هغه احادیث نقل کړي دي چې کوموته تاسو اشاره کړې ده،خو حضرت رحمه الله نوردمحمد صلی الله علیه وسلم تشریح هم کړې ده،څنګه چې اول روایت یې دحضرت جابر رضی الله عنه مسند عبدالرزاق په حواله سره دانقل کړی دی:

"نبي علیه السلام وفرمایل:اې جابره! الله تعالی دټولو شیانو نه اول ستادنبي نوردخپل نورنه (خو په دې معنا سره نه چې دالله نوردهغه ماده ده،بلکې دخپل نوردفیض نه یې) پیدا کړو،بیا چې کله الله تعالی نورمخلوقات پیدا کول وغوښتل، نودانوریې څلوبرخې کړ،دیوې برخې نه یې قلم پیدا کړ او ددویمې برخې نه یې لوح ،وړاندې حدیث اوږد دی".

بیا دهغه په فایده کې لیکي: "ددې حدیث نه نوردمحمدي صلی الله علیه وسلم اول الخلق په حقیقت کې ثابت شو،ځکه چې د کومو شیانو په نسبت سره داولیت حکم په روایاتوکې راغلي دي دهغه شیانو نور د محمدي صلی الله علیه وسلم نه وروسته کیدل په دې حدیث کې منصوص دي".

او ددې په حاشیه کې لیکي: "ظاهراً نوردمحمدي صلی الله علیه وسلم څخه روح محمدي صلی الله علیه وسلم مراد دی او دروح حقیقت د اکثرو محقیقینو دقول سره سم له مادې نه مجرد دی او دَ مجرد د مادیاتو له پاره ماده کیدل ممکن نه دي. نوښکاره ددې نور دفیض نه څه ماده جوړه شوې ده.بیا یې دغه ماده څلوربرخې کړې ده الخ. او بیا ددغې مادې نه دیو مجرد جوړیدل په دې طریقه باندې

[1] نشرالطیب ص:۵،۶ وړومبې فصل د نورمحمدی په بیان کښې طبع کتب خانه اشاعت العلوم سهارنپور

ممکن دي چې هغه ماده ددې جز نه وي، بلکې په څه طریقه باندې یواځې ددې سبب خارج عن الذات وي"
دویم روایت چې په هغه کې فرمایل شوي دي چې بیشکه زه دالله په نزد خاتم النبین شوی ومه او ادم علیه السلام په دغه وخت کې پخپل خمیر کې پروت و --- دهغه په حاشیه کې لیکي
"او په دغه وخت کې خوښکاره خبره ده چې دهغوی ﷺ بدن نه و جوړ شوی. نوبیا دنبوت صفت دهغوی روح ته ورکړل شوي واونوردمحمدي ﷺ هم ددغه روح محمدي ﷺ نوم دی څنګه چې پورته ذکرشو"
له دې نه واضحه شوه چې دحضرت تهانوي رحمه الله په نزدباندې نوردمحمدي ﷺ نه مراد دنبي علیه السلام روح دی اوپه دې فصل کې چې څومره احکام ثابت شوي دي هغه دهغوی ﷺ دروح مقدسه دي او دا خوظاهره ده چې دهغوی دروح مبارك داول الخلق کیدونه دهغوی ﷺ دبشریت نه انکارنه لازمیږي.
اوحضرت تهانوي رحمه الله دتشریح نه داهم معلومه شوه چې دنبي کریم ﷺ نوردالله تعالی دنورنه دپیدا کیدومطلب دانه دی چې نوردمحمدي ﷺ (نعوذبالله) دنورخداوندي څه برخه ده، بلکې دامطلب یې دی چې دنورخداوندي فیضان دنبي علیه السلام د روح مقدسه دپیدا کیدوسبب وګرځید.
تاسو دقطب العالم حضرت مولانارشیداحمد ګنګوهي رحمه الله د امدادالسلوك حواله ورکړې ده چې داحادیث متواتره نه ثابته ده چې دنبي کریم ﷺ سورې نه و او ظاهره ده چې دنورنه پرته دټولو اجسامو سورې وي"؟
دامدادالسلوك دفارسي نسخه خوزمامخې ته نشته خو د اردو ترجمه کومه چې مولاناعاشق الهی میرټهی د"ارشادالملوك" په نوم کړې ده دهغه متعلق عبارت دا دی"
"نبي کریم ﷺ خوهم دادم علیه السلام په اولادکې دی خو هغوی ﷺ خپل ذات دومره پاك کړی و چې خالص نورجوړشوی واو الله تعالی ورته نور وفرمایلواوپه شهرت سره ثابته ده چې ددوی ﷺ سورې نه و اوظاهره ده چې دنورنه پرته دهرجسم سورې وي، دغسې نبي علیه السلام خپلوتابعداروته دومره دنفس پاکوالی ورکړ چې هغوی هم نورجوړشول، څنګه چې دهغوی دکراماتواوحکایتونونه کتابونه ډك دي اودومره مشهور دي چې دنقل کولوحاجت یې نشته اوالله تعالی هم فرمایلي دي چې کوم خلك زموږ په حبیب ﷺ باندې ایمان راوړي دهغه نوربه دهغه نه مخکې مخکې په منډه وي اوبل ځای کې فرمایي چې"یادکړه !هغه ورځ چې کله دمومنانونورددوی نه مخکې اوښي طرف ته په منډه وي اومنافقان به ووایي چې لږ ودریږئ چې موږه هم ستاسو دنورنه څه نور واخلو".
ددې دواړو ایاتونونه صفامعلومه شوه چې دنبي علیه السلام په تابعداري سره ایمان او نور دواړه حاصلیږي". (ارشاد الملوك مطبوعه سهارنپور، صفحه۱۱۴-۱۱۵).

ددې اقتباس نه ځوخبرې بالکل واضحه دي:

۱:داچې نبي کریم ﷺ دادم علیه السلام په اولادکې وګڼل شواود ادم علیه السلام بشرکیدل دقران کریم نه ثابت دي.

۲:داچې دنبي علیه السلام له پاره چې دکوم نورانیت اثبات شوي دی داهغه دی کوم چې تزکیې اوتصفیې سره حاصلیږي اوپه هغه کې د نبي علیه السلام مرتبه دومره اعلی اوکامله وه چې نبي علیه السلام خالص نور شوی و.

۳:داچې دجسم مبارك دسوري نه ښکاره کیدل یې متواترنه دي ویلي، بلکې شهرت سره ثابتیدل یې ویلي دي،دې رروایتونه داسې دي چې دعام اوخاص په ژبه حاصلیږي خوهغه ته دشهرت درجه خوپریږده چې دخبرواحدپه درجه کې هغه ته صحیح یاد قبلیدو قابل ضعیف حدیث درجه هم حاصله نه وي. بلکې هغه خالص بې بنیاده اوموضوعي وي،دسوري نه ښکاره کیدو روایت هم تر دې حده کمزوری دی،داروایت مرسل هم دی اوضعیف هم او په ځینو راویانوباندې یې دوضع حدیث تهمت لګیدلی دی.

(ددې تفصیل دحضرت مفتي محمدشفیع صاحب رحمه الله په مضمون کې دي،چې هغه به په اخرکې دتکملې په بڼه نقل کړم)

۴: داچې دحدیثونوتصحیح اوتنقیح دمحدثینوحضراتو کاردی، دحضرات صوفیاء کرامو معمول دادی چې ځینې داسې روایات چې هغه عام طورمشهوروي،دهغه دصحیح کولویواځې کوشش نه کوي بلکې دهغه دتصحیح له پاره توجیه ګانې کوي،دلته هم شیخ قطب الدین مکي رحمه الله (چې دهغه د رسالې مکیه ترجمه حضرت ګنګوهي رحمه الله کړې ده) ددې مشهورروایت دا توجیه یې کړې ده چې په نبي کریم ﷺ باندې دنورانیت اودتصفیې دومره غلبه وه چې دمعجزې په طورسره دهغه ﷺ سوری نه و،په هرحال که دسوري نه کیدووالا روایت ومنل شي، نودمعجزې په طور کیدای شي،ګویاچې دنورانیت دغلبې په وجه دهغه ﷺ په جسم مبارك دروح احکام جاري شوي و اوځنګه چې دروح سوری نه وي همدارنګه دده ﷺ دپاك جسم هم سوری نه و،خو له دې نه دنبي کریم ﷺ دبشریت نفې نشي کیدلی،یوخوله دې وجې نه چې شیخ رحمه الله پخپله دنبي علیه السلام دبشریت تصریح فرمایي،دویم دنورداصفت دنبي علیه السلام دټولومتبعینو اهل ایمان له پاره ثابتوي،ظاهره ده چې که ددې نوردبشریت سره منافات وي، نوبیابه دټولو متبعینو دبشریت نه انکار راشي،دریم ام المومنین حضرت عائشه صدیقه رضي الله عنها چې دنبي علیه السلام حالات دټولونه ښه پیژني هغه فرمایي:

**کان بشرًا من البشر،** (رواه الترمذی مشکواة ص۵۲۰)."نبي علیه السلام دانسانانونه یوانسان و."

دسوري دنه ښکاره کیدوپه باره کې دفتاوي رشیدې نه یوسوال اوځواب دلته نقلوم:

**سوال:** د رسول اللهﷺ سوری مبارك به په ځمکه پريوت او که نه؟ او کوم چې ترمذي په نوادرالاصول کې د عبدالملك بن عبدالله بن وحيدنه او هغه د ذکوان نه روايت کړی دی چې د نبيﷺ سوری نه و ،د دې حديث سند صحيح دی يا ضعيف دی يا موضوع دی؟

**جواب:** دا روايت په صحاحو کتابونو کې نشته او د نوادر د روايت بنده ته حال معلوم نه دی چې څنګه دی. نوادرالاصول د حکيم ترمذی کتاب دی د ابوعيسی ترمذی نه دی فقط والله اعلم درشيداحمد ګنګوهي عفی عنه له دې اقتباس نه معلومه شوه چې د سوري نه ښکاريدو روايت د حديثو په مشهورو کتابونو کې نشته.

د امام رباني مجدد الف ثانيؒ په حواله سره هغوی درې خبرې نقل کړې دي.

۱:نبي کريمﷺ نور دی ځکه چې هغویﷺ فرمايلي دي: "**خلقت من نور الله**" زه د الله د نور نه پيدا شوی يم. ۲:نبيؑ نور دی چې الله تعالى د حکمت او مصلحت له وجې نه د انسان په شکل کې ښکاره کړی دی. ۳:نبيؑ نور دی ځکه د هغوی مبارک سوری نه و.

د نبيؑ د نور نه د پيدا کيدو او د سوري نه ښکاريدلو تحقيق مې پورته ذکر کړی دی خو دلته دومره خبره زياتول مناسب ګڼم چې د "**خلقت من نورالله**" الفاظو سره يو حديث هم نه دی روايت شوی. د مکتوبات شريف په حاشيه باندې په تخريج کې شيخ عبدالحق محدث دهلويؒ د مدارج النبوة په حوالې سره دا روايت نقل کړی دی:

**انا من نورالله والمؤمنون من نوري**" زه د الله تعالى له نورنه يم او مومنان زما له نورنه دي" خو په دې الفاظو سره مې يو حديث هم د حديثو په ذخيره کې د نه دی تر سترګو شوی. کيدای شي چې دا د حضرت جابرؓ د حديث (چې د نشرالطيب په حواله سره تير شوی دی) روايت بالمعنا وي،په هرحال که چېرې دا روايت صحيح وي. نو د دې شرح هغه ده کومه چې مې د حضرت حکيم الامت تهانويؒ د نشرالطيب نه نقل کړې ده.

تول ښه پوهيږي چې د الله نور د اجزاء او حصونه پاك دی په دې وجه يو عقلمند ته دا توهم نشي کيدای چې د نبيؑ نور د الله پاك د نور يوه برخه ده.بيا په دې روايت کې د نبيؑ د نور نه د مومنانو د پيدايش ذکر شوی دی.که چېرې د جزئيت معنا ترې واخستل شي. نو دا به لازم شي چې تول د ايمان والا د الله د نور يوه برخه ده.د دارنګه رواياتو عارفانه تشريح کيدای شي،څنګه چې امام رباني کړې ده خو په دې باندې د عقيدې بنياد ايښودل او نبيؑ د قطعي دلايلو سره له بشريت نه ويستل هيڅکله جائزنه دي.

دويمه خبره کومه چې تاسو د حضرت مجددؒ نه نقل کړې ده اول خو هغه د هغو باريکو علومو او معارفو نه ده چې د متوسطه عقلونه نه ډېره پورته ده.

او د کومو خلکو تعلق چې د کشف سره دی او هغه حضرات چې د تزکيې، تصفيې او د باطني نور لوړو مقاماتو ته رسيدلي وي هغوی د دې د افهام او تفهيم صلاحيت لري.عام خلک په

دې باريکو علومو باندې نه پوهيږي، ددې خلکو که چېرې د شريعت له ظاهر سره څه واسطه وي، نو د هغو اکابرو په شان کې به ګستاخي وکړي، (چې د هغه مشاهده په نن زمانه کې ښه کيږي) او د کومو خلکو چې د غو اکابرو ته عقيدت وي، نو هغوی به د شريعت ظاهري احکام او قطعي دلائل شاته وغورځوي او د الحاد او زنديقيت په ګړنګو کې به ټکرې وخوري، فأن الجاهل امامفرط وامامفرِط، ځکه د اکابرو وصيت دادی چې:

نکته هاچون تيغ فولاد است تيز چون نداری تو سپر واپس ګريز

پيش اين الماس بی اسپر ميا کز بريدن تيغ رانبود حيا

چې شبها نشستم درين سيرګم که دهشت ګرفت آستينم که قم

محيط است علم ملك بر بسيط قياس تو بروی نه ګردد محيط

نه ادراك در کنه ذاتش رسد نه فکرت بغور صفاتش رسد

دريم تاسو د حضرت مجدد رحمه الله حواله نقل کولو کې د ډېر اختصار نه کار اخستی دی چې د هغه په مقصد پوهيدو کې شك پيدا کيږي، حضرت مجدد رحمه الله فرمايي: د نبي کريم ﷺ تخليق د الله تعالى په اضافي علم سره شوی دی.

ترجمه: او د اسې نظر راځي چې علم اجمالي چې د صفات اضافيه نه دې د ايو نور دی چې په جسماني پيدايش کې په ډېرو پښتونو او رحمو کې منتقل شو او د حکمتونو او مصلحتونو د غوښتنو په وجه د انسان په صورت کې ښکاره شو او په د محمد او احمد پاکو نومونو سره ياد کړل شو، صلى الله عليه وآله وسلم تسليمًا کثيرًا کثيرًا.

د حضرت امام رباني رحمه الله د اقتباس نه لاندې د بيان شوې خبرې ښکاره شوې:

۱: د نبي کريم ﷺ پيدائش د الله تعالى د علم اجمالي نه د صفت اضافيه په مرتبه کې شوی دی.

۲: دا صفت اضافيه يو نور و چې هغه ته انساني شکل او قالب ورکړل شو.

۳: انساني شکل تر ټولو ښايسته دی، له دې وجې د الله پاك د حکمت غوښتنه دا شوه، چې نبي ﷺ د انسان او بشر په شکل پيدا کړل شي، که چېرې له بشري شکل نه بهتر بل قالب وای، نو نبي ﷺ به يې کله هم په انساني شکل کې پيدا کړی نه و، له دې نه معلومه شوه چې امام رباني رحمه الله د نبي عليه السلام د بشريت نه منکر نه دی او نه د هغه نور د بشريت منافي دی چې هغه يې اثبات کړی دی. تاسو د التوسل رسالې او د تفسير کبير په حواله ليکلي دي چې ايت کريمه:

﴿ قَدْ جَآءَكُم مِّنَ ٱللَّهِ نُورٌ وَكِتَٰبٌ مُّبِينٌ ﴾ کې د نور نه د نبي ﷺ ذات مراد دی، په دې ايت کې د نور په تفسير کې درې قوله دي:

۱: دا چې له دې نه نبي عليه السلام مراد دی. ۲: دا چې له دې نه اسلام مراد دی.

۳: دا چې قران کريم ترې مراد دی.

داقول امام رازي رحمه الله په دی وجه کمزوری ښودلی دی چې معطوف اومعطوف علیه کې تغیرضروري دی خو دادلیل ډېر کمزوری دی ځکه چې په ځینې وختونوکې دیوشی له پاره ډېر صفات دعطف په طورذکرکیږي.ځکه حضرت حکیم الامت تهانوي رحمه الله په بیان القران کې هم داقول اختیار کړی دی.

په هرحال دنورنه مرادکه نبي علیه السلام وي، یااسلام وي یاقران کریم .په هرصورت کې دلته له نورنه دهدایت نورمراددی،چې دهغه ښکاره طریقه دایت ربط دی.

﴿ يَهْدِي بِهِ اللَّهُ مَنِ اتَّبَعَ رِضْوَانَهُ سُبُلَ السَّلَامِ وَيُخْرِجُهُم مِّنَ الظُّلُمَاتِ إِلَى النُّورِ بِإِذْنِهِ وَيَهْدِيهِمْ إِلَىٰ صِرَاطٍ مُّسْتَقِيمٍ ﴿١٦﴾ ﴾(المائدة: ۱۶)

"ددې په ذریعه الله تعالی داسې کسانوته چې دالله درضا غوښتونکې وي،د سلامتیا لارې ښیي (یعنې جنت ته دتلوطریقې چې دهغو خاصو عقیدواوعملو تعلیم ورکوي ځکه چې پوره سل میاشتې دبدن اودروح په جنت کې نصیب کیږي ) اودی به په خپل توفیق (اوفضل) سره (دکفر او د ګناه ) له تیاروپه سمه لاره باندې قائم ساتي.(بیان القران)

امام رازي رحمه الله فرمایي: **تسمية محمد والاسلام والقران بالنورظاهرة لان النور الظاهرهوالذى يتقوي به البصرعلى ادراك الاشياء الظاهرة والنور الباطن ايضاًهوالذى تتقوي به البصيرة على ادراك الحقائق والمعقولات.(تفسير كبير ج۱۱ص۱۸۹)**

"محمد صلی الله علیه وسلم ،اسلام اوقران ته دنورویلو وجه ښکاره ده ځکه چې دښکاره رڼا په ذریعه خوسترګې ظاهري شیانوته ګوري،همدارنګه دباطني رڼا په وجه باندې دحقائقواودعقلي شیانو ادراك کیدای شي".

علامه نسفي رحمه الله په تفسیرمدارك کې لیکي:

**اوالنورمحمد صلى الله عليه وسلم لانه يهتدى به كماسي سراجاً.(ص۳۱۶ج۱)**

"یا دنور نه مراد حضور صلی الله علیه وسلم دی ځکه چې دهغه صلی الله علیه وسلم په ذریعې سره هدایت ورکول کیږي ځنګه چې هغه صلی الله علیه وسلم ته چراغ (ډیوه) ویل شوې ده".

تقریباً هم دغه مضمون په تفسیرخازن، تفسیربیضاوي، تفسیر صاوي،تفسرروح البیان او داسې نورو تفسیرونوکې دی.

هم دې طرف په اشارې سره مالیکلي و:

"ځنګه چې نبي کریم صلی الله علیه وسلم دخپلې نوعې په اعتبارسره بشردی همدارنګه هغه صلی الله علیه وسلم دهدایت دصفت په لحاظ سره دټول انسانیت له پاره دنورمیناره ده، داهغه نوردی چې دهغه په رڼاکې انسانیت ته دالله تعالی لاره پیداکیدای شي.

اودهغه رڼا به همیشه له پاره ځلیدونکې وي.لهذا زمايه عقيده کې هغه په يو وخت کې نور هم دی اوبشرهم".
زماددي ټول بيان خلاصه دا ده چې دنبي علیه السلام بشريت په يقيني دلائلوسره ثابت دی.ځکه دهغه ﷺ له پاره دنورصفت ثابتول اودانسانيت اوبشريت له دايرې نه بې وېستل هيڅکله صحيح نه دي.څنگه چې دنبي ﷺ درسالت اونبوت عقيده ساتل لازمي ده همدارنګه دهغه دانسانيت اوبشريت عقيده هم لازمي ده.څنګه چې مادفتاوي عالمګيري په حواله دانقل کړي دي:

ومن قال لاادری ان النبي ﷺ كان انسيًا اوجنيًا يكفر كذافی الفصول العمادية (ص۳۶ ج۲) وكذا فی البحر الرائق(ص۱۳۰ ج۵)(فتاوي عالمگيری ص۲۶۳ ج۲)
" اوکوم سړی چې دا ووايي چې زه نه پوهيږم چې نبي علیه السلام انسان و يا پېرى ،نو هغه کافردی"

## د شريعت په معرفت کې په سلفو(بزرګانو) باندې اعتماد

**سوال:** شاه ولي الله محدث دهلوي رحمه الله فرمايي چې: دشريعت په معرفت کې بزرګانوباندې اعتماد پکاردی، خودحضور ﷺ دانسان کيدو په ثابتولو کې دااصول پرېښودل پکاردي اوقران کريم کې په، **قدجاءكم من الله نوروكتاب مبين**، کې دحضور ﷺ انسان کيدل نه بلکې نورکيدل ثابت شوي دي. اوحضور ﷺ پخپله باندې فرمايلي دي چې ادم علیه السلام لندې خاورې وچې زمانور پیداکړل شو. همدارنګه که حضور ﷺ انسان و، نود حضور ﷺ سورى ولې نه و؟ تفصيل سره ځواب راکړئ!

**جواب:** تاسوچې دحکيم الامت حضرت شاه ولي الله محدث دهلوي رحمه الله په حواله باندې کوم اصول نقل کړي دي چې: دشريعت په معرفت کې په مشرانوباندې اعتماد پکار دي.... الخ، دااصول بالکل صحيح دي اوزه پخپله باندې هم ددې اصولو پابنديم اودې زمانه کې هم دادايمان دحفاظت اودسلامتي لارګڼم،[۱] هم دغه وجه ده چې ماپخپل کتاب "اختلاف امت اورصراط مستقيم،، کې ځاى په ځاى داهل سنت داکابرينوحوالې ورکړي دي.
دنوراوبشر، په بحث کې ستاسوپه خيال مادنورو اکابرينو نه بېل نظر اختيارکړی دی،داخبره صحيح نه ده، بلکې ماچې څه ليکلي دي چې حضور ﷺ هم نورو اوهم انسان،هم دادقران کريم، دحضور ﷺ، دصحابه کرامو رضی الله عنهم،دتابعينو اوداهل سنت د اکابرينو عقيده

---

۱] ان الامة اجتمعت على ان يعتمدوا على السلف فى معرفة الشريعة ، فالتابعون اعتمدوا فى ذلک على الصحابة وتبع التابعين اعتمدوا على التابعين ، وهكذا كل طبقة اعتمد العلماء على من قبلهم ......الخ (عقد الجيد لشاه ولى الله ص:۳۶)

ده. قران کریم چې یوځای کې قدجاءکم من الله نور وکتاب مبین فرمایلي دي، بل ځای کې بې قل انما انا بشر مثلکم یوحی الی....الخ، هم فرمایلي دي او د کوموا کابرینو چې تاسو حوالې ورکړي دي، هغوی هم د حضور ﷺ د نور کیدو او د انسان کیدو دواړو قایل دي.
ماخولیکلي دي چې د نور او بشریه مینځ کې تضاد ګڼلو په وجه باندې دیونه منل او د بل منل غلط دي. حیرانتیاده چې د کومې غلطي باره کې مابیان کړی و. همغه ستاسو د سوال بنیاددی. دامت په اکابرینو کې دیونوم خو واخلئ چې هغوی وایي چې حضور ﷺ نور و. انسان نه و.
او بیاماچې د حضور ﷺ (له نور کیدو سره) د انسان کیدو له پاره کوم عقلي او نقلي دلیلونه وړاندې کړي وو، نو تاسو د هغو طرف ته ولې رجوع نه ده کړې. اقلا د عقائد نسفي. کوم باندې چې ټول اهل سنت متفق دي او د فتاوي عالمګیري کومې حوالې چې ورکړل شوي دي، هغو باندې غور کول پکار و، د حضور ﷺ مقدس روح که چېرې د حضرت ادم ﷺ نه مخکې پیدا شوی و، نو له دې څخه د حضور ﷺ د انسان کیدو نفې څنګه کیدای شي؟
د حضور ﷺ د بدن د سورې نه ښکاریدو روایت خو لومړی د محدثینو حضراتو په نزد باندې زیات مضبوط هم نه دی، له دې پرته د سورې نه ښکاریدو د اوجه هم کیدای شي چې حضور ﷺ باندې به د وریځې یوې ټکړې سورې کاو. یاڅنګه چې د روح سوری نه وي، همدارنګه د نورانیت د غلبې په وجه باندې د حضور ﷺ په بدن باندې د روح حکمونه جاري کیږي، عارفین حضرات د تجسد ارواح او تروح ارواح د اصطلاحاتو نه واقف دي، په هرحال یوائې د سورې نه ښکاریدو په وجه باندې دا نه لازمیږي چې حضور ﷺ انسان نه و. ام المومنین حضرت عائشې صدیقې ﷺ چې حضور ﷺ ترټولو زیات ښه پېژانده فرمایي چې:
**کان من البشر. (مشکوة شریف ص ۵۲۰)**
غرض دا چې د حضور ﷺ له نور کیدو نه انکار نه کیږي او نه ترې نه ما انکار کړی دی. خبره دا ده چې ایا د حضور ﷺ نور کیدل د حضور ﷺ د انسان کیدو منعه کوي؟ ما لیکلي دي چې نه! منعه نه کوي، بلکې څنګه چې حضور ﷺ نور دی، همدارنګه انسان هم دی[1]. که چېرې قران کریم، حدیثونو او د امت د اکابرینو په ارشاداتو کې تاسو ته زما د دې دلیل خلاف څه پیدا شو. نو ماته به د هغه په منلو کې هیڅ عذر نه وي.
نشرالطیب کې چې حضرت حکیم الامت نورالله مرقده نور د محمدي (علی صاحبها الصلوات

---

[1] والرسول انسان بعثه الله تعالى الى الخلق لتبليغ الاحكام (شرح عقائد نسفی ص:۱۶، عالمگیری ج:۲،ص: ۲۶۳ الباب التاسع فی احکام المرتدین ) تفصیل سایه آنحضرت صلی الله علیه وسلم ،کفایت المفتی ج:۱،ص: ۸۶، ۸۷ طبع دارالاشاعت

والتسلیمات، پیداکیدل لیکلي دي. هلته يې حاشيه کې ددې تشريح هم کړې دی. هغه هم ولولئ (نشرالطيب ص۵)

## نبي کريم ﷺ نوردی که بشر؟

**سوال:** څه فرمايي عالمان دين اومفتيان په دی باره کې چې زيد وايي چې نبي کريم ﷺ بشردی، دعاموانسانانوپشان په بشريت سره بلل کيږي، عمرو وايي چې دا غلطه ده بلکې دنبي ﷺ له پاره دالله په دربارکې دبشريت اونورانيت ددواړو درجه ده په دی دواړوکې کوم يو په حقه باندې دی؟

**جواب:** نبي عليه السلام دخپلې نوعې په اعتبارسره بشردی اودقران کريم په الفاظوکې "**بشر مثلکم** راغلي دي،دلاربنونکي په حيث نوردی،نبي عليه السلام انسان دی اوبشرهم انسان ته ويل کيږي نبي عليه السلام انسان منل فرض دي اودهغه دانسانيت نه انکارکفردی[1] ددې نه معلومه شوه چې که چېرې زيد دنبي عليه السلام دنورانيت قايل دی خو دهغه صلی الله عليه وسلم له بشيرت نه منکر دی، نودده خبره غلطه ده.نبي عليه السلام کامل بشردی اودهدايت دصفت په اعتبارسره کامل نوردی.

## د حاضراو ناظر مسئله اودشيخ عبدالحق محدث دهلوي رحمه الله نظر

**سوال:** السلام عليکم ورحمة الله وبرکاته!محترمه !خبره داده چې بنده په ماهنامه بينات کې ستاسو مضمونونه په پوره مينې سره لولي.کوم چې په عقيدو،اعمالو اواخلاقو کې ډير فايده ورکونکي ثابتيږي اوبنده ته ستاسوپه علمي قابليت باندې ډيرزيات باوردی،له همدې وجې يې دپيداشويو شکونودازالې له پاره تاسو انتخاب کړي يئ.اميددی چې تاسو جناب به دخپل قيمتي وخت نه څه وخت دځوابونوله پاره راکړئ اوپه محقق ډول سره به دبنده تسلي وکړئ!

۱-سوال: تاسوداختلاف امت اورصراط مستقيم په ص: ۴۰ کې دحاضراوناظرپه مسئله باندې رڼا اچولوکې فرمايلي دی:

دحضور ﷺ په باره کې داعقيده چې هغه هرځای کې موجوددی اودمخلوقاتوهريوشی دهغه په نظرکې دی،دهدايت عقل په اعتبارسره صحيح نه ده. نو دابه څنګه شرعاً صحيح وي؟ دا يواځې دالله تعالی صفت دی اودادبل شخصيت له پاره ثابتول غلط دي.

---

[1]من قال : لا ادری ان النبی صلی الله عليه وسلم انسياً او جنياً يکفر (بحرالرائق ج:۵، ص: ۱۳۰) فقالوا ابشر يهدوننا (التغابن :٦) انکروا الرسالة للبشر ولم ينکروا العبادة للحجر (تفسير نسفی ج:۳،ص: ۴۹۱ طبع بيروت)

يوې خواته مې ستاسو نظريه ولوست او بلې خواته شيخ اجل حضرت شيخ عبدالحق محدث دهلوي رحمة الله په خپله رساله ,,اقرب التوسل بالتوجه الى سيدالرسل برحاشيه اخبارالاخيار،،ص: ۱۷۰ کې فرمايي:
وباچنديك كس اختلاف وكثرت مذاهب كه درعلمايې امت ست يک کس رااختلافي نيست که حضرت محمد صلى الله عليه وسلم باحقيقت بې شائبه مجازتوهم تاوين باقى ست وبراعمال امت حاضروناظراست...
له دې عبارت نه داخبره معلوميږي چې دحضرت محدث دهلوي دزمانې پورې دحاضر او ناظر مسئله باندې دامت محمدي ديوفردهم اختلاف نه و،دشاه صاحب دزمانې نه وروسته دچا اختلافات دشاه صاحب قول باطل کولی نه شي، نورداچې په دې کې دبدواعمالو د امت لفظ دی،ددې له پار چې دامت اجابت اوامت دعوت دواړو له پاره عام شي اودابتداء نه واخله ترانتهاء پورې ټولو مخلوقاتواحوال نګاه رسالت باندې مشکف شوې وګڼل شي، نوپه دې کې کومه استحاله لازميږي؟څنګه چې شيخ رحمة الله په خپله باندې په صريح ډول فرمايي: هرچې دردنياست اززمان ادم تانفخهٔ اولى بروے صلى الله منكشف ساختندتاهمه احوال اورا ازاول تا اخرمعلوم گرويد،،،(مدارج النبوة ج:۱)
اوپه دې باره کې دطبراني حديث هم موجوددی:
**ان الله قدرفع لى الدنيا وانى انظر اليها والى ماهوكائن فيها،،**
همدغه راز شيخ رحمة الله په مدارج النبوة ج:۲ ص:۷۸۷ مطبوعه نولشکورکې فرمايي:
,,بدانكه وے صلى الله عليه وسلم مے بيندوے شنود كلام ترا زيرا كه وے متصف است به صفات الهى انست كه,,اناجليس من ذكرني,, وپيغمبرراصلى الله عليه وسلم نصيب وافرست ازين صفت،،،
نورداچې په مدارج النبوة ج:۲ ص: ۷۸۹ مطبوعه نولشکورکې ليکي:
وصيت ميكنم تراا ے بردار!بدوام ملاحظه صورت ومعنا اواګرچې باشي توبتكلف ومستحقرپس نزديک است که الفت گيردروح توبوے،وروسته حاضرايدتراوے صلى الله عليه وسلم عيانا ويابى اورا.وحديث كنى باوے وجواب دهدتراوي وحديث گويد باد وخطاب كندترا پس فائزشوي بدرجه صحابه عظام ولاحق شوي بايشان انشاءالله تعالى.
دموجوده علماء کراموفراست هم مسلم دی،خو دمقدمينوعلماوو فهم اوفراست يقيناً ډير لوړ دی،دکوموډليلونوپه وجه چې دحاضراوناظرترديدکيږي اياهغه دلائل دحضرت محدث مرحوم مخې ته موجودنه وو؟که دحاضراوناظرعقيده شرک وي، نوداسې عظيم شيخ به دې عقيدې ته متفق علمايې امت ولې ويلې؟اياټولو بزرګان په شرک کې اخته وو(نعوذبالله من ذالک)که ستاسونظريه صحيح ده. نوددې پورتنوعباراتو مطلب څه دی؟

امیدلرم چې تاسو به زما دخبرې پوره تحقیق سره کامله تشفي وکړئ.الله تعالی دې تاسو ته دخیربدله درکړئ!

## الجواب

دحاضراوناظرمسئلې په باره کې مالیکلي وچې:
دحضور ﷺ په باره کې هرچاته پته ده چې هغه ﷺ په پاکه روضه کې استراحت کوي اودټولې دنیاعاشقان دزیارت له پاره هلته حاضریږي،ددې وجې نه دحضور ﷺ په باره کې داعقیده چې حضور ﷺ په هرځای کې موجوددی اودمخلوق یویوشی هغه په نظرکې دی. دهدایت عقل په اعتبارسره هم صحیح نه ده.څنګه به شرعاً دا صحیح وي؟دایواځې دالله تعالی صفت دی اودا صفت بل شخصیت ته ثابتول غلط دي.
دحضرت اقدس شاه عبدالحق محدث دهلوي قدس سره عقیده هم داوه،څکه هغه په خپله رساله..تحصیل البرکات.. في بیان التحیات..کې(چې دکتاب المکاتیب والرسائل اته دیرشمه رساله ده)، ،السلام علیک ایها النبي ورحمة الله وبرکاته، ،لاندې لیکلي دي:
اگرگویندکه خطاب مرحاضررابود.وحضرت محمد صلی الله علیه وسلم درین مقام نه حاضراست بس توجیه این خطاب چې باشد؟
جوابش انست که چون وروداین کلمه دراصل یعنې درشب معراج بصیغه خطاب بود،دی رتغیرش نداوبرهمان اصلی گزاشتند،
ودرشرح صحیح بخاري میگویدکه صحابه درزمان حضرت محمد صلی الله علیه وسلم بصیغه خطاب میگفتندوبعداز زمان حیاتش این چین میگفتندالسلام علیکم علی النبي ورحمة الله وبرکاته،نه بلفظ خطاب، ،(تحصیل البرکات به بیان معنا التحیات ص:۱۸۹)
ترجمه: که وویل شي چې خطاب خوحاضرته کیږي اوحضور ﷺ خو دلته حاضرنه دی، نو ددې خطاب توجیه به څه وي؟
ځواب دادی چې په اصل یعنې دمعراج په شپه داکلمه دخطاب په صیغې سره وه،له دې وجې نه دا په خپل اصلي حالت پرېښودل شوه اوپه دې کې هیڅ بدلون رانه وستل شو.
اودصحیح بخاري په شرح کې لیکي: چې صحابه کرام رضوان الله علیهم اجمعین، دحضور ﷺ دزمانې پورې دخطاب په صیغې سره سلام کولو اودهغه دوفات نه وروسته به یې، ،السلام علی النبي ورحمة الله وبرکاته، ، ویل.دخطاب صیغه به یې نه استعمالوله.
اوپه مدارج النبوة باب پنجم کې دحضور ﷺ دخصائصو اوفضائلوپر مهال لیکي:
وازان جمله خصائص این رانیزذکرکرده اندکه مصلی خطاب میکندحضرت محمد صلی الله علیه وسلم بقول خود السلام علیک ایهاالنبي ورحمة الله وبرکاته خطاب نمې کندغیراورا.

اگرمرادباین اختصاص ان داشته اندکه سلام برغیرحضرت محمد صلی الله علیه وسلم بخصوص واقع نه شده است وروسته این معنا موافق است بحدیثے که ازا بن مسعودh امده است.واگرمراداین دارندکه خطاب حضرت محمد صلی الله علیه وسلم باوجودغیبت ازخصائص است نیزوجهے دارد.

ووجه این میگویندکه چون دراصل شب معراج دردوبصیغه خطاب بود که از جانب رب العزت سلام امد برحضرت رسول الله صلی الله علیه وسلم بعد ازان هم برین صیغه گزاشتند.

ودرکرمانی شرح صحیح البخاري گفته است که صحاپه بعدازفوت حضرت السلام علی النبي میگفتند.نه بصیغه خطاب.والله اعلم

ترجمه :عالمانودحضور ﷺ په خصائصوکې يوه خبره ذکرکړې ده چې لمونځ کونکی حضرت محمد صلی الله علیه وسلم ته دایهاالنبي ورحمة الله وبرکاته سره خطاب کولی شي. دحضور ﷺ نه پرته بل چاته خطاب نه شي کولی.

که دخصوصیت نه دعالمانودامراد وي چې په لمونځ کې سلام دحضور ﷺ نه پرته په خصوصیت سره دبل چاله پاره واقع شوي نه دي. نودامضمون دهغه حدیث موافق دی،کوم چې دحضرت ابن مسعود ﷺ نه روایت دی.

اوکه دعالمانومراداوي چې دغائب کیدوباوجودحضرت محمدصلی الله علیه وسلم ته خطاب کول دحضور ﷺ دخصوصیاتونه ده. نوداخبره هم يوه معقوله وجه لري اوددې وجه داده چې د معراج په شپه کې سلام دخطاب په صیغې سره و،چې دحضرت رب العزت له طرف نه حضرت محمدصلی الله علیه وسلم ته سلام وشو.له دې وجې نه روسته داصیغه برقرارو ساتل شوه.

اوپه کرماني شرح بخاري کې دي چې صحابه کراموبه دحضور ﷺ له وفات نه وروسته ،،السلام علی النبي،، ویل،د خطاب په صیغې سره به یې نه ویل،والله اعلم،(ج:۱ ص:۱۲۵)

دحضرت شیخ محدث دهلوي قدس سره له عبارتونونه خودامعلومه شوه چې هغه حضور ﷺ حاضر اوناظرنه ګڼه.بلکې په حضور ﷺ باندې دخطاب په صیغې سره دسلام توجیه به یې کوله،دویمه خبره دامعلومه شوه چې دشیخ ﷫ نه مخکې عالمانوهم دحضور ﷺ دحاضراوناظرعقیده نه لرله.ځکه هغوی به دحضور ﷺ دوفات نه وروسته په التحیات کې د،،السلام علیک ایهاالنبي،،په ځای دغائب صیغه استعمالولهاوالسلام علی النبي،،به یې ویل.

ښکاره دې وي چې شیخ ﷫ کومه خبره دکرماني شرح بخاري په حوالې سره نقل کړې ده هغه په صحیح بخاري کې دحضرت عبدالله بن مسعود ﷺ نه روایت ده،هغه فرمايي:

ځوپورې چې حضور ﷺ زموږ په مینځ کې موجودو،موږ به په التحیاتو کې ،،السلام علیک

ايهاالنبي، ،لوستلو او کله چې هغه ﷺ وفات شو، نو موږ ددې په ځای ، ،السلام على النبي، ،به ويل (صحيح بخاري ج: ۲ ص: ۹۲۲)[1]

ماپه ، ،اختلاف امت اور صراط مستقيم، ،کې دا حديث نقل کولو سره ليکلي و:

، ،دصحابه وو رضوان الله اجمعين لېږدي نه مقصد دا ښودل و، چې په التحيات کې په حضور ﷺ دخطاب دصيغې سره کوم سلام ويل کيږي هغه ددې عقيدې له وجې څخه نه دی چې حضور ﷺ په هرځای کې موجود دی او دهرکس سلام په خپله اوري، بلکې د سلام صيغه دالله تعالى دسلام حکايت دی چې حضور ﷺ ته دمعراج په شپه فرمايل شوې وه. (ص: ۴۷)

ددې تمهيدنه وروسته دشيخ رحمه الله دهغو عبارتونو وضاحت کوم، دکومو چې تاسو حواله ورکړې ده:

۱: داقرب الى التوسل، ،کوم عبارت چې تاسو نقل کړی دی په دې کې ستاسو په نسخه کې کيدای شي چې دچاپي غلطي په وجه يولفظ پاتې شوی وي، چې دهغه مطلب باندې پوهيدو کې مشکل پيداشو، زماسره د، ،المکاتيب والرسائل، ،مجتبايي نسخه ده، چې په ۱۹۹۷ کې خپره شوې وه، په دې کې دعبارت صحيح نقل موجود دی او هغه داسې دی:

، ،وباچندين اختلاف وکثرت مذاهب که درعلمائے امت است يک کس راخلافے نيست که حضرت محمد صلى الله عليه وسلم بحقيقت حيات به شائبه مجاز وتوهم تاويل دائم وباقی هست، وبراعمال امت حاضروناظر، ومرطالبان حقيقت راومتوجهان حضرت محمد رامفيض ومربی است، ، (ص: ۹۵)

ترجمه: له دومره اختلافاتو او بېرومذهبونو سره سره چې دامت په عالمانو کې موجود دي، ديو کس هم په دې کې اختلاف نشته چې حضور ﷺ په حيات حقيقي سره په کوم چې دمجاز او تاويل هيڅ شبه هم نشته دائم او باقي دی او دامت په اعمالو باندې حاضرناظر دی او دحقيقت غوښتونکو خپل طرف ته متوجه کيدونکو ته فيض رسوي او دهغوی تربيت کوي.

په دې عبارت کې زيربحث مسئلې دحاضراوناظرسره تعرض نشته، بلکې دا ذکرشوي دي چې حضرت محمد صلى الله عليه وسلم ته په پاکه روضه کې حقيقي ژوند حاصل ده او دهغه په بارګاه کې دامت اعمال وړاندې کيږي او حضور ﷺ حقيقي غوښتنکوته باطني فيض رسوي نود، ،براعمال امت حاضروناظر، ،هم هغه مطلب دی چې دعرض الاعمال په حديث کې بيان شوی دی، حضرت شيخ رحمه الله دخصائص نبوي په بيان کې ليکي:

وازان جمله انست که عرض کرده مي شود برحضرت محمد صلى الله عليه وسلم اعمال امت واستغفارمي کندمرايشان راوورايت کرده است ابن المبارک ازسعيدبن المسيب که هيچ

---

[1] ...سمعت ابن مسعود يقول: علمنى النبى صلى الله عليه وسلم... التشهد... التحيات لله والصلوات والطيبات السلام عليک ايهاالنبى.... وهو بين ظهرانينا فلما قبض قلنا: السلام على يعنى على النبى صلى الله عليه وسلم

۳۹.

روزے نیست مگرانکه عرض کرده میشود برحضرت محمد صلی الله علیه وسلم اعمال امت صبح وشام وي شاسد حضرت محمد صلی الله علیه وسلم ایشان رابسیمائے ایسان واعمال ایشان.
ترجمه: او د حضور ﷺ د خاصیتونو نه یو داهم دی چې د حضور ﷺ په بارګاه کې دامت اعمال وړاندې کیږي او هغه ﷺ د دوی له پاره استغفار کوي. ابن مبارک. له سعید بن المسیب نه روایت کوي چې هیڅ یوه ورځ بې له دېنه نه تیریږي چې دامت اعمال سحراو ماښام د حضور ﷺ په خدمت کې وړاندې نه شي او حضور ﷺ هغوی د علاماتو او د اعمالو څخه پیژني.
غرض داچې: حضور ﷺ په خپله روضه کې استراحت کوي او هلته هغه ته دامت اعمال وړاندې کیږي او هغه یې ګوري. دانه ده چې هغه په هرځای کې موجود دی او د هرکس داعمالو په خپلو سترګو باندې مشاهده کوي. ځکه چې څنګه پورته معلوم شو چې د دې خبرې نه په خپله حضرت شیخ دهلوي رحمه الله قایل و او نه له هغه مخکې اهل علم قایل وو او نه صحابه کرام و رضوان الله اجمعین دا عقیده لرله. که نه په لمونځ کې ،السلام علیک ایهاالنبي،. ویلو باندې به دهغوی شک نه وا و صحابه کرامو رضی الله اجمعین به په ځای د ،السلام علی النبي،، د غائب صیغې د ویلو ضرورت نه محسوسولو، والله الموافق.
۲: د مدارج النبوة جلد اول په حوالې سره چې کوم څه ویل شوي دي چې: دنیاله اول نه واخله تر اخره پورې په حضور ﷺ باندې منکشف کړل شوي ده او هغه ته له اول نه تر اخره پورې ټول حالات معلوم شوي دي او د طبراني کوم حدیث چې تاسو نقل کړ چې: الله تعالی زما په وړاندې دنیا وړاندې کړه، په داسې حالت کې د هغه له طرف نه څه چې په دې کې کیدونکي دي د هغو طرف ته مې کتل. له دې نه دا مراد نه دی چې د مخلوق د ذرې ذرې علم هغه ته هروخت کې کیږي، یا د مخلوق ذره ذره د هغه په وړاندې حاضر او ناظر ده. بلکې له دې نه مراد کشف او رویت دی، د دې مثال داسې وګڼئ چې تاسو یو خپل معزز میلمه باندې د کارخانې سیل کوئ، پوره کارخانه د هغه د نظر په وړاندې ده او د هغې ټول حالات هغه ته معلوم شول، د دې باوجود دا نه شي ویل کېدای چې دې معزز میلمه ته د کارخانې د هر یو شی تفصیلي علم وشواو نه دا لازمیږي چې د دې کارخانې دادنی نه ادنی پورې جزئیات د هغه په ذهن کې هروخت محفوظ پاتې کیږي. حضرت شیخ عبدالحق محدث دهلوي رحمه الله لیکي:
وازجمله معجزات باهره وے صلی الله علیه وسلم بودن اوست مطلع برغیوب، وخبردادن بانچې حادث خواهد شد از مخلوق، علم غیب اصالة مخصوص است به پروردګارتعالی وتقدس که علام الغیوب است وهرچې بزبان رسول الله صلی الله علیه وسلم وبعضے ازتابعان وے ظاهرشده بوحی یابالهام. ودرحدیث امده است والله انی لا اعلم الا ماعلمنی ربی. (مدارج النبوة ج:۱ ص:۲٤٦)
ترجمه: او د حضور په غالبه معجزو کې یو د هغه د غیب په شیانو باندې پوه کېدل دي او..

دمخلوق ته خبرورکول دي دهغوحادثاتونه چې په اينده کې به پېښيږي.علم غيب په اصل کې دپرودرگار عالم سره مخصوص دی چې علام الغيوب دی اوکه درسول اللهﷺ په ژبه مبارکه باندې ياد حضورﷺ دځينومنونکوپه ژبه باندې ظاهرشي.هغه دوحي اوالهام په ذريعه دی اوپه حديث کې راغلي دي چې:په الله تعالی قسم!ماته نه دي معلوم خويواځې هغه څه چې ماته خپل رب ښودلي دي.
حضرت شيخ رحمه الله چې په دې موقعه باندې څه فرمايلي دي دې ناکاره هم دغه څه د . .اختلاف امت اوصراط مستقيم . .نه رقم کړي و .دحضرت شيخ رحمه الله دعبارت نه دامعلومه شوه چې علم غيب بيل شی دی اودغيب په خبروباندې دوحې په ذريعه ياالهام سره خبرېدل بل شی دی،علم غيب خاصه خداوندي ده.چې په کې بل څوک شريک نشته اواطلاع علی الغيب دوحي اوالهام په ذريعه حضرات انبياء عليهم السلام اواولياء الله عظام رحمهم الله ته حاصله ده.
۳::دريم عبارت دحضورﷺ دتصوراودهغه دصورت مبارک د استحضارپه باره کې دی؟
شيخ صاحب ددې نه مخکې دا خبره بيانوي چې دحضورﷺسره دتعلق پيداکولواودهغه دمبارک ذات نه دفيض حاصلولودوه صورتونه دي،يوظاهري اودويم معنوي اودمعنوي تعلق دوه قسمونه دي اول داچې دحضورﷺ دصورت مبارک دائمي استحضاروساتل شي،(قسم اول: استحضاران صورت بديع مثال)
اوداستحضاردمختلفو طريقو ښودلوپرمهال ليکي چې:تاته کله په خوب کې دحضورﷺ زيارت نصيب شوی دی.نوهم دغه صورت مبارکه استحضارکوه.کوم چې دې په خوب کې ليدلی واوکه په خوب کې زيارت نه وي شوی نو:
ذکرکن اوراودرود بفرست بروے صلی الله عليه وسلم وباش درحال ذکرگويا حاضراست دروراندې درحالت حيات ومې بينی تو اورامتادب باجلال وتعظيم وهمت وحيا.
ترجمه:حضورﷺ يادوه اوپه حضورﷺ باندې د درود ليږلو او يادولو حالت داسې وي لکه ته چې دحضورﷺ په ژوندمبارک کې مخامخ حاضريې اوداجلال .تعظيم .همت اوحياسره هغه ته گورې!
مخکې هغه عبارت دی کوم چې تانقل کړی دی. داښولې خبرې دحضورﷺ سره معنوي تعلق پيداکولواودحضورﷺصورت مبارک په ذهن کې داستحضارساتلوپه باره کې دي.په خپله سوچ وکړئ چې زموږ دزيربحث مسئلې حاضراوناظرسره ددې څه تعلق دی؟
۴:همدارنگه ستاسو له لوري نقل شوی اخري عبارت دزيربحث مسئلې سره هيڅ تعلق نه لري. ځکه چې په خپله په دغه عبارت کې موجوددي...ددوام ملاحظه صورت . .په ذريعې سره دروح نبويﷺ سره دتعلق پيداکولوتدبيرښودل شوی دی.چې دهغه حاصل هم مراقبه اواستحضاردی اوددې دوام اواستحضارنتيجه دابيان شوې ده چې:پس حاضراست تراوے

صلی الله علیه وسلم عیانا ..یعنې دکشف په ذریعې دحضرت محمدصلی الله علیه وسلم زیارت کیدل.
ځنګه چې په خوب کې دحضور ﷺ زیارت کیږي همدارنګه ځینو اکابروته په بیداري کې هم دهغه زیارت کیږي،(اوشیخ رحمه الله هم ددې دولت دحاصولوتدبیرښیي)خودې سره دانه لازمیږي چې حضور ﷺ دې حاضراوناظروګڼل شي،یاداچې حضور ﷺ دخپلې روضې مبارکې نه خارج ته تشریف راوړي،بلکې دخوب په شان په بیداري کې دحضور ﷺ صورت متمثل کیدای شي، شیخ رحمه الله په ،،مدارج النبوة،،(قسم اول باب پنجم)په دې مسئله باندې اوږدبحث کړی دی او په اخر کې فرمايي:
وهمچناکه جائزاست که درمنام جوهر شریف حضرت محمد صلی الله علیه وسلم متصورومتمثل گرددبے شوب شیطان،دریقطه نیزحاصل گرددوانچې نائم درنوم مې بیند مستیقظ دریقظه به نیند ،،،،وتمثیل ملکونی بصورت ناسوتی امرے مقرراست،واین مستلزم نیست که حضرت محمد علیه السلام ازقبربرامده باشد.
بالجمله دیدن حضرت محمد صلی الله علیه وسلم بعدازموت مثال است،چنانچې درنوم مرئی شوددریقظه نیزمې نماید .وان شخص شریف که درمدینه درقبراسوده وحی است همان متمثل میگرددودریک ان متصوربصورمتعدده،عوام رادرمنام مې نمایدوخواص رادریقظه.
ترجمه:ځنګه چې داجائزدي چې په خوب کې دشیطاني تمثیل دلیدو نه پرته دحضرت محمد ﷺ ذات شریف متصوراومتمثل شي،همدارنګه دبیداري په حالت کې هم داممکن دی اوکوم شی چې ویده کس په خوب کې ویني بیداردې هغه په بیداري کې وویني اوملکوتي شی په بیدار اووينې شکل کې متمثل کيدل يومقررامردی اوله دې سره دانه لازمیږي چې حضرت محمد ﷺ بنفس نفیس دروضه اطهرنه خارج تشریف راوړي.
خلاصه داده چې حضرت محمد ﷺ دوفات نه وروسته لیدل دمثال په صورت کې کیږي،هغه مثال ځنګه چې په خوب کې په نظرراځي،په بیداري کې هم په نظرراتلای شي اوهغه ذات اقدس چې په مدینه طیبه کې مستراح اوژوندی دی، هغه په مثال متمثل شي اوپه هران کې په ګڼوصورتونوکې متمثل کیږي،عواموته په خوب په نظرراځي اوخواصوته په بیداري کې هم.
دشیخ رحمه الله ددې عبارت نه واضح کیږي چې په خوب یابیداري کې دحضرت محمد ﷺ زیارت دتمثیل په صورت کې وي، دانه چې حضور ﷺ په خپله دقبرمبارک نه خارج ته تشریف راوړي اوکتونکي ته په خپله ورځي،خلاصه داده چې دحاضروناظرمسئله کې دشیخ رحمه الله هغه عقیده ده چې مادرته لیکلې وه،دشیخ رحمه الله هغه عبارتونه کوم چې تاسونقل کړي دي ددې مسئلې سره هیڅ تعلق نه لري.

۵:شیخ نورالله مرقده په خپلو کتابونو کې دځینې عارفانو په حوالې سره لیکلي دي چې حقیقت محمدي ﷺ په ټولو مخلوق کې جاري دی.د ..السلام علیک ایهاالنبي..بحث چې دمدارج النبوة په کومو پورتنیو عبارتونو کې تیرشو دهغه سره متصل لیکي.

..ودربعضے کلام بعضے عرفا واقع شده که خطاب ازمصلی بملاحظه شهود روح مقدس حضرت محمد وسریان وے درزواری موجودات خصوصاً درارواح مصلیین است وبالجمله درین حالت ازشهودوجودحضور ازحضرت محمد غافل وداهل بنایدبود.بامیددرودفیوض ازروح پرفتوح وے صلی الله علیه وسلم.(مدارج النبوة ج:۱ ص:۱۲۵)

هم دغه مضمون تحصل البرکات. لمعات او اشعة اللمعات هم ذکرشوې دي.

له دې نه ځینو حضراتو ته داوهم وشو چې حضرت شیخ رحمه الله دحضرت محمد ﷺ دحاضر و ناظر کیدو عقیده لري.حالانکه.حقیقت محمدیه.حقیقت کعبه اوحقیقت قران د حضراتو عارفینو خاص اصطلاحات دي.په کومو پوهیدل چې دعام خلکو دعقل نه لوړ دي. د حضراتو عارفینوحقائق او معارف په خپل ځای باندې حق دي، خوهغه دخپلې پوهې په پیمانه کې اچول اوپه دې باندې دعقیدو بنیاداینبودل بې انصافي ده.

## د حضرت آدم علیه السلام تقریبااوو زره کاله تیرشوي

**سوال:** وړاندې ورځوکې په اخبارکې دانسان دکوپړۍ تصویر چاپ شوي و اولیکلي یې و چې دا کوپړۍ تقریبًا دشپاړس لکه کالو پخوانۍ ده. دامې چې ولوستل، نوحیران شوم ځکه چې دټولونه اول انسان حضرت ادم علیه السلام و. دهغه به زیات نه زیات په ځمکه باندې دراتلو لس زره کاله تیرشوي وي، ددې نه مخکې د انسان په دې ځمکه باندې وجودنه و، نوددې کوپړۍ په باره کې دسانس دانانو داخیال چې داشپاړس لکه کاله پخوانۍ ده، څومره حده پورې صحیح دی؟ اوداهم وفرمایئ چې دحضرت ادم علیه السلام په دې ځمکه باندې دراتلو تقریبًا څومره کلونه شوي دي.

**جواب:** دمورخینو داندازې مطابق دحضرت ادم علیه السلام تقریبًا اووه زره کاله تیرشوي دي[۱]. د ساینس دانانو دا دعوه چې ددومره لکه کالو پخوانۍ کوپړۍ پیدا شوه تشې فرضي اندازې دي.

---

۱] عن عکرمة قال : کان بین آدم ونوح عشرة قرون کلهم علی الاسلام قال : اخبرنا محمد بن عمر بن واقد الاسلمی عن غیرواحد من اهل العلم قالوا: کان بین آدم ونوح عشرة قرون ، والقرن مائة سنة ، وبین نوح وابراهیم عشرة قرون ، والقرن مائة سنة، وبین ابراهیم وموسی بن عمران عشرة قرون والقرن مائة سنة قال ........ عن ابن عباس رضی الله عنهما قال : کان بین موسی بن عمران وعیسی بن مریم الف سنة وتسعمائة سنة ولم تکن بینهما فترة وانه ارسل بینهما الف نبی من بنی اسرائیل سوی [بقیه حاشیه په راروانه صفحه...

## حضرت آدم علیہ السلام ته دفرشتو سجده کول

**سوال:** حضرت آدم علیہ السلام ته فرشتو کومه سجده کړې وه؟

**جواب:** په دې کې دوه قوله دي.

۱: داچې داسجده ادم علیہ السلام ته دتعظیم په طوروه.

۲: دا چې الله تعالی ته وه اوداَدم علیہ السلام حیثیت دهغوی له پاره داسې و څنګه چې زموږ له پاره دقبلې شریفې حیثیت دی.[۱]

## ایا انسان د حضرت آدم علیہ السلام دغلطې پیداوار دی؟

**سوال:** آدم علیہ السلام دغلطې دسزا له وجې جنت نه وایستل شواود انسانیت ابتداء اوشوه. نوایادا دده دغلطې پیداوار وګڼل شي؟

یاادم علیہ السلام داغلطي دالله پاك مصلحت وګڼل شي؟که چېرې دادم علیہ السلام په دې غلطئ کې دالله دتعالی مصلحت و،نوبیاخوبه د انسان په عملونوکې هم دالله تعالی مصلحت شامل وي؟ که چېرې داسې ده، نوبیاداعمالواوافعالو ذمه وار ولې بنده ده؟

**جواب:** دحضرت ادم علیہ السلام نه چې کومه خطاشوې وه هغه معاف شوې ده[۲].دنیاته راليږل دسزاپه طورنه و بلکې دخليفة الله په حيث و.[۳]

## ایا د حضرت آدم علیہ السلام په نسل کې جینکی هم وې؟

**سوال:** دحضرت ادم علیہ السلام نسل څنګه شروع شو ؟یعنې دادم علیہ السلام له پاره الله تعالی حضرت حوا پیدا کړه، دحضرت ادم علیہ السلام په اولاد کې درې نومونه دذکرقابل دي اودادرې واړه

---

....بقیه د تیر مخ]..من ارسل غیرهم وکان بین میلاد عیسی والنبی علیه السلام خمسمائة سنة وتسع وستون سنة (الطبقات الکبری لابن سعد: ذکر القرون والسنین التی بین آدم ومحمد علیهما الصلوة والسلام ج:۱،ص: ۵۳ طبع بیروت)

۱] واذ قلنا للملائکة اسجدوا .......الخ فکانت الطاعة لله والسجدة لآدم ...... وقال بعضهم : بل کانت السجدة لله وآدم قبلة فیها (تفسیر ابن کثیر ج:۱،ص: ۳۱۲ طبع رشیدیه )

۲] قال الله تعالی: وَعَصٰي اٰدَمُ رَبَّه فَغَوٰي ثُمَّ اجْتَبٰهُ رَبُّه فَتَابَ عَلَيه وَهَدٰي (طه: ۱۲۱، ۱۲۲)

۳] واذ قال ربک للملائکة انی جاعل فی الارض خلیفة (البقرة :۳۰) ظاهرُ الآية يَدُلُ على أنَّهُ تعالى إنَّمَا أخرج آدَمَ وحَوَّاءَ من الجنة ، عُقُوبَة لهما على تلك الزَّلَة ، وظاهرُ قوله تعالى : { إنِّي جَاعِلٌ فِي الأرض خَلِيفَةً } [ البقرة : ۳۰ يَدُلُ على أنَّهُ تعالى خلقهما لخلافة الأرض ، فأنْزَلَهُمَا من الجَنَّة إلى الأرْضِ لهذا المقصودِ ، فكيف الجمع بين الوَجْهَيْنِ؟ وجوابُهُ : انه ربما قِيل حصل لمجموع الأمْرَيْن والله اعلم،(التفسیر الکبیر ج:۱۴،ص: ۵۳ طبع دار احیاء التراث العربی،بیروت)

نومونه دهلکانودي. ۱: هابیل. ۲: قابیل. ۳: شیث.
آخرددې درې وارو ودونه به هم شوي وي؟ له چا سره؟ هرکله چې په یو تاریخ کې هم دادم علیه السلام دلونو ذکرنه دی راغلی، تاسوماته دابیان کړئ چې دهابیل.قابیل او دشیت نه نسل څنګه پیداشو؟ ،ماد ډېرو عالمانونه پوښتنه وکړه.خو ماته دهغوی په ځواب تسلی ونه شوه او ډېرو عالمانو غیرشرعي ځواب راکړو.

**جواب:** دحضرت آدم علیه السلام په کورکې به دیوې خیټې نه دوه بچی غبرګوني پیداکیدل اوهغه به پخپل مینځ کې ورور او خور شمارېدل او د دویمې خیټې نه پیداکیدونکو اولادو له پاره به دهغوی حکم دتره داولاد حکم لاره په دې وجه دیوې خیټې نه پیداکیدونکي هلك اوانجلۍ نکاح به د دویمې خیټې له هلک او انجلۍ سره کیدله. دهابیل اوقابیل قصه هم په دې سلسله کې راغلې ده چې قابیل دخپلې غبرګونې خورسره نکاح کول غوښتل چې هغه په اصل کې دهابیل بنځه جوړیدله.[۱]

دجینکونومونه عام طورسره نه ذکرکیږي.دهابیل اودقابیل ذکرهم ددې واقعې له وجې نه راغلی دی.

## د حضرت آدم علیه السلام اود هغه داولاد باره کې سوالونه

**سوال:** ویل کیږي چې موږ ټول دحضرت ادم علیه السلام اوبي بي حوا اولادیو. دې باره کې دلاندې سوالونوځوابونه معلومول غواړم:

**سوال:** دحضرت ادم علیه السلام اوبی بی حوا لورهم وه؟

**جواب:** هو!لونه یې هم وې.[۲]

**سوال:** که چېرې دهغوی لوروه؟ نوددې مطلب دادی چې دهغو دادم علیه السلام له زامنوسره ودونه

---

۱] أن الله تعالى قد شرع لآدم، عليه السلام، أن يزوج بناته من بنيه لضرورة الحال، ولكن قالوا: كان يُولَد له في كل بطنٍ ذكر وأنثى، فكان يزوج أنثى هذا البطن لذكر البطن الآخر، وكانت أخت هابيل دَميمةً، وأخت قابيل وضيئةً، فأراد أن يستأثر بها على أخيه، فأبى آدم ذلك إلا أن يقربا قربانًا، فمن تقبل منه فهي له، فقربا فَتُقُبِّل من.هابيل ولم يتَقَبَّل من قابيل، فكان من أمرهما ما قص الله في كتابه (تفسير ابن كثير ج:۲،ص:۵۱۷ سورة المائدة آيت ۲۷ تا ۳۱ طبع رشيديه)

۲] أن الله تعالى قد شرع لآدم، عليه السلام، أن يزوج بناته من بنيه لضرورة الحال، ولكن قالوا: كان يُولَد له في كل بطنٍ ذكر وأنثى، فكان يزوج أنثى هذا البطن لذكر البطن الآخر، وكانت أخت هابيل دَميمةً، وأخت قابيل وضيئةً، فأراد أن يستأثر بها على أخيه، فأبى آدم ذلك إلا أن يقربا قربانًا، فمن تقبل منه فهي له،.فقربا فَتُقُبِّل من هابيل ولم يتَقَبَّل من قابيل، فكان من أمرهما ما قص الله في كتابه (تفسير ابن كثير ج:۲،ص:۵۱۷ سورة المائدة آيت ۲۷ تا ۳۱ طبع رشيديه)

شوي دي، که داسې دي. نو ایا ددې مطلب دا نه دی چې موږ ټول انسانان حرامیان یو؟

**جواب:** دحضرت ادم علیه السلام دمېرمنې بي بي حوا به دیوې خېټې نه دوه بچي کېدل. یو هلک اویوه انجلۍ، په یوځای دپیدا شوي هلک اوانجلۍ حکم به دخپلوو رونړو خویندو په شان و اوددویم ځل خېټې نه پیداشوي ماشوم به دهغوی دتره داولاد حکم لاره. دا دحضرت ادم علیه السلام شریعت و، دیوځل پیداشوي هلک اوانجلۍ نکاح به ددویم ځل پیداشوي هلک اوانجلۍ سره کېدله[۱].

**سوال:** دادم علیه السلام دکیسې په تشریح کې دقران کریم دلاندې ایت مطلب څه دی؟

الف: او موږ انسان دخالصې خاورې نه پیداکړ.(۲۳:۱۲) یادساتئ چې دخاورې شکل (ډانچه) نه ده ویل شوې.

**جواب:** دخالصې خاورې مطلب دادی چې دځمکې له مختلف قسمه خاورې نه. دحضرت ادم علیه السلام قالب جوړ کړل شو. اوبیا هغه کې روح واچول شو.[۲]

ب: تاباندې څه وشوچې ته دالله تعالی دعزت خواهش نه کوې اوبې شکه هغه ته دمختلفو مرحلونه وروسته پیداکړی یې اوته یې له ځمکې نه پیداکړی یې. (۱۳، ۱۷:۱۷)

دلته دمختلف مرحلونه وروسته پیداکول. اودځمکې نه دپیدا کولو مطلب څه دی؟

**جواب:** دلته دعام انسانانو دپیداکولو بیان دی. چې غذاله مختلفو مرحلونونه وروسته د اوبو قطره جوړه شي، بیا دمور په خېټه کې دمختلفومرحلونه وروسته انسان پیداشي[۳].

**سوال:** دسورت اعراف دایت نمبر ۱۱ نه تر ۲۵ پورې ولولئ! لومړی دانسان د پیدا کېدو ذکردی. بیاادم علیه السلام ته دسجدې. بیا وروسته دابلیس دانکار اوچیلنج. خوچیلنج یوائې ادم علیه السلام اودهغه ښځې ته نه دی.دتثنیې صیغه نه ده استعمال شوې.بلکې دجمعې صیغه استعمال شوې ده، ددې مطلب دادې چې خلک زیات و. داسې څه وشو؟ اوهلته یوائې ادم علیه السلام اودهغه بی بی حوا علیها السلام وو. ددې نه وروسته دحضرت ادم علیه السلام اوبی بی حوا ذکرشوې دی اودهغوی له پاره دتثنیه ذکرشوی دی، خواخرکې کله چې د اهبطوا ذکردی،هلته بیادجمعې صیغه استعمال شوې ده ددې څه وجه ده؟

---

۱] پورتنئ حواله۔

۲] { وَلَقَدْ خَلَقْنَا الإنسان} اي آدم { مِن سلالة } «من» للابتداء والسلالة الخلاصة لأنها تسل من بين الكدر . وقيل : إنما سمى التراب الذي خلق آدم منه سلالة لأنه سل من كل تربة مِن طِينٍ (تفسير نسفى ج:۲،ص: ۴۶۱، تفسير ابن كثيرج:۴،ص: ۴۶۹)

۳]وقد خلقكم اطواراً (نوح : ۱۴) قيل معناه من نطفة ثم من علقة ثم من مضغة قاله ابن عباس (تفسير ابن كثير ج:۶،ص: ۳۱۵)

**جواب:** دحضرت ادم علیه السلام دپیداکولو دکیسې نه مراد د آدم علیه السلام اولادته عبرت اونصیحت ورکول دي، په دې وجه باندې دکیسې دپیل عنوان شروع کړل شوې ده، چې مونږ پیداکړل تاسو او ستاسو شکلونه موجوړکړل[۱]، اوس داخبره دحضرت ادم علیه السلام سره خاص نه وه، بلکې دهغه اولادهم دې کې شامل کړل شو، په دې وجه باندې خطاب کې دجمعې صیغه استعمال کړل شوه، بیادسجدې په حکم اودابلیس په انکاراودهغه دمردودکیدوپه ذکرکې دابلیس دا انتقامي فقره ذکر شوې ده، چې زه به هغوی گمراه کوم[۲]. دشیطان مقصدیواځې دادم علیه السلام گمراه کول نه و، بلکې دادم علیه السلام د اولادنه یې انتقام اخستل مقصدو، په دې وجه باندې دغایب له پاره دجمعې صیغه استعمال شوې ده، مخکې په ایت نمبر۲۷ کې الله تعالی ددې تشریح داسې فرمایلې ده چې اې دادم علیه السلام اولاده!چې شیطان تاسودوکه نه کړي، څنگه یې چې ستاسومور و پلارله جنت نه ویستلي وو، ددې نه صفاطورباندې معلومیږي چې دشیطان انتقامي کاردادم علیه السلام اولادسره دی[۳].

او اهبطوا کې دجمعې دصیغې داستعمال وجه داده چې دحضرت ادم اوحواعلیهماالسلام نه پرته شیطان هم خطاب کې شامل دی.[۴]

له دې نه پرته دتثنیې له پاره دجمعې خطاب هم په عامه توگه باندې استعمالیږي[۵]اوپه دې وجه هم دجمعې خطاب کیدای شي، چې دادم او حواعلیهماالسلام سره دهغوی اولادهم خطاب کې شامل شوي وي.[۶]

**سوال:** شروع کې دبشرذکرشوی دی، اودواحد غائب ضمیردی. خو کله چې ابلیس چیلنج

---

۱]قال تعالی : ولقد خلقناكم ثم صورناكم (الاعراف: ۱۱)

۲]قَالَ فَبِمَا أَغْوَيْتَنِي لَأَقْعُدَنَّ لَهُمْ صِرَاطَكَ الْمُسْتَقِيمَ(الاعراف:۱۶) قال فبعزتک لاغوینهم اجمعین (ص:۸۲)

۳]أنَّ المَقْصُود من ذكر قَصَص الأنبِيَاء عليهم الصَّلاةُ والسَّلامُ حصولُ العِبْرَة لمن يَسْمَعُهَا ، فكانه تعالى لما ذَكَرَ قصَّة آدم ، وبيَّن فيها شدَّة عداوة الشَّيْطان « كما أخْرَجَ أبَوَيْكُم مِن الجَنَّةِ » ........الخ ( التفسير الكبير ج:۱٤،ص: ٥۳)

٤] اعلم ان هذا الذى تقدم وذكره هو آدم وحواء وابليس واذا كان كذلک فقوله اهبطوا يجب ان يتناول هؤلاء الثلاثة (التفسير الكبير ج:۱٤،ص: ٥۰)

٥]وقلنا اهبطوا بعضكم لبعض عدوّ....والخامس : إلى آدم وحواء وذريتهما ، قاله الفراء . والسادس : إلى آدم وحواء فحسب ، ويكون لفظ الجمع واقعاً على التثنية ، كقوله { وكنا لحكمهم شاهدين } [ الأنبياء : ۷۸ ] ذكره ابن الأنباري.(زاد المسير فی علم التفسير ج:۱،ص: ٦۸)

٦]وقلنا اهبطوا " حذفت الالف من " اهبطوا " والخطاب لآدم وحواء والحية والشيطان، في قول ابن عباس.وقال الحسن: آدم وحواء والوسوسة.وقال مجاهد والحسن أيضا: بنو آدم وبنو إبليس(تفسير القرطبی ج:۱،ص: ۳۱۹)

ورکوي، نو د جمعې غائب ضميرونه شروع شي د دې څه وجه ده؟

**جواب:** پورته مې عرض وکړ چې د شيطان د انتقام اصلي نښه دادم عليه السلام اولاد دی. او د شيطان له دې چيلنج نه دادام عليه السلام اولادته عبرت ورکول مقصد دي.

**سوال:** که حضرت ادم نبي و ،نو د نبي نه خطا څنګه وشوه؟

**جواب:** حضرت ادم عليه السلام پرته له شکه نبي و. په ځمکه باندې دالله تعالى خليفه و. دهغه په زمانه کې دهغه په ذريعه باندې دالله تعالى حکمونه نازليدل. پاتې شوه دهغوى خطا. ددې باره کې قران کريم پخپله باندې فرمايلي دي. چې دادم نه هيرشو[1]. او هيريدل دانسان خاصيت دى. دادنبوت اوعصمت خلاف نه دی. تاسوته به پته وي که څېرې روژه دارپه هيرې سره څه وخوري نو دهغه روژه نه ماتيږي.

## د حضرت داوٗد عليه السلام قوم او زبور

**سوال:** يهوديان ، عيسايان اومسلمان قومونه خوپه دنيا کې موجود دي،ايادحضرت داود عليه السلام قوم هم په دنيا کې موجود دی که موجود دوی. نوچرته دي؟ اوزبور چې په حضرت داود عليه السلام باندې نازل شوی کتاب ،هغه هم موندل کيږي اوکه نه؟که وي. نوچرته دی؟

**جواب:** حضرت داود عليه السلام دبنی اسرايلو په نبيانوکې شمېرل کيږي، هغه د تورات د شريعت متبع و ،ځکه دهغه وخت بنی اسرايل دهغه قوم وو[2]،دموجوده بايبل قديم عهدنامه کې يوکتاب زبور دی چې هغه يهوديان په داود عليه السلام باندې نازل شوی مني.

## حضرت يحيى عليه السلام واده نه وکړی

**سوال:** مادايف اے داسلامياتو په کتاب کې لوستي دي چې حضرت يحيى عليه السلام واده کړی و او د"جنګ" دماشومانو په صفحه کې ليکل شوي دي چې حضرت يحيى عليه السلام واده نه وکړی،ايا دا رښتياده چې حضرت يحيى عليه السلام واده نه وکړی؟

**جواب:** هو!حضرت يحيى او حضرت عيسى عليه السلام دواړو پيغمبرانو نکاح نه وه کړې،حضرت عيسى عليه السلام خوبه چې کله قيامت ته نږدې نازل شي. نونکاح به هم کوي اواولادبه يې هم وي،څنګه چې په حديث شريف کې راغلي دي[3].يوازې حضرت يحيى عليه السلام داسې و چې هغه

---

[1] ولقد عهدنا الى آدم فنسي ولم نجد له عزماً (طه :۱۱۵) فَنَسِيَ العهد أي النهي والأنبياء عليهم السلام يؤاخذون بالنسيان الذي لو تكلفوا لحفظوه(تفسير نسفي ج:۲،ص: ۳۸۶)

[2] لُعِنَ الَّذِينَ كَفَرُوْا مِنْ بَنِي اِسْرَاءِيلَ علي لِسَانِ دَاوُدَ وَعِيسَي ابْنِ مَرْيَمَ ذٰلِكَ بِمَاعَصَوْاوَّكَانُوْايَعْتَدُوْنَ(المائدة ۷۸)

[3] عن عبدالله بن عمرو قال : قال رسول الله صلى الله عليه وسلم : ينزل عيسى بن مريم الى الارض فيتزوج ويولد له ......الخ (مشكوة ص: ۴۸۰، باب نزول عيسى عليه السلام)

واده نه و کړی په دی وجه قران کریم کې هغه ته "حصور" فرمایل شوي دي[۱]. که چېرې ستاسو په اسلامیات کې د حضرت یحیی علیه السلام د واده خبره لیکل شوې وي، نو غلطه ده.

**سوال:** که چېرې واده یې نه وي کړی، نو ددې ذکر په قران مجید کې ولې راغلی دی؟

**جواب:** په قران مجید کې د هغه د واده نه کولو ذکر راغلی دی د واده کولو نه دی راغلی.[۲]

## د حضرت یونس علیه السلام له واقعې نه عبرت

**سوال:** د روزنامه "جنګ"، کراچی د جمعې دورځې د ۱۰ جون ۱۹۹۵ء په اخبار کې تاسو د کراچی المیه او ددې حل، په عنوان باندې یو مضمون لیکلی و، له دهغه نه ستاسو د درد او د زړه د خفګان پته لګېده. تاسو د بنګله دیش د بېلیدو د واقعې ذکر هم کړی دی او د کراچی په حالاتو کې موهم د غیر ملکي لاسونو نه عوام خبر کړل. له دې پرته د کراچی د فساداتو ختمولو له پاره تاسو ځېنې او و تجویزونه هم وړاندې کړل او د امن او سکون او محبت له پاره مو د الله تعالی په دربار کې دعا هم وکړه، ستاسو دا دعا دې الله تعالی قبوله کړي او تاسو ته دې د خیر جزا درکړي، امین. تاسو دې مضمون د حضرت یونس علیه السلام او د هغه د قوم حواله هم ورکړې وه. د یونس علیه السلام قوم چې څنګه په منت او زارۍ باندې له الله تعالی نه دعاوې غوښتله او الله تعالی هغوی باندې خپل رحم وکړ او له هغوی نه یې عذاب لرې کړ. همدا رنګه موږ د کراچی او سیدونکي خلک هم الله تعالی ته دعا وکړو چې الله تعالی موږ نه خپل عذاب پورته کړي او د امن او سکون چاپېریال جوړ شي، امین. تاسو د یونس علیه السلام او د هغه د قوم باره کې د معارف القران ج ۴ ص ۵۷۵ عبارت هم وړاندې کړی و. هلته مو یو ځای کې لیکلي دي "حضرت یونس علیه السلام د الله تعالی په حکم باندې د هغه کلی نه ووت.". قران کریم کې د حضرت یونس علیه السلام ذکر په شپږ ځایونو کې کړی دی: ۱. سورت النساء ۲. سورت انعام ۳. سورت یونس ۴، سورت انبیاء ۵. سورت الصافات ۷. سورت القلم کې. د حکیم الامت حضرت مولانا اشرف علی تهانوي رحمه الله ترجمې وړاندې کوم:

د سورت انبیاء په ۷۷ او ۸۷ نمبر ایتونو کې دی:

"د ماهي والا پیغمبر (حضرت یونس علیه السلام) یاد کړئ کله چې هغه (د خپل قوم) نه خفه کیدو سره ولاړ او هغوی وګڼل چې موږ په هغه باندې (د هغه د تللو په وجه) څه نیول نه کوو. هغوی په

---

۱] فَنَادَتْهُ الْمَلٰٓئِكَةُ وَهُوَ قَآئِمٌ يُّصَلِّي فِي الْمِحْرَابِ اَنَّ اللّٰهَ يُبَشِّرُكَ بِيَحْيٰي مُصَدِّقًا بِكَلِمَةٍ مِّنَ اللّٰهِ وَسَيِّدًا وَّحَصُوْرًا وَّنَبِيًّا مِّنَ الصّٰلِحِيْنَ (آل عمران: ۳۹) وفی تفسیر روح المعانی: (وحصورا) عطف علی ماقبله ومعناه الذی لا یاتی النساء مع القدرة علی ذلک ...... والاشارة الی عدم انتفاعه علیه السلام بماعنده لعدم میله للنکاح لما انه فی شغل شاغل عن ذلک (روح المعانی ج:۳،ص: ۱۴۸، تفسیر ابن کثیر ج:۲،ص: ۳۵)

۲] د پورته حوالی په شان_

تیارو کې چغې وهل شروع کړل چې ستانه پرته بل څوک دعبادت لائق نشته، ته دټولونقصانونه پاک یې، زه بې شکه ملامت یم. موږ دهغه دعاقبوله کړه اوهغه ته موله تکلیف نه خلاصون ورکړاوموږهمدارنګه نوروایمان لرونک ته هم دعذاب اوتکلیف نه خلاصون ورکوو.

دسورت الصافات په ۱۳۹ او ۱۴۰ نمبرایتونوکې دي:

"بې شکه یونس علیه السلام هم پیغمبرانوکې و، کله چې دتېښتې پرمهال ډکې کشتۍ ته ورسید. بیا یونس علیه السلام په قرعه اندازۍ کې شریک شواوهم دی ملزم وګرځید. ماهي (پوره اوثابت) تیرکړ، اوخپل ځان یې ملامته کړ، که چېرې هغه دغه وخت کې (تسبیح کونکی) نه وی نو تر قیامت پورې به ددماهي په خیټه کې و.

سورت القلم ایت نمبر ۴۸ نه ۵۰ پورې:

,,دخپل رب په دې تجویزباندې صبروکړئ اوبې صبرۍ کې دکب (ماهي) خیټې ته تلونکي پیغمبرحضرت یونس (علیه السلام) په شان مه کیږئ،،

زمامقصددحضرت یونس علیه السلام اودهغه دقوم باره کې ټول واقعات بیانول نه دي، یواځې داویل غواړم چې دپورته بیان شوي قراني ایتونونه دانه ثابتیږي چې حضرت یونس علیه السلام دالله تعالی په حکم باندې دشپې له هغه کلی نه وتلی و، بلکې ددې خلاف دا ثابتیږي چې هغه دالله تعالی له اجازې پرته وتلی واودهغه ددې لغزش په وجه باندې الله تعالی هغه ونیو، دحضرت یونس علیه السلام واقعه ډیره زیاته مشهوره ده اوهغه چې کومه دعاغوښتې وه دهغې اثرمعلوم دی. دمصیبت په وخت کې موږ دهغې دعا ورد کوواودهغې په ذریعه باندې دالله تعالی نه مدد غواړو، دحیرانتیا خبره ده چې مفتي اعظم حضرت مولانامحمد شفیع رحمه الله داځنګه ولیکل چې حضرت یونس علیه السلام دالله تعالی په حکم باندې هغه شپه دکلی نه وتلی و؟

**جواب:** حضرت مفتي صاحب رحمه الله په صفحه نمبر ۵۷۳ باندې دا بحث مدلل لیکلی دی. هغه ولولئ، خلاصه داده چې دوه ځایونه دي، یودحضرت یونس علیه السلام دخپل ښارنینوي نه وتل. داخودالله تعالی په حکم باندې شوي و، ځکه چې مقررشوي اصول دي چې کله په یوقوم باندې دهلاکت یادعذاب وړاندېن ګويي کیږي، نونبي اودهغه ملګرونه دهغه ځای نه دهجرت کولوحکم ورکول کیږي، کله چې حضرت یونس علیه السلام خپل قوم ته په دریوورځوکې دعذاب راتلوباره کې خبر ورکړ، نوهغه وخت کې به حضرت یونس ته علیه السلام هم دهغه ځای پرېښودلوحکم شوی وي.

دویم مقام دادی کله چې دحضرت یونس علیه السلام دکلي نه تروتلو وروسته په کلی والوباندې دعذاب اثرات شروع شول نوهغوی ټولوایمان راوړاودهغوی دتوبې اودایمان په وجه باندې الله تعالی دهغوی نه عذاب لرې کړ، دلته چې کله حضرت یونس علیه السلام ته پته ولګېده چې

ددريوورځوتيريدوباوجودپه قوم باندې عذاب نازل نه شو، خويونس عليه السلام ته ددې وجه معلومه نه شوه. دهغې په وجه باندې هغه پريشانه شو. اودايې وګڼل که چېرې هغه بېرته کلي ته ولاړنوقوم به هغه ته دروغژن وايي. دغه مهال هغه دې خبرې ته پام ونه کړ چې اوس ورته دالله تعالى دحکم اودوحې انتظارکول پکاردي، ددې په ځای هغه په خپل اجتهاد باندې چېرته بل ځای ته دتلو اراده وکړه، اوکيدای شي دافکر هم ورسره پيداشوی وي چې اوس کوم ځای کې دی موجوددی، قوم به يې پيداکړي اوهغه ته به دروغژن ويلوسره تکليف ورسوي، لږغوروکړئ چې يونبي په دريو ورځوکي دالله تعالى دعذاب دراتلوخبر ورکړي. اوهغه خبر هم دالله تعالى په حکم باندې وي، اوبياهغه خبره پوره نه شي اوداصل حقيقت علم هم ورته نه وي، نوهغه باندې به څه تيرشوي وي؟ دداسې پريشاني په حالت کې چېرته بل طرف ته دتلواراده کول هم څه ناممکنه خبره نه وه. دادهغه اجتهادي خطايي وه، چې دهغې په وجه باندې ورته وويل شول چې دالله تعالى له حکم نه پرته يې دسفراراده ولې وکړه؟ بياچې کله دکشتۍ واقعه وشوه نوهغه وخت کې هغه ته احساس وشو اودالله تعالى په دربارکې يې ښښنه وغوښتله. دکومواپتونوچې تاسوحواله ورکړې ده، هغه هم ددې دويم مقام په باره کې دي، مفتي صاحب رحمه الله چې دلومړي مقام باره کې څه ليکلي دي، هغه ددې خلاف نه دي.

## د حضرت هارون عليه السلام د قول تشريح

**سوال:** يومولوي صاحب په جومات کې دحضرت موسى او حضرت هارون عليه السلام واقعه بيانوله چې دحضرت موسى عليه السلام دعاقبوله شوه اوحضرت هارون عليه السلام پيغمبر شو.له دې وروسته حضرت موسى عليه السلام دالله تعالى ملاقات ته ولاړ، نوسامري يوخوسی جوړ کړ او هغه يې بنی اسرائيلو ته وړاندې کړ چې دا خدای دی اوس په بنی اسرائيلوکې دوه ډلې پيدا شوې، يوه خو داسې وه چې هغوی خوسی خدای مانه او دويمې ډلې به يې عبادت نه کاوو، حضرت هارون عليه السلام هغوی ددې نه منع نه شول کړی اوچې کله حضرت موسى عليه السلام بېرته راغی، نو حضرت هارون عليه السلام ته غوسه شوچې تاددوی ولې نه منع کول ،حضرت هارون عليه السلام ورته وويل: ترجمه: اې زما دمور زويه! مادسراوږيرې نه مه نيسه' زه ويريدم چې ته به ووايې چې تاپه بنی اسرائيلو کې بې اتفاقي پيدا کړه اوتا اوزما خبره دې ونه منله."

مولوي صاحب له دې نه وروسته خلکوته مخاطب شو او ويې ويل چې تاسوولیدل چې تفرقه څومره بدشی دی چې يوپيغمبرموقت وخت له پاره شرك قبول کړ خو تفرقه يې قبوله نه کړه.اياد مولوي صاحب دا تشريح صحيح ده؟

**جواب:** مولوي صاحب دحضرت هارون عليه السلام د ارشاد صحيح معنانه ده پيژندلې،ځکه يې نتيجه هم صحيح وانه خستله.دحضرت هارون عليه السلام توقف کول او دخوسي دعبادت کونکو

خلاف څه اقدام نه کول د حضرت موسی علیه السلام د انتظار له وجې و. موسی علیه السلام د تللو په وخت کې هغه ته نصیحت کړی و، چې قوم متفق ساته او دداسې خبرې نه ځان ساته چې قوم کې پرې بې اتفاقي پیدا کیږي. حضرت هارون علیه السلام امید لاره چې د حضرت موسی علیه السلام له راتلو وروسته به دقوم اصلاح وشي او که چېرې دهغه په غیرحاضري کې دقوم سره دقتل وقتال یا د قطع تعلق اقدام وشوي. نو داسې نه چې دقوم اصلاح ناممکن شي ځکه چې هغو خلکو هم ویلي و چې موږه د موسی علیه السلام دترراتلو پورې له دې کارڅخه نه ایساریږو ځکه د حضرت موسی علیه السلام راتلوپورې هارون علیه السلام دهغو خلکو خلاف څه اقدام کول مناسب ونه ګڼل. بلکې یواځې په زباني پوهولو باندې یې اکتفاء وکړه [1]. حضرت مولانا مفتي محمد شفیع صاحب رحمة الله علیه معارف القران کې لیکي:

"په دی واقعه کې دموسی علیه السلام رایه داجتهاد په اساس باندې دا وه چې په دې حالت کې د هارون علیه السلام ددې مشرك قوم سره اوسیدل نه و پکار. بلکې دوی یې باید پریښي وی ترڅو له دوی سره ددې عمل له وجې دنفرت اظهار شوی وی.

"دحضرت هارون علیه السلام رایه داجتهاد په اساس دا وه، که چېرې داسې وکړل شي، نو همیشه له پاره به بنی اسرائیل سره ووېشل شي او تفرقه به رامنځ ته شي، د دوی دا اصلاح دا احتمال موجود و چې دحضرت موسی علیه السلام له راستنېدو وروسته به دهغه داثرسره دا ټول بیاد ایمان او توحید طرف ته راشي. ځکه دڅو ورځو له پاره د هغوی سره اسانتیا (نرمي) دهغوی د اصلاح په امیدوزغمل شوه ددواړو مقصد دالله تعالی داحکاماتو تعمیل، په ایمان او توحید باندې دخلکو قائمول خو یوجلا والی اوقطع تعلق ددې تدبیروګانه اوبل دحالاتو داصلاح ترامیدپورې له دوی سره د اسانتیا او دنرمي معامله ددې مقصد له پاره ګټوره وګڼله. (ص ١٤٢ ج ٢)

## حضرت ابراهیم علیه السلام د ملائکو د مدد وړاندیز ولې ونه مانه؟

**سوال:** یو حدیث دی چې:

١: حدثنا معتمر بن سلیمان التیمي عن بعض اصحابه قال جاء جبریل الی ابراهیم علیه السلام وهو یوثق او یقمط لیلقی فی النار قال: یا ابرهیم! الک حاجة؟ قال: اما الیک فلا! (جامع البیان فی التفسیر القران ج ٨ ص ٣٤)

٢: وروي ابی بن کعب الخ وفیه قال فاستقبله جبریل فقال: یا ابراهیم! الک حاجه؟ قال: اما الیک فلا! فقال: فاسئل ربک! فقال: حسبی من سوالی علمه بحالی. (تفسیر قرطبی ج ١١ ص ٢٠٣)

---

[1] سورة طه آیات : ٨٩ تا ٩٤_

۳: فاتاه خازن للرياح وخازن المياه يستاذنه فى اعدام النار. فقال عليه السلام: لاحاجة لى اليكم! حسبى الله ونعم الوكيل، ٤: وروي ابى ابن كعب الخ وفيه فقال: ياابراهيم! الک حاجة؟ قال اما اليک فلا! (روح المعانى ج ۹ ص ٦٨)

۵: همدارنگه په تفسيرمظهري اردو: ج۸ ص۵۴ باندې دحضرت ابی بن کعب روايت هم موجو د دی.

٦: وذكربعض السلف ان جبريل عرض له فى الهواء فقال: الک حاجة؟ فقال: امااليک فلا! (البدايه والنهايه ج۱ ص۱٤٩)

۷: وذكربعض السلف انه عرض له جبريل وهوفى الهواء فقال: الک حاجة؟ فقال: اما اليک فلا! واما من الله فلى. (تفسيرابن كثير ج۳ ص۱۸٤)

ددې پورته بيان شويو روايتونوپه رڼاکې دحضرت ابراهيم عليه السلام واقعه داسې بيانول چې: فرښتې دالله تعالى نه اجازه اخستلو سره حاضرې شوې اوحضرت ابراهيم عليه السلام ته يې دمددکولو له پاره وويل. خوابراهيم عليه السلام دهغوی مددقبول نه کړ. صحيح دي اوکه غلط؟

**جواب:** داخوښکاره خبره ده چې فرښتې دالله تعالى دحکم نه پرته هيڅ کارنه شي کولی، په دې وجه باندې سيدناابراهيم على نبيناوعليه الصلوت والتسليمات ته دهغوی له طرف نه دمدد وړانديز دالله تعالى له اجازې پرته ممکن نه دی. خوحضرت خليل على نبينا وعليه الصلوات والتسليمات هغه وخت کې دتوحيدپه مقام کې و اودغيرالله نه يې نظربالکل پورته و، په دې وجه باندې يې له ټولو اسبابو (چې له هغونه دعاهم ده) نه لاس اوچت کړی و، کاملينوکې داحالت هميشه نه وي، ګاهې باشدوګاهې نه، ولکن ياحنظله ساعة! هذا ما عندى والله اعلم بالصواب.

## د نمرود د حيرانېدو وجه

**سوال:** فان الله ياتى بالشمس من المشرق فات بهامن المغرب: تفسير عثماني کې ليکل شوي دي چې ددې خبرې اوريدوسره نمرودهيڅ ځواب ورنه کړی شو، که څه هم د مخکې ځواب په شان دلته هم امکان و. پوښتنه داکول غواړم چې هغه امکان څه و؟ دلومړي سوال په ځواب کې خوهغه يوبې ګناه قتل کړاويومجرم يې ازادکړ، دويم ځواب کې يې څه ويلی شو؟

**جواب:** ديوبې تعليمه لطيفه ده چې هغه ديوتعليم يافته نه پوښتنه وکړه چې بابوصاحب دځمکې مينځ کوم ځای دی؟ ځواب ورته په نفي ورکړل شو، هغه بې تعليمه وويل چې تاسبق ويلوسره په اوبولاهوکړل، داخبره خوماته هم معلومه ده. بابوصاحب ورته وويل چې هغه

څنګه؟ هغه په لاس کې لکړه (همسا) باندې یوه ګول دائره جوړه کړه او دهغې په مینځ کې همساخبنه کړه اوویې ویل چې دادخمکې مینځ دی. که چېرې یقین دې نه کېږي نوناپ یې کړه، هغه ته پته وه چې څوک یې ناپ کولی نه شي او نه دهغه ددعوې خلاف کولی شي.
نمرودهم که دهغه بې تعلیمه په مسلک باندې عمل کړی وی. نو ویلی یې شوچې لمرد مشرق نه زه راخېږوم. ستارب دې دمغرب نه راوخېږوي. خوهغه کې ددې دعوې کولوهمت نه و، ځکه چې دهغه یقین و، چې کوم کس یې دمشرق نه راویستلی شي هغه یې دمغرب هم راویستلی شي اوکه چېرې مادعوې وکړه. نوداسې نه چې دابراهیم رب یې دمغرب نه راوخېږوي. فبهت الذی کفر.

## ایا حضرت خضر علیه السلام پیغمبر و؟

**سوال:** دحضرت موسی علیه السلام سره چې کوم دویم سړی په سفر کې و هغه غالبًا حضرت خضر علیه السلام و، عام خیال هم دا دی دحضرت خضر علیه السلام پیغمبرکیدل دقران نه ثابت نه دي اودپیغمبرنه پرته په بل چا باندې وحي هم نه نازلیږي اودغیبوعلم خویواځې الله پاك ته دی. نوبیاحضرت خضر علیه السلام ته دظالم بادشاه، نافرمانه بچي او د دیوال لاندې دخزانې علم له کوم طرف نه وشو اوموسی علیه السلام ته ددې پته هم نه وه؟

**جواب:** دقران کریم ددې ایت نه چې پکې دحضرت موسی علیه السلام او دحضرت خضر علیه السلام واقعه ذکرده دا ثابتیږي چې هغه نبي و او هم دغه دجمهورو علماوومذهب هم دی[1] اوکوم حضرات چې ددې قایل دي چې هغه نبي نه و، کېدای شي دهغوی مطلب داوي چې ددعوت اودتبلیغ خدمت هغه ته نه و سپارل شوی بلکې ځینې تکویني خدمات له هغه نه واخستل

---

۱] قال الاکثرون ان ذلک العبد کان نبیاً واحتجوا علیه بوجوه (الاول) انه تعالی قال : آتیناه رحمة من عندنا ، والرحمة هی النبوة بدلیل قوله تعالی: اهم یقسمون رحمة ربک وقوله : وما کنت ترجوا ان یلقی الیک الکتاب الا رحمة من ربک والمراد من هذه الرحمة النبوة (التفسیر الکبیر ج:۲۱،ص: ۱۴۸) (فوجدا عبدا من عبادنا) العبد هو الخضر علیه السلام في قول الجمهور، الفروة هنا وجه الارض، قاله الخطابي وغیره،والخضر نبي عند الجمهور،وقیل: هو عبد صالح غیر نبي، والآیة تشهد بنبوته لان بواطن أفعاله لا تکون إلا بوحی (تفسیر القرطبی ج:۱۱،ص: ۱۶) ان الخضر نبی وان لم یکن کما زعم البعض (تفسیر نسفی ج:۲،ص: ۳۱۵) وما فعلته عن امری لکنی امرت به ووقفت علیه وفیه دلالة لمن قال بنبوة الخضر علیه السلام (تفسیر ابن کثیرج:۴،ص: ۲۳۸) قال البغوی لم یکن الخضر نبیاً عند اکثر اهل العلم قلت وهذا عندی محل نظر لان العلم الحاصل للاولیاء بالالهام وغیره ذلک علم ظنی یحتمل الخطاء ولذلک تری تعارض علومهم الملهمة فلو لم یکن الخضر نبیاً لما جاز له قتل نفس ذکیة بالهام انه لو عاش لارهق ابویه طغیاناً وکفراً (تفسیر مظهری ج:۶،ص: ۱۳۹) والجمهور علی ان الخضر نبی وکان علمه معرفته بواطن قد اوحیت الیه ......الخ (تفسیر البحر المحیط ج:۶،ص: ۱۴۷)

شو .خو په هرحال د الله تعالی بې واسطې ده ته علم ورکول. له قران کریم نه ثابت دي لهذا هغه ته دظالم بادشاه .نافرمانه بچي او ددیوال والا دخزانې علم دوحې په ذریعې سره وشواوچې کوم علم دوحې په ذریعه حاصل وي هغه علم غیب نه وي.

## ایا حضرت حضر علیہ السلام ژوندی دی؟

**سوال:** ایاحضرت خضر علیہ السلام ژوندی دی؟

**جواب:** حضرت خضر علیہ السلام ژوندی دی که نه؟ په دې کې له پخوا څخه سخت اختلاف دی خو څه عقیده او عمل په دې بحث پورې موقوف نه دي ځکه په دې کې بحث کول بې ګټې دي.[۱]

## د حضرت حضر علیہ السلام په جمله باندې سوال

**سوال:** **فاردنا ان یبدلهما ربهما** حضرت حضر علیہ السلام په ظاهره باندې دلته دشرک جمله ویلې ده چې د الله تعالی ارادې سره یې خپله اراده هم شامل کړې ده، حالانکه **فارادربک ان یبدلهما** به ډیره مناسبه جمله وای ددې ځواب څه دی؟

**جواب:** دې کیسې کې درې واقعې ذکرشوي دي.

۱: کشتۍ ماتول. ۲: دماشوم قتلول. ۳: ددیوال جوړول.

دې دریو واړو وتاویل بیانولو له پاره حضرت خضرعلیه السلام د **اردت**، **اردنا** او **ارادربک** درې مختلفې صیغې استعمال کړي دي، دې نه تفنن هم ویل کیدای شي اودهرې یوې صیغې خاص نقطه هم بیانېدای شي.

۱: دمسکینانو کشتۍ ماتول،بیاهلته چې هغوی کرایه هم نه وه اخستې، اګرچې دخپل انجام په اعتبارباندې هغوی ته نقصان رسیدلی و اودهغه په ښکاره باندې څه بدل هم نه و ادا شوی اوپه ظاهره باندې دښو بدله بدي وه، دادب مع الله په وجه باندې یې خپل طرف ته منسوب کړ. او اردت یې وفرمایل.

---

۱] قال البغوی : اختلف الناس فی ان الخضر علیه السلام حی ام میت .... ولا یمکن حل هذه الاشکال الا بکلام المجدد للالف الثانی رضی الله عنه فانه حین سئل عن حیوة الخضر علیه السلام ووفاته، توجه الی الله تعالی مستعلماً من جنابه عن هذا الامر فرای الخضر علیه السلام حاضراً عنده فساله عن حاله فقال : انا والیاس لسنا من الاحیاء لکن الله سبحانه وتعالی اعطی لارواحنا قوة فتتسجد بها ونفعل بها افعال الاحیاء ......الخ (تفسیر مظهری ج:٦،ص: ١٥٠، ١٥١طبع لاهور ... وذهب جمهور العلماء الی انه حی موجود بین اظهرنا وذلک متفق علیه عند الصوفیة قال النووی وقال ابن الصلاح : هو حی الیوم عند جمهور العلماء والعامة معهم فی ذلک وانما ذهب الی انکاره بعض المحدثین ......الخ (روح المعانی ج:١٥،ص: ٢٩٥ سورة الکهف :٦٥)

۲: د ماشوم قتلول هم په ظاهره باندې شر و. خو الله تعالی د هغه بدله مور پلار ته ورکړه، کومه چې د هغوی په حق کې صحیح وه. د لته دوه خبرې جمع شوې
۱: په ښکاره باندې د شر. هغه یې خپل طرف ته منسوب کړه.
۲: د خیر یعنې د بدلې ورکولو. هغه یې د الله تعالی طرف ته منسوب کړه
په دې وجه باندې یې د جمعې صیغه استعمال کړه. چې شر خپل طرف ته او هغه بدله د الله تعالی طرف ته منسوب شي.
۳: او د یتیمانو د یوال جوړول. یوائې خیرو. په دې کې په ښکاره باندې د شر هیڅ خبره نه وه او د یتیمانو بلوغ ته رسیدل هم د الله تعالی په اراده و. په دې وجه باندې د لته پخپله له مینځه ووت او د اهر څه یې د الله تعالی طرف ته منسوب کړل. فاراد ربک د دې نه معلومیږي چې په دویم نمبر باندې د شرک جمله نه ده ادا شوې. بلکې د شرکت جمله یې اداکړه چې شر او خیر پخپله باندې تقسیمولو سره په ظاهره باندې شر خپل طرف ته او هغه بدله کومه چې خیرو. د الله تعالی طرف ته منسوب کړي. والله اعلم باسرار کلامه.[1]

## د نبي کریم ﷺ حُلیه مبارکه

**سوال:** د نبي کریم ﷺ حلیه مبارکه څنګه وه؟ او د هغه ﷺ د جامو او د ویښتو متعلق تفصیل ولیکئ:

**جواب:** د نبي کریم ﷺ حلیه مبارکه په شمائل ترمذي کې د حضرت علي کرم الله وجهه نه نقل ده هغه د "خصائل نبوي" نه نقل کوي:

"ابراهیم بن محمد د حضرت علی رضی الله عنه په اولاد کې دی. (یعني لمسی یې دی) هغه فرمایي چې حضرت علی رضی الله عنه به کله د نبي کریم ﷺ حلیه مبارکه بیانوله. نو ویل به یې چې نبي علیه السلام نه زیات اوږد او نه ټیټ و بلکې درمیانه قد یې و. ویښته مبارک یې نه بیخي ګوړګوټي او نه بیخي نیغ و. بلکې لږشان ګوړګوټي والی پکې و. نبي کریم ﷺ نه بالکل د غټ بدن والا و او نه د ډېر ګرد مخ والا و. بلکې معمولي شان اوږدوالی یې په مخ مبارك کې و (یعني مخ مبارك یې نه بالکل غونډ و او نه اوږد و. بلکې د دواړو په مینځ کې و) د نبي علیه السلام رنګ مبارك سپین سور والي ته مایل و. سترګې مبارکې یې ډېرې تورې وې او باڼه یې اوږده وو. د بدن د بندونو هډوکي یې غټ وو. (مثلاً څنګلي او پونډې) او د غه راز د دواړو اوږو په مینځ کې یې ځای هم غټ او له غوښو ډك و. په بدن مبارك باندې یې (زیاتی) ویښته نه وو. (یعني څېنې

[1] والجواب أنه لما ذكر العيب أضافه إلى إرادة نفسه، فقال: { فأردتُ أن أعيبها } ولما ذكر القتل، عبّر عن نفسه بلفظ الجمع تنبيهاً على أنه من العظماء في علوم الحكمة، فلم يقدم على هذا القتل إلا لحكمة عالية، ولما ذكر رعاية صالح اليتيمين لأجل صلاح أبيهما اضافه إلى الله تعالى، لأن المتكفل بمصالح الأبناء برعاية حق الآباء ليس إلا الله سبحانه وتعالى (التفسير الكبير ج:۲۱،ص: ۱۶۲، تفسير القرطبي ج:۱۱،ص: ۳۹)

کسان داسې وي چې دهغوی په بدن باندې ویښته زیات وي .دنبي عليه السلام په بدن مبارک باندې دخاص خاص حصونه پرته لکه متې .پنډۍ.وغیره له دې پرته نور ویښته نه وو.) دنبي عليه السلام دسینې مبارکې نه ترنامه پورې دوېښتو یوه کرښه وه، لاسونه او دپښوتلي یې دغوښو نه ډک وو ،چې کله به روان وو. نو قدمونه به یې قوت سره وچتول تابه ویل چې ښکته طرف ته روان دی،نبي عليه السلام به چې کله چاته توجه کوله نوپوره بدن سره به یې توجه کوله.(یعنې داچې په اورمېږ کږخولوسره به چاته نه متوجه کېده.ځکه چې په داسې کولوسره دمخاطب سره بې پروایي ظاهرېږي اوځینې وخت کې دتکبرحالت ګڼل کېږي. بلکې دسینې مبارکې سره به یې هغه طرف ته توجه کوله.ځینې علماء ددې دامطلب هم فرمایلی دی چې کله به نبي عليه السلام توجه کوله ،نوټول مخ مبارك به یې ګرځاو دسترګوپه کونجونوبه یې نه کتل خو دامطلب صحیح نه دی، د دواړو اوږوپه مینځ کې یې دنبوت مهرو .نبي عليه السلام دنبیانوختم کونکی و. نبي عليه السلام دټولو نه زیات دسخي زړه والا واو دټولونه زیات رښتونی و .دټولونه زیات نرم طبیعت والا واودټولونه زیات د شریفې کورنۍ والا و،(غرض داچې نبي عليه السلام په زړه،ژبه، طبیعت، خاندان ،ذاتي اونسبي صفتونواوپه هرڅه کې له ټولونه افضل و) نبي عليه السلام ته به چې اول ځل چا وکتل رعب به پرې راغی،(یعنې دهغه ﷺ وقار دومره زیات و چې اول ځل کې کتونکی به درعب له وجې نه په هیبت کې راته اول خو دښایست اوجمال رعب هم وي.

شوق افزونگ مانع عرض تمنا داب حسن
بارہا دل نے اُٹگھائے ایسی لذت کے مزے

دې سره چې دکمالاتواضافه هم وي .نوبیابه درعب څه پوښتنه کوې او ددېنه پرته چې نبي عليه السلام ته کوم خاص شیان ورکړل شوي وو، نوپه هغه کې رعب هم دالله تعالی دطرف نه ورکړل شوی و) خو کوم سړي به چې وپېژانده اوملاقات به یې ورسره کاو هغه به دنبي عليه السلام داخلاقو اوصفتونوعاشق شواونبي عليه السلام به یې خپل محبوب کړ. دنبي کریم ﷺ حلیه بیانولوکې یوائې داویل کېدای شي چې مادهغوی ﷺ پشان ښایسته اودکمال والا نه دهغه نه مخکې لیدلی او نه وروسته ﷺ."[1]

✪ اوپه جاموکې دنبي کریم ﷺ دمعمول مبارك مختصره خلاصه دا ده چې په جاموکې به یې اکثردخامتاقمیص اغوسته[2].

---

[1] خصائل نبوی شرح شمائل ترمذی ص:۱۲ تا ۱٤_ طبع میر محمد شمائل ترمذی ص۱، ۲، باب ما جاء فی خلق رسول الله صلی الله علیه وسلم ، باب جامع فی صفة خلقه صلی الله علیه وسلم (الخصائص الکبری لیسوطی ص:۷۱)

[2] عن ام سلمة رضی الله عنها قالت : کان احب الثیاب الی رسول الله صلی الله علیه وسلم القمیص (شمائل ترمذی ص:۵، خصائل نبوی ص: ٤۸)

چې دهغه لستوڼي به تر مړوندو پورې[1] او اوږدوالی به يې ترنيمايي پنډۍ پورې و.[2] يوځل يې په روم کې جوړه شوې چپنه (جبه) هم استعمال کړې وه چې دهغې لستوڼي د مخکې نه تنګ وو[3]. سپينې جامې به يې خوښولې اودهغو ترغيب به يې هم ورکاو[4]. اکثربه يې لنګ استعمالاو[5]. يمني څادرونه به يې خوښول[6]. پرتوګ اخستلاو خوښول تريې ثابت دي، خو اغوستل يې ترې ثابت نه دي[7]. شنه څادرونه يې هم استعمال کړي دي، کله يې دسرو کرښووالا دوه څادرونه هم استعمال کړي[8]. له وړيونه جوړشوی تور څادر (توره کمبل) يې هم استعمال کړی دی[9]. په سرمبارك باندې دټوکر(کپړې) اوږده خولۍ (ټوپۍ)[10] اودهغه له پاسه دپګړۍ تړلو عادت يې لاره.[11]

✪ سرمبارك باندې يې دوېښتو ساتل عادت و. چې اکثربه د غوږو ترنرموپورې و اوکله کله به کمې اوزياتې هم و[12] د حج او عمرې داحرام نه دخلاصېدو پرمهال به يې دسروېښته په

---

۱] كان كم قميص رسول الله صلى الله عليه وسلم الى الرسغ (شمائل ص:۵)

۲] اوګورئ خصائل نبوی ص: ۴۹

۳] ان النبي صلى الله عليه وسلم لبس جبة رومية ضيقة الكمين (شمائل ص:۶).

٤] عن ابن عباس رضى الله عنهما قال: قال رسول الله صلى الله عليه وسلم: بالبياض من الثياب ليلبسهما احيائكم وكفنوا فيها موتاكم فانها من خيار ثيابكم (شمائل ص:۶).

۵] عن ابي بردة قال: اخرجت الينا عائشة رضى الله عنها كساءً ملبداً وازاراً غليظاً فقالت: قبض روح رسول الله صلى الله عليه وسلم فى هذين (شمائل ص:۹، باب ما جاء فى صفة ازار رسول الله صلى الله عليه وسلم)

۶] عن انس بن مالک رضى الله عنه قال: كان احب الثياب الى رسول الله صلى الله عليه وسلم يلبسه الحبرة (شمائل ترمذی ص:۶)

۷] عن ابى هريرة رضى الله عنه قال: دخلت مع النبى صلى الله عليه وسلم يوماً السوق، فجلس الى البزار فاشترى سراويل باربعة دراهم ........الخ (مجمع الزوائد ج:۵،ص: ۱۴۹ طبع دارالكتب بيروت، ايضاً :خصائل نبوی ص:۹۵)

۸] عن رمشة قال: رايت النبى صلى الله عليه وسلم وعليه بردان اخضران (شمائل ص:۶، باب ما جاء فى لباس رسول الله صلى الله عليه وسلم)

۹] عن عون بن ابى جحيفة عن ابيه قال: رايت النبى صلى الله عليه وسلم وعليه حلة حمراء كانى انظر الى بريق ساقية، قال سفيان اراها حبرة (شمائل ترمذی ص:۶)

۱۰] عن عائشة قالت: خرج رسول الله صلى الله عليه وسلم ذات غداة وعليه مرط من شعر اسود (شمائل ترمذی ص:۶)

۱۱] عن ابن عمر رضى الله عنهما: قال: كان رسول الله صلى الله عليه وسلم يلبس قلنسوة بيضاء (مجمع الزوائد ج:۵، ص: ۱۴۹ حديث :۸۵۰۵ باب فى القلنسوة، طبع بيروت) وكان يلبس القلانس تحت العمائم (احياء العلوم ص: ۳۵۷ طبع بيروت بيان اخلاقه وآدابه فى اللباس)

۱۲] كان شعره يضرب منكبيه واكثر الرواية انه كان الى شحمة اذنيه ...... وربما جعل شعره على اذنيه ...... الخ (احياء علوم الدين للغزالى ج:۲، ص: ۳۸۲ بيان صورته وخلقه صلى الله عليه وسلم)

چاړه صاف خړیل او مبارک وېښتان به یې په ملګرو تقسیمول.''[۱] صلی الله علیه وعلی اله واصحابه واتباعه اجمعین.

پڼې مبارکې به یې د رنګ شوې څرمنې وې چې په هغه کې به دوه تسمې وې. د هغه نقشه دا ده:[۲]

د پڼو مبارکو نقشه:

## د حضور ﷺ درد الشمس معجزه

**سوال:** په تېرو ورځو کې یو مولاناصاحب د اتباع رسول ﷺ په موضوع باندې وعظ کې وفرمايل چې: یوځل حضور ﷺ د حضرت علي رضی الله عنه په ورون باندې سراېښی و، چې خوب ورغی او حضور ﷺ ویده شو. د مازدیګرو خت په ختیمدو و، حضرت علي رضی الله عنه هغه راپورته کول مناسب ونه ګڼل، سوچ یې وکړ چې لمونځ خو بیاهم کېږي، خود حضور ﷺ دا رنګه قربت به بیا نصیب شي یا نه؟ په دې کې لمر پرېوت. د حضور ﷺ سترګې وغړېدلې، نو نمر پرېوتلی

---

۱] وسئل مالک رضی الله عنه عن دفن الشعر...... وقد کان شعر رسول الله صلی الله علیه وسلم قد قسمه بین الناس یتبرکون به..الخ (البحرالرائق فی مناسک المعتمر والحاج الی بیت الله العتیق ج:۳،ص:۱۸۲۲ الحلق)

۲] عن قتادة قلت لانس بن مالک رضی الله عنه کیف کان نعل رسول الله صلی الله علیه وسلم قال لهما قبالان باب ما جاء فی نعل رسول الله صلی الله علیه وسلم (شمائل ترمذی ص: ٦، ٧، طبع رشیدیه ساهیوال ، خصائل نبوی ص:٦١)

و،حضور ﷺ چې رابیدارشو. نو حضرت علی رضی اللہ عنہ ته یې وفرمایل چې لمونځ کول غواړې اوکه قضا یې راوړې؟ حضرت علی رضی اللہ عنہ ورته وفرمایل چې قضا راوړل نه غواړم. حضور ﷺ لمرته حکم وکړ اولمرپه دوه ځل راوخوت اوحضرت علی رضی اللہ عنہ لمونځ وکړ. دخبرې خلاصه داشوه چې حضرت علي رضی اللہ عنہ خپل لمونځ خو قضا کړ. خوحضور ﷺ یې دځنګون څخه راپورته نه کړ.

په دې کې تفصیل طلب خبره داده چې ایاحضور ﷺ په خپله لمونځ کړی و.که دکولونه مخکې ویده شوی و.یادواړولمونځ نه وکړی؟که حضور ﷺ وکړ.نوځنګه ممکنه ده چې حضرت علي رضی اللہ عنہ هلته ناست و او لمونځ یې ونه کړ؟اوبیاکله چې نبي ویده کیږي. نوغافل نه وي،دنبي زړه ویښ وي،داځنګه ممکن دی چې نبي ویده شي اودهغه خپل لمونځ قضاشي یادهغه دملګرې؟

دمولاناصاحب دخبروسره دغه پورتني شکونه زماپه ذهن کې راغلل،امیدلرم چې ددې ځواب به راکړئ اوراته به ووایئ چې ایاداواقعه دصحیح حدیثونونه ثابته ده یادکیسې ترحده پورې ده؟

**جواب:** دحضرت علي رضی اللہ عنہ له پاره د ردشمس حدیث امام طحاوي رحمہ اللہ په مشکل الاثارج:۲ ص:۹،کې دحضرت اسماء بنت عمیس رضی اللہ عنہا نه روایت کړی دی،ډیردحدیثوحافظانودې ته صحیح ویلي دي. امام طحاوي رحمہ اللہ درجال دتصحیح کولونه وروسته دحافظ احمدبن صالح مصري رحمہ اللہ داقول نقل کړی دی:

**،،لاینبغي لمن کان سبیله العلم التخلف عن حفظ حدیث اسماء الذی روي لنا عنه،لانه من اجل علامات النبوة.(مشکل الاثارج:۲ ص:۱۱)**

ترجمه:کوم کس چې دحدیث لاره اختیارکړې وي هغه ته دحضرت اسماء بنت عمیس رضی اللہ عنہا حدیث چې دحضور ﷺ نه مروي دی په یادولوکې کوتاهي کول پکارنه دي،ځکه چې دادنبوت دجلیل القدرمعجزاتو نه ده.

حافظ سیوطی رحمہ اللہ ،،اللالي المصنوعة،،کې لیکي: **،،ومما یشهد بصحة ذالک قول الامام الشافعي وغیره ما اوتی نبي معجزة الااوتی نبینا صلی الله علیه وسلم نظیرهااوابلغ منها،وقدصح ان الشمس حسبنت علی یسع(ع) لیالی قاتل الجبارین، فلابدان یکون لنبینا صلی الله علیه وسلم نظیرذالک فکانت هذه القصة نظیرتلک.(مشکل الاثارج:۱ ص:۳٤۱)**

ترجمه:اوهغه ټول امورکوم چې ددې واقعې دصحیح کیدوشهادت ورکوي حضرت امام شافعي اودنوروحضراتودا ارشاددی. چې هریونبي ته کومه معجزه ورکړل شوې زمونږ نبي ﷺ ته دهغې نظیرورکړل شوی اویادهغې نه زیات اوپه صحیح حدیثونوکې راغلي دي

چې لمر د حضرت یوشع علیه السلام له پاره درول شوی و، کله چې هغوی د جبارینو سره جهاد وکړ، نو ضروري ده چې زموږ نبي ﷺ له پاره هم ددې په شان واقعه وي. دا واقعه د حضرت یوشع علیه السلام د واقعې په شان ده.

امام ابن جوزي رحمه الله دا کیسه په موضوعاتو کې شمار کړې ده او حافظ ابن تیمیه رحمه الله هم په ،،منهاج السنة،، کې ډیر په شدا و مد سره له دې نه انکار کړی دی. حافظ ابن حجر رحمه الله په فتح الباری کې لیکلي دي:

**،، وهذا ابلغ المعجزات، وقد اخطأ ابن الجوزی فی ایراده فی الموضوعات، وکذا ابن تیمیة فی کتاب الرد علی الروافض فی زعم وضعه، والله اعلم،،، (ج:٦ ص:٢٢٢)**

ترجمه:: د رد شمس دا واقعه د حضرت یوشع علیه السلام د واقعې نه ډیره بلیغه ده. ابن جوزي دا واقعه په موضوعات کې شاملولو سره غلطي کړې ده. همدارنګه ابن تیمیه په خپل کتاب کوم چې په رد روافض باندې لیکل شوی دی دا موضوعي ګرځولو سره غلطي کړې ده،،،

حافظ سید مرتضی زبیدی رحمه الله ،، په شرح احیا،، کې لیکي:

**،،وهذا تحامل من ابن الجوزی، وقد رد علیه الحافظان السخاوي والسیوطی، وحاله فی ادراج الاحادیث الصحیة فی حین الموضوعات معلوم عند الائمة، وقد رد علیه وعابه کثیرون من اهل عصره ومن بعدهم کما نقله الحافظ العراقی فی اوائل نکته علی ابن الصلاح فلا نطیل مذکره، وهذا الحدیث صححه غیر واحد من الحفاظ حتی قال السیوطی ان تعدد طرقه شاهد علی صحته، فلا عبرة بقول ابن الجوزی،،، (اتحاف شرح احیا ج:۷ ص:۱۹۲)**

ترجمه: دا واقعه په موضوعاتو کې شمارول د ابن جوزی غلطي ده، حافظ سخاوي رحمه الله او حافظ سیوطی رحمه الله په دې باندې رد کړی دی او ابن جوزي چې څنګه صحیح احادیث په موضوعات کې ذکر کړي، هغه ائمه وو ته معلوم دي، ددوی په دې طریقه باندې دهغه معاصرینو او روستو حضراتو هم دهغه عیب چیني کړې ده، څنګه چې حافظ عراقي رحمه الله، په خپل کتاب ،،نکت ابن صلاح،، په شروع کې ددې ذکر کړی دی او دې حدیث ته یې ډېرو حافظانو په قول سره صحیح ویلي دي، سیوطي رحمه الله وایي چې: ددې طرق متعدد کیدل ددې په صحیح کیدو باندې شاهد دي، له دې وجې نه دا بن جوزي د قول هیڅ اعتبار نشته.

په هر حال دا واقعه صحیح ده او دا په معجزات نبوي ﷺ کې شمېرل کیږي، پاتې شوه ستاسو دا وینا چې: دا څنګه ممکن ده چې حضور ﷺ لمونځ کړی وي او حضرت علی رضی الله عنه نه وي کړی؟ ددې ځواب په خپله په دې حدیث کې موجود دی، چې حضرت علي رضی الله عنه حضور ﷺ د څه کار له پاره لیږلی و، کله چې هغه د کار نه وروسته راغی، نو لمونځ شوی و، حضور ﷺ دا وګڼله چې ده به لمونځ کړی وي.

اوستاسو داويناچې :نبي ويده وي، نو دهغه زړه ويښ وي. بيا لمونځ څنګه قضا کېداى شي؟
ددې ځواب دادى چې دلمونځ دوختونو مشاهده کول دزړه کارنه دى.بلکې دسترګو کاردى
او دخوب په حالت کې دنبي سترګې ويدې وې اوزړه يې ويښ و.هم دغه وجه ده چې:ليلة
التعريس،،کې دحضور ﷺ او دهغه دملګرونه دسحر لمونځ قضاشو[1]،والله اعلم.

## دا نبياء کرامو داودس ماتي دپاکي مسئله

**سوال:** زمونږ په جومات کې تيره جمعه يوخطيب صاحب په خپل وعظ کې فرمايلي وچې:
يوځل حضور ﷺ په يولوښي کې متيازې وکړې اويوصحابي ته يې ورکړ چې دباندې يې
وغورځوه؛ هغه صحابي چې دباندې ولاړ،نوحضور ﷺ سره دډېرمينې له وجې نه يې هغه
وڅښلې،ددې نه وروسته ټول عمردهغه له بدن څخه خوشبويي تلله. له دې نه وروسته خطيب
صاحب وفرمايل :چ دحضور ﷺ بول اوبرازپاک دي.په دې کې دعامو انسانانوپه شان
ناپاکي اوبدبويي نه وه. لهذادصحابي په دې عمل باندې اعتراض کېداى نه شي.
دخطيب صاحب په دې بيان باندې په جومات کې يوه هنګامه جوړه شوه،اکثروخلکوپه دې
باندې اعتراض وکړ،چې داواقعه دسندنه خالي ده،دداسې خطيب امامت جائزنه دى،چې
خلاف سندواقعات بيانوي اوغيرمسلموته په اسلام باندې دتنقيدموقع ورکوي. دخلکو
اعتراضات په لاندې ډول وو:
۱:داسې څه واقعه په مستندوکتابونوکې نشته.
۲:اوکه داسې شوي هم وي، نوپه حضور ﷺ کې دبشريت څه خصوصيت نه واوهغه مکمل
نور و.۳:که حضور ﷺ صحابي ته دمتيازوغورځولوحکم ورکړى و،نوصحابي له پاره حکم
زيات اهميت لرلو يادمحبت جذباتو؟
۴::دنورمذهبونوپه خلکوباندې دمتيازوڅښلواعتراض څنګه کېداى شي؟ کله چې هغوى
هم داعقيده لري چې دهغوى په اوتارو(مقصدترې بتان دى)کې هم داسې صفات وو.

---

[1] عَنْ أَبِى هُرَيْرَةَ أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صلى الله عليه وسلم حِينَ قَفَلَ مِنْ غَزْوَةِ خَيْبَرَ سَارَ لَيْلَةً حَتَّى إِذَا أَدْرَكَهُ الْكَرَى عَرَّسَ وَقَالَ لِبِلاَلٍ « اكْلأْ لَنَا اللَّيْلَ ». فَصَلَّى بِلاَلٌ مَا قُدِّرَ لَهُ وَنَامَ رَسُولُ اللَّهِ صلى الله عليه وسلم وَأَصْحَابُهُ فَلَمَّا تَقَارَبَ الْفَجْرُ اسْتَنَدَ بِلاَلٌ إِلَى رَاحِلَتِهِ مُوَاجِهَ الْفَجْرِ فَغَلَبَتْ بِلاَلاً عَيْنَاهُ وَهُوَ مُسْتَنِدٌ إِلَى رَاحِلَتِهِ فَلَمْ يَسْتَيْقِظْ رَسُولُ اللَّهِ صلى الله عليه وسلم وَلاَ بِلاَلٌ وَلاَ أَحَدٌ مِنْ أَصْحَابِهِ حَتَّى ضَرَبَتْهُمُ الشَّمْسُ فَكَانَ رَسُولُ اللَّهِ صلى الله عليه وسلم أَوَّلَهُمُ اسْتِيقَاظًا فَفَزِعَ رَسُولُ اللَّهِ صلى الله عليه وسلم فَقَالَ « أَىْ بِلاَلُ ». فَقَالَ بِلاَلٌ أَخَذَ بِنَفْسِى الَّذِى أَخَذَ بِنَفْسِكَ قَالَ « اقْتَادُوا ». فَاقْتَادُوا رَوَاحِلَهُمْ شَيْئًا ثُمَّ تَوَضَّأَ رَسُولُ اللَّهِ صلى الله عليه وسلم وَأَمَرَ بِلاَلاً فَأَقَامَ الصَّلاَةَ فَصَلَّى بِهِمُ الصُّبْحَ فَلَمَّا قَضَى الصَّلاَةَ قَالَ « مَنْ نَسِىَ الصَّلاَةَ فَلْيُصَلِّهَا إِذَا ذَكَرَهَا فَإِنَّ اللَّهَ قَالَ (أَقِمِ الصَّلاَةَ لِذِكْرِى)رواه مسلم (مشكوة ص:٦٦)

مولاناصاحب!تاسو به په دې مسئله باندې داسې رڼا واچوئ چې د خلکو تسلي وشي.ځکه چې د مسلمان داعقيده ده چې اسلام د فطرت مطابق دی او د ميتازو څښل د انسان په نظر کې د فطرت خلاف دي.موږ د خپل مذهب په اشاعت کې غير مسلم څنګه قايل کولی شو؟

**جواب:** د خلکو څلور اعتراضونه کوم چې تاسو نقل کړي دي په هغو کې اولنی اعتراض اصلي دی. يعنې داچې داواقعه مستنده ده او که نه؟نور سوالونه ټول ددې دلاندې دي ځکه که څه واقعه شوې نه وي. نو بيا داسوالونه متوجه کيږي.

ددې واقعې دتسليمولو نه وروسته دمسلمانانو په ذهن کې دسوالونو پيداکيدل دضعف ايمان. ضعف محبت اوضعف علم وجه ده.ځکه چې په محبت کې سوالونه نه پيداکيږي ياوکه صحيح علم وي. نو توجيه يې کولی شي چې ممکنه ده چې دا دحضور ﷺ خصوصيت وي چې دهغه فضلات نه نجس کيدل ياپه عامو انسانانو باندې دخصوصي فضيلت دليل دی.دادويم سوال توجيه کېدای شي.

ددريم سوال توجيه داکيدای شوه چې کله کله جذبه په محبت غالبه شي اوبنده په هغې معذور ګڼل کيږي.لکه څنګه چې دصلح حديبيه په وخت باندې حضور ﷺ حضرت علي رضي الله عنه فرمايلي وچې:دمحمد رسول الله،.لفظ وران کړه.هغه وويل چې:زه ستاسو پاک نوم ورانولی نه شم!داخبره هغه دحکم صريح په مقابله کې دمحبت دغلبې له وجې نه کړې وه.ددې وجې نه په هغه باندې څه عتاب نازل نه شو.

دڅلورم سوال توجيه داکيدای شي چې حضور ﷺ خونه دمتيازو څښلو حکم فرمايلی واونه يې داقانون جوړکړ.خو يو مغلوب محبت يې معذور وګاڼه اوس دعامو خلکوله پاره دمتيازو څښلو حکم په دې کې دکوم ځای نه راووت؟

غرض داچې اول داخبره پېژندل ضروري دي چې داسې شته او که نه؟بيادامعلومول پکار دي چې دحضور ﷺ دفضلاتو هم هغه حکم دی کوم چې زموږ په شان دناپاکه خلکو دبولو اوبرازودی؟ياپه دې باره دحضور ﷺ څه خصوصيات هم شته؟په دې باره کې دعالمانو څه تحقيق دی؟ امام ابوحنيفه اوامام شافعي اودهغوی اکابراومتبعين څه فرمايي؟ بيا دا معلومول پکار دي چې يو حکم دټولوله پاره يو شان وي؟ياځينو وختونو کې دموقع اومحل په خصوصيت سره حکم مختلف کيدای هم شي؟

کوم مولاناصاحب چې د ناواقفه اوناپوهه عوامو په وړاندې پرته له تشريح نه داواقعه بيان کړه هغه هم ښه ونه کړل اوچاچې داواقعه واوريدله اودا عتراضاتو باران يې شروع کړ اود مسئلې دنوعيت معلومولو ضرورت يې محسوس نه کړ.هغوی هم دڅه عقل اوفکر ثبوت وړاندې نه کړ.والله اعلم.

## دسائل دویم خط

..جناب مولانا محمد یوسف لدهیانوي صاحب! السلام علیکم
محترمه! زما دخط ځواب خو وشو، خو نامکمل شان راته ښکاریږي، داصل سوال ځواب په خپل ځای پاتې دی؟ یعني کومه واقعه چې خطیب صاحب بیان کړې وه دهغې حواله دیو مستند راوي یا کتاب پکار وه، ماخو اعتراض کونکو ته ستاسو خط وښود یاخو هم هغه سوال وکړل شو چې دهغه کتاب او مصنف نوم دې وښودل شي، دکوم ذکرچې ماکړی دی، بلکې یو صاحب خوتردې پورې وویل چې یوځل په یوه جلسه کې مولانا محمد شفیع هم ددې واقعې ذکرکړی و، خو کله چې دهغوی نه ددې سند وغوښتل شو، نوهغه ورنکړی شو، بلکې سند غوښتونکو باندې یې دایمان دکمزوري فتوي ولګوله او ملامت یې کړل، څنګه چې تاسو په خپل ځواب کې وفرمایل، یعني: ددې واقعې دتسلیمولو نه وروسته دمسلمانانو په ذهن کې دارنګه سوالات راپیداکیدل دضعف ایمان، ضعف محبت اوضعف علم وجه ده.
ددې معنا خو دا شوه چې کوم عالم یا خطیب څه واقعه دحضور ﷺ ته منسوب کړي اوپرته له څه حوالې بیان وکړي، نوهغه دې په صدق دل سره ومنل شي که نه دضعف ایمان فتوي به پرې ولګیږي، همدارنګه خوڅه عالمان کوموته چې موږ علماء سوء هم ویلی شو، ډیر همدارنګه دخپل مطلب واقعات بیانولی شي اوخلک ګمراه کولی شي اوتاسو به دا هم تسلیموئ چې دعلمایې سوء (چې په ظاهره عالم وي) شناخت عام کس نه شي کولی. دهغه نیول خو هم هغه وخت کیدای شي کله چې هغه دواقعاتو سره مستنده حواله هم ورکړي
موږ دامنو بلکې زموږ دادین دی چې حضور ﷺ په ټولو انبیاوو اوانسانانوکې افضل دی اودهغه خصوصیات منل هم دایمان غوښتنه ده، خو له دې سره دافکرهم وکړل شي چې دنن دوردساینس اومادیت دوردی، دعوامواکثریت په خاص طورسره دمغرب له افکارو نه متاثره دي، دهغوی دمطمئن کولو له پاره ترخپل وس پورې چې کیدای شي څه نا څه کول پکار دي ، لهذاکه دلاندې سوالونو ځوابونه ورکول شي نودخلکو تسلي کیدای شي.
۱: ددې واقعې ذکرچې په کوم کتاب کې دی دهغه اودهغه دمصنف نوم څه دی؟
۲: دمذکوره صحابي په عمل باندې دحضور ﷺ ارشادات؟
۳: په نوروصحابه کرامو رضي الله عنهم باندې دواقعې اثرات (هرکله چې دامعلومه شوه چې د حضور ﷺ بول اوبرازنه یوازې پاک دي بلکې دخوشبولامل هم دي) اوداهم معلومه ده چې صحابه کرامو دحضور ﷺ هرشی سره له خپلو ځانونه زیات محبت کاوو، تردې پورې چې دحضور ﷺ لعاب (لاړې) اوداودس اوبه به یې په خپلو مخونو باندې مښلې.

**جواب:** زمادتیرخط خلاصه داوه چې اول خودې دامعلومه کړل شي چې داواقعه په کوم مستندکتاب کې موجودده اوکه نه؟ دویم داچې دحضور ﷺ دفضلاتو په باره کې داهل علم

او اکابر ائمه دین تحقیق څه دی؟ او ددې دوو خبرونه وروسته کوم شبهات چې راپیښیدای شي د هغې توجیه کیدای شي اوس ددې دواړو نکتو وضاحت کوم:

۱-:دادی چې داواقعه په مستند کتاب کې شته اوکه نه؟ حافظ جلال الدین سیوطي رحمه الله ،،کتاب،،خصائص کبری،کې دحضور ﷺ امتیازي خصوصیات راجمع کړي دي،دهغې ددویم جلد صفحه :۲۵۲فوټوسټیټ تاسوته درلیږم،دکوم عنوان چې:دادی..دحضرت محمد صلی الله علیه وسلم بول اوبرازپاک و..،ددې عنوان لاندې هغه احادیث نقل کړي دي دهغې نه دوه احادیث..،په کوموچې مانشان لګولی دی له ترجمې سره درته نقلوم:

**۱::واخرج ابو يعلى والحاكم والدارقطني والطبراني وابونعيم عن ام ايمن قالت: قام النبي صلى الله عليه وسلم من الليل الى فخارة فبال فيها،فقمت من اخبرته،فضحك وقال:اماانك لا يتجعن بطنك ابدا اولفظ ابي يعلى:انك لن تشتكي بطنك بعديومك هذا ابدا،،،**

ترجمه::ابو یعلی،حاکم،دارقطني،طبراني او ابونعيم رحمه الله په سند سره دحضرت ام ایمن رضی الله عنها نه روایت کړی دی چې:حضور ﷺ دشپې په وخت کې په یوختین لوښي کې متیازې وکړلې، زه دشپې راویښه شوم اوتږې وم،ماهغه پیاله وڅښله،چې سحرشو،نوماحضور ﷺ ته وویل: حضور ﷺ مسکی شواووېې فرمایل:تاته به دخیټې تکلیف هېڅکله نه پېښیږي اودابویعلی روایت دی چې:دنن نه وروسته به ته دخیټې دتکلیف شکایت نه کوې.

**۲::واخرج الطبراني والبيهقي بسند صحيح عن حكيمة بنت اميمة عن امها قالت: كان للنبي صلى الله عليه وسلم قدح من عيدان يبول فيه ويضعه تحت سريره،فقال فطلبه فلم يجده فسال فيه فقال:اين القدح؟قالوا:شربته برة خادمة ام سلمة التي قدمت معها من ارض الحبشة، فقال النبي صلى الله عليه وسلم :لقداحتظرت من النار بحظار،،**

ترجمه::طبراني اوبیهقي په صحیح سند سره دحکیمه بنت امیمه اوهغې له خپلې مور حضرت امیمه رضی الله عنها نه روایت کړی دی چې:دحضور ﷺ کره به دلرګي یوپیاله پرته وه،چې په هغې کې به یې دشپې میتازې کولې اودخپل کټ دلاندې به یې کیښودله.حضور ﷺ یوسحرراویښ شو،هغه یې وکتله خوهلته یې پیدا نه کړه،دهغې پوښتنه یې وکړه. نوورته وویل شول چې بره نومې دحضرت ام سلمه رضی الله عنها خادمې څښلې ده.حضور ﷺ وفرمایل چې:هغې داوورنه دبچ کیدوله پاره حصارجوړکړ.

داداواړه روایتونه مستند دی اودمحدیثونویولوی جماعت ددې تخریج کړی دی اودامت ستر عالمانوداواقعات پرته له کوم نکیرنه نقل کړي دي اودایې په خصائص نبوي ﷺ کې شمارکړي دي.

۲- :دحضرت محمد ﷺ دفضلاتوپه باره کې دامت دسترو عالمانو تحقیق:

حافظ ابن حجر عسقلاني رحمه الله په فتح الباری، باب الماء الذی یغسل به شعر الانسان (ج: ۱ ص: ۲۷۲ مطبوعه لاهور) کې لیکلي دي:

**وقد تکاثرت الادلة علی طهارة فضلاة وعد الائمة ذالک من خصایصه فلا یلتفت الی ما وقع فی کتب کثیر من الشافعیة مما یخالف ذالک، فقد استقر الامر بین ائمتهم علی القول بالطهارة.**

ترجمه: دحضرت محمد ﷺ دفضلاتو پاک کیدو باندې دلائل ډیر زیات دي اوائمه وو دا دحضور ﷺ په خصوصیاتو کې شمار کړي دي. دډیرو شوافعو په کتابونو کې چې ددې خلاف څه موندل کیږي، هغه دالتفات قابل نه دي، ځکه چې ددې خبرې داما مانو په منیځ کې دطهارت په قول باندې معامله فیصله شوې ده.

حافظ بدرالدین عیني رحمه الله په عمدة القاری (ج: ۲ ص: ۳۵ مطبوعه دارالفکر بیروت) کې د حضور ﷺ دفضلاتو طهارت په دلائلو سره ثابت کړی دی او په شوافعو کې چې کوم کسان د دې دخلاف قایل دي په هغوی باندې یې بلیغ رد کړی دی[1] او په (ج: ۱ ص: ۷۹) کې یې د حضرت امام ابوحنیفه رحمه الله نه دحضور ﷺ دبولو او باقي فضلاتو دطهارت قول نقل کړی دی[2].

۲: امام نووي رحمه الله په شرح مهذب (ج: ۱ ص: ۲۳۳) کې دبولو اونورو فضلاتو په باره کې دشافعیانو ددواړو قولونو له نقل سره دطهارت قول راجح ګرځولی دی، هغه لیکي:

**حدیث شرب المراة البول صحیح رواه الدارقطنی وقال هو حدیث صحیح وهو کان فی الاحتجاج لکل الفضلات قیاسا.**

ترجمه: دښځې دمتیازو څښلو واقعه صحیح ده. امام دارقطني دې روایت ته صحیح ویلي دي او دا حدیث دټولو فضلاتو په طهارت باندې داستدلال له پاره کافي دی.

---

1] وقال بعض شراح البخاري في بوله ودمه وجهان والأليق الطهارة وذكر القاضي حسين في العذرة وجهين وانكر بعضهم على الغزالي حكايتهما فيها وزعم نجاستها بالاتفاق قلت يا للغزالي مَن هفوات حتى في تعلقات النبي عليه الصلاة والسلام وقد وردت أحاديث كثيرة أن جماعة شربوا دم النبي عليه الصلاة والسلام منهم أبو طيبة الحجام وغلام من قريش حجم النبي عليه الصلاة والسلام وعبد الله بن الزبير شرب دم النبي عليه الصلاة والسلام رواه البزار والطبراني والحاكم والبيهقي وأبو نعيم في (الحلية) ويروى عن علي رضي الله تعالى عنه أنه شرب دم النبي عليه الصلاة والسلام وروي أيضا أن أم أيمن شربت بول النبي رواه الحاكم والدارقطني والطبراني وأبو نعيم (عمدة القاری ج: ۲، ص: ۳۵)

2] ولئن سلمنا ان المراد هو الماء الذی یتقاطر من اعضائه الشریفة فابوحنیفة ینکر هذا ویقول بنجاسة ذاک حاشاه منه وکیف یقول ذلک وهو یقول بطهارة بوله وسائر فضلاته (عمدة القاری ج: ۲، ص: ۷۹)

علامه ابن عابدين شامي رحمه الله ليکي
**صحح بعض ائمة الشافعية طهارة بوله صلى الله عليه وسلم وسائر فضلاته وبه قال ابوحنيفه كما نقله فى المواهب اللدنية عن شرح البخاري للعيني.** (ردالمحتار ج:۱ ص:۳۱۸ مطبوعه کراچی)
ترجمه: ځيني شافعي امامانو دحضور ﷺ دبولو اوباقي فضلاتو طهارت صحيح ګرځولی دی. امام ابوحنيفه هم ددې قايل دی. څنګه چې په مواهب الدنيه کې علامه عيني شرح بخاري نه نقل کړي دي.
ملاعلي قاري جمع الوسائل شرح الشمائل (ج:۲ ص:۲ مطبوعه مصر ۱۳۱۷هجری) کې له دېرې اوږدې خبرې وروسته ليکي:
**قال ابن حجر: وبهذا استدل: جمع من ائمتنا المتقدمين وغيرهم على طهارة فضلاته صلى الله عليه وسلم، وهوالمختار، وفاقاً لجمع من المتاخرين فقدتكاثرت الادلة عليه وعده الائمة من خصائصه صلى الله عليه وسلم.**
ترجمه: ابن حجر رحمه الله فرمايي چې زموږ دائمه متقدمينو يوه ډله اونورو حضراتو د حديثونو سره دحضور ﷺ دفضلاتو په طهارت باندې استدلال کړی دی، دمتاخرينو يوې ډلې هم دغه مختارکړی دی، ځکه چې په دې باندې ډېر دليلونه موجود دي اوائمه وو دا دحضور ﷺ په خصائصو کې شمارکړي دي.
امام العصرمولانا انورشاه کشميري رحمه الله فرمايي:
**ثم مسالة طهارة فضلات الانبياء توجد فى كتب المذاهب الاربعة.** (فيض الباری ج:۱ ص:۲۵۰)
ترجمه: دفضلات انبياء دطهارت مسئله دڅلورومذهبو په کتابونوکې موجوده ده.
محدث العصرحضرت مولانا محمديوسف بنوري نورالله مرقده ليکي:
**وقدصرح اهل المذاهب الاربعة بطهارة فضلات الانبياء... الخ.** (معارف السنن ج:۱ ص:۹۸)
ترجمه: دڅلوروارومذهبونو حضرات دفضلات انبياء په پاکوالي باندې تصريح کړې ده.
الحمدلله! ددې دواړونکتووضاحت خوبقدرضرورت وشو. داواقعه مستند ه ده اودڅلورو مذهبوامامان دپه حديثونودتسليمولوسره سره دفضلات انبياء عليهم السلام دطهارت قول نقل کړی دی، که ددې نه وروسته هم اعتراض کيږي، نوهغه ته بيا دايمان ضعف ويل کيږي.
اوس يوه نکته درته تبرعاً ليکم چې هغې سره به دامسئله قريب الفهم شي. دالله تعالی په خپلومخلوقاتوکې عجائبات دي. په کوموپوهيدل چې زموږ په شان خلکوته ګران دي، چې په خپل قدرت کامله اوحکمت بالغه سره ځينوجسمونوکې داسې محيرالعقول خصوصيات اينبي دي چې په نوروااجساموکې نه موندل کيږي. هغه ديو چينجي دلاړو نه ورېښم پيداکوي اودشاتودمچۍ فضلاتونه يې دشاتوپه شان نعمت پيداکړی دی اودغريزې

چیلی(غرڅې) په نوم (ناف)کې یې له راجمعه وینې مشک جوړکړي.که هغه په خپل قدرت سره دانبیاء علیهم السلام په بدنونوکې داسې خصوصیات ایښي وي چې خوراک ددوی په پاکو بدنونوکې دتحلیل کیدونه وروسته نه نجس کیږي.بلکې هغه سره چې ددوی په بدنونوکې کوم فضلات پیداشي هغه پاک وي،نوهیڅ دحیرانتیاخبره نه ده.داهل جنت په باره کې هرچاته پته ده چې خوراک څښاک کولونه وروسته به هغوی ته دبولو اوبرازو ضرورت نه وي.یوخوشبوداربڼغ به وکړي اوخوړلي څښلي هرڅه به هضم شي[1]اودبدن فضلات به په خوشبوداره خوله کې تحلیل شي.کوم خصوصیت چې داهل جنت بدنونوته حاصلیږي که الله تعالی دحضرات انبیاء کراموعلیهم السلام بدنونوته په دې دنیاکې دا خاصیت ورکړي، نوپه ځای ده،بیاهرکله چې په حدیثونوکې په کثرت سره په دې باندې دلائل موجوددي لکه څنګه چې پورته دحافظ ابن حجر رحمه الله په کلام کې تیرشوي دي نود انبیاء کراموعلیهم السلام بدنونه په خپل بدن باندې قیاس کول اوله دې نه انکارکول یاددې په منلوکې تامل کول صحیح نه دي،مولانارومي فرمایي:

این خورد گردد پلیدی زوجدا وان خورد گردد همه نورخدا .

په اخره کې له علماوو اوخطیبانوصاحبانو هم دا غوښتنه کوم چې دعوامو په وړاندې داسې خبرې بیان نه کړي ،کوم چې دهغوی له فهم نه لوړ وي.ولله الحمد اولاً واخرا!

## دشق القمرمعجزه

**سوال:** زموږ په جوماتو کې چې کوم ملاصاحب امام دی، دهغه داعقیده ده چې دشق القمرکومه معجزه چې دحضور ﷺ نه ظاهره شوې وه،هغه صحیح نه ده اونه ددې څه ثبوت شته، مهرباني وکړئ ددې باره کې صحیح احادیث بیان کړئ، چې دهغه تسلي وشي.

**جواب:** دشق القمرمعجزه په صحیح حدیثونوکې دحضرت ابن مسعود، حضرت ابن عباس، حضرت انس بن مالک، حضرت جبیربن معطم، حضرت حذیفه، اوحضرت علي رضی الله عنهم نه روایت شوې ده.دحضرت عبدالله بن مسعود رضی الله عنه په حدیث کې دي:

**انشق القمرعلی عهدرسول الله ﷺ فرقتین، فرقة فوق الجبل وفرقة دونه فقال رسول الله ﷺ اشهدوا.(صحیح بخاري ج ۲ ص ۷۲۱، صحیح مسلم ج ۲ ص ۳۷۳ ترمذی ج ۲ ص ۱۶۱)**

---

[1] عَنْ جَابِرٍ قَالَ قال رسول الله صلى الله عليه وسلم « إِنَّ أَهْلَ الْجَنَّةِ يَأْكُلُونَ فيها وَيَشْرَبُون وَلاَ يَتْفُلُونَ وَلاَ يَبُولُونَ وَلاَ يَتَغَوَّطُونَ وَلاَ يَمْتَخِطُون ». قالُوا فَمَا بَالُ الطَّعَامِ قَالَ « جُشَاءٌ وَرشْحٌ كَرَشْحِ الْمِسْكِ رواه مسلم ( مشكوة ص:۴۹۶، باب صفة الجنة واهلها ، الفصل الاول)

ترجمه: د رسول الله ﷺ په زمانه کې سپوږمۍ دوه ټکړې شوه. یو ټکړه د غره له پاسه وه او یوه د غره نه لاندې. حضور ﷺ وفرمایل چې ګواه اوسئ.

د حضرت ابن عباس رضی الله عنه په روایت کې دي:

**انشق القمر فی زمان النبي ﷺ.** (صحیح بخاري ج۲ ص ۷۲۱، صحیح مسلم ج۲ ص۳۷۳، ترمذی ج۲ ص۱٦۱) ترجمه: د حضور ﷺ په زمانه کې سپوږمۍ دوه ټکړې شوه.

د حضرت انس رضی الله عنه په حدیث کې دي:

**ان اهل مکة سالوا رسول الله علیه وسلم ان یریهم ایة فاراهم انشقاق القمر مرتین.** (صحیح بخاري ج۲ ص۷۲۲، صحیح مسلم ج ۲ ص۳۷۳، ترمذی ج۲ ص۱٦۱)

ترجمه: دمکې او سیدونکو له حضور ﷺ نه غوښتنه وکړه چې څه معجزه وښایئ، حضور ﷺ هغوی ته د سپوږمۍ د دوه ټکړې کولو معجزه وښودله.

د حضرت ابن عمر رضی الله عنه په حدیث کې دي:

**انفلق القمر علی عهد رسول الله ﷺ، فقال رسول الله ﷺ اشهدوا.** (صحیح مسلم ص۳۷۳، ج ۲ ترمذی ص ۱٦۱ ج۲) ترجمه: د رسول الله ﷺ په زمانه کې سپوږمۍ دوه ټکړې شوه. حضور ﷺ وفرمایل چې ګواه اوسئ!

د حضرت جبیر بن معطم رضی الله عنه په حدیث کې دي:

**انشق القمر علی عهد رسول الله ﷺ حتی صار فرقتین علی هذا الجبل وعلی هذا الجبل، فقالوا سحرنا محمد، فقال بعضهم لان سحرنا فمایستطیع ان یسحر الناس کلهم.** (ترمذی ج۲ ص۱٦۱)

ترجمه: د حضور ﷺ په زمانه کې سپوږمۍ دوه ټکړې شوه. تردې چې یوه ټکړه په یوه غره باندې وه، او بله ټکړه په بل غره باندې وه، مشرکانو وویل چې (محمد ﷺ په موږ باندې جادو وکړ، ځینې خلکو وویل که چېرې هغه په موږ باندې جادو کړی وي، نو هغه په موږ ټولو باندې جادو نه شي کولی (په دې وجه باندې د خارج له خلکو نه پوښتنه کول پکار ده، هغوی له خارج نه راتلونکو خلکو نه پوښتنه وکړه، هغوی هم د دې خبرې تصدیق وکړ).

حافظ ابن کثیر رحمه الله په البدایه والنهایه (ج۳ ص۱۱۹) کې د حضرت حذیفه رضی الله عنه حدیث هم نقل کړی دی[1]، او حافظ ابن حجر رحمه الله په فتح الباری کې په (ج۷ ص ۲۲۳) باندې د حضرت

---

[1] د البدایه والنهایه ج:۳،ص: ۱۱۹ عبارت دا دي...... قال : خطبنا حذیفة بن الیمان بالمدائن فحمد الله تعالی واثنی علیه ثم قال : (اقتربت الساعة وانشق القمر ) الا وان الساعة قد اقتربت ! الا وان القمر قد انشق (البدایه ج:۳،ص: ۱۱۹ فصل انشقاق القمر فی زمان النبی صلی الله علیه وسلم ،طبع دارالفکر بیروت)

علي كرم الله وجهه د حديث حواله هم وركړې ده[1].
امام نووي رحمه الله په شرح مسلم كې ليكي:
قاضي عياض رحمه الله فرمايي چې د سپوږمۍ دوه ټكړې كيدل، زموږ د نبي كريم ﷺ په اوچتو معجزو كې يوه معجزه ده او دا ډيرو صحابه كرامو رضي الله عنهم نقل كړې ده. له دې نه پرته په دې ايت مباركه كې ''اقتربت الساعة وانشق القمر'' هم د دې تاييد شوى دى.
زجاج وايي چې ځينې بدعتيانو، كوم چې د ملت مخالف دي. له دې نه انكار كړى دى. او دا له دې وجې نه چې الله تعالى د هغوى زړونه ړانده كړي دي. كه نه عقل ته د دې د انكار كولو همت نه لري[2]، (شرح مسلم لامام النووي ج۲ ص ۳۷۳)

## د حضور ﷺ نكاح

**سوال:** په اول فروري باندې د ټي وي پروګرام "تفهيم دين"، كې جناب رياض الحسن ګيلاني صاحب د يو سوال په ځواب كې وويل چې: حضور ﷺ يو ويشت نكاح ګانې كړې وې، هغو كې يې د يارلس بيبيانې له ځان سره وساتلې او اتو ته يې طلاق وركړ، تر كومه پورې چې زما په ناقص علم كې دي. نو حضور ﷺ طلاق ته يو بد عمل ويلې دي، يو اځې د مجبورۍ په حالت كې يې د وركولو اجازه شته. له دې نه پرته زموږ په پوهه كې څه طلاق د حضور ﷺ خپلو بيبيانو ته وركول نشته. مهرباني وكړئ د دې حقيقت بيان كړئ!
**جواب:** يو ويشت نكاح ګانې زما علم كې نشته. تر كومه حده پورې چې ما ته معلومات دى، دوه ښځو ته يې له نكاح نه وروسته د هغوى په خوښه باندې طلاق وركړى و. زما كتاب "عهد نبوت كے ماه وسال"، كې د دې تفصيل موجود دى[3].

---

[1] قوله (باب سؤال المشركين ان يريهم النبى صلى الله عليه وسلم آية ،فاراهم انشقاق القمر) فذكر فيه حديث ابن مسعود وانس وابن عباس فى ذلك، وقد ورد انشقاق القمر ايضاً من حديث على وحذيفة وجبير بن مطعم وابن عمر وغيرهم..الخ (فتح البارى ج:٦،ص: ٦٣٢)

[2] قَالَ الْقَاضِي : انْشِقَاق الْقَمَر مِنْ أُمَّهَات مُعْجِزَات نَبِيّنَا صَلَّى اللَّه عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ، وَقَدْ رَوَاهَا عِدَّة مِنْ الصَّحَابَة رَضِيَ اللَّه عَنْهُمْ مَعَ ظَاهِر الْآيَة الْكَرِيمَة وَسِيَاقهَا ، قَالَ الزَّجَّاج : وَقَدْ أَنْكَرَهَا بَعْض الْمُبْتَدِعَة الْمُضَاهِينَ الْمُخَالِفِي الْمِلَّة ، وَذَلِكَ لَمَّا أَعْمَى اللَّه قَلْبه ، وَلَا إِنْكَار لِلْعَقْلِ فِيهَا (شرح النووى لمسلم ج:٢،ص: ٣٧٣ ، باب انشقاق القمر ،طبع قديمى كتب خانه)

[3] د عهد نبوت ماه وسال ص: ٢٩٢، ٢٩٣ د فصل ٨ هــ واقعات (طبع مكتبه لدهيانوى)

# د خاتم الانبیاء ﷺ په ودونو باندې دشک وضاحت

**سوال:** زموږ یودوست چې ډیرلوی فنکاردی،هغه اکثرددین په خبروباندې تبصره کول ضروري ګڼي او اکثروخت هغه دنبي کریم ﷺ دودونو په مسئله کې وایي چې زه په دې خبره باندې حیران یم چې ددومره ډیرو مصروفیاتو، جهاد، تبلیغ سره سره له هغه سره دومره وخت څنګه وچې دومره ودونه یې کړي وو او دښځوحقونه یې پوره کولی شو، ددې تبصرې زه څه ځواب ورکړم؟وضاحت راکړئ،ماته ډیر افسوس کیږي.

**جواب:** دیورپ مستشرقینو دخپل تعصب ،کم عقلي اوجهل مرکب له وجې داسلام هغه مسائل چې دتنقیدله پاره نشانه جوړکړي دي په هغو کې دحضور ﷺ دډیرو ودونو مسئله هم ده،په کومه باندې چې هغوی ډیر زهر شیندلي دي،زموږ نوې طبقه خلک له مستشرقینونه ډیره مرعوبه دي اوداحساس کمتري ښکاردي، هغوی په داسې ټولو مسائلو کې، چې مستشرقینوته اعتراض وړ دي پښېماني او معذرت رویه خپله کړې ده ،دوی دا خواهش لري چې دمغرب په وړاندې دروشن فکره او روڼ انده کیدو له پاره له دې حقائقونه بیخي انکار وکړي، هغوی دعقلي شبهاتوپه ذریعه ددې حقائقودغلط ثابتولوکوششونه کوي. ستاسو ددوست خبرې هم ددې ذهنیت عکاسي کوي، هغوی په ښکاره په ډیرمعصومانه اندازکې پوښتنه کوي چې حضور ﷺ به ددې دومره بیبیانو حقوق څنګه پوره کولی شول؟ خو دسوال منشاپه اصل واقعه باندې اعتراض دی.

په هرحال که ستاسودوست څو بنیادي خبرې په ذهن کې وساتي نوزه امیدلرم چې دهغه شکونه به لرې شي:

۱:له ټولونه مخکې په دې خبره پوهېدل ضروري دي چې ددین اسلام مسائل دخوش طبعي او ټوکو موضوع ګرځول ډیرخطرناک مرض دی،بنده ته په ډیره کلکه سره له دې کارڅخه پرهیزکول پکاردي، خصوصاً دحضور ﷺ محترم ذات (چې داهل ایمان له پاره یواځې مرجع نه بلکې دایمان دراو مدارهم دی) اودحضور ﷺ په باره کې خبرې کول خودهیڅ یو مسلمان له پاره روانه دي،په قران کریم دهغو منافقانو واقعه ذکر شوې ده چې په خپلو محفلونوکې به یې په نبي کریم ﷺ اوقراني ایتونوپورې ټوکې او مسخرې کولې،کله به چې له هغوی نه په دې اړه پوښتنه وشوه ؛نو هغوی به ویل :موږ خوهسې دګپ شپ اوزړه خوشحالولوخبرې کولې ،الله تعالی ددوی ددې عذر په ځواب کې وفرمایل:ایاتاسو دالله تعالی سره، دهغه دایتونوسره اودهغه درسول سره ټوکې کولې؟...بهانې مه جوړوئ تاسو دایمان ددعوي نه

وروسته کفر کړی دی. (التوبه ۲۵.۲۲)[۱]

له دې نه معلومیږي چې الهي ایات او د حضور ﷺ مبارک ذات د خپل کپ موضوع جوړول ځو مره خطرناک دي، هغه ته چې قران کریم کفر ویلي دي. له دې وجې نه هر مسلمان نه. چې په زړه کې یې د سپیلني د داني برابر ایمان هم وي زما غوښتنه ده چې د حضور ﷺ هیڅ یو قول یا فعل د خپلو تبصرو موضوع و نه ګرځوي. داسې نه وي چې په بې خبري کې یې یو غیر مناسب لفظ له دژبې نه ووځي او د ایمان دولت یې برباد شي **نعوذبالله من ذالک.**

۲. یوه بنیادی غلطي داده چې هغه د حضور ﷺ کې د خپلې علمي سطحې مطابق غورا و فکر کوي او کله چې هغوی په حضور ﷺ کې څه خبره د خپلې ذهني سطحې نه پورته ویني نو دهغوی ذهن د دې خبرې د قبلولو له پاره تیار نه وي او کوم خصوصیات او کمالات چې حضور ﷺ ته ورکړل شوی دی هغه زمونږ د فهم او ادراک نه لوړ دی. هلته د هیڅ یو پیری یا انسان د فکر رسېدل نشت. کوم ځای کې چې د جبرائیل امین وزرې سوځي نو هلته دیو کمزوري انسان د عقل د رسیدو څه مجال کیدی شي؟ ستاسو دوست هم په دې بنیادي غلطي کې راګیر ښکاري، که هغه د حضور ﷺ د معاملاتو سره ناپ کړی وي. نو هغه ته به هیڅ حیرانتیا نه وه چې حضور ﷺ به څنګه د دو مره ډېرو مصروفیاتو سره د ټولو ښځو حقونه پوره کول؟ عالمانو ته پته ده چې د حضور ﷺ هره ادا یو اعجاز لري او حضرت محمد ﷺ په دومره مختصر وخت کې د الله تعالی په توفیق سره په انساني ژوندکې چې کوم انقلاب راوست او امت یې د روحاني او مادي کمالاتو کوم لوړ مقام پورې ورساو ایا که ټول امت رایو ځای شي. نو داسې کارنامه کولی شي؟ او د حضور ﷺ کومه یوه خبره داسې نه ده چې اعجاز نه لري؟ دام المومنین حضرت عائشه ﷺ په وینا د حضور ﷺ کومه یوه معامله عجیبه نه وه؟

۳. ستاد وست لره دا نکته هم هیرول پکار نه دي چې یواځې عقلي احتمالاتو سره. یاد حیرانتیا او تعجب په وجه د یو حقیقت یا واقعې نه انکار نه شي کیدای. مثلاً یو کس د سر په سترګو سره راختلي لمر ته ګوري او ددې په ځای یو نابینا او ړوند سړی یواځې د عقلي احتمالاتو په ذریعه د دې ښکاره حقیقت نه انکار وکړي او په دې باندې حیران شي. نو د عقل خاوندان به د دې نابینا او ړوند په عقل او فهم اعتراض ونه کړي؟ بلکې دی به له ړوندوالي سره سره ... ی هم وګڼي. همدارنګه د حضور ﷺ د ازواج مطهراتو حقوق ښه او په عدل سره اداکول یوه حقیقي واقعه ده.

---

[۱] وَلَئِنْ سَأَلْتَهُمْ لَيَقُولُنَّ إِنَّمَا كُنَّا نَخُوضُ وَنَلْعَبُ قُلْ أَبِاللهِ وَآيَاتِهِ وَرَسُولِهِ كُنْتُمْ تَسْتَهْزِءُونَ لَا تَعْتَذِرُوا قَدْ كَفَرْتُمْ بَعْدَ إِيمَانِكُمْ (التوبة: ٦٥. ٦٦)

دحضرت عبدالله بن عباس رضي الله عنهما نه روايت دي چې كله حضور ﷺ له دې دنيانه تشريف يوړ. نوهغه وخت كې دحضور ﷺ نهه بيبيانې وې.په هغو كې به يې اتوكره نمبرپه نمبرشپه تيروله.(حضرت سوده رضي الله عنها خپل نمبرحضرت عائشه ته وركړى و.له دې وجې نه به يې هلته شپه نه تيروله)(صحيح بخاري ومسلم .مشكوة ص:٢٧٩)[1]

حضرت عائشه رضي الله عنها فرمايي چې حضور ﷺ به ډيرپه عدل اوانصاف سره دخپلو بيبيانو حقونه اداكول اوبيابه يې دادعافرمايله يا الله كومه خبره چې زما په اختياركې ده نوپه هغه كې خوپوره په عدل اوانصاف سلوک کوم اوكوم څه چې ستاپه اختياركې دي زماپه اختياركې نه دي(يعني ديوې بي بي طرف ته دزړه زيات ميلان)په هغې باندې مامه ملامته كوه.[2] (ترمذي. ابوداود . نسائي.ابن ماجه.دارمي.مشكواة.ص:٢٧٩)

له دې ډول ډېروحديثونو اوپه خپله دامهات المومنين رضوان الله اجمعين نه مروي دي. كويادايومنل شوى حقيقت دى چې حضور ﷺ به نه يوائې دازواج مطهرات حقوق اداكول بلكې هغه دانصاف اوعدل يواعلى مثال هم قائم كړاودنيانه يې وښوده.حضور ﷺ په خپله فرمايي:په تاسوكې له ټولونه بهترهغه كس دى چې دخپل كوروالو له پاره ښه وي اوزه دخپلو كوروالوله پاره له تاسوټولونه بهتريم[3].(ترمذي.دارمي،ابن ماجه .مشكوة.ص:٢٨١)

اوس په دې ثابت شوي حقيقت باندې دحيرانتياا ظهاركول اوددې نه دانكاركوشش كول. په دې باندې هغه دړوند او نابينا مثال صادقيږي چې يوائې په سترګو پټولوسره اودعقلي احتمالاتو په ذريعه دلمردراختلونه دانكاركوشش كوي.

۴:اوكه ستاسودوست ته په دې كې شک وي چې د امت له پاره دڅلورو ودونواجازه دى دحضور ﷺ له پاره دڅلورونه زيات ودونه څنګه جائزو؟نوده ته په دې خبره پوهېدل پكار دي چې دحضور ﷺ له پاره الله تعالى ډيرخصوصي حكمونه وركړي وو.كوموته چې داهل علم په اصطلاح كې..خصائص نبوي..ويل كيږي.حافظ سيوطي رحمه الله په ..الخصائص

---

[1] عن ابن عباس رضى الله عنهما ان رسول الله صلى الله عليهم قُبض عن تسع نسوة وكان يقسم منهم لثمان متفق عليه ( مشكوة ص:٢٧٩ باب القسم الفصل الاول) وعن عائشة رضى الله عنها ان سودة لما كبرت قالت : يا رسول الله ! قد جعلت يومى منك لعائشة فكان رسول الله صلى الله عليه وسلم يقسم لعائشة يومين . يومها ويوم سودة متفق عليه( مشكوة ص:٢٧٩ باب القسم) .

[2] عن عائشة رضى الله عنها ان النبى صلى الله عليه وسلم كان يقسم بين نسائه فيعدل ويقول : اللهم هذا قسمى فيما املك فلا تلمنى فيما تملك ولا املك رواه الترمذى وابوداؤد والنسائى وابن ماجة والدارمى (مشكوة ص:٢٧٩ ، باب القسم الفصل الثانى)

[3] وعنها اى عَنْ عائشة قالتْ قال رسُولُ اللّه صلى الله عليه وسلم خيْرُكُمْ خيْرُكُمْ لأهْله وأنا خيْرُكُمْ لأهْلى رواه الترمذى والدارمى ورواه ابن ماجه عن ابن عباس (مشكوة ص:٢٨١ باب عشرة النساء الفصل الثانى)

الکبری.. او حافظ ابونعیم په. خصائص نبوي او علامه قسطلاني په ..مواهب اللدنیه..
کې ددې خصائصو یوه لویه ذخیره راجمع کړې دهد. دنکاح په باره کې دحضورﷺ ګڼ شمیر خصوصیات وو. چې دسورهٔ احزاب په شپږمه رکوع کې الله تعالی ذکر کړي دي او په هغو کې یو خصوصیت دا و چې دهغه له پاره دڅلورونه زیاتو ودونو اجازه و
بل دا چې دحضورﷺ له پاره دخپل مورني او پلرني خاندان دهغو ښځو سره دنکاح کولو جایز وه چا چې دمکې مکرمې نه مدینې طیبې ته هجرت کړی وا و دهغه دخاندان کومو ښځو چې هجرت نه و کړی دهغوی سره دهغه نکاح روا نه وه. یو خصوصیت دا و چې که یوه ښځه حضورﷺ ته له مهر پرته دواده وړاندیز وکړي او حضورﷺ یې قبول کړي. نو له مهرپرته واده صحیح و. سره له دې چې دامت له پاره په نکاح کې مهرضروري دی. که ښځه او خاوند دا شرط مقرر کړي چې مهر به نه وي نو بیا به هم. .مهر مثل . .لازم وي.
دحضورﷺ بل خصوصیت دا و چې دښځو ترمینځه برابري دهغه ذمه واري نه وه. (له دې سره به حضورﷺ دازواج مطهرات ترمینځه برابري .عدل او انصاف پوره پوره کاو. څنګه چې ما پورته وویل)[1] سره له دې چې دامت له پاره دچا چې دوه یا دوونه زیاتې ښځې وي دهغوی په ذمه دښځو ترمینځه برابري ساتل فرض دي . په حدیث شریف کې دي چې:
``دچا چې دوه ښځې وي او دهغوی ترمینځه عدل او برابري ونکړي نو هغه به دقیامت په ورځ په داسې حالت کې راشي چې دهغه یو طرف به فالج وهلی وي[2] .(ترمذی. ابوداود . نسائی. ابن ماجه. مشکوة. ص۲۷۹)

---

۱] یأیها النبی إنَّآ أحْلَلْنَا لَكَ أزواجك الاتی ءاتَیْتَ أُجُورهُنَّ } مهورهنّ { وَمَا مَلَكَتْ یمینُكَ ممَّآ أفآءَ الله علَیْك } {وَبَنات عمِّكَ وبنات عماتك وبنات خالك وبنات خالاتك الاتیهاجرن معكَ } بخلاف من لم یهاجرن { وامرأةً مُّؤْمنةً إن وهبتْ نفْسها للنَّبیِّ إنْ أراد النبی أن یَسْتنكحَها } یطلب نكاحها بغیر صداق {خَالصَةً لَّكَ من دُون المؤمنین } النكاح بلفظ الهبة من غیر صداق { قَدْ عَلمْنَا مَا فَرَضْنَا عَلَیْهِمْ } أي المؤمنین { فی أزواجهم } من الأحكام بأن لا یزیدوا علی أربع نسوة ولا یتزوّجُوا إلا بوليّ وشهود ومهر { لّكَیْلا یكُون علَیْكَ حَرَجٌ } ضیق في النكاح { تُرْجي } تؤخر { مَن تشآءُ منْهُنّ } أي أزواجك عن نوبتها { وتُئوی } تضمّ { إلَیْكَ من تَشاء } منهنّ فتأتیها { ومن ابتغیت } طلبت { ممّنْ عزلت} من القسمة { فلاَ جُناح علَیْكَ } في طلبها وضمها إلیك .{ لاَ یحلُّ لكَ النسآء من بعْدُ } بعد التسع اللاتيّ اخترنك { وَكان الله علی كُلّ شَيْءٍ رَّقیباً } (تفسیر جلالین ص:۳۵٦ سورة الاحزاب آیت ۵۰, ۵۱)

۲]عَنْ أَبِی هُرَیْرَةَ عَنِ النَّبِیِّ صلی الله علیه وسلم قَالَ « إذا كان عنْدَ الرَّجُلِ امْرأتان فَلَمْ یَعْدلْ بَیْنهما جاء یوْمَ الْقیامة وشقُّهُ ساقطٌ رواه الترمذی وابوداؤد والنسائی وابن ماجه والدارمی (مشكوة ج:۱.ص: ۲۷۹ باب القسم ، الفصل الثانی)

غرض دا چې د نکاح په باره کې د حضور ﷺ ډېر خصوصيات وو او په يو وخت کې د څلورونه زياتې ښځې راجمع کول هم د غه خصوصياتو کې شامل دي. د کوم تصريح چې خپله په قران پاک کې موجود ده.

حافظ سيوطي رحمه الله په ..خصائص کبرى..کې ليکي چې په شريعت کې د غلام له پاره يو اخې د دوو ودونو اجازه ده او د ازاد له پاره د څلوروودونو اجازه ده. کله چې ازادته د غلام په مقابله کې د څلوروودونو اجازه ده نو حضور ﷺ ته به د عام امت په مقابله کې د زياتو ودونو اجازه ولې نه وي[1]

ګڼ شميرداسې نبيان وو چې د هغوى له څلورونه زياتې ښځې وې. لکه چې د حضرت داود عليه السلام په باره کې منقول دي چې د هغه سل ښځې وې[2]. (صحيح بخاري ج ۱ ص ۳۹۵) کې دي چې د حضرت سليمان رحمه الله سل يا نهه نوي بيبياني وې. په څينو رواياتو کې کم يا زيات تعدادراغلى دى. فتح البارى کې حافظ ابن حجر رحمه الله د دې رواياتو تطبيق کړى دى او دوهب بن منبه قول يې نقل کړى دي چې د حضرت سليمان رحمه الله درې سوه بيبيانې او اوو سوه وينځې وې[3]. (فتح البارى ج ۲ ص: ۲۲۰)

په بايبل کې د دې برعکس ذکرشوي دي چې د حضرت سليمان عليه السلام اوو سوه ښځې او درې سوه وينځې وې. (۱ سلاطين ۱۱-۳) ښکاره ده چې دې ټولو حضراتو به د هغوى حقوق اداکول. له دې وجې نه د حضور ﷺ د نهو بيبيانو حقونه اداکول څه د تعجب خبره ده؟

**۵:** د حضور ﷺ د خصوصياتو په باره کې دا خبره هم هېرول نه دي پکار چې د ګڼو حديثونو نه ثابته ده چې حضور ﷺ ته د څلويښتو جنتي سړيو برابر طاقت ورکړل شوى و او هر جنتي ته به

---

۱] قال العلماء لما كان الحر لفضله على العبد يستبيح من النسوة اكثر مما يستبيحه العبد وجب ان يكون النبى صلى الله عليه وسلم لفضله على جميع الامة يستبيح من النساء اكثر ما تستبيحه الامة (الخصائص الكبرى ج:۲،ص: ٤۲۶، باب اختصاصه صلى الله عليه وسلم بنكاح اكثر من اربع نسوة وهو اجماع ، طبع دارالكتب العلمية،بيروت)

۲] ذكر انه كان لسليمان عليه السلام ثلاث مئة امرة مهرية وسبع مئة سرية وانه كان لداؤد عليه السلام مائة امراة (روح المعانى ج:۱۳،ص: ۱۶۸، سورة الرعد :۳۸، التفسير الكبير ج:۷،ص: ٤۹ طبع حقانيه)

۳] عن ابى هريرة رضى الله عنه عن رسول الله صلى الله عليه وسلم قال : قال سليمان بن داؤد عليه السلام لاطوفن الليلة عى ماة امراة او تسع وتسعين.......الخ (بخارى شريف ج:۱،ص: ۳۹۵،كتاب الجهاد ،باب من طلب الولد للجهاد) فمحصل الروايات ستون وسبعون وتسعون وتسع وتسعون وماة، والجمع بينها ان الستين كن حرائر وما زاد عليهن سرارى او بالعكس و اما السبعون فللمبالغة واما التسعون والماة فكن دون الماة وفوق التسعين فمن قال التسعون الغى الكسر ومن قال ماة جبره ومن ثم وقع التردد فى رواية جعفر....... وقد حلى وهب بن منبه ( فى المبتداء) انه كان لسيلمان الف امراة ثلاث مائة مهرية وسبع مائة سريه (فتح البارى ج:۶،ص: كتاب الانبياء طبع دار نشر الكتب الاسلاميه لاهور پاكستان)

دسلو سړو برابرطاقت ورکول کيږي. په دې حساب سره په حضورﷺ کې دڅلور زرو سړيو برابر طاقت و[۱]. (فتح الباري ج ۱ ص ۳۷۸)

کله چې دامت کمزوري سړي ته دڅلوروودونواجازه ده. نوحضورﷺ ته چې دڅلوروزرو سړيو برابر طاقت ورکړل شوي و. نوهغه ته کم نه کم دد شپاړس زره ودونواجازه پکارو..!

۶:په دې مسئله باندې له يوبل اړخ نه هم غورکول پکاردي چې يوداعي خپل دعوت دسړيو په حلقه کې بې تکلفه کولی شي. خو ښځوته بې مخامخ نه شي کولی. الله تعالی ددې يودا انتظام وکړچې هرکس ته دڅلوروښځوکولواجازه ده چې په نوې اصطلاح کې دهغه دپرائيويټ سيکرټري کار ورکړی شي اودښځوپه حلقه کې دده پيغام خپورکړی شي. کله چې ديوامتي له پاره الله تعالی په خپل حکمت سره داانتظام کړی دی نودحضورﷺ له پاره، څوک چې دقيامت پورې دټول انسانيت له پاره نبي، هادي اومرشددی .دقيامت پورې دپوره انسانيت سعادت دهغه دقدمونو سره تړل شوی دی که الله تعالی په خپل خصوصي رحمت سره دامت دښځوداصلاح اوتربيت له پاره خصوصي انتظام کړی وي. نوپه دې کې هيڅ دحيرانتياخبره نشته، ځکه چې دحکمت اوهدايت همدغه غوښتنه ده

۷:له دې سره سره داخبره هم په ياد ساتل پکاردي چې دحضورﷺ دخلوت اوجلوت پوره ژوندد هدايت کتاب و. دحضورﷺ دجلوت افعال اواقوال نقل کولوله پاره خوپه زرګونو صحابه کرام موجود وو، خو دهغوی دخلوت اوتنهايي حالات دامهات المومنين نه پرته چا نقل کولی شول؟ الله تعالی دحضورﷺ ددې پټو حالاتو دښکاره کولوله پاره دتعددازواج انتظام وکړچې دهغه په وجه دسيرت طيبه پټ اړخونه هم دامت په وړاندې ښکاره شول اودحضورﷺ دخلوت اوجلوت ژونديوه ښکاره کتاب جوړشو. کوم چې هرڅوک اوهروخت کتلی شي.

۸:که غوروکړل شي نوکثرت ازواج په دې لحاظ سره معجزه ده چې دمختلفو مزاجو اومختلفو قبايلوګڼ شميرښځې دحضورﷺ د ذاتي ژوند شپه اوورځ مشاهده کوي اوهغوی ټولې په يوه خوله. دهغهﷺ دتقدس، دهغه دحيثيت اوتقوی، دهغه دخلوص اوللهيت اودهغه دپيغمبرانه اخلاقواواعمالوګواهي ورکوي.

---

[۱]اعطيت قوة اربعين فی البطش والجماع ، وعند احمد والنسائی ، وصححه الحاكم من حديث زيد بن ارقم رفعه : ان الرجل من اهل الجنة ليعطی قوة مائة فی الاكل والشرب والجماع والشهوة فعلی هذا يكون حساب قوة نبينا اربعة آلاف (فتح الباری ج:۱،ص: ۳۷۸ طبع دار نشر الكتب الاسلاميه لاهور پاكستان)

که خدای مکړه د حضور ﷺ په ذاتي ژوندکې څه معمولي کوږوالی موجود وی. نود دومره ګڼ شمیر ازواجو په وړاندې هغه پټ نه شو پاتې کېدای .د حضور ﷺ د ذاتيي ژوند پاکي یو داسې شهادت دی چې په خپله د صداقت دلیل او د نبوت معجزه ده.د لته د نمونې په بڼه د ام المومنین حضرت عائشې رضی الله عنها یوه وینا نقل کوم چې له هغې نه به د حضور ﷺ د ذاتي ژوند د پاکي. تقدس اوطهارت څه نا څه اندازه و شي. هغه فرمایي چې ماکله هم د حضور ﷺ عورت نه دی لیدلی او نه کله حضور ﷺ زما عورت لیدلی دی.[1] . .

ایا په دنیاکې یوه ښځه د خپل خاوند په باره کې داشهادت ورکولی شي چې د دومره مودې راهیسې هغوی د یو بل عورت نه وي لیدلی او ایا له دې اعلی اخلاقو .شرم اوحیا د نبي د ذات نه پرته بل ځوک نمونه کېدای شي؟ غورو کړئ چې د حضور ﷺ د ژوند د دې پټ اړخ له ازواج مطهراتو نه پرته چا نقل کولی شو؟

## له طائف نه مکې مکرمې ته نبي علیه السلام د چا په پناه کې تشریف یوړ؟

**سوال:** سردار دوعالم ﷺ چې کله طائف ته لاړ.ایا د هغه له مکې مکرمې نه شهریت ختم شوي واو بیا هغه د یو سړي په امن کې داخل شوی و.که داسې وي نو د هغه سړي نوم هم ولیکئ چې هغه سړی څوک و؟

**جواب:** مولانا محمد ادریس کاندهلوي رحمه الله په سیرة المصطفی (جلد ۱ صفحه ۲۸۱) کې، مولانا ابو القاسم رفیق دلاوي په سیرت کبری (جلد ۲ صفحه ۱-۷) کې د طبقات ابن سعد په حواله سره (په سیرت مصطفی کې د زاد المعاد حواله هم ورکړل شوې ده) او حافظ ابن کثیر په البدایه والنهایه (ج۳ ص۱۳۷) کې د اموي مغازي په حواله سره نقل کړي دي، چې نبي علیه السلام د مطعم بن عدي په پناه کې تشریف راوړی وو او په پناه کې د راتلو دا مطلب نه و .چې له دې نه مخکې د مکې شهریت ختم شوي و ،بلکې دا مطلب یې و چې مطعم بن عدي ضمانت ورکړی و .چې اینده له پاره به د مکې خلک نبي کریم ﷺ ته تکلیف نه ورکوي.[2]

---

[1] خصائل نبوی ص: ۳۱۹ طبع میزان_

[2] د البدایه والنهایه عبارت دا دې ان رسول الله صلی الله علیه وسلم ...... فبعثه الی المطعم بن عدی یجیره ، فقال: نعم .....الخ (البدایه والنهایه ج:۳،ص: ۱۳۷ ، ایضاً : سیرة المصطفی ج:۱،ص: ۲۸۱ سیرت کبری ج:۲،ص: ۷۰۱)

## د نبي كريم ﷺ د سينې اواز

**سوال:** یو روایت کې دي چې د لمونځ په وخت کې به د حضور ﷺ نه د جوش په وجه باندې د کټوې د ویشیدو په شان اواز راتلو او یو ځای کې ماداهم لوستلي دي چې دا اواز به یو میل پورې اوریدل کیده، دا حدیث د درایت خلاف معلومیږي. ځکه چې حضور ﷺ به کور ته داخل شو نو سلام به یې هم داسې اواز سره کاوچې ویده کس به هغه باندې نه راویښیده او ویښ کس به سلام اوریده. کوم اواز چې یو میل پورې اوریدل کیدای شي. نو هغه سړه د نژدې کس به څه حال وي؟ د ما شوما نو خو به غوږونه شلیدلي وي او د خوب خو سوال هم نه پیداکیږي

**جواب:** د یو میل پورې اوریدو خبره خو مې په لومړي ځل باندې ستاسو په دې خط کې ولیده. ماداسې هیڅ روایت نه دی لیدلی. نو د سند باره کې به څه عرض وکړم

## مخامخ ستاینه د هر چا له پاره منع ده

**سوال:** حدیث شریف کې دي چې په مخامخ باندې د تعریف کونکي په خوله کې خاوره واچوئ او حضور ﷺ په خپله خپل شان کې قصیدې اوریدلي دي، یوه قصیده باندې خوشحالیدو سره حضور ﷺ کعب بن زهیر ته خپل څادر مبارک ورکړ. کوم چې بیا حضرت معاویه رضی الله عنه له هغه نه په شل زره درهمه باندې واخست

**جواب:** د هر یو کس حالات مختلف وي. خوله کې خاورې اچولو نه مراد دادی چې ستاسو نفس خراب نه شي. د حضور ﷺ باره کې د دې خبرې هیڅ احتمال نشته[1]. بیا یو کس د کوم

---

[1] عن المقداد بن الاسود قال : قال رسول الله صلى الله عليه وسلم : اذا رايتم المداحين فاحثوا فى وجوههم التراب رواه مسلم (مشكوة ص:۴۱۲) وفى المرقاة : والمراد زجر المادح والحث على منعه من المدح لانه يجعل الشخص مغروراً ومتكبراً (مرقاة المفاتيح ج:۴،ص: ۶۲۶ باب حفظ اللسان والغيبة والشتم) وفى شرح المسلم للنووى : باب النهى عن المدح اذا كان فيه افراط وخيف منه فتنة على الممدوح ذكر مسلم فى هذا الباب الأحاديث الواردة فى النهى عن المدح وقد جاءت أحاديث كثيرة فى الصحيحين بالمدح فى الوجه قال العلماء وطريق الجمع بينها أن النهى محمول على المجازفة فى المدح والزيادة فى الأوصاف أو على من يخاف عليه فتنة من إعجاب ونحوه اذا سمع المدح وأما من لايخاف عليه ذلك لكمال تقواه ورسوخ عقله ومعرفته فلا نهى فى مدحه فى وجهه اذا لم يكن فيه مجازفة بل إن كان يحصل بذلك مصلحة كنشطه للخير والازدياد منه أو الدوام عليه أو الاقتداء به كان مستحبا والله أعلم (شرح نووى على مسلم ج:۲،ص: ۴۱۴ طبع قديمى كتب خانه ) وفى فتح البارى: حاصل النهى ان من افرط فى مدح آخربما ليس فيه لم يامن على ممدوح العجب لظنه انه بتلك المنزلة، فربما ضيع العمل والازدياد من الخير اتكالاً....على ما وصف به ولذلك تاول العلماء فى الحديث الآخر ... احثوا فى جوه المداحين التراب...ان المراد من يمدح الناس فى وجوههم بالباطل وقال عمر: المدح هو الذبح وقال واما من مدح بما فيه فلا يدخل فى النهى . فقد مدح صلى الله عليه وسلم فى الشعر والخطب والمخاطبة ولم يحث فى وجه مادحه تراباً (فتح البارى ج:۱۰،ص: ۴۷۷)

باره کې چې دقتل کولو حکم وفرمایلوهغه دامن اوعقیدت قصیدې لولی. هغه په رښتیا باندې دانعام مستحق دی

## د" نژدې وه چې نبیان شوي وای ، معنا

**سوال:** حدیث شریف کې دي چې دیوې ډلې څه خلک دحضور ﷺ خدمت ته حاضرشول. دهغوی دصفتونو اوریدو سره حضور ﷺ وفرمایل چې "عجیبه به نه وه چې نبیان شوي وای. دخپل زوی حضرت ابراهیم علیه السلام باره کې یې هم داسې فرمایلي و .که ژوندی پاتې شوی وای نونبي به و .سوال دادی چې کله دحضور ﷺ نه وروسته نبي نشته نو "نژدې ده چې نبیان شوي وای، ، نه څه مراددی؟

**جواب:** عجیبه نه ده چې نبیان شي. داترجمه غلطه ده، دحدیث شریف الفاظ دادی. **حکماء علماء کادوامن فقههم ان یکونوا انبیاء**، عالمان. دحکمت والاخلک دی اونژدې وه چې هغوی دخپلې فقې په وجه باندې نبیان شوي وای. عربي ژبه کې داسې الفاظ دچاپه مینه کې دډیرې مبالغې په طورباندې استعمالیږي. دحقیقت خلاف استدلال کول صحیح نه دي. ځکه چې دهغه ژوندی پاتې کیدل ممکن نه و .نونبي کیدل به یې څه ممکن و، که چیرې نبوت دهغه په تقدیرکې وای نوهغه به ژوندی پریښودل شوی و .خونبوت ممکن نه و .په دې وجه باندې ژونددهغه په برخه نه شو. دزوی باره کې یې فرمایلي و: "که چیرې ابراهیم ژوندی وای نوصدیق نبي به و، داروایت هم ډیرکمزوری دی. بیادلته تعلیق بالمحال دی. دابحث زماپه رساله "ترجمه خاتم النبیین. کې په صفحه ۲۷۷ او۲۷۸ باندې راغلی دی. هغه دلته نقل کوم:

اسماعیل بن ابی خالدوایي چې مادابن ابی اوفی رضی الله عنه نه پوښتنه وکړه چې ایا تاسو د حضور ﷺ زوی حضرت ابراهیم رضی الله عنه لیدلی دی؟ وې فرمایل: **مات صغیرا،ولوقضی ان یکون بعد محمد ﷺ نبي عاش ابنه، ولکن لانبي بعده،** یعنې هغه په ماشوموالي کې وفات شوی واو که چیرې دالله تعالی دافیصله وای چې دحضور ﷺ نه وروسته به بل نبي راځي، نود حضور ﷺ زوی به ژوندی وای، خودحضور ﷺ نه وروسته بل نبي نشته(په دې وجه باندې یې زوی هم ژوندی پاتې نه شو. (صحیح بخاري باب من سمي باسماء الانبیاء ج۲ ص ۹۱۴)

اوهمدغه حضرت ملاعلي قاری لیکلي دي، هغه په موضوعات کبری کې دابن ماجه دحدیث **لوعاش ابراهیم.... الخ**، په تشریح کې لیکلی:

**الاان فی سنده ابوشیبة ابراهیم بن عثمان الواسطی، وهوضعیف لکن له طرق ثلثة یقوي بعضهابعضا،ویشیرالیه قوله، تعالی: ماکان محمدابااحدمن رجالکم ولکن رسول الله خاتم**

النبين، بأنه لم يعش له ولد يصل الى مبلغ الرجال. فان ولده من صلبه يقتضى ان يكون لب قلبه، كما يقال، الولد سر لابيه. ولو عاش وبلغ اربعين، وصار نبياً لزم ان لايكون نبياخاتم النبين،(موضوعات كبرى حرف، "لو، ص ٦٩ مطبوعه مجتبائي قديم)

ترجمه: ددې حديث د سند يو روايت كونكى ابو شيبه ابراهيم بن عثمان الواسطى ضعيف دى. خو دهغه درې طريقي دي. چې ديو بل تاييد كوي او دالله تعالى ارشاد دى: وخاتم النبين، الاية. هم دې طرف ته اشاره كوي. چې د حضور ﷺ يو زوى هم ژوندى پاتې نه شو. كوم چې د بالغ سړيو عمر ته ورسيږي. خكه چې د حضور ﷺ زوى. د حضور ﷺ له شامباركې څخه واو دا خبره ددې غوښتنه كوله چې هغه د حضور ﷺ د زړه مغز (يعني د حضور ﷺ د كمالاتو او خصوصياتو مجموعه) و. څنګه چې مشهور متل دى چې: زوى د پلار په شان وي. او س كه چېرې هغه ژوندى واى او د څلويښتو كالو عمر ته رسيدلى واى او نبي شوى واى. نو نبي عليه السلام به خاتم النبيين نه و پاتې شوى.

د ملاعلي قاري رحمه الله پورته بيان شوې تشريح نه دا خبره واضحه شوه چې:

الف: ايت خاتم النبين كې د ختم نبوت د اعلان بنياد د (ابوة) په نفي باندې ايښودلو سره دې طرف ته اشاره شوې ده چې د حضور ﷺ نه وروسته كه چېرې موږ چاته نبوت وركولى نو موږ به د حضور ﷺ زامن ژوندي ساتلي وو او هغوى ته به مو دا منصب وركړى و. خو حضور ﷺ باندې د نبوت سلسله ختمه شوه. له دې وجې د حضور ﷺ زامن ژوندي پاتې نه شول او نه حضور ﷺ د بالغو زامنو پلار شو.

ب: هم دا مضمون د حديث لو عاش ابراهيم لكان صديقا نبيا، هم دى. يعنې د حضور ﷺ نه وروسته كه چېرې د نبوت ګنجايش واى نو هغه له پاره به د حضور ﷺ زوى ژوندى ساتل شوى واى، او هغه به نبي واى. دې حديث موږ ته بيان كړل چې ابراهيم رضي الله عنه په دې وجه باندې نبي نه شو چې د حضور ﷺ نه وروسته د نبوت دروازه بند شوه. كه چېرې داسې نه واى نو هغه به ژوندى وى او صديق نبي به و.

## د حضور ﷺ د جنازې لمونځ څنګه شوى و؟

**سوال:** د حضور ﷺ د جنازې د لمونځ امامت چا كړى و؟ تفصيل سره وليكئ چې د حضور ﷺ د جنازې لمونځ كوم ترتيب سره شوى و؟

**جواب:** حاكم (ج۳ ص ۶۰) د حضرت عبدالله بن مسعود رضي الله عنه روايت دى چې موږ د رسول الله ﷺ نه پوښتنه وكړه يارسول الله! ستاسو د جنازې لمونځ به څوك كوي؟ حضور ﷺ وفرمايل: چې زما له كفن نه فارغ شئ. نو څه وخت له پاره د حجرې نه باندې ووځئ. د ټولو نه مخكې به جبريل زما د جنازې لمونځ كوي. بيا ميكائيل. بيا اسرافيل. بيا ملك الموت. بيا

تولې فرښتې .له هغه نه وروسته زما داهل بیت سړي. بیا داهل بیت ښځې او بیا تاسو ټول ډلې ډلې ما باندې صلوة او سلام ولولئ[1]

هم ددې وصیت مطابق دحضور ﷺ دجنازې لمونځ وکړل شو .دې لمونځ کې څوک امام نه و بلکې صحابه کرام رضی الله عنهم به ډلې ډلې دحضور ﷺ حجرې ته داخلیدل او صلوة او سلام به یې کاوه .هم دا دحضور ﷺ دجنازې لمونځ و[2] .دابن سعد رضی الله عنه په روایت کې دي چې حضرت ابوبکر صدیق او حضرت عمر رضی الله عنهما یوې ډلې سره حجرې ته ننوتل او دجنازې لمونځ یې وکړ[3] دغه شان دیریش زره سړو او ښځو دحضور ﷺ دجنازې لمونځ وکړ .ددې مسئلې تفصیل د حضرت مولانا محمد یوسف کاندهلوي رحمه الله په کتاب "سیرة المصطفی ﷺ (ج۳ ص۱۸۷) کې او زما کتاب 'عهد نبوت کے ماه وسال' کې لوستلی شئ.

## د حضور ﷺ د جنازې لمونځ چا ورکړی و؟

**سوال:** .دحضور ﷺ دجنازې لمونځ شوی و او کـه نه؟ او دحضور ﷺ د جنازې لمونځ چا ورکړی و؟ مهرباني وکړئ او ځواب راکړئ. ځکه چې نن سبا دا مسئله زموږ ترمینځه دلوی بحث وذریعه جوړه شوې ده.

**جواب:** دحضور ﷺ دجنازې لمونځ دعام دود پشان جماعت سره نه وشوی او نه څوک امام جوړ شوی و .ابن اسحاق وغیره داهل سیر نه نقل کړي دي چې تجهیز او تکفین نه وروسته دحضور ﷺ جنازه مبارکه په حجره شریفه کې کیښودلی شوه اول سړي راغلل او ډلې ډلې لمونځ یې وکړ، بیا ښځو او بیا ماشومانو[4].

---

[1] عن عبد الله بن مسعود رضي الله عنه قال : لما ثقل رسول الله صلى الله عليه وسلم قلنا : من يصلي عليك يارسول الله فبكى وبكينا وقال: « مهلا ، غفر الله لكم ، وجزاكم عن نبيكم خيرا ، إذا غسلتموني وحنطتموني وكفنتموني فضعوني على شفير قبري ، ثم اخرجوا عني ساعة ، فإن أول من يصلي علي خليلي وجليسي جبريل وميكائيل ، ثم إسرافيل ، ثم ملك الموت مع جنود من الملائكة ، ثم ليبدأ بالصلاة علي رجال أهل بيتي ، ثم نساؤهم،ثم ادخلوا أفواجا أفواجا وفرادى (المستدرک للحاكم ج:۳،ص: ٦٠ طبع دارالكتاب العربي، بيروت)

[2] لما توفي رسول الله صلى الله عليه وسلم وضع على سريره فكان الناس يدخلون عليه زمراً زمراً يصلون عليه ويخرجون ولم يؤمهم احد (طبقات ابن اسعد ج:۲،ص: ۲۸۸) وايضاً كما قال صلى الله عليه وسلم فصلى على صلى الله عليه وسلم اولاً.....فصلوا كلهم افذاذاً منفردين لا يؤمهم احد (بذل القوة ص:۲۹۹)

[3] لما كفن رسول الله صلى الله عليه وسلم ، وضع على سريره ودخل ابوبكر وعمر فقالا: السلام عليك ايهاالنبي ورحمة الله وبركاته، ومعهما نفر من المهاجرين والانصار قد ما يسع البيت فسلموا كما سلم ابوبكر وعمر وصفوا صفوفاً لا يؤمهم عليه احد ..... (طبقات ابن اسعد ج:۲، ص: ۲۹۰)

[4] وقال محمد بن اسحاق لما مات رسول الله صلى الله عليه وسلم ادخل الرجال فصلوا عليه بغير امام ارسالاً حتى فرغوا ثم ادخل النساء فصلين عليه ثم دخل الصبيان فصلوا عليه ... .[بقيه حاشيه په راروانه صفحه...

حضرت حکیم الامت اشرف علي تهانوي رحمة الله عليه په نشر الطيب کې ليکي
په ابن ماجه کې د حضرت ابن عباس رضي الله عنه روايت دی چې د حضور صلى الله عليه وسلم جنازه له تياريدو نه وروسته کيښودل شوه اول سړي راغلل په ډلې ډلې يې لمونځ وکړ، بيا ښځې راغلې. بيا ماشومان راغلل او په دې لمونځ کې څوک امام نه و. (نشر الطيب ص: ۲۴۴ مطبوعه تاج کمپني)
علامه سهيلي ,,الروض الانف،، (ج: ۲ ص: ۳۷۷ مطبوعه ملتان) کې ليکي:,, دا د حضور صلى الله عليه وسلم خصوصيت وو او دا د حضور صلى الله عليه وسلم په حکم باندې شوي وو او د ابن مسعود رضي الله عنه روايت دی چې حضور صلى الله عليه وسلم د دې وصيت کړی و.,,[1]
علامه سهيلي دا روايت د طبراني او بزار په حوالې سره. حافظ نورالدين هيثمي په مجمع الزوائد (ج: ۹ ص: ۲۵) کې د بزار او طبراني[2] په حوالې سره او حضرت تهانوي رحمة الله عليه په نشر الطيب کې د واحدي په حوالې سره دا روايت نقل کړی دی او الفاظ يې دا دي:
,, مونږ عرض وکړ: يا رسول الله! په تاسو باندې به جنازه څوک کوي؟ وې فرمايل کله چې د غسل او کفن نه فارغ شئ نو زما جنازه د قبر سره خواکې کيږدئ او لرې شئ اول به ملايکې د جنازې لمونځ کوي، بيا تاسو ډلې ډلې راځئ او لمونځ کوئ اول دې د اهل بيت سړي لمونځ وکړي بيا د هغوی زنانه بيا تاسو خلک.,,
په سيرة المصطفى صلى الله عليه وسلم کې د طبقات ابن سعد په حوالې سره د حضرات ابوبکر او عمر رضي الله عنهما د يو ې ډلې سره د لمونځ کول نقل دي.

,,,بقيه د تير مخ]... لم يؤمهم على رسول الله صلى الله عليه وسلم احد ، وقال الواقدى لما ادرج رسول الله صلى الله عليه وسلم فى اكفانه وضع على سريره ثم وضع عى شفير حفرته ثم كان الناس يدخلون عليه رفقاء لا يؤمهم عليه احد (البدايه والنهايه ج:۵.ص: ۲۶۵ كيفية الصلوة عليه صلى الله عليه وسلم وايضاً فى الروض ج:۲،ص: ۳۷۷)

[1] وذكر ابن اسحاق وغيره ان المسلمين صلوا عليه افذاذاً لا يؤمهم احد، كلما جاءت طائفة صلت عليه وهذا خصوص به صلى الله عليه وسلم ولا يكون هذا الفعل الا عن توقيف وكذلك روى انه اوصى بذلك ذكره الطبرى مسند ....... وقد رواه البزار ايضاً عن طريق مرة عن ابن مسعود .....الخ (الروض الانف ج:۲.ص: ۳۷۷ كيف صلى على جنازته عليه السلام طبع ملتان)

[2] د مجمع الزوائد عبارت دا دې: فقلنا : فمن يصلى عليك منا ؟ فبكينا وبكى وقال ..... اذا غسلتمونى ووضعتمونى على سريرى فى بيتى هذا على شفير قبرى فاخرجوا عنى ساعة فان اول من يصلى على خليلى وجليسى جبريل ..... ثم الملائكة صلى الله عليه وسلم ، ثم ادخلوا علىّ فوجاً فوجاً فصلوا على وسلموا تسليماً ...... وليبدا بالصلوة على رجال اهل بيتى ثم انتم بعد .... رواه البزار .... وراه الطبرانى فى الاوسط بنحوه (مجمع الزوائد ج:۸،ص: ۴۲۷ باب فى وداعه صلى الله عليه وسلم ، طبع دارالكتب العلمية بيروت)

# د حضور ﷺ د جنازې لمونځ او تدفين څنګه وشو او خلافت څنګه فيصله شو؟

**سوال:** .دنبي اکرم ﷺ دوفات نه وروسته دهغه جنازه چاوکړه؟ اود حضور ﷺ په تدفين او غسل کې کوموکوموحضراتوبرخه واخسته؟ او د حضور ﷺ نه وروسته د خلافت په منصب باندې څوک مقرر شواوايادافيصله په اتفاق سره شوې وه؟

**جواب:** ۳۰ صفر اخري هفته باندې د حضور ﷺ د مرض الوفات پيل وشو[۱]. په ۸ ربيع الاول باندې دزيارت په ورځ په ممبرباندې تشريف فرماشواودډيرواموروپه باره کې يې تاکيداونصيحت وکړ[۲]. په ۹ ربيع الاول دجمعې په شپه يې مرض سخت شواودرې ځله بې هوشه شو .له دې وجې نه يې جومات ته ولاړ نهاودرې ځله يې وفرمايل چې: ابوبکر ته ووايئ چې خلکوته لمونځ ورکړي. دالمونځ حضرت ابوبکر ﷺ ورکړاوباقي درې ورځې هم هغه امامت وکړ. دحضور ﷺ په ژوندمبارک کې حضرت ابوبکر ﷺ د اوولسولمونځونوامامت وکړ.دکوموسلسله چې دماسخوتن دلمونځ نه شروع شوه اوپه ۱۲ ربيع الاول ددوشنبې په ورځ دسحرپه لمانځه باندې ختمه شوله[۳].

دمريضۍ په ورځوکې يوه ورځ دحضرت عائشې صديقې ﷺ په کورکې(چې بياروسته دحضور ﷺ اخري ارام ګاه هم جوړشو)اکابروصحابه کراموته يې نصيحت وفرمايلو:

---

[۱] فصل فى حوادث السنة الحادية عشرة من الهجرة ..... وفيها مرض رسول الله صلى الله عليه وسلم فى آخر الاربعاء من صفر، وكان ذلک اليوم ثلثين من شهر صفر المذكور ..... وكانت مدة مرضه صلى الله عليه وسلم ثلاثة عشر يوماً على القول المشهور الذى عليه الاكثرون (بذل القوة فى حوادث سنى النبوة ص:۲۹۶ طبع جامعة السند حيدرآباد پاکستان)

[۲] وفيها فى ايام ذلک المرض خرج الى المنبر فخطب عليه قاعداً لعذر المرض واخبر فيها بامور كثيرة تحتاج اليه الامة وكانت تلک الخطبة يوم الخميس الثامن من شهر ربيع الاول (بذل القوة ص:۲۹۸ طبع جامعة السند ،حيدرآباد پاکستان)

[۳] وفيها لما اشتد عليه صلى الله عليه وسلم المرض ليلة الجمعة التى هى التاسعة من شهر ربيع الاول فاغمى عليه صلى الله عليه وسلم ثلاث مرات ، ولم يستطع الخروج الى صلوة العشاء ، قال ثلاث: مروا ابابكر فليصل بالناس، فصلى ابوبكر رضى الله عنه مقام النبى صلى الله عليه وسلم تلک العشاء ، ثم لم يزل هم الصلوة الخميس فى تلک الايام الثلاثة الباقية حتى كانت صلوة ابى بكر رضى الله عنه التى صلاها بهم فى حياته صلى الله عليه وسلم سبع عشر صلوة ، مبداها صلوة العشاء من ليلة الجمعة ومنتهاها صلوة الفجر من يوم الاثنين الثانى عشر من شهر ربيع الاول (بذل القوة فى حوادث سنى النبوة ص:۳۰۰ طبع جامعة السند ،حيدرآباد پاکستان)

،،دوفات نه وروسته ما ته غسل راکړئ او کفن را واغوندئ. او زما کټ د قبر په خوا کې (چې په هم دې کورکې به وي) کېږدئ او دلږ ساعت له پاره باندې ووځئ. زما جنازه به اول جبرائيل عليه السلام وکړي، بيا ميکائيل عليه السلام، بيا اسرافيل عليه السلام، بيا عزرائيل عليه السلام، د هر يو سره به د فرښتو عظيم لښکرونه وي، بيا زما د اهل بيت سړي، بيا ښځې، له امام نه پرته (ځانته ځانته) بيا تاسو خلک ډلې ډلې راشئ او ځانته ځانته لمونځ وکړئ!

د هم دې وصيت مطابق عمل وشو اول ملايکو د حضور صلى الله عليه وسلم جنازه وکړه. بيا د اهل بيت سړيو، بيا ښځو، بيا مهاجرينو، بيا انصار، بيا ښځو، بيا ماشومانو، ټولو ځان ځان ته لمونځ وکړ، او هيڅ يو کس امام نه و[۱].

حضور صلى الله عليه وسلم ته غسل حضرت علي کرم الله وجهه ورکړ، حضرت عباس او دهغه زامنو فضل او قثم رضي الله عنهم دهغه مدد کاوو. بل داچې د حضور صلى الله عليه وسلم د په غسل کې دوو ازاد شويو غلامان حضرت اسامه بن زيد او حضرت شقران رضي الله عنهما هم شريک وو، حضور صلى الله عليه وسلم درې سخولي (د سخول نه جوړ شوي) کپړو کې کفن ورکړل شو[۲].

دحضور صلى الله عليه وسلم دوفات په ورځ (۱۲ ربيع الاول) په سقيفه بني ساعده کې دحضرت ابوبکر صديق رضي الله عنه په لاس باندې دخلافت بيعت وشو. اول دخلافت په مسئله باندې مختلفې رايې وړاندې شولې، خو دمعمولي بحث نه وروسته دحضرت ابوبکر صديق رضي الله عنه په انتخاب باندې اتفاق وشو او ټولو اهل حل وعقد دهغه په لاس باندې بيعت وکړ[۳].

---

۱] وفيها فى ايام مرضه صلى الله عليه وسلم وكونه صلى الله عليه وسلم فى بيت عائشة رضى الله عنها اوصى لاصحابه فقال : اذا انا مت فاغسلونى وكفنونى واجعلونى على سريرى هذا ، على شفير قبرى فى بيتى هذا ثم اخرجوا عنى ساعة فالاول من يصلى على جبريل ثم ميكايل ثم اسرافيل ثم ملك الموت كل واحد منهم بجنوده ... ثم يصلى على رجال اهل بيتى ثم ادخلوا انتم فوجاً فوجاً فصلو على فوقع كما قال صلى الله عليه وسلم فصلى عليه صلى الله عليه وسلم اولاً الملائكة عليهم السلام ثم رجال اهل بيته ثم نسائهم ثم رجال المهاجرين ثم الانصار ثم النساء ثم الغلمان فصلوا كلهم افذاذاً منفردين لا يؤمهم احد (بذل القوة ص :۲۹۹ وايضاً الروض الانف ج:۲،ص: ۳۷۷)

۲] وفيها وقع انه لما توفى صلى الله عليه وسلم غسله على وحضر معه العباس وابناه الفضل وقثم ومولیا رسول الله صلى الله عليه وسلم ورضى عنهما اسامة وشقران (بضم الشين المعجمة وسكون القاف) رضى الله عنهم وكفن فى ثلاثة اثواب بيض سهولية (بذل القوة ص:۳۰۳).

۳] فلما مات صلى الله عليه وسلم فجاء الصديق من منزله حين بلغه الخبر فدخل على رسول الله صلى الله عليه وسلم منزله، وكشف الغطاء عن وجهه وقبله وتحقق أنه قد مات ورجع الناس كلهم إليه وبايعه في المسجد جماعة من الصحابة ووقعت شبهة لبعض الانصار وقام في أذهان بعضهم جواز استخلاف خليفة من الانصار وتوسط بعضهم بين أن يكون أمير من المهاجرين وأمير من الانصار، حتى... [بقيه حاشيه په راروانه صفحه...

## حضرت سوده رضی الله عنها ته د طلاق ورکولو د ارادې حکمت

**سوال:** یو سړی که چېرې خپلې ښځې ته په دې وجه باندې طلاق ورکړي چې هغه بوډۍ شوې ده. او دهغه قابل نه ده پاتې شوې. دې خبرې ته څوک هم د استحسان په نظر نه ګوري. یو روایت کې دي چې حضور ﷺ حضرت سوده رضی الله عنها ته دهغې دبوډۍ والي په وجه باندې طلاق ورکول وغوښتل. بیاکله چې حضرت سوده رضی الله عنها خپل نمبر حضرت عائشې رضی الله عنها ته ورکړ. نو حضور ﷺ خپله اراده بدله کړه. دا خبره دحضور ﷺ ذات مبارک سره مناسبه نه ښکاري او د مخالفینو دې اعتراض ته چې نعوذبالله دبیبیانو تعدد دشهوت پوره کولو له پاره و مضبوطوالی ورکوي ،سره له دې چې حضور ﷺ دکونډو او یتیمانو مددکونکی ګڼل کیږي

**جواب:** عربوکې طلاق دومره بدنه ګڼل کیږي.څومره چې زموږ ټولنه(معاشره) کې ګڼل کیږي.دې نه پرته دحضور ﷺ باره کې **ترجی من تشاء منهن وتووي الیک من تشاء** فرمایلوسره حضور ﷺ ته دساتلواونه ساتلو اختیارورکړل شول و.په دې وجه باندې دحضور ﷺ له چانه دبېلیدوفیصله باندې چاته هم داعتراض کولواختیارنشته اودښځې خاوندژوندیواځې دشهوت پوره کولوله پاره نه وي.مینه او محبت ددې اهم مقصدونه دی. ممکن کیدای شي چې یوې بي بي سره مینه پاتې نه شي اوطلاق فیصله وکړل شي اوحضرت عائشې رضی الله عنها ته خپل نمبرورکول اودهغې په حق کې خپل ټول حقونه پرېښودل دحضرت سوده رضی الله عنها قرباني وه اودهغې په وجه باندې حضور ﷺ خپله فیصله بدله کړه[1]. دې باندې به مې له دې نه زیاتې خبرې کړې وې خودلته یواځې اشاره کافي ده.

## رَحمَةٌ للعَالَمین او بَد دُعاء

**سوال:** د روزنامه جنګ په اسلامي صفحه باندې یومضمون لیکل شوی و چې "بئرمعونه کې په دوکې سره شهیدان شوي اویا کسان ټول اصحاب صفه وو.دهغه دپېښې له وجې نبي علیه السلام دومره غمجن شو چې پرلپسې یوې میاشتې پورې یې د سهار په لمانځه کې دهغوی دقاتلانو په حق کې ښېرې کولې".

---

...بقیه د تیر مخ]. بین لهم الصدیق أن الخلافة لا تکون إلا في قریش فرجعوا إلیه وأجمعوا علیه کما سنبینه وتنبه علیه (البدایه والنهایه ج:۵،ص: ۲۴۴) تفصیل له پارهه اوګورئ البدایه والنهایه ج:۵،ص: ۲۴۵ تا ۲۵۰ _ قصة سقیفة بني ساعدة_

[1] عن عائشة رضی الله عنها ان سودة لما کبرت قالت : یا رسول الله ! قد جعلت یومي منک لعائشة فکان رسول الله صلی الله علیه وسلم یقسم لعائشة یومین ،یومها ویوم سودة.متفق علیه(مشکوة ص:۲۷۹ باب القسم)

داخو هغه الفاظ دي چې ما ستاسو له اخبارنه ليکلي دي.دهغه چا اړوندچې الله تعالی د رحمة للعالمين پشان القابو سره په قران کريم کې مخاطب کړي دی هغه کله دچاپه حق کې د ښېرو له پاره لاس اوچتولی شي؟ ايا په دې خبره يو عقلمن باورکولی شي؟
زه د سعوديه ګرلز کالج د بی اې طالبه يم.زمادنظرنه هم مختلف اسلامي کتابونه تيرشوي دي زماذهن داخبره نه قبلوي اوکومه خبره چې غلطه وي هغه دهيڅا ذهن نشي قبلولی چې نبي عليه السلام کله هم دچاپه حق کې ښېرې کړی دي؟ هغه صلی الله عليه وسلم سره خلکو کوم کوم سلوک ونکړ چې هغه صلی الله عليه وسلم به په کومه لاره باندې تيريدی خلکوبه پرې ګندګي اچوله اوهغه صلی الله عليه وسلم به يې د طائف په کوڅوکې راکښلو يوځل خوخلکو تردې پورې ورسره وکړل چې هغه صلی الله عليه وسلم يې دومره په کاڼو وويشت چې په وينوکې رنګ بنګ شواوپښې مبارکې يې په پڼو کې دزياتووينو له وجې بندې وې.بياهم هغه صلی الله عليه وسلم دبدبختوپه حق کې ښېرې نه دي کړي.بلکې چې کله به هم خلکو هغه صلی الله عليه وسلم ته تکليف رساوو.نو فرمايل به يې "اې الله! دوی ته هدايت وکړې او پوه يې کړې چې زه څوک يم"
يوطرف ته خوشاه صاحب ليکي چې اويا(۷۰) معلمين په دوکې سره شهيدان شول او وړاندې وايي چې نبي عليه السلام ددې قاتلانوپه حق کې ښېرې وکړې.ايا دوی ته دا نه ده معلومه چې کوم خلک شهيدان شي هغوی کله هم نه مري بلکې هميشه ژوندي وي نوچاته چې دشهادت درجه ورکړل شوې وي دهغوی قاتلان به پخپله د دوزخ په اورکې غورځول کيږي هغوی له پاره دښېروڅه ضرورت دی؟ اوهغه هم رحمة للعلمين دسهارپه لمانځه کې ديوې مياشتې پورې وکړي .اياشاه صاحب (نعوذبالله) نبي عليه السلام دسهار لمانځه نه وروسته مسلسل په ښېرو کولو وليده يايې په کوم کتاب کې حديث له نظر نه تيرشوی دی. حواله خودې ورکړي چې زه يې پخپله هم ولولم زماهم مضمون اسلاميات دی ماهيڅکله هم داسې نه دي لوستلي.

**جواب:** په بئر معونه کې د اوياو قاريانو دشهادت واقعه دحديثو ،تاريخ اوسيرت په ټولو کتابونو کې موجود دهاودنبي عليه السلام تر يوې مياشتې پورې دسهار په لمانځه کې قنوتِ نازله لوستله او هغو کافرانو ته چاچې دا حضرات په دوکه شهيدان کړي وو .ښېرې کول دصحيح بخاري، صحيح مسلم.ابوداؤد.نسائي او دحديثو په نوروکتابونوکې موجوددي[1]. په دې ستاسو انکار غلط دی.باقی ستاسو دا شبه چې نبي کريم صلی الله عليه وسلم خو رحمة للعالمين و هغه

---

[1] عن أنس رضي الله عنه قال: بعث النبي صلى الله عليه و سلم سبعين رجلا لحاجة يقال لهم القراء فعرض لهم حيان من بني سليم رعل وذكوان عند بئر يقال لها بئر معونة فقال القوم والله ما إياكم أردنا إنما نحن مجتازون في حاجة للنبي صلى الله عليه و سلم فقتلوهم فدعا النبي صلى الله عليه و سلم شهرا في صلاة الغداة....الخ (صحيح بخارى ج:۲،ص: ۵۸۶ باب غزوة الرجيع ورعل وذكوان وبئرمعونه)

څنګه ښېرې کولې؟ ستاسو خیال هم دېې وزنه قیاس پیداوار دی. ایا تکلیف رسونکي قتلول هغوی ته سزا ورکول او تکلیف ورکول رحمت نه دی. ایا د رحمة اللعالمین شفیق رحیم زړه ته به ددې مظلومو شهیدانو په مظلومانه شهادت باندې تکلیف نه وي رسیدلی؟ تاسو خو ماشاءالله دېې اې طالبه یئ. تاسو ته دې معلومه وي چې په غلو. ډاکوانو. غنډه ګانو او بدمعاشانو باندې سختي کول عین رحمت دی او په هغوی باندې خفه کیدل د رحمت خلاف دي. د شیخ سعدي رحمه الله په قول.

نیکوئی بابدان کردن چنان است که بد کردن بجائے نیک مردان

ترجمه: بدانو سره نیکي کول داسې دي لکه د ښو خلکو سره بدي

پاتې شوه دا چې د شهیدانو قاتلان خو پخپله دوزخ ته ځي هغوی ته د ښېرو کولو څه ضرورت دی؟ ددې معنا خو دا ده چې د قاتل خلاف دې په عدالت کې استغاثه ونکړل شي ځکه چې ستاسو په قول هغه به پخپله د خپلو کړو سزا مومي او که چېرې ستاسو په نزد د یو قاتل خلاف په عدالت کې استغاثه جائز وي او دا خلاف رحمت نه وي نو که چېرې نبي علیه السلام د الله تعالی په دربار کې ددې قاتلانو خلاف استغاثه کوي نو دا تاسو ته ولې غلط په نظر راځي؟ شهیدان بیشکه په جنت کې ژوندي دي او لوړو مرتبو ته رسیدلي دي. خو ددې دا معنا نه ده چې د یو شهید په مظلومانه شهادت باندې موږ ته غم او خفګان هم نه دی پکار. ددې واقعې نه تاسو د خپلې ناپوهۍ په وجه انکار کوئ. خو ددې به څه توجیه کوئ چې په قران کریم کې د حضرت نوح علیه السلام [1]. حضرت موسی علیه السلام او د نورو بعضو انبیاء کرامو علیهم السلام ښېرې نقل شوي دي ټولو پیغمبران د رحمت یوه ذریعه وي. له دې سره سره د کافرانو. بې ایمانو. موذیانو او ضرر ورکونکو خلاف د الله په دربار کې استغاثه کوي.

تاسو د طائف د واقعې ذکر کړی دی چې نبي کریم صلی الله علیه وسلم باندې کاڼي اوورول شو. خو بیا هم هغه صلی الله علیه وسلم ښېرې ونکړې. تاسو به شاید د حضرت عائشې رضي الله عنها حدیث لوستلی وي چې نبي کریم صلی الله علیه وسلم کله هم خپله ذاتي بدله نه ده اخستې خو چې کله به د الله حدود ماتېدل؛ نو د هغه صلی الله علیه وسلم د غوسې به چا طاقت نه لاره" [2]. د طائف واقعه د نبي علیه السلام د ذات سره متعلق وه. هلته د صبر مجسم تصویر جوړ شو. او د بئر معونه واقعه د الله د حدودو د ماتولو. د وعدې د ماتولو

---

[1] قال نوح رب لا تذر علی الارض من الکافرین دیارًا (نوح: ۲۶) ربّنا اطْمسْ علي اموالهمْ واشْدُدْ عَلي قُلُوبهمْ فلا یؤمنُوا حتّي یروُا الْعذاب الْالیم (یونس: ۸۸)

[2] عن عائشة رضی الله عنها قالت: ما ضرب رسول الله صلی الله علیه وسلم شیئاً قط بیده ولا امراة ولا خادماً الا ان یجاهد فی سبیل الله وما نیل منه شئ قط فینتقم من صاحبه الا ان ینتهک شئ من محارم الله فینتقم الله رواه مسلم (مشکوة ص: ۵۱۹)

اودمسلمانانو په ظلم دشهادت واقعه ده.په دې باندې دنبي عليه السلام بې ارامي او بيقراري اودالله تعالى ته يې نه ختمېدونكې فرياد دخپل ځان له پاره نه و چې تاسوددې له پاره دطائف مثال وړاندې كړى دى.دلته چې كوم څه و هغه ديني غيرت او دغه مظلومانوباندې دشفقت اظهار و.

غرض دا چې دبئر معونه واقعه صحيح ده. اودداسې ضرر وركونكو له پاره ښېرې كول دنبي كريم ﷺ دشان رحمة للعالمين خلاف نه دى.بلكې په خپل ځان كې داهم درحمت اوشفقت مظهر دى.

## د نبي كريم ﷺ سره محبت او د الله تعالى ناراضګي

**سوال:** زموږ په ځاى كې يوصوفي پيردى يوه ورځ هغه ماته او زمايودوست ته وويل چې يوه ښائسته انجلۍ وي چې له هغه سره يو هلك محبت كوي اوته هم دهغه سره محبت شروع كړې نونتيجه به يې څه وي؟ موږ وويل چې انجام به يې جنګ او دښمني وي، نو هغه وويل ښكاره خبره ده چې كوم هلك دې انجلۍ سره محبت كوي ،نوهغه كله دا غواړي چې زمادمحبوبې سره دې څوك محبت وكړي بيايې وويل چې تاسودخپل رسول ﷺ محبت مه كوئ ځكه چې دهغه ﷺ سره الله تعالى محبت كوي اوتاسوچې كله دنبي كريم ﷺ سره محبت كوئ نو الله پاك به ستاسودښمن شي، هغه به څنګه وغواړي چې زمادمحبوب سره دې بل څوك محبت وكړي.ددې باوجودهم كه چېرې بنده يې ونه مني.نو الله پاك ورته پوره سزا وركوي،كه چېرې دسزا وركولونه وروسته هم بنده دخپل نبي سره محبت كوي. نو بياالله تعالى دخپل بنده مخكې شكست تسليموي،يعنې الله پاك دبنده په مخكې ښكته شي.ددې وضاحت وكړئ چې دا انسان دكومې عقيدې خاوند دى؟

**جواب:** داصوفي صاحب بې علمه اوناخبره دى دهغه دا ويناچې نبي كريم ﷺ سره كه چېرې موږمحبت وكړو، نو الله پاك به زموږ سره دښمن شي اوسزابه راكوي.دادكفرخبره ده اودهغه داخبره چې الله تعالى دخپل بنده په مخكې شكست تسليموي داهم دكفرخبره ده[1]، داسې بې دينه اوجاهل سره كيناستل نه دي پكار.

---

[1] وصح الاجماع على ان كل من جحد شيئاً صح عندنا بالاجماع ان رسول الله صلى الله عليه وسلم اتى به فقد كفر، وصح بالنص أن كل من استهزا بالله تعالى ...... او بنبى من الانبياء عليهم السلام او بآية من القرآن الكريم او بفريضة من فرائض الدين .... فهو كافر (اكفار الملحدين ص: ٦٤)

## د نبي کريم ﷺ د نوم سره يواځې "ص" ليکل

**سوال:** څه موده وړاندې يوصاحب ستاسونه پوښتنه کړې وه چې څه خلک په انګلش کې لفظ د "محمد "Mohammad" د ليکلو په ځای يواځې "Mohd" ليکي اووايي چې موږ محمدپه لنډو الفاظوکې وليکو،ددې په ځواب کې تاسوفرمايلي و چې دانګريزانوپه نزدباندې د "محمد" دلفظ اهميت که هرڅومره کم وي خو ديومسلمان له پاره د "الله" دلفظ نه وروسته په ټولو ذخيره الفاظوکې اهم لفظ د "محمد" دی. ددې لفظ دکمولو مطلب خو دادی چې د ليکونکی نعوذبالله له دې لفظ نه نفرت لري.دمحمد دلفظ دکمولورواج غالبا دفرنګيانو سازش دی اومسلمان ددې مسئلې د سختي نه خبرنه دی"Mohammad" په ځای"Mohd" (موهډ) يو مهمل اوبې معنا لفظ دی اودنبي کريمﷺ نوم مبارک په يومهمل اوبې معنا لفظ کې بدلول ديومسلمان له پاره بالکل جائزکيدای نشي. ددې سره سره تاسوداهم فرمايلي وچې څه حضرات يواځې "ايم" ليکي، داهم انګريزي فيشن دی.

زمامحترمه! مادامسئله اوستاسوځواب زيات نه زيات ناخبره خلکوته درسولوکوشش وکړ چې دهغه په نتيجه کې څوطالبانو داوعده وکړه چې اينده به موږ محمد"Mohd" يا يواځې ايم نه ليکو،بلکې پوره حروفو"Mohammad" سره به يې ليکواوس ماته د ټنډو ادم نه دخپل يوطالب علم ورور خط راورسيد.چاچې په سکول کې دخپل نوم نه مخکې دايم ليکلونه ځان وساته،استاد صاحب ترې ددې د وجې پوښتنه وکړه،نودې طالب العلم ورته ستاسوهغه ځواب دوباره بيان کړ او ويې ويل چې يواځې ايم ليکل انګريزي فيشن دی ،ددې په ځواب کې استادانوويل : که چېرې محمدپه انګريزي کې دپوره ليکلوپه ځای يواځې ايم ليکل غلط دي نوبياپه اخباونواو کتابونوکې دپوره (صلی الله عليه وسلم) ليکلوپه ځای يواځې ص ليکل کيږي،ايا داصحيح دي؟

**جواب:** يواځې د "ص" نښه کافی نه ده بلکې پوره درود شريف ليکل پکاردي اوپه دې کې څه بخل نه کاراخستل نه دي پکار[1]،ښکاره ده چې زموږ دليکلونه د درود شريف اهميت زيات دی هغه دې ولې ونه ليکل شي؟زه چې کله هم دنبي کريمﷺ نوم مبارک ليکم نوپوره (صلی الله عليه وسلم) ليکم اوپه دې کې کله هم بخل نه کوم،خو داخبار ليکونکي د(صلی الله عليه وسلم) په ځای يواځې "ص" ليکي.

---

1] وقد استحب اهل الكتابة ان يكرر الكاتب الصلاة على النبى صلى الله عليه وسلم كلما كتبه (تفسير ابن كثير ج:٥،ص: ٢٢٧ مطبوعه رشيديه)

## د نبي ﷺ او حضرت آدم علیه السلام په نومونو سره "ص" او "ع" ليکل

**سوال:** عام طور د نبي کريم ﷺ او د حضرت آدم علیه السلام نومونو سره "ص" او "ع" ليکل کيږي. ايا دا صحيح دي؟

**جواب:** پوره درود او سلام ليکل پکار دي.[۱]

## د خطاب صيغې سره صلوة او سلام ويل

**سوال:** قران مجيد کې خوصلوا عليه راغلي دي، ايا ,,صلى الله عليك يارسول الله،، ويلو سره د درود حق ادا کيږي؟

**جواب:** د مخاطب صيغې سره صلوة او سلام د نبي کريم ﷺ په روضه اقدس باندې ويل پکار دي، په بل ځای کې د غائب په صيغې سره ويل پکار دي، ځکه چې نبي علیه السلام د درود شريف کومې صيغې امت ته ښودلې دي هغه د غائب صيغې دي.[۲]

## د انبياء عليهم السلام او د صحابه وو رضي الله عنهم له نومونو سره څه ليکل پکار دي؟

**سوال:** د اتم ټولګي د انګريزي په کتاب (انګلش ميډيم) کې يو سبق دی، "حضرت علي رضی الله عنه" او په قوس (برکيټ) کې Peace Be Upon Him ليکل شوي دي چې د (صلى الله عليه وسلم) انګلش کې ترجمه ده، همدا رنګه د فارسي د اتم ټولګي په کتاب کې حضرت علي رضی الله عنه او حضرت امام حسين رضی الله عنه سره "عليه السلام" ليکل شوي دي. اياد پيغمبرانو نه پرته د صحابه وو سره دا الفاظ استعماليدای شي؟ که چېرې د دې ځواب منفي وي نو تاسو د خپلې رسالې په ذريعې سره دا د نصاب ادارې او د حکومت اعلى منصوبينو ته ورسوئ!

**جواب:** د اهل السنت والجماعت په نزد باندې (صلى الله عليه وسلم) او (عليه السلام)

---

۱] وقد استحب اهل الكتابة ان يكرر الكاتب الصلاة على النبى صلى الله عليه وسلم كلما كتبه (تفسير ابن كثير ج:۵،ص: ۲۲۷ مطبوعه رشيديه) وينبغى ان يحافظ على كتابة الصلاة والتسليم على رسول الله صلى الله عليه وسلم ولا يسام من تكراره ومن اغفله حرم حظاً عظيماً .... ويكره الاقتصار على الصلاة او التسليم والرمز اليهما فى الكتابة بل يكتبهما بكمالهما (تقريب النواوى مع التدريب ص:۲۱۷، ۲۱۸ طبع بيروت

۲] عن ابى حميد الساعدى قال : قالوا : يا رسول الله صلى الله عليه وسلم ! كيف نصلى عليک؟ فقال رسول الله صلى الله عليه وسلم قولوا: اللهم صل على محمد وازواجه وذريته كما صليت على آل ابراهيم وبارک على محمد وازواجه وذريته كما باركت على آل ابراهيم انک حميد مجيد متفق عليه (مشكوة ص: ۸۶)

دانبیاء کرامو له پاره لیکل کیږي[١] او دصحابو کرامو له پاره "رضی الله عنه" لیکل پکاردي[٢] او دحضرت علي له نوم سره (کرم الله وجهه) هم لیکل کیږي[٣]. متعلقه حضراتو ته ستا په دې تنبیه باندې له مننې سره غور کول پکار دي.

## دامام نوم سره علیه السلام لیکل

**سوال:** ایا دانبیاء علیهم السلام نه پرته دبل امام نوم سره علیه السلام لیکل صحیح دي؟ ځکه چې نن سبا د ماشومانو دسکول په کتابونو کې ځای پر ځای علي علیه السلام، فاطمه علیها السلام، زینب علیها السلام، امام جعفر علیه السلام لیکل شوي وي. مخکې خو به په خاص خاص کتابونو کې و. خو اوس دپنجاب ټیکسټ بک بورډ له طرف نه چاپ شویو ټولو کتابونو کې داعبارت موندل کیږي.

**جواب:** ددې اکابرینو په نوم باندې علیه السلام لیکل هم دشیعه ګانو عقیده ده.

## دحضور ﷺ د ټولې دنیا له پاره بعثت

**سوال:** حضور ﷺ په اوومه عیسوي صدۍ کې دې دنیاته تشریف راوړی و. ټوله دنیاکې براعظم امریکه هم شامله ده. خو هلته د اسلام دعوت پخپله رسول الله ﷺ، صحابه کرامو رضی الله عنهم بلکې تابعینو رحمهم الله، تبع تابعینو رحمهم الله، او له هغونه هم ډیروخت وروسته پورې دصوفیاء کرامو په ذریعه باندې نه و رسیدلی. کله چې پنځلسمه صدۍ کې امریکه وموندل شوه، داوومې صدۍ نه تر پنځلسمې صدۍ پورې امریکه دجهالت په تیاروکې وه.

دامریکې پخواني اوسیدونکي، کوموته چې ریډانډین ویل کیږي، هغوی مظاهرپرست دي، هغوی دحضرت نوح علیه السلام دکوم یو زوی اولاد ي؟ څنګه چې دایشاء قومونوته دسام، دافریقې قومونوته دحام اودیورپ قومونوته دیافث اولادو یل کیږي.

حضرت عقبه بن نافع رضی الله عنه چې کوم وخت په بحرظلمات کې خپل اس کوزکړ، اودځمکې په ختمیدو باندې یې خفګان ښکاره کړی و. هغه وخت کې هم دهغه ځای نه ډیرلیرې دامریکې ځمکه موجوده وه. سوال دادی چې دحضور ﷺ دنظرنه اودصحابه کرامو رضی الله عنهم او

---

[١] قال الجمهور من العلماء : لا يجوز افراد غيرالانبياء بالصلوة، لان هذا قد صار شعاراً للانبياء (تفسير ابن كثير ج:٥،ص: ٢٢٨ طبع رشيديه ) ايضاً : واما السلام...... ولا يفرد به غير الانبياء فلا يقال على عليه السلام (تفسير ابن كثير ج:٥،ص: ٢٢٨ طبع رشيديه)

[٢] ويستحب الترضى للصحابة (فتاوى شامى ج:٦،ص: ٧٥٤)

[٣] د بعضې علماوو نه مو اوریدلي دي چې خوارجو د دوی مبارک (رضی الله عنه) د نوم نه وروسته سود الله وجهه زیات کړي و د هغه د جواب له پاره د کرم الله وجهه عادت جوړ کړل شو. (امداد الفتاوى ج:٤،ص: ٣٧٤)

صوفیاء کراموﷺ دبصیرت نه امریکه ولې پټه پاتې شوه؟

**جواب:** کله چې په موجوده دنیاکې دامریکې وجودنه و، نوهلته د دعوت رسولو پابندي هم نه وه، اوکله چې امریکه ومونډل شوه نوهلته دعوت هم ورسید. دکوموکارونوچې انسان پابندی. اودکوموباره کې به چې دقیامت په ورځ دهغه نه پوښتنه کیږي. انسان ته په هغو کارونوکې فکرکول پکاردي. اودکوموکارونوچې انسان پابندنه دی. په هغو کې غوراوفکرکول بې مقصده دي. ځکه چې دهغو هیڅ نتیجه نه وي. والله اعلم.

## ❖ عقیده حیات النبي ﷺ ❖

الحمدلله وسلام علی عباده الذین اصطفی. امابعد!

جناب محترم مولانامحمدیوسف لدهیانوي صاحب...،

السلام علیکم!

خواست دادی چې ما یوځوورځې مخکې دبهینس کالونی په کمرشل ایریا کې دګول په جومات کې دقران کریم ددرس واوریده. امام صاحب دقبرپه عذاب باندې درس کې وفرمایل چې: رسول اللهﷺ په خپل قبر کې ژوندی دي. اوددلیلونوورانډې کولو په ترڅ کې یې وفرمایل چې حضورﷺ فرمایلي دي چې کوم کس زمادروضې مبارکې زیارت وکړي نودقیامت په ورځ به زه دهغه له پاره شفاعت کوم. (دمولاناصاحب تعلق دديوبندي مسلک سره دی) اوماپخپله دشیخ القران حضرت مولاناغلام احمدخان صاحب نه اوریدلي دي چې حضورﷺ وفات شوی دی اوپه دې باندې حضرت صاحب یو کتاب "وفات النبيﷺ هم لیکلی دی، چې حضورﷺ ته ددنیاهیڅ علم نشته.

جناب دقران اوحدیث په رڼاکې تفصیل معلومول غواړم چې:

۱: ایاحضورﷺ په خپل قبرکې ژوندی دی؟

۲: ایادنیاوي معاملاتوکې حضورﷺ ته علم شته؟

۳: ایادرسول اللهﷺ روضې مبارکې ته حاضري کول ضروري دي. اودحج ټول رکنونه په مدینه منوره کې مکمل کیږي.

**جواب:** ستاسوپه سوال کې یوځومسئلې دتحقیق قابل دي.

۱: مسئله: مسئله حیات النبيﷺ، ده دې باره کې په یوځو خبرو پوهیدل ضروري دي.

لومړی: داچې محل نزاع څه ده؟ داخبره خوامي ته هم پته ده چې حضورﷺ ددنیانه رخصت شوی دی اوحضورﷺ په خپلې روضې مبارکې کې دفن دی. په دې وجه حیات النبيﷺ خبرې کولووخت کې چې داخبره ذهن کې نه وي(اونه کیدل پکاردي) چې دحضورﷺ دنیاوي ژوندپاندې خبریږی، نه! بلکې خبره دې باندې ده چې دې دنیانه له رخصتیدو وروسته

حضور ﷺ ته چې دبرزخ کوم ژوند حاصل دی، دهغه تعلق بدن مبارک سره هم دی او که نه؟
ددې تنقیح نه معلومیږي چې دلته درې شیان دي:
۱: ددنیاژوندنه کیدل. ۲: دبرزخ ژوندحاصلیدل.
۳: اودبرزخ دژوندددنیاله ژوندسره تعلق کیدل یانه کیدل.
اول دو خبروکې دچاهم اختلاف نشته، اختلاف یواځې دریمې خبرې کې دہ، زموږ علماء دبدن مبارک سره دیوخاص قسمه ژوندتعلق مني.
دویم: داهل حق عقیده ده چې دقبرعذاب اوثواب حق دی، په شرح عقائدنسفي کې دي:
**ومن عذاب القبرللكافرين ولبعض عصاة المؤمنين وتنعيم أهل الطاعة في القبر...وسؤال منكرونكيرثابت بالدلائل السمعية.(شرح عقائد ص۹۸)**
ترجمه: کافرانواوبعضې گناه گاروایماندارولہ پاره دقبرعذاب اوقبر کې اهل طاعت له پاره نعمتونه اوثواب ورکول اودمنکر و نکیرسوال کول.داټول حق دي اودسمعي دلائلونه ثابت دي.
عقیده طحاویه کې دي:
**ولؤمن بعذاب القبرونعيمه لمن كان لذالك اهل، وبسؤال منكرنكيرللميت فى قبره عن ربه ودينه ونبيه، على ماجاءت به الاثارعن النبي ﷺ وعن اصحابه، والقبرروضة من رياض الجنة، وحفرة من حفرالنيران،(عقيده طحاويه ص ۲۰، ۲۱، مطبوعه دارالمعارف الاسلاميه آسيا آباد بلوچستان)**
ترجمه: موږایمان لروچې قبرکې به عذاب اوثواب هغه کس ته وي چې دهغه حق داروي، اومنکراونکیرپه قبرکې له مړي نه سوالونه کوي، درب، ددین اودنبي ﷺ په باره کې، دنبي کریم ﷺ اوصحابه کرامو رضی الله عنهم نه په دې باره کې حدیثونه راغلي دي ، قبردجنت په باغونو نه یوباغ دی یاددوزخ دکندونه یوه کنده ده.
دامام ابوحنیفه رحمه الله په یوې رسالې "فقه اکبر،، کې دي:
**وسؤال منكرنكيرفى القبرحق، واعادة الروح الى العبدوضغطة القبروعذابه حق كائن للكفار كلهم اجمعين ولبعض المسلمين،(شرح فقه اكبر ص۱۲۱ ومابعد،مطبوعه مجتبائى ۱۳۴۸ھ)**
ترجمه: قبرکې دمنکراونکیرسوال کول حق دي، اوقبر کې بدن ته دروح راتلل، اومړي ته قبر کې زور ورکول اوټولوکافرانو ځینې مسلمانانوته قبرکې عذاب ورکول حق دي، ضروربه کیږي.
دقبرپه عذاب باندې دقران کریم ایتونه اودحضور ﷺ حدیثونه راغلي دي اودسلف صالحینو، صحابه کرامواوتابعینو رضوان الله علیهم اجمعین په دې باندې اتفاق دی، په شرح عقائدکې دیوڅوایتونواوحدیثونوحوالو نه وروسته لیکل شوي دي:

وبالجملة الأحاديث فى هذاالمعنى وفى كثيرمن احوال الاخرة متواترة المعنى وان لم يبلغ آحادهاحدالتواتر.(شرح عقائدص۱۰۰ مطبوعه مكتبه خير كثير، كراچی)

ترجمه: حاصل داچې دقبرعذاب اوثواب اوداخرت ډيرحالات په متواترو حديثونوكې راغلي دي، اګرچې احاد دي.

دشرح عقائدپه شرح "نبراس" كې دي:

ثم قدروي احاديث عذاب القبروسواله عن جمع عظيم من الصحابة فمنهم عمربن الخطاب، وعثمان بن عفان، وانس بن مالك، والبراء، وتميم الدارى، وثوبان، وجابربن عبدالله، وحذيفة، وعبادة بن صامت، وعبدالله بن رواحة، وعبدالله بن عباس، وعبدالله بن عمرو، و عبدالله بن مسعود، وعمروبن العاص، ومعاذبن جبل، وابوامامة، وابوالدرداء، وابوهريرة، و عائشة رضي الله عنهم، ثم روي عنهم اقوام لايحصى عددهم.(نبراس ص ۲۰۸، مطبوعه مكتبه امداديه، ملتان)

ترجمه: دقبرعذاب اودثواب حديثونه دصحابه كرامورضوان الله عنهم اجمعين ديوې لويې ډلې نه روايت شوي دي، په هغوكې دا صحابه كرام دي:

حضرت عمر، حضرت عثمان، حضرت انس، حضرت براء، حضرت تميم داري، حضرت ثوبان، حضرت جابر، حضرت حذيفة، حضرت عبادة، حضرت عبدالله بن رواحة، حضرت عبدالله بن عباس، حضرت عبدالله بن عمر، حضرت عبدالله بن مسعود، حضرت عمروبن عاص، حضرت معاذبن جبل، حضرت ابوامامة، حضرت ابوالدرداء، حضرت ابوهريرة، حضرت عائشة رضي الله عنهم، بياله دوى نه هم دومره خلكونقل كړي دي، چې دهغې د تعداد شميرنشته.

امام بخاري رحمه الله دقبرعذاب په باب كې دقرآن كريم درې ايتونه اودحضور صلى الله عليه وسلم شپږحديثونه ذكركړي دي، كوم چې ددې پنځوصحابه كرامو رضي الله عنهم نه روايت دي، حضرت براء بن عازب، حضرت عمر، حضرت عائشه، حضرت اسماء اوحضرت انس بن مالك رضي الله عنهم.(ولولئ صحيح بخاري ج۱ ص ۱۸۳)

ددې لاندې حضرت حافظ ابن حجرعسقلانى رحمه الله ليكي:

وقدجاء فى عذاب القبرغيرهذه الأحاديث، منهاعن ابى هريرة، وابن عباس، وابى ايوب، وسعد، و زيد بن ارقم، وام خالدفى الصحيحين اوأحدهما، وعن جابرعندابن ماجة، وابى سعيد عندابن مردوية، وعمر، وعبدالرحمن بن حسنة، وعبدالله بن عمرو عندابى داؤد، وابن مسعود عند الطحاوي، وابى بكرة واسماء بنت يزيدعندالنسائي، وام مبشرعندابى شيبة، وعن غيرهم.(فتح البارى ج۳ ص ۲٤۰، دارلنشرالكتب الاسلاميه لاهور)

ترجمه: اودقبرپه عذاب کې له دې پورته ذکرشویو حدیثونونه پرته نور حدیثونه هم راغلي دي، دوی کې دحضرت ابوهریره، ابن عباس، ابوایوب، سعد، زیدبن ارقم اوام خالدرضوان الله علیهم اجمعین احادیث خوصحیحین کې یادهغو یوه کې موجوددي.

اودحضرت جابر رضی الله عنه حدیث په ابن ماجه کې دی، دحضرت ابوسعید رضی الله عنه حدیث ابن مردویه روایت کړی دی، اودحضرت عمر رضی الله عنه ،عبدالرحمن بن حسنه رضی الله عنه اوعبدالله بن عمرو رضی الله عنه ابوداؤد کې دي، دحضرت ابن مسعود رضی الله عنه حدیث طحاوي کې دی، د حضرت ابوبکره رضی الله عنه اواسماء بنت یزید رضی الله عنها حدیثونه نسائي کې دي اودحضرت ام بشر رضی الله عنها حدیث مصنف ابن شیبه کې دی، اوله دوی نه پرته دنوروصحابه کرامو رضی الله عنهم نه هم حدیثونه نقل شوي دي.

اوپه مجمع الزوائد(ج۳ ص ۵۷ مطبوعه دارالکتاب بیروت) کې دیعلی بن سیابه رضی الله عنه روایت هم نقل شوی دی.

داتقریبا ددیریشوصحابه کرامو رضی الله عنهم نومونه شول، کوم چې ما په بیړه لیکلي دي اوله هغوی نه دقبردعذاب حدیثونه روایت دي، په دې وجه باندې دقبردعذاب اوثواب کیدلوکې هیڅ شک نشته.

دریم: کله چې داثابته شوه چې دقبرعذاب اوثواب حق دی اودا داهل حق اجتماعي عقیده ده نواوس دې سوال باندې فکرکول پاتې دي چې دقبرعذاب اوثواب یوائې روح سره تعلق لري اوکه دمړي له بدن سره هم تعلق لري؟ اوداچې دعذاب اوثواب ځای یوائې هم دغه کنده ده، کومې ته چې عام طورباندې قبروییل کیږي، یابرزخ یوخاص ځای دی چې هلته مړي ته عذاب اوثواب ورکول کیږي ، اوهماغه ته دقبردعذاب نوم ورکول کیږي؟

ددې سوال ځواب دادی چې دحضور صلی الله علیه وسلم دارشاداتونه داخبره معلومیږي چې دقبرعذاب اوثواب یوائې روح ته نه ورکول کیږي بلکې دمړي بدن هم دې کې شریک دی.دعذاب اوثواب ځای هم دغه قبردی، په کوم کې چې مړی خښولی شي، خو داعذاب او ثواب دبلې دنیاشی دی، نوځکه په مړي چې قبر کې کوم حالات تیریږي، ژوندیوته عام طورباندې دهغو پته نه لګیږي (عام طورباندې دې له پاره وویل شول چې کله ناکله داکارونه ښکاره هم شي) څنګه چې دځنکدن په حالت کې وفات کیدونکی کس فرښتې ویني اوهغه دنیاویني، خوخواکې ناستو خلکوته دهغو معاملاتو اوکارونوهیڅ پته نه لګیږي، کوم چې دځنکدن په حالت کې هغه کس باندې تیریږي.

زموږپه دې دعوه باندې چې دقبرعذاب اوثواب هم دې قبر کې وي اوداچې دمړي بدن هم په عذاب اوثواب کې شریک وي، له حدیثونو ډیرثبوتونه شته، خوچې ددغو شواهدو راټیرول نه خوممکن دي اونه یې ضرورت شته، په دې وجه باندې دیوڅو عنوانوپه ذریعه باندې دهغو ګواهانونومونه وړاندې کوم:

## ۱: حديث جريد

عن ابن عباس رضي الله عنه قال مرالنبي ﷺ بقبرين(وفی رواية: فسمع صوت انسانين يعذبان فی قبورهما فقال: انهماليعذبان ومايعذبان فی كبير.أما أحدهما فكان لايستترمن البول، واماالأخرفكان يمشي بالنميمة. ثم أخذجريدة رطبة فشقهانصفين فغرزفی كل قبرواحدة قالوا: يارسول لله! لم فلعت هذا؟ قال: لعله يخفف عنهما مالم ييبسا.(صحيح بخاري ج۱ ص ۳۵)

دحضرت ابن عباس رضي الله عنهما نه روايت دي چې حضور ﷺ ددو قبرونو خوا کې تيريده نو حضور ﷺ ددوسړيو اوازونه واوريدل، چې هغوی ته دقبرعذاب ورکول کيده. حضور ﷺ وفرمايل چې ددې دواړو قبرونوخاوندانوته عذاب ورکول کيږي. اوعذاب هم ورته په څه غټ شي باندې نه ورکول کيږي (چې دهغه نه بچ کيدل سخت وي) دوی کې يوه ته دمتيازونه دڅان نه ساتلو په سبب سره اوبل ته دچغل خوري په سبب سره عذاب ورکول کيږي. بياحضور ﷺ دکهجورې يولوندخاښ واخست، اوهغه يې په مينځ سره مات کړ،هغه يې په يو يو قبرباندې کينبودله. صحابه کرامو رضي الله عنهم دې ليدوسره دحضور ﷺ نه پوښتنه وکړه چې يارسول الله! تاسوداسې ولې وکړل؟ حضور ﷺ وفرمايل: کيدای شي ددې(عمل په سبب) باندې ددوی په عذاب کې(دهغه وخت پورې) کمی وشي. ترڅوپورې چې خاښونه وچ شوي نه وي.

دامضمون دحضرت ابن عباس رضي الله عنهما نه پرته له دې صحابه کرامو رضي الله عنهم نه هم روايت دی:

۱: حضرت ابوبکره رضي الله عنه (ابن ماجه ص۲۹ مجمع الزوائد ج۱ ص ۲۰۷. فتح الباری ج۱ ص ۳۲۱) ۲: حضرت ابوهريره رضي الله عنه (ابن ابی شيبه ج ۱ ص ۳۷۲ مواردالظمان ص ۱۹۹ مجمع ج ۳ ص ۵۷) ۳: حضرت انس رضي الله عنه (مجمع الزوائدج۱ ص ۲۰۸)

۴: حضرت جابر رضي الله عنه (افراددراقطنی. فتح الباری ج۱ ص ۳۱۷)

۵: حضرت ابورافع رضي الله عنه (نسائی بحواله فتح الباری ج۱ص ۳۱۹)

۶: حضرت ابوامامه رضي الله عنه (مجمع ج۳ ص ۵۲ فتح ج۱ ص ۳۲۰)

۷: حضرت عائشه رضي الله عنها (مجمع ج۱ ص ۲۰۷)

۸: حضرت ابن عمر رضي الله عنهما (مجمع ج ۳ ص۵۷)

۹: حضرت يعلی بن سيابه رضي الله عنه (ابن ابی شيبه ج۳ ص ۳۷۲ مجمع ج ۳ ص ۵۷)

۱۰: هم داسې يوه بله واقعه دحضرت جابر رضي الله عنه نه صحيح مسلم کې ج ۲ ص ۴۱۸ باندې نقل شوې ده.

۱۱: هم داسې يوه بله واقعه دحضرت ابوهريره رضي الله عنه نه مسنداحمدکې صحيح سندسره نقل شوې ده. (مجمع الزوائدج۲ ص ۵۷)

۱۲: دې نه پرته هم داسې يوه بله واقعه مصنف ابی شيبه ج۳ ص ۳۷۲ او مسند احمد کې د حضرت يعلی بن سيابه رضی الله عنه نه نقل شوې ده.(مجمع ج۳ ص۵۷)

په حديثونو کې زموږ په دعوه باندې لاندې شواهد دي:

۱: د حضور صلی الله عليه وسلم هغه دوو قبرونو سره تيريدلو وخت کې د قبر عذاب محسوس ول او کومو دوو کسانو ته چې د قبر عذاب ورکول کيده، د هغوی اوازاوريدل.

۲: دواړو قبرونو باندې د کجورې څانګونه کينښودل.

۳: او د پوښتنې په ځواب دا فرمايل چې: کيدای شي د دوی په عذاب کې څه کمی وشي.هغه وخت پورې چې تر څو دا څانګونه وچ شوي نه وي.

که چېرې دا کنده کومې ته چې قبر ويل کيږي، د قبر د عذاب ځای نه وای نو د غه څانګونه به يې په قبر نه کېښودل او که چېرې د مړي بدن ته عذاب نه ورکول کيدای نو حضور صلی الله عليه وسلم به هغه دوو کسانو اوازونه نه وو اوريدلي، او نه به د قبر سره تيريدو وخت کې ورته د قبر د عذاب پته لګېدلې وه.

## ۲: د حضور صلی الله عليه وسلم د قبر د عذاب اوريدل

پورته د حضرت ابن عباس رضی الله عنهما روايت کې راغلي دي.

**فسمع صوت انسانين يعذبان فی قبورهما.**(صحيح بخاري ج۱ ص ۳٤)

ترجمه: حضور صلی الله عليه وسلم د دوو سړيو اواز واوريده چې هغو ته په قبر کې عذاب ورکول کيږي.

دا مضمون هم ډېرو حديثونو کې راغلی دی:

۱: **عن ابي ايوب الانصاری رضی الله عنه قال: خرج رسول الله صلی الله عليه وسلم بعد ما غربت الشمس فسمع صوتا، فقال: يهود تعذب فی قبورها.**(صحيح بخاري ج۱ ص ۱۸٤، صحيح مسلم ج۲ ص ۳۸٦)

ترجمه: حضرت ايوب انصاري رضی الله عنه نه روايت دی چې حضور صلی الله عليه وسلم د لمر پريوتلو نه وروسته باندې ووت، نو اواز يې واوريد ،وې فرمايل يهودانو ته د هغوی په قبرونو کې عذاب ورکول کيږي.

۲: **عن انس رضی الله عنه قال: بينما رسول الله صلی الله عليه وسلم فی نخل لابی طلحة يبرز لحاجته قال: وبلال يمشي وراء يکرم نبي الله صلی الله عليه وسلم ان يمشي الی جنبه، فمر نبي الله صلی الله عليه وسلم بقبر فقام حتی لمّ اليه بلال، فقال: ويحک يا بلال! هل تسمع ما اسمع؟ قال: ما اسمع شيئا! قال: صاحب القبر يعذب! فسأل عنه فوجد يهوديا.**(رواه احمد ورجاله رجال الصحيح مجمع الزوائد ج۳ ص ٥٦ واخرجه فی المستدرک ج۱ ص ٤۰ وقال صحيح علی شرط الشيخين واقره الذهبی)

ترجمه: حضرت انس رضی الله عنه فرمايي چې حضور صلی الله عليه وسلم د قضا حاجت له پاره د حضرت طلحه رضی الله عنه د کجورو باغ ته تشريف يوړ، حضرت بلال رضی الله عنه د حضور صلی الله عليه وسلم وروسته روان و، د ادب په سبب ورسره يو شان نه و روان، حضور صلی الله عليه وسلم د يو قبر خوا کې ودريد ،تر دې چې حضرت بلال رضی الله عنه هم ور

ورسید ،وې فرمایل: بلال! ایاته هم هغه څه اورې چې زه یې اورم؟ بلال وویل:زه خوڅه نه اورم، هغه وفرمایل: ددې قبرخاوندته عذاب ورکول کیږي، حضور ﷺ دهغه قبرباره کې پوښتنه وکړه چې دا قبردچادی؟ نو معلومه شوه چې هغه قبر د یهودي و.

۳: عن انس رضي الله عنه قال: اخبرني من لااتهمه من اصحاب النبي ﷺ قال: بينمارسول الله ﷺ وبلال يمشي بالبقيع، فقال رسول الله ﷺ: يابلال! هل تسمع مااسمع؟ قال والله يارسول الله مااسمعه! قال: الاتسمع اهل هذه القبوريعذبون ؟ يعني قبوراهل الجاهلية.(رواه احمدورجاله رجال الصحيح مجمع الزوائدج ۳ ص ٥٦)

ترجمه: حضرت انس رضي الله عنه نه روایت دی چې دحضور ﷺ په صحابه کرامو رضي الله عنهم کې یوصحابي ویلي دي چې حضور ﷺ اوحضرت بلال رضي الله عنه بقیع کې روان و ،یو ناڅاپه حضور ﷺ وفرمایل: ای بلال! څه چې زه اورم، ایاته هم هغه اورې؟ بلال وویل: په الله مې دې قسم وي، یارسول الله! زه څه نه اورم، هغه و فرمایل: ایاته دقبرونودخاوندانو اوازنه نه اورې؟ هغوی ته قبرونوکې عذاب ورکول کیږي.

٤: عن جابر رضي الله عنه قال: دخل رسول الله ﷺ نخلالبني النجار، فسمع اصوات رجال من بني النجارماتوافى الجاهلية يعذبون فى قبورهم، فخرج رسول الله ﷺ فزعاً فامراصحابه ان يتعوذوامن عذاب القبر، (رواه احمدوالبزار، ورجاله رجال الصحيح مجمع الزوائدج ۳ ص ٥٥، وكشف الاستارعن زوائدالبزارج١ ص ٤١٢)

ترجمه: حضرت جابر رضي الله عنه فرمايي چې: رسول الله ﷺ دبنونجارپه یوه علاقه کې داخل شو، نودبنونجاردیوڅوسړیواوازونه یې واوریدل، کوم چې دجاهلیت په زمانه کې مړه شوي وو اوهغوی ته قبرونو کې عذاب ورکول کیده،حضور ﷺ هغه ځای نه په ویره باندې ووت او خپلو صحابه کرامو رضي الله عنهم ته یې وفرمایل: چې دقبردعذاب نه پناه وغواړي.

په حدیثونوکې دحضور ﷺ قبرونوخواته تلوسره دقبردعذاب اوریدو ذکرشوی دی.که چېرې داکندې (قبرونه) دعذاب ځای نه وای اوقبرونوکې ښخ بدنونوته عذاب نه ورکول کیدای،نو دقبرعذاب به دقبرخواکې نه اوریدل کیده.

## ۳: له حضور ﷺ نه پرته نوروخلک هم دقبرعذاب اوریدلای شي؟

ډیرحدیثونوکې دامضمون هم راغلی دی که چېرې داویره نه وه چې تاسوبه دخپلومړو ښخولوهمت ونه کړئ نومابه الله تعالی ته دعاکړې وه چې دقبرکوم عذاب زه اورم هغه تاسوهم واوری، ددې مضمون یوڅوحدیثونه په لاندې ډول دي:

۱: عن زيدبن حارث رضي الله عنه قال: بينماالنبي ﷺ في حائط لبني النجارعلى بغلة له ونحن معه اذحادت به فكادت تلقيه واذااقبرستة وخمسة اواربعة، قال: كذاكان يقول الجريري. فقال: من يعرف اصحاب هذه الاقبر؟ فقال: رجل: انا! قال: فمتى مات هولاء؟ قال: ماتوافى الاشرك! فقال: ان هذه الامة تبتلى فى قبورهافلولاان لاتدافنوا لدعوت الله ان يسمعكم من عذاب القبرالذى اسمع منه...الحديث.(صحيح مسلم ج۲ ص ۳۸٦)

ترجمه: حضرت زيدبن ثابت رضي الله عنه فرمايي چې يوه ورځ حضور ﷺ په خپلې خچرې باندې سور و اودبنونجاريوباغ ته يې تشريف يوړ، موږهم حضور ﷺ سره و.يو ناڅاپه خچر وويريدهاونږدې وه چې حضور ﷺ دخچرنه غورځيدلى واى.هلته څلورپنځه قبرونه و. حضور ﷺ وفرمايل: داقبرونه څوک پيژني؟ يوسړي وويل: زه يې پيژنم. حضور ﷺ وفرمايل داكله مړه شوي وو؟ هغه وويل: دشرك په حالت کې. بياحضور ﷺ وفرمايل بې شكه دې خلكوته په قبرونوکې عذاب ورکول کيږي اوکه چيرې ماته داويره نه وه چې تاسوبه خپل مړي خښول پريږدئ،نومابه الله تعالى ته دعاكړې وه چې هغه تاسوته دقبرعذاب دراورولى وى، څنګه يې چې زه اورم.

۲: هم داحديث صحيح ابن حبان کې دحضرت ابوسعيد رضي الله عنه نه هم روايت دى.(مواردالظمان ص۲۰۲)

۳: عن انس رضي الله عنه ان النبي ﷺ سمع صوتامن قبر، فقال: متى مات هذا؟ قالو: مات فى الجاهلية! فسربذالک وقال: لولاان لاتدافنوا لدعوت الله ان يسمعكم عذاب القبر.(سنن نسائى ج۱ ص۲۹۰ صحيح مسلم ج۲ ص ۳۸٦، مواردالظمان ص ۲۰۰)

ترجمه: حضرت انس رضي الله عنه فرمايي چې حضور ﷺ ديوقبراواز واوريده :نووې فرمايل: دى كله مړ شوى و؟ حضور ﷺ ته وويل شول چې دجاهليت په زمانه کې، دې باندې حضور ﷺ خوشحاله شو اوويې فرمايل: كه چيرې ماته داويره نه وى چې تاسوبه خپل مړي خښول پريږدئ نومابه الله تعالى ته دعاكړې وه چې تاسوته يې هم دقبرعذاب در اوراولى و.

٤: عن انس رضي الله عنه قال دخل رسول الله ﷺ خرباً بالبني النجاركانه يقضى حاجته فخرج وهومذعور، فقال: لولاان تدافنوالدعوت الله ان يسمعكم من عذاب القبرمااسمعني.(اسناده صحيح،كنزالعمال ج۱۵ ص۷٤۰ حديث ٤۲۹٤۳)

ترجمه: دحضرت انس رضي الله عنه نه روايت دى چې حضور ﷺ دبنونجار ويراني(ويجاړې) ته دقضايې حاجت له پاره تشريف يوړ.نووېرېدلى باندې اووت. اووويې فرمايل: كه چيرې داويره نه وى چې تاسوبه خپل مړي خښول پريږدئ نومابه الله تعالى ته دعاكړې وه چې هغه تاسوباندې هم دقبرعذاب اوراولى واى، كوم چې زه اورم.

پورته بیان شویو حدیثونو کې درې خبرې زموږ په عقیده باندې ګواهي ورکوي:
۱: د حضور ﷺ د قبر عذاب اورېدل.
۲: او دا فرمایل چې ما به الله تعالی ته دعا کړې وه چې تاسو ته یې هم د قبر عذاب اوراولی و ای کوم چې زه اورم، له دې نه معلومیږي چې د قبر عذاب اورېدل زموږ په حق کې هم ممکن دي. که چېرې د قبر عذاب دې کندې سره تعلق نه ساته. نو د قبر د عذاب داورید وهیڅ سبب به نه و. ۳: او دا فرمایل چې: دوی په سبب سره به تاسو خپل مړي خښول پریږدئ، که چېرې د قبر د عذاب تعلق دې کندې سره نه وی نو ددې ویرې هیڅ سبب به نه و.

## ځناورو د قبر عذاب اوري

پورته د حضرت زید بن ثابت او حضرت ابو سعید خدري رضي الله عنه حدیثونو کې د قبر عذاب اورید وسره د ځناورو یرېدل ذکر شوي دي، دا مضمون په نورو ډېرو حدیثونو کې هم راغلی دی، چې مړو ته په قبر کې کوم عذاب ورکول کیږي. هغه پېریانو او انسانانو نه پرته تقریبا نور ټول ځناور اوري، دې باره کې د په حدیثونو الفاظ ولولئ:

۱: **د حضرت انس رضي الله عنه حدیث: ثم یضرب بمطرقة من حدید ضربة بین اذنیه فیصیح صیحة یسمعها من یلیه الا الثقلین،** (صحیح بخاري ج۱ ص ۱۷۸، سنن ابوداؤد ج۲ ص ۶۵۳، نسائي ج ۲ ص ۲۸۸، مسند احمد ج ۳ ص ۱۲۶، ۲۳۴)

ترجمه: بیا به هغه مړی دا وسپنې په ټټک سره د دواړو غوږونو په مینځ کې ووهل شي. د هغه په سبب سره هغه مړی دومره په زور سره چیغه ووهي. چې هغه به له انسانانو او پېریانو نه پرته نور ټول ځناور اوري.

۲: **د حضرت ابو هریره رضي الله عنه حدیث:**

**فیفتح له باب من جهنم، ثم یضرب ضربة تسمع کل دابة الا الثقلین،** (رواه البزار، مجمع الزوائد، ج ۲ ص ۵۳، کشف الاستار عن زوائد البزار ج۱ ص ۴۱۳)

ترجمه: بیا به د هغه له پاره د دوزخ یوه دروازه خلاصه کړل شي. او بیا به هغه ووهل شي، داسې وهل چې هغه به ټول ځناور اوري بې له انسانانو او پېریانو څخه چې هغه به یې نه اوري.

۳: **د حضرت ابو سعید خدري رضي الله عنه حدیث**

**ویفتح له باب الی النار ثم یقمعه قمعة بالمطراق یسمعها خلق الله کلهم غیر الثقلین،** (مسند احمد، ج ۳ ص ۲۹۶، کشف الاستار ج۱ ص ۴۱۳، مجمع الزوائد ج ۳ ص ۴۸)

ترجمه: بیا به د هغه کافر له پاره د دوزخ طرف ته دروازه خلاصه کړل شي، بیا به فرښته هغه ګرزباندې داسې ووهي، چې هغه به د انسانانو او پېریانو نه پرته ټول مخلوق اوري.

## ۴: د حضرت براء بن عازب رضي الله عنه حديث

فيضربه بهاضربة يسمعهامابين المشرق والمغرب الاالثقلين فيصيرتراباً قال ثم تعادفيه الروح.(سنن ابو داؤد، ج۲ ص ٦٥٤)

ترجمه: وروسته به فرښته هغه ته داسې وهل ورکړي، کوم چې دانسانانو او پيريانونه پرته دمشرق اومغرب په مينځ کې ټول مخلوق اوري. اوهغه به دوهلو په سبب سره خاورې شي. هغه وفرمايل اوبيابه هغه ته روح ورکړل شي.

## ۵: د حضرت عائشې رضي الله عنها حديث: انهم معذبون عذاباً تسمعه البهائم كلها.(صحيح بخاري ج۲ ص ۹٤۲، صحيح مسلم ج۱ ص ۲۱۷)

ترجمه: مړوته قبرکې داسې عذاب ورکول کيږي چې هغه به ټول ځناور(خاروي) اوري.

## ٦: د حضرت ام مبشر رضي الله عنها حديث

عن ام مبشر قالت: دخل عليّ رسول الله ﷺ وأنافي حائط من حوائط نبي النجارفيه قبورمنهم، وهويقول: استعيذوبالله من عذاب القبر.قالت, قلت: يارسول الله! وإنهم ليعذبون في قبورهم؟ قال: نعم! عذاباً تسمعه البهائم.(رواه احمدورجاله رجال الصحيح، مجمع الزوائدج۳ ص ٥٦ مواردالظمآن ص۲۰۰)

ترجمه: حضرت ام مبشر رضي الله عنها فرمايي چې: زه يوه ورځ دبنونجارپه باغ کې وم، چې حضور ﷺ تشريف راوړ،هلته دبنونجارقبرونه وو، (دهغو ليدوسره) حضور ﷺ وفرمايل: دالله تعالى نه دقبردعذاب پناه وغواړئ. ماعرض وکړ. يارسول الله! اياقبرکې عذاب ورکول کيږي؟ حضور ﷺ وفرمايل:هو! بې شکه دوی ته په خپلو خپلو قبرونوکې عذاب ورکول کيږي. کوم چې ټول ځناور اوري.

## د حضرت عبدالله بن مسعود رضي الله عنه حديث

ان الموتى ليعذبون فى قبورهم حتى ان البهائم تسمع اصواتهم.(رواه الطبراني فى الكبير واسناده حسن، مجمع الزوائد، ج ۳ ص ٥٦.)

ترجمه: حضور ﷺ وفرمايل چې: مړوته دهغوی په قبرونوکې عذاب ورکول کيږي، تردې پورې چې ځناوردهغوی اوازونه اوري.

## ۸: د حضرت ابى سعيد رضي الله عنه حديث

كنت مع رسول الله ﷺ فى سفر وهويسيرعلى راحلته فنفرت، قلت: يارسول الله ﷺ ماشأن راحلتک نفرت؟ قال: انهاسمعت صوت رجل يعذب فى قبره فنفرت لذالک.(رواه الطبراني فى

الاوسط وفیه جابر الجعفي وفیه کلام کثیر وقد وثق. مجمع الزوائد ج ۳ ص ٥٦)
ترجمه: یوسفر کې زه د حضور ﷺ سره وم، حضور ﷺ په خپلې اوښې باندې روان و چې یو ناڅاپه یې سورلۍ ووېریده، ماوویل یارسول الله! ستاسو په سورلۍ باندې څه وشو؟ داولې ووېریده؟ حضور ﷺ وفرمایل: دې دیوداسې کس اوازواورېده کوم ته چې په قبرکې عذاب ورکول کیږي. دهغه په سبب سره ووېریده.

په حدیثونوکې دانسانانواوپیریانونه پرته دباقي ټولو ځناورو دقبردعذاب اورېدل ذکرشوي دي، دپه حدیثونونه ثابته شوه چې دقبرعذاب یوحسي شی دی، کوم چې نه یوازې په هغه دنیاکې محسوس کیدای شي. بلکې دانسانانواوپیریانونه پرته باقي ټولو مخلوقاتو ته هم دهغه پته لګیږي، انسانان اوپیریان یې په دې وجه باندې نه شي محسوسولی، چې دې کې یوحکمت دی، چې دهغوی ایمان، ایمان بالغیب پاتې شي. دویم حکمت هغه دی کوم چې پورته بیان شوی دی که چیرې دقبردعذاب پته ولګیده کوم چې عام طور باندې انسانانوته ورکول کیږي، نویوکس به هم خپل مړی په قبر کې دخښولوهمت ونه کړي، په هرحال ددې عذاب محسوسیدل ددې خبرې دلیل دی چې دقبرعذاب هم دې کنده کې وي اوداچې دمړي بدن ته هم ورکول کیږي.

## ۵: د قبر د عذاب د لیدو واقعات

دقبرعذاب دانسانانواوپیریانونه پټ ساتل شوی دی. خو کله ناکله د عادت نه خلاف دقبردعذاب څه اثرات انسانانو ته هم اوښودل شي. داسې قسمه واقعات بې شمېره دي، یوڅو یې په لاندې ډول دي:

۱: عن قبیصة بن ذویب رضی الله عنه قال: اغار رجل من اصحاب رسول الله ﷺ علی سریة من المشرکین فانهزمت. فغشي رجل من المسلمین رجلا من المشرکین وهومنهزم فلماارادان یعلوه بالسیف قال الرجل: لااله الاالله! فلم ینزع عنه حتی قتله. ثم وجدفی نفسه من قتله فذکرحدیثه لرسول الله ﷺ. فقال رسول الله ﷺ: فهلانقبت عنه قلبه. فلم یلبثواالاقلیلاحتی توفی ذالک الرجل القاتل. فدفن فاصبح علی وجه الارض فجاء اهله فحدثوا رسول الله ﷺ. فقال: ادفنوه! فدفنوه فاصبح علی وجه الارض فجاء اهله فحدثوارسول الله ﷺ. فقال: ادفنوه! فدفنوه فاصبح علی وجه الارض فجاؤوا رسول الله a فحدثوه ذالک. فقال: رسول الله ﷺ: ان الارض قدابت ان تقبله فاطرحوه فی غارمن الغیران. (بیهقی دلائل النبوة ج ٤ ص ۳۰۹، خصائص کبری ج۲ ص ۷۸ مصنف عبدالرزاق ج ۱۰ ص ۱۷۳. کنزالعمال ج ۱۵ ص ۱٤۷، ۱٤۸، حدیث ٤۰٤٥٤)

ترجمه: دحضرت قبیصه بن ذویب ﷺ نه روایت دی چې دحضور ﷺ په صحابه کرامو ﷺ کې یو ملګري دمشرکانو په یوې ډلې باندې حمله وکړه. هغې ډلې شکست وخوړ. بیاد مسلمانانو یو کس دمشرکانو یو تښتیدونکی کس ونیوه. کله یې چې په توري باندې دوهلو اراده وکړه. نو هغه کس لااله الاالله. وویله. خو مسلمان کلمه اوریدو سره هم وروسته نه شو. تردې چې هغه یې قتل کړ. بیادی خپل ضمیر په دې قتل باندې ملامته کړ. هغه خپله قصه درسول الله ﷺ په خدمت کې وکړه. رسول الله ﷺ دې اوریدو سره وفرمایل چې تادهغه زړه ولې ونه کوت. څه وخت وروسته هغه قاتل مړشو. هغه خښ کړی شو. خو په سبا باندې ولیدل شو چې هغه دقبرنه دباندې په ځمکه باندې پروت دی. خلکو دا قصه د حضور ﷺ په خدمت کې وکړه. حضور ﷺ وفرمایل: هغه خښ کړئ. وروسته هغه په دویم ځل باندې خښ کړی شو. نوبیا ولیدل شو چې پر ځمکه باندې پروت دی. درې ځله داسې وشول. حضور ﷺ وفرمایل: چې ځمکې دده له قبلولو نه انکار کړی دی. دی چرته په غار کې واچوئ.

۲: **عن انس بن مالک ﷺ قال: کان منا رجل من بنی النجار قدقرآ البقرة وال عمران وکان یکتب لرسول الله ﷺ فانطلق هاربا حتی لحق باهل الکتاب. قال: فرفعوه، قالوا: هذا قدکان یکتب لمحمد، فاعجبوا به. فمالبث ان قصم الله عنقه فیهم. فحفروا له فواروه. فاصبحت الارض قدنبذته علی وجهها. ثم عادوافحفروله فواروه. فاصبحت الارض قدنبذته علی وجهها. ثم عادوا فحفرواله فواروه. فاصبحت الارض قدنبذته علی وجهها. فترکوه منبوذا. (صحیح بخاري، ج۳ص ۵۱۱، صحیح مسلم ج۲ ص ۳۷۰، واللفظ له مسنداحمد ج ۳ ص ۱۲۰، ۱۲۱، ۲۲۵، صحیح ابن حبان بحواله موارد الظمآن ص ۳۶۵، خصائص کبری ج۲ ص ۷۸)**

ترجمه: دحضرت انس ﷺ نه روایت دی چې زموږ یو کس چې دبنونجارنه و. هغه سورت البقره اوسورة ال عمران لوستی و. او د رسول الله ﷺ له پاره به یې وحې لیکله. بیاهغه وتښتیده او اهل کتابو سره شو. هغوی دده قدراوخاطر او ویې ویل: ده به محمد (ﷺ) له پاره وحې لیکله. هغه خلک دې باندې ډیرزیات خوشحاله شول. څو ورځې وروسته الله تعالی دهغه څټ مات کړ (یعنې مړشو) هغوی کنده وکېندله اوهغه یې خښ کړ. چې سهارشونو ځمکې بهرته غورځولی و. هغوی هغه بیاخښ کړ. ځمکې هغه بیابهرته راوغورځاوه. هغوی په دریم ځل باندې خښ کړ. ځمکې هغه بیابهر راوغورځاوه. کله چې هغوی مجبور شول نوله خښولو پرته یې هم داسې پریښود.

۳: **عن اسامه بن زید قال: ..... وذالک انه بعث رسول الله ﷺ رجلا فکذب علیه، فدعا علیه رسول الله ﷺ فوجدمیتاقدانشق بطنه ولم تقبله الارض. (بیهقی دلائل النبوة ج٦ ص ۳۴۵، خصائص کبری ج۲ ص ۷۸)**

ترجمه: حضرت اسامه بن زید ﷺ نه روایت دی چې: رسول الله ﷺ یو سړی دځه کارله پاره ولیږه. هغه رسول الله منسوب کولوسره (دروغ وویل) حضور ﷺ دهغه له پاره ښېرې وکړې. دهغې په وجه باندې مړشو، خېټه یې شلیدلې وه. او هغه ځمکې قبول نه کړ.

٤: عن عمران قال: شهدت رسول الله ﷺ وقدبعث جيشامن المسلمين الى المشركين، الى قوله، فلم يلبث الايسيراحتى مات فدفناه، فاصبح على ظهرالارض. فقالوا: لعل عدوا نبشه فدفناه، ثم امرناغلماننايحرسونه فاصبح على ظهرالارض فقلنا: لعل الغلمان نعسوا، فدفناه ثم حرسناه بانفسنا فاصبح على ظهرالارض. فالقيناه فى بعض تلك الشعاب. وفى رواية: فنذته الارض فاخبرالنبي ﷺ. قال: ان الارض لتقبل من هواشرمنه ولكن الله احب ان يريكم تعظيم حرمة لااله الاالله. (سنن ابن ماجه ص۲۸۱، دلائل النبوة بيهقى ج۷ ص ۱۲۸)

ترجمه: دحضرت عمران بن حصین ﷺ نه روایت دی چې: حضور ﷺ دمسلمانانو یو لښکر کافرانو سره دجهادله پاره ولیږه. (دهغه نه وروسته یې دیوکس دقتل واقعه بیان کړه) بیاهغه قاتل څو ورځې وروسته مړشو. موږهغه ښخ کړ. نوسهارهغه دځمکې له پاسه پروت و. موږ وویل کیدای شي چې دښمن دې بهرراوېستلی وي، موږپه دویم ځل باندې ښخ کړاوهغه باندې مو دخپلو غلامانوپیره ودروله. په دویمه ورځ بیادزمکې له پاسه پروت و، موږوویل کیدای شي چې غلامان ویده شوي وي. موږپه دریم ځل باندې ښخ کړاوپخپله مو پیره وکړه، خوبله ورځ بیاپه زځکه باندې پروت و، اخرکې موږهغه یوغارکې واچولو.
اویوروایت کې دي چې ځمکې هغه بهرته راوغورځاو. حضور ﷺ ته ددې خبرورکړې شو، نوویې فرمایل چې ځمکه خودده نه بدخلک هم قبلوي، خوالله تعالی دا وغوښتل چې تاسوته وښایي چې دلا اله الا الله حرمت څومره ډېردی.

٥: عن الحسن البصرى ان محلماً لماجلس بين يده عليه الصلوة والسلام. قال له: امنته ثم قتله؟ ثم دعاعليه. قال الحسن: فوالله، مامكث محلماً الاسبعاً حتى مات فلفظته الارض ثم دفنوه فلفظته الارض. ثم دفنوه فلفظته الارض. فرضمواعليه من الحجارة حتى واروه فبلغ رسول الله ﷺ فقال: ان الارض لتطابق على من هوشرمنه ولكن الله ارادأن يعظكم فى حرم مابينكم لماأراكم منه. (البدايه والنهايه ج٤ ص ۲۲۵، مجمع الزوائد ج۷ ص ۲۹٤)

ترجمه: حضرت حسن بصری رحمه الله روایت کوي چې محلم (یومسلمان قتل کړ) کله چې دحضور ﷺ په خدمت کې کیناست نو حضور ﷺ وفرمایل: تاهغه له امن ورکولونه وروسته قتل کړ؟ بیایې دهغه له پاره ښېرې وکړې، حضرت حسن رحمه الله فرمایي چې محلم له دې واقعې نه یوه هفته وروسته مړشو. نوځمکې هغه بهرته راوبرسېره کړ. خلکو هغه بیاښخ کړ، نو ځمکې هغه بیا رابرسېره کړ. اخر خلکو دهغه نه ګیرچاپیره کاڼي کیښودل او هغو کې یې پټ

کړ. حضور ﷺ ته چې د دې خبر اورسید. نو حضور ﷺ وفرمایل چې ځمکه له دده نه بدخلک هم پټوي.خو الله تعالی تاسو ته دده دا منظر ښودل وغوښتل چې تاسو ته خپلو کې دحرمتونو باره کې نصیحت او عبرت درکړي.

٦: عن ابن عمر رضي الله عنهما قال: بینما اسیر بجنبات بدر. اذ خرج رجل من حفرة فی عنقه سلسلة. فنادانی. یاعبدالله! اسقنی فلا ادری اعرف اسمي اودعاني بدعایة العرب. وخرج رجل فی ذالک الحفیر فی یده سوط فنادانی: لاتسقه فانه کافر! ثم ضربه بالسوط حتی عادالی حفرته. فاتیت النبي ﷺ مسرعا فاخبرته. فقال لی: اوقدرایته؟ قلت: نعم! قال: ذاک عدوالله ابوجهل بن هشام! وذاک عذابه الی یوم القیامة.(قال الهیثمي رواه الطبراني فی الاوسط وفیه عبدالله بن محمدالمغیرة وهوضعیف. مجمع الزوائد ج۳ ص ٥٧)

ترجمه: حضرت ابن عمر رضي الله عنهما فرمایي: چې کله زه دبدرخواکې تیریدم،نوده یوې کندې نه یو سړی راووت،په غاړه کې یې زنځیر و. ماته یې وویل: اې عبدالله! ماباندې اوبه اوڅښه، ماته پته نشته چې هغه ته زمانوم معلوم واوکه دعربو دود مطابق هغه ماته عبدالله (دالله تعالی بنده) وویل: دهغې کندې نه یوبل سړی راووت.دده په لاس کې دوره (کوړه) وه. ماته یې وویل: چې ده ته اوبه مه ورکوه.دی کافردی. هغه لومړی کس یې په دورې (کوړې) باندې وواهه اوپه وهلو وهلو یې هغه کندې ته ور وغوځاو.زه سم دلاسه دحضور ﷺ په خدمت کې حاضرشوم، اوټوله واقعه مې ورته وکړه. حضور ﷺ وفرمایل چې تاهغه په رښتیا سره ولید؟ ما وویل: هو! حضور ﷺ وفرمایل: دی دالله تعالی دښمن ابوجهل و. اودقیامت پورې به هغه ته هم داسزا ورکول کیږي،نعوذبالله من ذالک.

٧: وقال: ابن ابي الدنیاحدثنی ابی، حدثناموسی بن داؤد،حدثناحمادبن سلمة عن هشام بن عروة،عن ابیه، قال: بینماراکب یسیربین مکة والمدینة اذمر بمقبرة فاذابرجل قدخرج من قبریلتهب نارمصفدافی الحدید،فقال: یاعبدالله! انضح. یاعبدالله! انضح. قال: وخرج اخر یتلوه فقال: یاعبدالله لاتنضح. یا

عبدالله لاتنضح. قال: وغشي علی الراکب. وعدلت به راحلته الی العرج. قال واصبح قدابیض شعره. فاخبرعثمان بذالک فنهی ان یسافرالرجل لوحده. (کتاب الروح ص ٩٤)

ترجمه: ابن ابي الدنیافرمایي چې ماته زماپلار وویل: هغه وایي چې ماته بیان وکړ،حمادبن سلمه، هغه روایت کوي دهشام بن عروه نه هغه دخپل پلارنه،چې یوکس دمدینې اومکې په منځ کې په سورلۍ باندې روان و،چې یوقبرستان(هدیرې) ته ورسیده،یو ناڅاپه یوکس دیوقبرنه راووت، کوم چې په اورکې سوزیده اوداوسپنې په پړیو(رسیو) باندې تړل شوی

و ،هغه وویل: اې دالله تعالی بنده! ماته اوبه راکړه. اې الله تعالی بنده ماته اوبه راکړه. اویوبل کس دهغه شاته راووت.هغه وویل اې دالله تعالی بنده. ده ته اوبه مه ورکوه. اې دالله تعالی بنده، اوبه مه ورکوه. ددې منظرپه وجه باندې هغه کس باندې بې هوشي راغله او سورلۍ یې عرج نومي ځای ته بوته. اوددې غم په وجه باندې دهغه ویښته سپین شول. حضرت عثمان رضی الله عنه ته ددې خبرورکړی شو .نوحضرت عثمان رضی الله عنه له یواځې سفرنه منع وکړه

۸: وقدذکرابن ابی الدنیا فی کتاب القبور، عن الشعبي انه ذکررجلاللنبي صلی الله علیه وسلم: مررت ببدرفرایت رجلا یخرج من الارض فیضربه رجل بمقمعة حتی یغیب فی الارض، ثم یخرج فیفعل به ذالک، فقال رسول الله ﷺ: ذالک ابوجهل بن هشام یعذب الی یوم القیامة.(کتاب الروح ص۹۳)

ترجمه: ابن ابی الدنیاکتاب القبورکې دامام شعبي رحمه الله نه نقل کړی دی چې: یوکس حضور ﷺ ته وویل: چې زه بدرکې روان وم، ماولیدل چې یوسړی له ځمکې نه راووت اودویم سړي هغه په څټک باندې وواهه، تردې چې هغه په ځمکه کې ننوځي، هغه بیاراوځي،نودویم سړی ورسره هم هغه شان کوي، دې اوریدوسره حضور ﷺ وفرمایل: دا ابوجهل بن هشام دی، ده ته به دقیامت ترورځې پورې عذاب ورکول کیږي.

۹: وذکرمن حدیث حمادبن سلمة عن عمروبن دینار ،عن سالم بن عبدالله عن ابیه، قال: بینما انااسیربین مکة والمدینة علی راحلة وانامحقب اداوة اذ مررت بمقبرة فاذارجل خارج من قبره یلتهب ناراوفی عنقه سلسلة یجرها، فقال: یاعبدالله، انضح، یاعبدالله انضح، فوالله ما ادري اعرفني باسمي ام کما تدعوالناس؟ قال: فخرج آخرفقال: یاعبدالله، لاتنضح، یاعبدالله لا تنضح، ثم اجتذب السلسلة فاعاده فی قبره.(کتاب الروح ص۹٤)

ترجمه: اوابن ابی الدنیادحمادبن سلمه نه روایت کړی دی. هغه دعمروبن دینارنه. هغه دسالم بن عبدالله نه، هغه دخپل پلار عبدالله بن عمر رضی الله عنهما نه روایت کړی دی چې: زه دمکې اومدینې په مینځ کې په اوښ باندې روان وم، زما په سورلۍ باندې داوبومشک هم و.یوقبرستان کې تیریدم نو ومې لیدل چې سړی له خپل قبرنه راووت، هغه باندې اورلګیدلی و. اوپه غاړه کې یې زنځیرو.کوم چې هغه ځان سره راکش کاو.هغه ماته اوازوکړچې: اې عبدالله اوبه راکړه! اې عبدالله اوبه راکړه! په الله مې دې قسم وي، ماته پته نشته چې هغه ته زمانوم معلوم و یالکه څنګه چې خلک خلکوته اوازکوي، اې دالله بنده،همدارنګه هغه ماته اواز وکړو ،بیادهغه شاته یوبل سړی راووت،هغه ماته وویل اې عبدالله! ته ده ته اوبه مه ورکوه، اې عبدالله! ده ته اوبه مه ورکوه. بیایې دلومړي کس زنځیر کش کړاوهغه یې بیرته قبرته ورکوزکړ.

حافظ ابن قیم رحمه الله په "کتاب الروح" کې هم داسې قسمه اتلس نورې واقعې نقل کولونه وروسته لیکلي دي:

وهذه الأخبار وأضعافها وأضعاف أضعافها ممالايتسع لها الكتاب مماراه الله سبحانه و تعالى لبعض عباده من عذاب القبر و نعيمه عياناً، و امارؤية المنام فلوذكرناهالجاءت عدة اسفار. (كتاب الروح ص ۹۹)

ترجمه: دا واقعات اوله دي نه نورې هم ډیرې واقعې کومې چې دې کتاب کې نه شي راتلی. داسې دي چې هغه کې الله تعالى بعضې بندگانو ته دقبرعذاب اوثواب ښودلی دی، ترکومه حده چې دخوب دواقعاتو تعلق دی. که چېرې مونږ هغه بیانول شروع کړو ،نو دهغه له پاره به ډیر(دفترونه)رجسټرونه پکاروي.

## قبرکې راتلونکي حالات او واقعات

حدیثونوکې هغه حالات او واقعات ډیرپه تفصیل سره بیان شوي دي کوم چې په قبرکې مړي سره کیږي، هغو ته په فکرسره دامعلومیږي چې داحالات قبرکې کیږي، اوددې حالاتوتعلق دمړي له بدن سره هم وي، دلته یوڅوحدیثونه ذکرکیږي. چې له هغه نه وروسته قبرکې دکېدونکو حالاتویوه خاکه وړاندې کیږي.

۱: عن انس بن مالك رضي الله عنه، ان رسول الله صلى الله عليه وسلم قال: ان العبداذاوضع فى قبره، وتولى عنه اصحابه، انه ليسمع قرع نعالهم، اتاه ملكان، فيقعدانه فيقولان له، ماكنت تقول فى هذا الرجل، لمحمد؟ فاماالمؤمن فيقول: اشهدانه عبدالله ورسوله: فيقال له: انظر الى مقعدك من النار، قدابدلك الله به مقعدامن الجنة، قال النبي صلى الله عليه وسلم فيراهماجميعا، قال قتادة، وذكرلناانه يفسح له فى قبره، ثم رجع الى حديث انس، قال: واما المنافق اوالكافر فيقال له: ماكنت تقول في هذا الرجل؟فيقول لاادرى، كنت اقول مايقول الناس، فيقال: لادريت ولاتليت، و يضرب بمطارق من حديدضربة: فيصيح صحية يسمعهامن يليه ا غير الثقلين، (صحيح بخاري، ج۱ ص ۱۸۳،۱۸۴، واللفظ له، صحيح مسلم ج۲ ص ۳۸۶، ابوداؤدج۲ ص ٦٥٤، نسائی ج۱ ص ۲۸۸ شرح السنه ج ٥ ص ٤١٥)

ترجمه: دحضرت انس بن مالك رضي الله عنه نه روایت دی چې : رسول الله صلى الله عليه وسلم وفرمایل چې: کله انسان قبرکې کېښودل شي اودهغه خښونکي ببرته لاړ شي، نومړی دهغوی دپښواوازونه اوري، بیادوه فرښتې مړي ته راشي،هغه راکښنوي ، بیاورته وواېي چې دې کس یعنې دمحمد (صلى الله عليه وسلم) باره کې څه وایې؟ که چېرې هغه مومن وي ، نوواېي چې: زه ګواهي ورکوم چې حضور صلى الله عليه وسلم دالله تعالى بنده اودهغه رسول دی، بیاورته وویل شي چې: دخپل دوزخ

کورطرف ته وګوره! الله تعالی تاته ددې په بدله کې دجنت کوردرکړ. حضور ﷺ وفرمایل چې هغه به جنت اودوزخ دواړوکې خپل کورووینې. قتاده رحمه الله فرمایي چې موږته دا بیان شو چې بیابه دهغه قبر ورته ازادکړل شي.

خوکه کافراومنافق وي، هغه دفرښتودسوال په ځواب کې وایي چې زه یې نه پیژنم (چې داڅوک دی؟) ماخوبه دده باره کې هماغه خبره کوله. کومه چې نوروکافرانوکوله. هغه ته به وویل شي چې نه تاپخپله ځان پوه کړی دی اونه دې څېرته دپوه کس نه پوښتنه کړې ده. بیابه داوسپنې په ځټک باندې ووهل شي. چې له هغه وجې به داسې چغه ووهي. کومه چې دانسانانو اوپیریانونه پرته ټول مخلوقات اوري.

۲: عن سمرة بن جندب رضی الله عنه قال: کان النبي ﷺ اذاصلی صلوة اقبل علینابوجهه فقال: من رای منکم اللیلة رؤیا؟ قال: فان رای احدقصها، فیقول: ماشاء الله! فسالنایومافقال: قد رای منکم احد رؤیا قلنا: لا! قال: لکني رایت اللیلة رجلین اتیاني فأخذا بیديّ فأخرجاني إلی ارض مقدسة، فاذارجل جالس ورجل قائم بیده کلوب من حدید، یدخله فی شدقه[۱] حتی یبلغ قفاه، ثم یفعل بشدقة الاخرمثل ذالک ویلتئم شدقه هذا، فیعودفیصنع مثله، قلت، ماهذا؟ قالا: انطلق! فانطلقناحتی اتیناعلی رجل مضطجع علی قفاه، ورجل قائم علی راسه بفهراوصخرة، فیشدخ بهاراسه، فاذاضربه تدهده الحجر، فانطلق الیه لیاخذه فلایرجع الی هذاحتی یلتئم راسه وعاد راسه کماهو، فعادالیه فضربه، قلت: من هذا؟ قالا: انطلق! فانطلقنا الی نقب مثل التنور، اعلاه ضیق واسفله واسع تتوقدتحته النار، فاذا اقترب ارتفعواحتی کادوا یخرجون، فاذاخمدت رجعوافیها وفیها رجال ونساء عراة فقلت: ماهذا؟ قالا: انطلق! فانطلقنا حتی اتیناعلی نهرمن دم فیه رجل قائم، وعلی وسط النهررجل بین یدیه حجارة، فاقبل الرجل الذي فی النهر، فاذااراد ان یخرج رماه الرجل بحجرفی فیه فرده حیث کان، فجعل کلماء جاء لیخرج رمی في فیه بحجرفیرجع کماکان، فقلت: ماهذا؟ فقلت: قدطوفتماني اللیلة فاخبراني عما رأیت! قالا: نعم! أماالذی رایته یشق شدقه فکذاب یحدث بالکذبة فتحمل عنه حتی تبلغ الأفاق، فیصنع به الی یوم القیامة، والذي رایته یشدخ راسه فرجل علمه الله القران فنام عنه باللیل ولم یعمل فیه بالنهار، یفعل به الی یوم القیامة، والذی رایته فی النقب فهم الزناة، والذی رایته فی النهرآکل الربا. الحدیث، (صحیح بخاري ج۱ ص ۱۸۵، ج۲ ص ۱۰۴۳ واللفظ له، ترمذی ج۲ ص ۵۳.)

---

۱] شدق (کله): سر، مخ، ژامنه (غیاث اللغات ص: ۱۱۴۶ طبع علمی کتاب گهر لاهور)

دا روایت د حضرت ابو امامه رضی الله عنه نه هم روایت شوی دی. ولولئ. موارالظمان ص ۴۴۵. مجمع الزوائد ج ۱ ص ۷۲. کنزالعمال ج ۱۴ ص ۵۳۸،۵۳۷. مستدرک حاکم ج ۲ ص ۲۱۰.

ترجمه: د جناب رسول الله صلی الله علیه وسلم عادت مبارک و، چې د سهار لمانځه نه وروسته به خپلو صحابه کرامو رضی الله عنهم ته متوجه شو او وبه یې فرمایل: چې تاسو کې د شپې چاخوب لیدلی دی؟ که چابه لیدلی و، نووبه یې ویل، حضور صلی الله علیه وسلم به یې تعبیر بیان کړ. د عادت مطابق یو ځل یې د ټولونه پوښتنه وکړه، چې چاخوب لیدلی دی؟ ټولو وویل چې هیچا هم نه دی لیدلی. حضور صلی الله علیه وسلم وفرمایل چې: ما نن شپه خوب کې ولیدل چې ماته دوه کسان راغلل او زما لاس یې ونیو او زه یې یوې مقدسې ځمکې ته بوتلم. چې ګورم چې یو سړی ناست دی او بل ولاړ دی، او د هغه په لاس کې داوسپنې زنبور دی. او د هغه ناست سړي سخوابنتی (اوخکی) کټ کوي، تر دې چې د ختې هډوکي پورې ورسیږي، بیا دویم سخوابنتي (وخکي) سره هم دغه معامله کوي، او بیا د هغه سخوابنتي (وخکي) جوړشي، او بیا د هغه سره هم دغه معامله کوي. ما پوښتنه وکړه دا څه خبره ده؟ هغو دواړو کسانو وویل: مخکې ځه! موږ مخکې روان شو، تر دې چې یو داسې سړي باندې تیر شو، کوم چې پروت دی، د هغه سر ته یو سړی ولاړ دی چې د هغه په لاس کې غټ کاڼی دی او په کاڼي باندې د هغه سر ډیر په زور سره ماتوي، کله چې د هغه سر په کاڼي باندې ووهي، نو کاڼی لیرې پورې لاړ شي، کله چې هغه سړی کاڼو راخستو پسې لاړ شي او لا راغلی به نه و چې د هغه بل سړي سر به بیا جوړ شوی و او بیا به یې هغه شان سر ورمات کړ. ما پوښتنه وکړه، دا څه دي؟ هغوی دواړو وویل چې مخکې ځه، موږ مخکې لاړو، تر دې چې موږ یو غار ته ورسیدو کوم چې د تنور په شان و، لاندې نه ازاد و، له پاسه نه تنګ، هغه کې اور بل و، او په هغه کې ډیر لوځ سړي او ښځې پراته وو، کله به چې هغه اور راپورته شو، نو هغوی ټول به هم ورسره را پورته شول، تر دې چې باندې راوتلو ته به نژدې شول، بیا به چې کوم وخت اور ټیټ شو، نو هغوی به هم ورسره لاندې لاړل. ما پوښتنه وکړه، دا څه دي؟ هغوی دواړو وویل: مخکې ځه! موږ مخکې لاړو، تر دې چې دو یو یوې ویالې (نهر) ته ورسیدو، د هغه په مینځ کې یو سړی ولاړ دی، او د نهر په غاړه یو بل سړی ولاړ دی، او د هغه مخې ته ډیر کاڼي موجود دي، نهر کې د ننه سړی د نیر غاړې ته راځي، کله چې هغه راوتل غواړي، غاړه باندې ولاړ کس یې په یو کاڼو باندې دومره زور سره او ولي چې هغه بیا خپل مخکې ځای ته ورسیږي، بیا چې کله هغه راوتل وغواړي نو هم هم دا رنګه یې په کاڼي باندې ورمینځ ته کړي، ما پوښتنه وکړه: دا څه دي؟ ما هغو دواړو کسانو ته وویل: چې زه تاسو ټوله شپه وګرځولم، او س خو راته ووایئ چې دا څه خبره ده؟ هغوی وویل: چې کوم کس تاسو ولیده چې د هغه سخوابنتي (وخکي) کټ کیږي هغه کس دروغژن و. هغه به دروغ وویل او خبرې به یې مشهورې شوې، هغه سره به د قیامت تر ورځې پورې هم داسې کیږي.

او دکوم کس چې سرماتول کیده .داهغه کس دی چې الله تعالی ورته دقران کریم علم ورکړی و .دشپې به دقران نه غافل ویده شواودورځې به یې په قران کریم باندې عمل نه کاوه. دقیامت پورې به ده سره هم داسې معامله کیږي.کوم کس ... دې چې دوینې په نهرکې ولیده. هغه سودخوردی.(بهشتی زیوربرخه اول سچی کهانیا حکایت نمبر۴)

۳:ترجمه: حضرت براء بن عازب ﷺ نه روایت دی چې مونږ دیو انصاري په جنازه کې درسول الله ﷺ سره ولاړو .کله چې قبرته ورسیدو .نولحدتیارنه و .په دې وجه باندې رسول الله ﷺ کښناست او مونږ هم دحضور ﷺ نه ګېرچاپېره کښناستو .لکه چې زمونږ په سرونوباندې مرغۍ ناستې وي. دحضور ﷺ په لاس کې یوه امساوه. په امسا سره یې په ځمکه کې کرښې وهلې (لکه انسان چې سوچ اوفکرکوي) بیایې سرمبارک راپورته کړ او ویې فرمایل چې: دقبر له عذاب نه الله تعالی ځخه پناه وغواړئ. د سې یې درې ځله وویل. بیایې وفرمایل: کله چې خلک مړی خښ کړي اوخښونکي لاړشي. نومړی دخلکو دپښواواز اوري. اومړي ته دوه فرښتې راشي. راکښنوي یې اومړي ته وایي چې ستارب څوک دی؟ مړی وایي چې زمارب الله تعالی دی. فرښتې ورته وایي ستادین څه دی؟ مړی وایي زمادین اسلام دی. فرښتې پوښتنه وکړي چې داسړی څوک و .کوم چې تاسوته درلیږل شوی و؟ مړی وایي چې محمد دالله تعالی رسول دی. فرښتې وایي. چې تاته څه پته لګېدلې وه. مړی به ورته ځواب ورکړي چې مادالله تعالی کتاب لوستلی دی. هغه باندې مې ایمان راوړی دی. اودرسول الله ﷺ مې تصدیق کړی دی.

دالله تعالی قول دی: ,,يُثَبِّتُ ٱللَّهُ ٱلَّذِينَ ءَامَنُواْ بِٱلْقَوْلِ ٱلثَّابِتِ فِى ٱلْحَيَوٰةِ ٱلدُّنْيَا وَفِى ٱلْأَخِرَةِ،، (سوره ابراهیم ایت۲۷)

ترجمه: الله تعالی دایمان خاوندان په (دکلمې طیبې په برکت) په دنیااواخرت کې مضبوط کړي دي،دلته چې دکوم تثبیت ذکر دی له دې نه مراد دمړي دنکیراومنکردسوالونو په باره کې مضبوط پاتې کیدل مراددي.

بیایواوازکونکی اواز وکړي چې: زمابنده رښتیاوویل، ده له پاره دجنت فرش خپورکړئ، ده ته دجنت جامې ورواغوندئ. اوده ته دجنت طرف ته دروازه خلاصه کړئ.(ده ته به دجنت دروازه خلاصه شي )دجنت هوا اوخوشبویي به ورته راځي. اودنظر ترحده به دهغه قبرازاد کړل شي.

بیاحضور ﷺ دکافرد مرګ ذکرکولونه وروسته دهغه دقبرحالات بیانولوکې وفرمایل چې: دهغه روح دهغه بدن ته ورداخل کړل شي. اودوه فرښتې هغه ته راشي.راکښنوي یې.بیابه هغه ته وایي چې ستارب څوک دی؟ هغه به ووایي چې هی! هی! ماته پته نشته.هغوی به ورته ووایي چې ستادین څه دی؟ هغه به ووایي هی! هی! ماته پته نشته.هغوی به ورته

وايي چې داسړی څوک دی کوم چې تاسو ته درلیږل شوی و. هغه به وايي چې هی: هی: ماته پته نشته. داسمان نه يو اوازکونکی به اوازوکړي چې دی دروغ وايي، دده له پاره داور فرش خپور کړئ، ده ته داورجامې ورواغوندئ، اوده له پاره ددوزخ طرف ته دروازه خلاصه کړئ، دهغه له پاره به ددوزخ طرف ته دروازه خلاصه کړل شي اوهغه ته به ددوزخ ګرمي اوتاو راشي او دهغه به قبرتنګ کړل شي. تردې چې دهغه دواړه پوښتې يوبل کې ننوځي.نعوذبالله بیاهغه باندې يوه ړنده اوکڼه فرښته مقرري شي اودهغو په لاس کې داوسپنې ګرز وي،که چیرې هغه ګرز باندې غر ووهل شي نوهغه به خاورې شي،هغه کافرمړی به په هغه ګرز باندې داسې وهي، چې له انسانانو اوپیریانونه پرته به يې باقي ټول ځناور اوري،هغه ګرزباندې لګېدو سره خاورې شي او هغه کې بیاروح واچول شي.(جامع الاصول ج١١ ص ١٧٧،ابوداؤد ج٢ ص ٧٥٤. مصنف عبدالرزاق ج ٣ ص ٥٨١. مسند احمد ج٤ ص ٢٩٢)

٤: عن أبي هريرة ، عن النبي صلى الله عليه وسلم ، قال : « إن الميت يسمع خفق نعالهم إذا ولوا مدبرين ، فإن كان مؤمنا كانت الصلاة عند رأسه ، وكان الصوم عن يمينه ، وكانت الزكاة عن يساره ، وكان فعل الخيرات من الصدقة والصلاة والصلة والمعروف والإحسان إلى الناس عند رجليه ، فيؤتى من قبل رأسه فتقول الصلاة : ما قبلي مدخل ، ويؤتى من عن يمينه ، فيقول الصوم ما قبلي مدخل ، ويؤتى من عن يساره فتقول الزكاة ما قبلي مدخل ، ويؤتى من قبل رجليه فيقول فعل الخيرات ما قبلي مدخل ، فيقال له : اقعد فيقعد ، وتمثل له الشمس قد دنت للغروب فيقال له ما تقول في هذا الرجل الذي كان فيكم ، وما تشهد به ؟ فيقول : دعوني أصلي ، فيقولون : إنك ستفعل ولكن أخبرنا عما نسألك عنه قال : وعم تسألوني عنه ؟ فيقولون : أخبرنا عما نسألك عنه ، فيقول : دعوني أصلي . فيقولون : إنك ستفعل ولكن أخبرنا عما نسألك عنه ، قال : وعم تسألوني؟ فيقولون : أخبرنا ما تقول في هذا الرجل الذي كان فيكم وما تشهد به عليه ؟ فيقول : محمدا ، أشهد أنه عبد الله ، وأنه جاء بالحق من عند الله ، فيقال له : على ذلك حييت ، وعلى ذلك مت ، وعلى ذلك تبعث إن شاء الله ، ثم يفتح له باب من قبل النار فيقال له : انظر إلى منزلك وإلى ما أعد الله لك ، لو عصيت فيزداد غبطة وسرورا ، ثم يفتح له باب من قبل الجنة فيقال له : انظر إلى منزلك ، وإلى ما أعد الله لك فيزداد غبطة وسرورا ، وذلك قول الله تبارك وتعالى : ( يثبت الله الذين آمنوا بالقول الثابت في الحياة الدنيا ، وفي الآخرة ، ويضل الله الظالمين ويفعل الله ما يشاء) » قال : وقال أبو الحكم ، عن أبي هريرة ، فيقال له : « أرقد رقدة العروس الذي لا يوقظه إلا أعز أهله إليه او أحب أهله إليه » . ثم رجع إلى حديث أبي سلمة ، عن

أبي هريرة ، قال : « وإن كان كافرا أتي من قبل رأسه فلا يوجد شيء ، ويؤتى عن يمينه فلا يوجد شيء ، ثم يؤتى عن يساره فلا يوجد شيء ، ثم يؤتى من قبل رجليه فلا يوجد شيء ، فيقال له : اقعد فيقعد خائفا مرعوبا ، فيقال له : ما تقول في هذا الرجل الذي كان فيكم ، وماذا تشهد به عليه ؟ فيقول : أي رجل ؟ فيقولون : الرجل الذي كان فيكم . قال : فلا يهتدي له ، قال : فيقولون : محمد فيقول : سمعت الناس قالوا فقلت كما قالوا ، فيقولون : على ذلك حييت ، وعلى ذلك مت ، وعلى ذلك تبعث إن شاء الله ، ثم يفتح له باب من قبل الجنة فيقال له : انظر إلى منزلك ، وإلى ما أعد الله لك لو كنت أطعته فيزداد حسرة وثبورا ، قال : ثم يضيق عليه قبره حتى تختلف أضلاعه ، قال : وذلك قوله تبارك وتعالى : ( فإن له معيشة ضنكا ، ونحشره يوم القيامة أعمى .(مستدرک حاکم ج۱ ص ۳۷۹، واللفظ له، ابن حبان ج٦ ص ٦٥، موارد الظمان ص ۱۹۷، ۱۹۸، ابن ماجه ص ۳۱۵، ترمذی ج۱ ص ۱۲۷)

ترجمه: د حضرت ابوهریره رضي الله عنه نه روایت دي رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمایلي دي چې کله خلک مړی خښ کړي او خښونکي لاړشي مړی د هغوی د پښو اوازونه اوري، بیا که چېرې هغه مړی مومن وي نو لمونځ د هغه سر طرف ته ، روژه ښي طرف ته. زکاة چپ طرف ته، او نور نفلي عبادتونه مثلاً صدقه، نفل لمونځ، صله رحمي، خلکو سره ښه کول او ښه اخلاق د هغه د پښو طرف ته راشي، که چېرې څوک د هغه د سر طرف ته راځي. نو لمونځ ورته وايي چې د لته لاره نشته، او که چېرې د ښي طرف نه راځي نو روژه ورته وايي چې د لته لاره نشته او که د چپ طرف نه راځي نو زکاة ورته وايي چې د لته لاره نشته، او که پښو طرف نه راځي نو نفلي عبادتونه ورته وايي، چې دې طرف نه لاره نشته.

بیا فرښتې (نکیر او منکر) هغه ته ووايي چې جک شه کښېنه. هغه کښېني. نو مورې ته داسې ښکاري لکه لمر چې غورځېدو ته نژدې وي. فرښتې هغه ته وايي چې ددې کس باره کې څه وايي کوم چې تاسو کې و؟ او ته دده باره کې څه ګواهي ورکوې؟ مړی به ووايي: صبر وکړئ. ترڅو زه لمونځ وکړم، فرښتې به وايي چې ته بیا لمونځ کوه، خو مورې چې د څه له پاره راغلي یو، د هغه ځواب مورته راکړه! هغه به وايي تاسو مانه څه پوښتنه کوئ؟ هغوی وايي هغه سوال چې مورېې کوو، د هغه ځواب راکړه! هغه به وايي لږ صبر وکړئ. چې زه لمونځ وکړم، فرښتې به ورته وايي، لمونځ خو به ته کوې، مورې چې ستانه څه پوښتنه کوو د هغه ځواب راکړه! هغه به وايي تاسو مانه نور د څه شي پوښتنه کوئ، هغوی به ورته وايي مورته دا ووايه چې دا کس کوم چې تاسو کې و، دده باره کې ته څه وايي او څه ګواهي ورکوې؟ هغه به وايي چې ستاسو مراد حضرت محمد صلی الله علیه وسلم نه دی؟ زه ګواهي ورکوم چې هغه د الله تعالی بنده دی، هغه د الله تعالی د طرف نه مورته رښتونی دین راوړی و. بیا هغه ته وویل شي چې تا هم په

دې عقيدې باندې ژوندتيرکړ .په هم دې باندې مړشوې. اوانشاء الله په هم دې باندې به بيا راژوندی کېږې. بيابه هغه له پاره ددوزخ طرف ته دروزاه خلاصه کړل شي، چې وګوره! که نه چېرې نافرمانه وی نو دوزخ کې به ستاکوردغه و. الله تعالى ستادسزا له پاره داسامان تيار کړی و .دې سره دهغه په خوشحالي کې نور هم زيادت راشي، بيادهغه له پاره د جنت طرف ته دروازه خلاصه کړل شي او ورته به وويل شي چې وګوره! اوس جنت کې ستاکوردغه دی اوالله تعالى ستا دسکون سامان تيارکړی دی،

اودالله تعالى ددې قول هم دامطلب دی. ايت,,يُثَبِّتُ ٱللَّهُ ٱلَّذِينَ ءَامَنُواْ بِٱلْقَوْلِ ٱلثَّابِتِ فِي ٱلْحَيَوٰةِ ٱلدُّنْيَا وَفِي ٱلْأَخِرَةِ.. (سوره ابراهيم ايت۲۷)

ترجمه: الله تعالى ايمان خاوندان دهغوی دمضبوطو خبرو (دکلمې طيبې په برکت)په دنيا اواخرت کې مضبوط ساتي. (ترجمه حضرت تهانوي رحمة الله)

بياهغه ته وويل شي چې ويده شه څنګه چې ناوې ويده کيږي.چې هغه له محبوب پرته هغه بل څوک نه رابيداروي.اوکه چېرې مړی کافروي اودهغه سرطرف ته څوک راتلل غواړي، نوڅوک منع کونکی بې نه وي . دښي طرف نه که څوک راتلل غواړي،نوهلته هم څوک نه وي. دچپ طرف نه که راتلل غواړي نوهلته هم څوک موجودنه وي، اوکه دپښودطرف نه راځي نوهغه طرف ته هم څه منع کونکی شی نه وي. فرښتې هغه ته وايي چې کښنه،نوهغه په ويره کې کښني. فرښتې ورته وايي چې داڅوک و، کوم چې په تاسوکې موجودو؟ اوته دده باره کې څه ګواهي ورکوې؟ هغه وايي کوم سړی؟ فرښتې ورته وايي، هماغه چې تاسوکې موجودو. خوهغه نه پوهيږي چې دا دکوم سړي باره کې پوښتنه کوي؟ بيا فرښتې (دحضور ﷺ نوم اخستلوسره) ووايي چې دمحمد (ﷺ) باره کې څه وايې؟ هغه وايي، چې ما دخلکونه دده باره کې يوه خبره اوريدلې وه. ماهم هغه خبره کوله چې(نعوذبالله) حضور ﷺ رښتونی نه دی. فرښتې وايي چې تا په دې عقيدې باندې ژوندتيرکړ،هم دې باندې مړشوې اوانشاء الله هم دې باندې به بيا راژوندی کېږې. بيادهغه له پاره دجنت طرف ته يوه دروازه خلاصه کړل شي اوورته به وويل شي چې وګوره! که چېرې ته منونکی وی نودابه ستاځای و، اوالله تعالى ستادسکون سامان تيارکړی و. دهغه په افسوس اوپښېماني کې نور هم زياتوالی وشي. بيادهغه قبر تنګ کړل شي. تردې چې دهغه پوښتۍ په يوبل کې ننوځي،

اوهم دا دالله تعالى ددې قول مطلب دی: ,,وَمَنْ أَعْرَضَ عَن ذِكْرِي فَإِنَّ لَهُۥ مَعِيشَةً ضَنكًا وَنَحْشُرُهُۥ يَوْمَ ٱلْقِيَـٰمَةِ أَعْمَىٰ ﴿١٢٤﴾. (سوره طه ايت۱۲۴)

ترجمه: کوم کس چې زماد نصيحت نه سرغړونه کوي،نودهغه له پاره به تنګ ژوندوي اودقيامت په ورځ به موږ هغه ړوندله قبرنه راپورته کوو. (ترجمه حضرت تهانوي رحمة الله)

۵: عَنْ أَبِي سَعِيدٍ قَالَ: دَخَلَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مُصَلَّاهُ فَرَأَى نَاسًا كَأَنَّهُمْ يَكْتَشِرُونَ قَالَ أَمَا إِنَّكُمْ لَوْ أَكْثَرْتُمْ ذِكْرَ هَاذِمِ اللَّذَّاتِ لَشَغَلَكُمْ عَمَّا أَرَى فَأَكْثِرُوا مِنْ ذِكْرِ هَاذِمِ اللَّذَّاتِ الْمَوْتِ فَإِنَّهُ لَمْ يَأْتِ عَلَى الْقَبْرِ يَوْمٌ إِلَّا تَكَلَّمَ فِيهِ فَيَقُولُ أَنَا بَيْتُ الْغُرْبَةِ وَأَنَا بَيْتُ الْوَحْدَةِ وَأَنَا بَيْتُ التُّرَابِ وَأَنَا بَيْتُ الدُّودِ فَإِذَا دُفِنَ الْعَبْدُ الْمُؤْمِنُ قَالَ لَهُ الْقَبْرُ مَرْحَبًا وَأَهْلًا أَمَا إِنْ كُنْتَ لَأَحَبَّ مَنْ يَمْشِي عَلَى ظَهْرِي إِلَيَّ فَإِذْ وُلِّيتُكَ الْيَوْمَ وَصِرْتَ إِلَيَّ فَسَتَرَى صَنِيعِيَ بِكَ قَالَ فَيَتَّسِعُ لَهُ مَدَّ بَصَرِهِ وَيُفْتَحُ لَهُ بَابٌ إِلَى الْجَنَّةِ وَإِذَا دُفِنَ الْعَبْدُ الْفَاجِرُ أَوْ الْكَافِرُ قَالَ لَهُ الْقَبْرُ لَا مَرْحَبًا وَلَا أَهْلًا أَمَا إِنْ كُنْتَ لَأَبْغَضَ مَنْ يَمْشِي عَلَى ظَهْرِي إِلَيَّ فَإِذْ وُلِّيتُكَ الْيَوْمَ وَصِرْتَ إِلَيَّ فَسَتَرَى صَنِيعِيَ بِكَ قَالَ فَيَلْتَئِمُ عَلَيْهِ حَتَّى يَلْتَقِيَ عَلَيْهِ وَتَخْتَلِفَ أَضْلَاعُهُ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِأَصَابِعِهِ فَأَدْخَلَ بَعْضَهَا فِي جَوْفِ بَعْضٍ قَالَ وَيُقَيِّضُ اللهُ لَهُ سَبْعِينَ تِنِّينًا لَوْ أَنَّ وَاحِدًا مِنْهَا نَفَخَ فِي الْأَرْضِ مَا أَنْبَتَتْ شَيْئًا مَا بَقِيَتْ الدُّنْيَا فَيَنْهَشْنَهُ وَيَخْدِشْنَهُ حَتَّى يُفْضَى بِهِ إِلَى الْحِسَابِ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِنَّمَا الْقَبْرُ رَوْضَةٌ مِنْ رِيَاضِ الْجَنَّةِ أَوْ حُفْرَةٌ مِنْ حُفَرِ النَّارِ قَالَ أَبُو عِيسَى هَذَا حَدِيثٌ غَرِيبٌ لَا نَعْرِفُهُ إِلَّا مِنْ هَذَا الْوَجْهِ. (جامع ترمذي ج۲ ص ۶۹)

ترجمه: دحضرت ابو سعيد خدري ﷺ نه روايت دی چې يوځل حضور ﷺ خپل دلمانځه ځای ته راغی. نوويې ليدل چې څه خلک خاندي. دې سره حضور ﷺ وفرمايل چې: واورئ! که چېرې تاسوخوند ختمونکی هروخت يادوئ نوهغه به تاسوله دې حالت نه مشغول کړي وای. کوم چې زه اوس تاسووينم. هغه خوند ختمونکی شی (يعني مرګ ډير ډير يادوئ). ځکه چې قبرباندې يوه ورځ هم داسې نه تيريږي. په کومه کې چې هغه داخبره نه کوي چې زه دمسافري کوريم، زه ديواځې والي کوريم، زه دخاورو کوريم، زه دچنجوکوريم. بياچې کله مومن بنده دې قبرکې خښ کړل شي نوقبرهغه ته هرکلي ويلو نه وروسته وايي چې: زماله پاسه به څومره خلک ګرځيدل. په هغوی کې ته ماته دټولونه محبوب وې. اونن چې ته ماته سپارل شوی يې، اوماته رارسيدلی يې. نوته به وګورې چې زه تاسره څومره ښه سلوک کوم. قبربه دهغه له پاره دنظرترحده ازاد شي او دهغه له پاره دجنت طرف ته يوه دروازه خلاصه کړل شي.

اوکله چې بدکار يا (کافر) خښ کړل شي نو قبر وايي چې ستاراتلل دې مبارک نه وي. زماله پاسه به چې څومره خلک ګرځيدل په هغوی کې له ټولونه زياته کينه زماتاسره و. نن چې ته ماته سپارل شوی يې اوته ماته راورسيدلی نوته به وګورې چې زه تاسره څنګه بدسلوک کوم، قبرهغه باندې راتنګ شي، تردې چې هغه ته دومره زور ورکړي چې ديو طرف هډوکي يې بل طرف کې ننوځي (دې باندې پوهولوله پاره)، حضور ﷺ دلاسونوګوتې يوبل کې ورکړې، ويې فرمايل: هغه باندې اويا زهرلرونکي ماران مسلط کړل شي (هغه ماران دومره

زهرلرونکي وي) که چېرې هغوکې یوماریه ځمکه باندې پوکی وکړي.نوپاتې دنیاپورې به دلته شین بوټی را ونه ځېږي. هغه ماران هغه ته همیشه ټکونه ورکوي، تردې چې دقیامت په ورځ هغه دحساب کتاب له پاره راپاسولی شي.
حضرت ابوسعید خدري رضي الله عنه فرمایي چې حضور ﷺ وفرمایل چې قبرخو یا دجنت دباغونو نه یوباغ دی، اویا د دوزخ دکندو نه یوه کند ده.
پورته بیان شوي حدیثونه دنمونې په طورباندې وړاندې کړی شول، دې کې چې کوم مضمونونه ذکرشوي دي.دهغې خلاصه په دې عنوانوکې وړاندې کیږي:

## مړی د خپنونکو د پښو اوازونه اوري

دامضمون په په حدیثونوکې راغلي دي:
۱: دحضرت انس رضي الله عنه حدیث مخکې تیرشوی دی، دهغه الفاظ دادي:
**قَالَ الْعَبْدُ إِذَا وُضِعَ فِي قَبْرِهِ وَتُوُلِّيَ وَذَهَبَ أَصْحَابُهُ حَتَّى إِنَّهُ لَيَسْمَعُ قَرْعَ نِعَالِهِمْ (بخاري ج۱ ص ۱۷۸، ۱۸۳، مسلم ج ۲ ص ۳۸٦، ابوداؤد ج ۲ ص ٦٥٤، نسائي ج ۱ ص ۲۸۸، شرح السنه ج ۵ ص ٤۱۵، ابن حبان ج ٦ ص ٤۹)**
ترجمه: مړی چې کله قبرکې خښ کړی شي اودهغه خښونکي لاړشي.تردې چې هغه دهغوی دقدمونو اواز اوري.
۲: دحضرت ابوهریره رضي الله عنه دحدیث الفاظ دادي:
**قال أبو هريرة : فإنه يسمع قرع نعالهم. (عبدالرزاق ج۳ ص ۵٦۷)**
ترجمه:حضرت ابوهریره رضي الله عنه فرمایي چې: بیاهغه (خښولونه وروسته دخښونکو) دپښو اوازاوري.
۳: دمسنداحمد الفاظ دادي:
**قَالَ إِنَّ الْمَيِّتَ لَيَسْمَعُ خَفْقَ نِعَالِهِمْ إِذَا وَلَّوْا مُدْبِرِينَ (مسنداحمدج ۲ ص ٤٤۵، حاکم ج ۱ ص ۳۷۹، ۳۸۰، وقال صحیح علی شرط مسلم، واقره الذهبی، ابن حبان ج٦ ص ٤۵_ ٤۸، مواردالظمان ص ۱۹٦، ۱۹۷، مجمع الزوائدج۳ ص ۵٤، اتحاف ج۱۰ ص ٤۱۹)**
ترجمه: کله چې خلک دمړي خښولونه وروسته لاړشي.نو هغه دهغوی دقدمونواواز اوري.
دحضرت ابوهریره رضي الله عنه دیوبل حدیث الفاظ دادي:
**إن الميت يسمع حسّ النعال إذاولوعنه مدبرين.(شرح السنه ج۵ ص ٤۱۳)**
ترجمه: بې شکه مړی دپښو اوازهم اوري.کله یې چې خلک هغه خښ کړي اوترې روان شي.
۴: دحضرت براء بن عازب رضي الله عنه دحدیث الفاظ دادي:

فإنه يسمع خفق نعال أصحابه إذا ولوا عنه (عبدالرزاق ج ۳ ص ۵۸۱، احمدج ٤ ص ۲۹٦، ابوداؤدج۲ ص ٦٥٤)

ترجمه: بې شکه هغه دهغوی د قدمونو اواز اوري، کله چې خلک دهغه د خښولونه لاړ شي.

۵: دحضرت عبدالله بن عباس رضی الله عنهما د حدیث الفاظ دادي:

**إذا دفن الميت سمع خفق نعالهم إذا ولوا عنه منصرفين. (رواه الطبراني في الكبر، ورجاله ثقات، مجمع الزوائد ج۳ ص ٥٤، كنزالعمال ج١٥ ص ٦٠٠، اتحاف ج۱۰ص ٤١٦، درمنثور ج٤ ص ٨٢)**

ترجمه: دمړي خښولونه وروسته چې کله خلک لاړشي نو هغه (مړی) دهغوی د پښو اوازونه اوري.

٦: دحضرت معاذبن جبل رضی الله عنه دحدیث الفاظ دادي:

**حتى يسمع صاحبكم خبط نعالكم. (مصنف عبدالرزاق ج۳ ص ٥٨٣)**

ترجمه: تردې چې ستاسو ملګری (مړی) ستاسو د پښو اوازونه اوري.

۷: دعبدالله بن عبيد بن عمير رضی الله عنه دحدیث الفاظ دادی.

**قال: ان الميت يقعد وهو يسمع خطو مشيعيه. (اتحاف السادة ج ۱۰ ص ۳۹۷)**

ترجمه: مړی کېنول شي او هغه درخصت کونکو د قدمونو اوازونه اوري.

## د منکر نکير راتلل

دامضمون په حدیثونو کې ډیر راغلی دی چې کله مړی خښ کړل شي نو دوه فرښتې هغه ته راځي، هغه کېنوي او دهغه سره سوال او ځواب کوي، دهغوی سوال اوځواب ته فتنة القبر (دقبرکې دمړي امتحان) ویل شوي دي، حافظ سیوطي رحمه الله، شرح الصدور کې او علامه زبيدی رحمه الله، شرح احیاء کې لیکي:

دې باندې پوهيدل پکاردي چې فتنة القبر ددوو فرښتو دسوال اوځواب نوم دی اودې باره کې ددې حضراتو څخه تواترسره حديثونه روايت شوي دي، حضرت ابوهريره، براء بن تميم داري، عمر بن خطاب، انس، بشيربن اکال، ثوبان، جابربن عبدالله، حذيفه، عباده بن صامت، ابن عباس، ابن عمر، ابن عمرو، ابن مسعود، عثمان بن عفان، عمروبن عاص، معاذ بن جبل، ابوامامه، ابوالدرداء، ابورافع، ابوسعيد خدري، ابوقتاده، ابوموسی، اسماء او حضرت عائشه (رضی الله عنهم) (شرح الصدور ص ۴۹، اتحاف السادة المتقين ج ۱۰ ص ۴۱۲)

له دې نه وروسته دواړو حضراتو دټولو روايتونو تخريج شوي دي. دلته مخکې دهغو حديثونو دماخذ طرف ته اشاره کوم، کوم چې دې دواړو حضراتو ذکر کړي دي، دې نه وروسته به بیا د نورو حديثونو زيادت کوم، او دکومو ماخذونو طرف ته چې موږ نه شو رسیدلای، هلته به دشرح صدور او شرح احیاء په حواله باندې به ماخذ ذکر کیږي.

۱: دحضرت انس رضی الله عنه حدیث مخکې بیان شوی دی، دهغه الفاظ دادي:

أَتَاهُ مَلَكَانِ فَأَقْعَدَاهُ فَيَقُولَانِ لَه ......(صحيح بخاري ج١ ص ١٧٨_١٨٣، صحيح مسلم ج ٢ ص ٣٨٦، ابوداؤد ج٢ ص ٦٥٤، نسائی ج ١ ص ٢٨٨)
ترجمه: هغه ته دوه فرښتې راشي او هغه کښېنوي.
۲: د حضرت عبد الله بن عمر رضي الله عنهما د حديث الفاظ دا دي:

إِنَّ أَحَدَكُمْ إِذَا مَاتَ عُرِضَ عَلَيْهِ مَقْعَدُهُ بِالْغَدَاةِ وَالْعَشِيِّ إِنْ كَانَ مِنْ أَهْلِ الْجَنَّةِ فَمِنْ أَهْلِ الْجَنَّةِ وَإِنْ كَانَ مِنْ أَهْلِ النَّارِ فَمِنْ أَهْلِ النَّارِ فَيُقَالُ هَذَا مَقْعَدُكَ (بخاري ج ١ ص ١٨٤، ترمذی ج ١ ص ١٢٧، نسائی ج ١ ص ٢٩٢، ابن ماجه ص ٣١٥)

ترجمه: کله چې انسان مړ شي (نو قبر کې د سوال ځواب نه وروسته) د هغه مخې ته خپل اصل کور وړاندې کړی شي، که چېرې هغه جنتي وي نو جنت کې د هغه کور هغه ته وړاندې کړی شي او که چېرې دوزخي وي نو هغه ته دوزخ کې خپل کور وړاندې کړل شي، بیا هغه ته وويل شي چې دا ستا اصل کور دی.

اتحاف بين المتقين شرح احياء علوم الدين کې د دیلمي مسند الفردوس نه دا الفاظ نقل شوي دي: الظوا السنتكم قول لااله الاالله وان محمد رسول الله، وان الله ربنا، والاسلام ديننا، ومحمداً نبينا، فانكم تسئلون عنها فى قبوركم. (اتحاف السادة بين المتقين ج١٠ ص ٤١٦)

ترجمه: خپلې ژبې د کلمې "لااله الاالله محمد رسول الله. سره عادت کړئ. او دا خبره ډېره ډېره کوئ، چې الله تعالی زموږ رب دی، اسلام زموږ دین دی، او محمد صلی الله علیه وسلم زموږ نبي دی. ځکه چې تاسو نه به د دې باره کې په قبرونو کې سوال کيږي.

۳: د حضرت براء بن عازب د حديث الفاظ دا دي:

قال: اذا اقعد المؤمن فى قبره أتى....(صحيح بخاري ج١ ص ١٨٣، صحيح مسلم ج٢ ص ٣٨٦، نسائی ص ٢٩٠، ابوداؤد ج٢ ص ٦٥٤، ابن ابی شيبه ج٣ ص ٢٧٧)

ترجمه: ويې فرمايل: که چېرې مومن په قبر کې کښېنول شي، نو هغه ته دوه فرښتې راځي.

۴: د حضرت اسماء بنت ابی بکر رضي الله عنهما د حديث الفاظ دا دي:

يُقَالُ مَا عِلْمُكَ بِهَذَا الرَّجُلِ فَأَمَّا الْمُؤْمِنُ أَوِ الْمُوقِنُ لَا أَدْرِي بِأَيِّهِمَا قَالَتْ أَسْمَاءُ فَيَقُولُ هُوَ مُحَمَّدٌ رَسُولُ اللهِ جَاءَنَا بِالْبَيِّنَاتِ وَالْهُدَى فَأَجَبْنَا وَاتَّبَعْنَا هُوَ مُحَمَّدٌ ثَلَاثًا. (صحيح بخاري ج ١ ص ١٨، صحيح مسلم ج ١ ص ٢٩٨، مؤطا ص ١٧٦)

ترجمه: مړي ته وويل شي چې تا ته د دې کس (يعني حضور صلی الله علیه وسلم باره کې څه معلومات دي؟ نو مؤمن ځواب ورکوي چې: حضرت محمد صلی الله علیه وسلم د الله تعالی رسول دی، موږ ته يې ښکاره حکمونه او هدايت راوړی و، موږ حضور صلی الله علیه وسلم قبول کړ او د حضور صلی الله علیه وسلم اطاعت مو وکړ، درې ځله

وايي چې دی محمد ﷺ دی

۵: د حضرت ابوهريره رضي الله عنه حديث مخکې تيرشوی دی. د هغه الفاظ دادي.

**قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا قُبِرَ الْمَيِّتُ أَوْ قَالَ أَحَدُكُمْ أَتَاهُ مَلَكَانِ أَسْوَدَانِ أَزْرَقَانِ يُقَالُ لِأَحَدِهِمَا الْمُنْكَرُ وَالْآخَرُ النَّكِيرُ (ترمذی ج ۱ ص ۱۲۷، ابن ماجه ص ۳۱۵، مستدرک ج ۱ص ۳۷۹، ابن حبان ج ٦ ص ۴۵)**

ترجمه: کله چې مړی قبرکې کېښودل شي نوهغه ته دوه فرښتې راشي. توررنګ اوشنو سترګو والا. يوته منکراوبل ته نکيرويل کيږي.

۶: د حضرت عمروبن العاص رضي الله عنه د حديث الفاظ دادي:

**فَإِذَا دَفَنْتُمُونِي فَسُنُّوا عَلَيَّ التُّرَابَ سَنًّا ثُمَّ أَقِيمُوا حَوْلَ قَبْرِي قَدْرَ مَا تُنْحَرُ جَزُورٌ وَيُقْسَمُ لَحْمُهَا حَتَّى أَسْتَأْنِسَ بِكُمْ وَأَنْظُرَ مَاذَا رَاجِعُ بِهِ رُسُلَ رَبِّي (صحيح مسلم ج۱ ص ۷٦، سنن کبری ج ٤ ص ٥٦)**

ترجمه: کله چې ماخښ کړئ نومابانديې خاوره واچوئ. بيازماقبرته نزدې دومره وخت پورې ودريږئ چې داوښ له ذبحې سره دهغه غوښه تقسيم شي. چې ماته ستاسو په موجودګۍ کې سکون وي، اوزه دا وګورم چې زه دخپل رب فرښتوته څه ځواب ورکوم.

۷: د حضرت عثمان رضي الله عنه د حديث الفاظ دادي:

**فَقَالَ اسْتَغْفِرُوا لِأَخِيكُمْ وَسَلُوا لَهُ بِالتَّثْبِيتِ فَإِنَّهُ الْآنَ يُسْأَلُ (ابوداؤدج۲ ص ۴۵۹، مستدرک حاکم ج۱ ص۳۷۰، مشکوة ص۲٦ کنزالعمال ج۷ ص۵۸، سنن کبری ج٤ ص٥٦)**

ترجمه: وېې فرمايل: دخپل ورور له پاره ښښنه غواړئ. اودهغه له پاره د ثابت قدمي دعاکوئ، ځکه چې اوس دهغه سره سوال اوځواب کيږي.

۸: د حضرت جابر رضي الله عنه د حديث الفاظ دادي:

**فإذا أدخل المؤمن قبره وتولى عنه أصحابه جاءه ملك شديد الانتهار فيقول له ما كنت تقول في هذا الرجل؟.... (مجمع الزوائد ج ۳ ص ٤٨، مسنداحمد ج ۳ ص ۳٤٦، مصنف عبدالرزاق ج ۳ ص ۵۸۵، الاحسان بترتيب ابن حبان ج٦ ص ٤٧)**

ترجمه: کله چې مومن قبرته داخل کړل شي اودهغه خښونکي لاړ شي، نوهغه ته ډېره غوسه ناکه فرښته راشي او هغه ته وايي چې دې کس(يعنې دحضور ﷺ باره کې څه وايې؟

۹: د حضرت عائشه رضي الله عنها د حديث الفاظ دادي:

**فَأَمَّا فِتْنَةُ الْقَبْرِ فَبِي تُفْتَنُونَ وَعَنِّي تُسْأَلُونَ فَإِذَا كَانَ الرَّجُلُ الصَّالِحُ أُجْلِسَ فِي قَبْرِهِ غَيْرَ فَزِعٍ وَلَا مَشْعُوفٍ ثُمَّ يُقَالُ لَهُ فِيمَ كُنْتَ فَيَقُولُ: فِي الْإِسْلَامِ (مسنداحمد ج٦ ص ١٤٠، مجمع الزوائد ج ۳ ص ٤٨، ٤٩)**

ترجمه: پاتې شو د قبر ازمیښت؛ له تاسو نه به زماباره کې امتحان اخستل کیږي. اوزماباره کې به تاسو نه پوښتنه کیږ ي. که مړی ښه سړی وي نوهغه قبر کې کښنول شي. اوهغه ته وویل شي چې ته کوم دین باندې وې؟ هغه وایي چې زه په اسلام باندې وم.

١٠: دحضرت عبدالله بن مسعود رضي الله عنه دحديث الفاظ دادي:

إذا أدخل الرجل قبره فإن كان من أهل السعادة ثبته الله بالقول الثابت فيسأل ما أنت فيقول أنا عبد الله حيا وميتا. (مصنف ابن ابي شيبه ج ٣ ص ٣٧٧، اتحاف السادة المتقين ج ١٠ ص ٤١٦، مجمع الزوائد ج ٣ ص ٥٤)

ترجمه: كله چې انسان قبرته داخل كړل شي نوكه چېرې نېك بخته وي، نوالله تعالى هغه دصحيح قول سره مضبوط وساتي، دهغه نه سوال وكړل شي چې ته څوک یې؟ نوهغه ځواب کې ووایي چې زه په ژوند کې هم دالله تعالى بنده وم، اودمرګ نه وروسته هم.

١١: دحضرت ابوموسى اشعرى رضي الله عنه دحديث الفاظ هم دادي:

١٢: دحضرت عبيدبن عمير رضي الله عنه دموقوف حديث الفاظ دادي:

وذكر منكرا ونكيرا ، يخرجان في أفواههما وأعينهما النار.... فقالا: من ربك؟ (عبدالرزاق ج ٣ ص ٥٩٠، ٥٩١)

ترجمه: حضور صلى الله عليه وسلم دمنكراونكيرذكروكړچې: دهغوى دخولې اوسترګونه داورشغلې وځي، اوهغوى وايي چې ستارب څوک دى؟

١٣: دابورافع رضي الله عنه دحديث الفاظ دادي:

فقال رسول الله صلى الله عليه وسلم لا ولكني أففت من صاحب هذا القبر الذي سئل عني فشك في. مجمع الزوائد ج ٣ ص ٥٣، كنزالعمال ج ١٥ ص ٦٤١، اتحاف ج ١ ص ٤١٨)

ترجمه: رسول الله صلى الله عليه وسلم وفرمايل: نه؛ (ماتاسوباندې افسوس نه دى كړى) بلكې دهغه قبرخاوندانو باندې مې افسوس كړى دى، له چانه چې زماباره كې پوښتنه وشوه اوهغه زماباره كې دشک اظهار وكړي.

١۴: دحضرت عبدالله بن عباس رضي الله عنهما دحديث الفاظ دادي:

إذادفن الميت يسمع خفق نعالهم حين إذا ولوا عنه منصرفين، قال: ثم يجلس فيقال له: من ربک؟ فيقول: الله. (مجمع الزوائد ج ٣ ص ٥٤، اتحاف ج ١٠ ص ٤١٦)

ترجمه: له مړي نه خښونكي چې كله لاړ شي، نودهغوى دپښواوازهغه اوري. وبې فرمايل: بيا هغه كښنول شي، هغه ته وويل شي چې ستارب څوک دى؟ هغه وايي. زمارب الله تعالى دى.

١۵: دحضرت ابي درداء رضي الله عنه دحديث الفاظ دادي:

فجاءکم ملکان أزرقان جعدان يقال لهما: منکرونکير. فقالا: من ربک؟ وما دينک؟ ومن نبيك؟...الخ. (اتحاف السادة المتقين، ج۱۰ ص ٤۱۷. شرح الصدور ص ٥٥)

ترجمه: بيابه تاسوته دوه فرښتې راځي. چې دهغوی سترګې به شنې اووېښته به يې ګوڼکوتي وي. هغوی ته منکراونکيرويلی شي. هغوی دواړه به وايي چې ستارب څوک دی؟ دين دې څه دی؟او ستانبي څوک دی؟

۱۶: دحضرت بشيراکال المعوي رضي الله عنه دحديث الفاظ دادي:

إني مررت بقبروهويسال عني فقال: لاأدري فقلت: لادريت! (کنزالعمال ج۱۵ ص ٦٤۲. مجمع الزوائدج۳ ص ٤۸. شرح الصدورص ۵۰)

ترجمه: زه ديوقبرخواکې شوم،په هغه کې چې زماباره کې پوښتنه کيدله.هغه ځواب ورکړچې زه يې نه پيژنم، دې باندې ماوويل چې تاپخپله نه پيژانده (اونه دې دکوم پوه کس خبره منله)

۱۷: دحضرت ابوقتاده رضي الله عنه دحديث الفاظ دادي:

إن المؤمن إذامات أجلس فی قبره فيقال له: من ربک؟ فيقول: الله تعالى....الخ. (اتحاف السادة المتقين ج۱۰ ص ٤۱۸، شرح الصدورص۵۵)

ترجمه: کله چې مومن مړشي نوهغه په خپل قبرکې کينول شي. بياهغه ته وويل شي چې ستارب څوک دی؟ هغه ووايي: الله تعالى.

۱۸: دحضرت معاذبن جبل رضي الله عنه دحديث الفاظ دادي:

فاذاوضع فی قبره وسوي عليه وتفرق عنه أصحابه،أتاه منکرونکير. فيجلسانه فی قبره. (اتحاف السادة المتقين، ج۱۰ ص ٤۱۷ شرح الصدورص٥٤)

ترجمه: کله چې مړی قبرکې کېښودل شي اوپه هغه باندې خاوره واچول شي اودهغه خښونکي رخصت شي، نوهغه ته منکر او نکير راشي اوهغه قبرکې کېنوي.

۱۹: دحضرت عمربن الخطاب رضي الله عنه دحديث الفاظ دادي:

کيف أنت فی أربع أذرع فی ذراعين، ورايت منکراونکيرا؟ قلت: يارسول الله! ومامنکرنکير؟ قال: فتانا القبر. (اتحاف السادة ج۱۰ ص ٤۱٤، شرح الصدور ص٥٤)

ترجمه: خلورګزه اوږد او دوه ګزه پلن ځای (قبر) کې به ستاڅه حالت وي کله چې منکراونکير ووينې؟ ماوويل: يارسول الله! منکراونکيرڅوک دي؟رسول الله صلی الله عليه وسلم وفرمايل: قبرکې امتحان اخستونکې فرښتې.

۲۰: دحضرت ابودرداء رضي الله عنه دحديث الفاظ دادي:

ثم سدواعليک من اللبن واکثرواعليک من التراب، فجاءک ملکان أزرقان جعدان يقال لهما منکرونکير .(کتاب الزهد ابن مبارک، بيهقي، ابن ابي شيبه ج ۳ ص ۳۷۸ــ ۳۸۹، اتحاف السادة ج ۱۰ ص ٤۱۷، شرح الصدور ج ۱ص ۵۵)

ترجمه: ستاحالت به هغه وخت څه وي کله چې تاپه قبر کې کېږدي اوستا دپاسه خښتې کېښودل شي اوډېره خاوره په تاباندې واچول شي؟ بيابه تاته د شنو سترګو او ويرونکي شکل والا دوه فرښتې راشي. چې هغو ته منکر اونکير ويل کيږي.

۲۱: دحضرت ابو امامه رضي الله عنه دحديث الفاظ دادي:

فإن منکراونکيرافيتأخرکل واحدمنهما فيقول: إنطلق بنا... الخ.(مجمع الزوائد ج ۳ ص ٤۵، کنزالعمال ج ۱۵ ص ٦۰۵ ، شرح الصدور ص٤٤، اتحاف السادة ج ۱۰ ص ۳٦۸)

ترجمه: کله چې(مړی د سوالونو صحيح ځواب ورکړي) نومنکر او نکيردېوبل لاس ونيسي او ووايي، چې بس اوس له دې ځايه ځو.

۲۲: دحضرت حذيفه رضي الله عنه دحديث الفاظ دادي:

إن الملک يمشي معه الى القبر، فأذاسوي عليه، سلک فيه، فذلک حين يخاطب. (شرح الصدور ص ٤۰، اتحاف السادة ج۱۰ ص ٤۲۲)

ترجمه: بې شکه فرښته له جنازې سره دقبرخواته ځي. کله چې مړی په قبرکې کېښودل شي اوهغه باندې خاوره واچول شي ،نوهغه فرښته دهغه قبرته لاړه شي اودهغه سره خبرې وکړي.

۲۳: دحضرت تميم داري رضي الله عنه دحديث الفاظ دادي:

ويبعث الله إليه ملکين، أبصارهما کالبرق الخاطف، وأصواتهما کالرعد القاصف....الخ. (اتحاف السادة ج ۱۰ ص ۲٦۸)

ترجمه (کافر) مړی چې کله قبرکې کېښودل شي ، نوالله تعالى هغه ته دوه فرښتې(منکراونکير) راوليږي. چې دهغوی سترګې به دبجلۍ په شان پړقيږي اودتندر په شان اواز به يې وي.

۲۴: دحضرت عباده بن صامت رضي الله عنه دحديث نه پرته دې موضوع باندې دحضرت عطاء بن يسار رضي الله عنه حديث هم نقل دی.

## دقبر فتنه

قبرکې مړي ته منکراونکيرراتلل اوله هغه سره سوال اوځواب کولو ته حديث شريف کې "فتنة القبر (قبرکې له مړي امتحان اخستل) ويل شوي دي، په حديثونو کې ددې ذکرپه داسې ډول سره دی:

۱: دحضرت عائشه رضي الله عنها دحديث الفاظ دادي:

إِنَّهُمْ يُعَذَّبُونَ عَذَابًا تَسْمَعُهُ الْبَهَائِمُ كُلُّهَا فَمَا رَأَيْتُهُ بَعْدُ فِي صَلَاةٍ إِلَّا تَعَوَّذَ مِنْ عَذَابِ الْقَبْرِ. (صحيح بخاري ج۱ ص ۱۸۳، ج۲ ص ۹۴۲، نسائی ج ۱ ص ۲۹۱)

ترجمه: حضور صلی الله علیه وسلم وفرمايل چې: کوموخلکوته قبرکې عذاب ورکول کيږي. ټول څناور يې اوري، حضرت عائشه رضي الله عنها فرمايي: له دې نه وروسته به حضور صلی الله علیه وسلم په لمانځه کې دقبرله عذاب نه خامخاپناه غوښتله.

دصحيح مسلم دحديث الفاظ دادي:

كَانَ يَدْعُو بِهَؤُلَاءِ الدَّعَوَاتِ اللَّهُمَّ فَإِنِّي أَعُوذُ بِكَ مِنْ فِتْنَةِ النَّارِ وَعَذَابِ النَّارِ وَفِتْنَةِ الْقَبْرِ وَعَذَابِ الْقَبْرِ. (صحيح مسلم ج ۲ ص ۳۴۷، ترمذی ج ۲ ص ۱۸۷. ابن ماجه ص ۲۷۲، مسند احمد ج ٦ ص ۵۷، مصنف عبدالرزاق ج ۲ ص ۲۰۸، ج۳ ص ۵۸۹، شرح السنه ج۵ ص ۱۵۷)

ترجمه: حضور صلی الله علیه وسلم به دغو الفاظوکې دعاغوښتله،اې الله! زه پناه غواړم د دوزخ له فتنې اوعذاب نه، اودقبرله فتنې نه.

دمسندحميدي دروايت الفاظ دادي:

إنكم تفتنون فی قبورکم. (مسند حمیدی ص ۹٤، مسند احمد ج٦ ص ۵۳، ۸۹، ۲۳۸)

ترجمه: قبرونوکې به ستاسو سره امتحان(سوال اوځواب) وي.

۲: دحضرت انس بن مالک رضي الله عنه دحديث الفاظ دادي:

اللَّهُمَّ إِنِّي أَعُوذُ بِكَ مِنَ الْعَجْزِ وَالْكَسَلِ وَالْجُبْنِ وَالْهَرَمِ وَأَعُوذُ بِكَ مِنْ فِتْنَةِ الْمَحْيَا وَالْمَمَاتِ وَأَعُوذُ بِكَ مِنْ عَذَابِ الْقَبْرِ. (بخاري ج۲ ص ۹٤۲، صحيح مسلم ج ۲ ص ۳٤۷، ترمذی ج ۲ ص ۱۸۷، نسائی ج ۲ ص ۳۱۳، مسند احمد ج ۳ ص ۱۷۹، ۲۰۵، ۲۳٦، ۲٦٤، ابن ابی شیبه ج ۳ ص ۳۷۵)

ترجمه: اې الله! زه پناه غواړم له عاجزي اوسستي نه. له بزدلي اوډير زوړتوب ( بوډاوالي) نه اوزه ستانه پناه غواړم دژوند اومرګ له فتنو نه.

دمسنداحمد دروايت الفاظ دادي:

قَالَ تَعَوَّذُوا بِاللَّهِ مِنْ عَذَابِ الْقَبْرِ وَعَذَابِ النَّارِ وَفِتْنَةِ الدَّجَّالِ قَالُوا وَمَا ذَاكَ يَا رَسُولَ اللَّهِ قَالَ إِنَّ هَذِهِ الْأُمَّةَ تُبْتَلَى فِي قُبُورِهَا. (مسند احمد ج۳ ص ۲۳۳)

ترجمه: وې فرمايل: پناه وغواړئ دقبرله عذاب نه، اودوزخ له عذاب نه او د دجال دفتنې نه، صحابه کرامو رضي الله عنهم وويل:يارسول الله! دقبرفتنه څه شی دی؟ ويې فرمايل: قبرکې له دې امت نه امتحان اخستل کيږي.

د یو بل حدیث الفاظ دادي:

**فإن مات أو قتل غفرت له ذنو به کلها وأجیر من عذاب القبر.** (مجمع الزوائد ج ۵ ص ۲۹۱)

ترجمه: مرابط (د اسلامي پولو ساتونکی) که چېرې مړشي یا شهید شي نو د هغه ټول ګناهونه به وبښل شي. او هغه به د قبر د عذاب نه بچ کړل شي.

۳: د حضرت ابو هریره رضي الله عنه د حدیث الفاظ دادي:

**كَانَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَدْعُو وَيَقُولُ اللّٰهُمَّ إِنِّي أَعُوذُ بِكَ مِنْ عَذَابِ الْقَبْرِ وَمِنْ عَذَابِ النَّارِ.** (صحیح بخاري ج ۱ ص ۱۸٤، نسائی ج ۱ ص ۲۹۰، حاکم ج ۱ ص ۵۳۳، کنز العمال ج ۲ ص ۱۹۰)

ترجمه: حضور صلی الله علیه وسلم به دا دعا کوله. اې الله! زه ستا نه پناه غواړم. د قبر د عذاب نه او د دوزخ د عذاب نه.

د ترمذي شریف د روایت الفاظ دادي: **اسْتَعِيذُوا بِاللّٰهِ مِنْ عَذَابِ الْقَبْرِ.** (ترمذی ج ۲ ص ۲۰۰)

ترجمه: د قبر له عذاب نه الله تعالی څخه پناه وغواړئ.

د سنن ابن ماجه د روایت الفاظ دادي:

**مَنْ مَاتَ مُرَابِطًا فِي سَبِيلِ اللّٰهِ أَجْرَى عَلَيْهِ أَجْرَ عَمَلِهِ الصَّالِحِ الَّذِي كَانَ يَعْمَلُ وَأَجْرَى عَلَيْهِ رِزْقَهُ وَأَمِنَ مِنْ الْفَتَّانِ.** (ابن ماجه ص ۱۹۸، کنز العمال ج ۲ ص ٤۱۸)

ترجمه: کوم کس چې د الله تعالی په لارکې څوکېداري کولو کې مړشي. د هغه ټول نېک عملونه به جاري وي کوم به چې هغه کولو د هغه رزق جاري وي. او هغه به قبر کې د امتحان نه محفوظ وي. د هغه سره به سوال او ځواب نه کېږي.

۴: د حضرت اسماء رضي الله عنها د حدیث (کوم چې مخکې تیر شو دی) الفاظ دادي:

**قام رسول الله صلی الله علیه وسلم خطیباً فذکر فتنة القبر.**

(صحیح بخاري ج ۱ ص ۱۸۳، نسائی ج ۱ ص ۲۹۰، مشکوة ص ۲٦)

ترجمه: حضور صلی الله علیه وسلم خطبه وویله. او هغه کې یې د قبر د فتنې ذکر وکړ.

د مسند احمد د روایت الفاظ دادي:

**إنه قد أوحي إليّ إنکم تفتنون في القبور.** (ج ٦ ص ۳٤۵)

ترجمه: ماته وحې شوې ده چې له تاسو نه به په قبر کې امتحان اخستل کېږي.

۵: د حضرت سعد بن ابی وقاص رضي الله عنه د حدیث الفاظ دادي:

**أللهم إني أعوذبک من البخل، وأعوذبک من الجبن، وأعوذبک من أن أرد إلی أرذل العمر، وأعوذبک من فتنة الدنیا، وأعوذبک من عذاب القبر.** (صحیح بخاري ج ۲ ص ۹٤۲، ۹٤۳، ج ۲ ص ۹٤۵، نسائی ج ۲ ص ۳۱۳، ابن ابی شیبه ج ۳ ص ۳۷٦، ج ۱۰ ص ۱۸۸)

ترجمه: اې الله! زه ستاسره پناه غواړم د بخل نه. او ستاسره پناه غواړم د بزدلي نه. او ستاسره پناه غواړم له دې چې د بوډاوالي په عمرکې مړشم. او زه ستاسره پناه غواړم د دنیا د فتنې نه. او زه ستاسره پناه غواړم د قبر عذاب نه.

۲: د حضرت ام خالد بنت خالد بن سعید بن العاص د حدیث الفاظ دادي:

**سمعت النبي ﷺ وهو یتعوذ من عذاب القبر.** (صحیح بخاري ج ۱ ص ۱۸٤، ج ۲ ص ۹٤۲، ابن ابی شیبه ج ۱۰ ص ۱۹۳، مسند احمد ج ٦ ص ۳٦٥، کنز العمال ج ۱۵ ص ۷۳۸)

ترجمه: ماله نبي کریم ﷺ نه د قبر عذاب څخه پناه غوښتل اوریدلي دي.

د مصنف ابن ابی شیبه د روایت الفاظ دادي:

**قد أوحی إلیّ إنکم تفتنون فی القبور.** (ابن ابی شیبه ج ۳ ص ۳۷۵)

ترجمه: ما ته وحې شوې ده چې قبرونو کې ستاسو امتحان اخستل کیږي.

د کنز العمال د طبراني په حواله باندې د روایت الفاظ دادي:

**إستجیروا بالله من عذاب القبر.** (کنز العمال ج ۱۵ ص ٦۳۸)

ترجمه: د قبر د عذاب نه په الله تعالی سره پناه غواړئ.

۷: د حضرت زید بن ثابت رضی الله عنه د حدیث الفاظ دادي:

**فقال: تعوذوا بالله من عذاب القبر! فقالو: نعوذ بالله من عذاب القبر.** (صحیح مسلم ج ۲ ص ۳۸٦، شرح السنه ج ۵ ص ۱٦۲، ابن ابی شیبه ج ۳ ص ۳۷۳، ج ۱۰ ص ۱۸۵، کنز العمال ج ۲ ص ۲٦۳)

ترجمه: حضور ﷺ وفرمایل: په الله تعالی سره پناه وغواړئ د قبر له عذاب نه. صحابه کرامو رضی الله عنهم وویل: موږ د قبر له عذاب نه په الله تعالی سره پناه غواړو.

۸: د حضرت عبد الله بن عباس رضی الله عنهما د حدیث الفاظ دادي:

**أللّهم إني أعوذ بک من عذاب جهنم ومن عذاب القبر.** (ترمذی ج ۲ ص ۱۸۷، نسائی ج ۱ ص ۲۹۰، ابن ماجه ص ۲۷۲، ۲۷۳، مسند احمد ج ۱ ص ۳۰۵، کنز العمال ج ۲ ص ۲٦۳)

ترجمه: اې الله! زه ستاسره پناه غواړم د دوزخ له عذاب او د قبر له عذاب نه.

۹: د حضرت سلمان فارسي رضی الله عنه د حدیث الفاظ دادي:

**رباط یوم ولیلة خیر من صیام شهر وقیامه، وإن مات جری علیه عمله الذی کان یعمله، وأجری علیه رزقه، وأمن من الفتان.** (صحیح مسلم ج ۲ ص ۱٤۲، سنن کبری، بیهقی ج ۹ ص ۳۸، کنز العمال ج ٤ ص ۲۹٤، مسند احمد ج ۵ ص ٤٤۰، مشکوة ص ۲۳۹، درمنثور ج ٤ ص ۳٦۸)

ترجمه: یوه ورځ او یوه شپه د اسلامي سرحد څوکیدارې دیوې میاشتې لمونځ او روژې نه غوره ده او که چېرې دغه کس مړشي نو کوم عمل بې چې کاو، هغه عمل به د نو موړي له پاره همېشه جاري وي. او رزق به یې هم جاري وي او د قبر له امتحان نه به هم محفوظ وي.

دیوبل روایت الفاظ دادي:

رباط یوم فی سبیل الله أفضل، وربما قال: خیر من صیام شهر وقیامه، ومن مات فیه وقی فتنة القبر ونمي له عمله إلی یوم القیامة.(ترمذی ج۱ص ۲۰۰. کنزالعمال ج٤ ص ۳۲٦، ۳۲۷ مجمع الزوائد ج ٥ ص ۲۹۰)

ترجمه: دالله تعالی په لارکې یوه ورځ څوکیداري کول دیوې میاشتې دلمونځواوروژونه غوره دا، اوکوم کس چې دې حالت کې مړشي، هغه به دقبرد سوال اوځواب نهٔ وساتل شي اودهغه عمل به دقیامت پورې جاري وي.

دیوبل روایت الفاظ دادي:

من مات مرابطاً أجیر من فتنة القبر.(مستدرک حاکم ج۲ ص ۸۰، ابن ابی شیبه ج ٥ ص ۳۳۷، اتحاف ج۱۰ ص ۳۸۱) ترجمه: څوک چې دالله تعالی په لارکې څوکیداري کې مړشي، هغه ته به دقبرله فتنې نه پناه ورکړشي.

۱۰: دحضرت زیدبن ارقم رضی الله عنه دحدیث الفاظ دادي:

کان یقول: اللّهم إنی أعوذبک من العجزوالکسل والجبن والبخل والهرم وعذاب القبر. (صحیح مسلم ج ۲ ص ۳۵۰، نسائی ج ۲ ص ۳۱٤، ابن ابی شیبه ج ۳ ص ۳۷٤، ج ۱۰ ص ۱۸٦)

ترجمه: حضور صلی الله علیه وسلم به دادعاکوله: اې الله! زه ستاسره پناه غواړم دعاجزکیدونه، سستي نه، بزدلي نه، بخل نه، دډیرزیات بوډاوالی نه اودقبردعذاب نه.

دترمذي دحدیث الفاظ دادي:

إنه کان یتعوذمن الهرم وعذاب القبر.(ترمذی ج ۲ ص ۱۹۷)

ترجمه: حضور صلی الله علیه وسلم به پناه غوښتله دډیرزیات بوډاوالی نه اودقبردعذاب نه.

۱۱: دحضرت ابوبکر رضی الله عنه دحدیث الفاظ دادي:

اللّهم إنی أعوذبک من الهم والکسل وعذاب القبر. (ترمذی ج ۲ ص ۱۸۸، نسائی ج ۲ ص ۳۱٤، مسنداحمد ج ٥ ص ٤۲، حاکم ج ۱ ص ۳۵، ۲۵۲، قال صحیح علی شرط مسلم، واقره الذهبی، ابن ابی شیبه، ج ۳ ص ۳۷٤، کنزالعمال ج ۲ ص ۱۸۱)

ترجمه: اې الله! زه پناه غواړم ددنیاله فکرونو، سستي او دقبرد عذاب نه.

۱۲: دحضرت عمربن خطاب رضی الله عنه دحدیث الفاظ دادي:

أن النبي صلی الله علیه وسلم کان یتعوذمن الجبن والبخل وأرذل العمروعذاب القبروفتنة الصدر، وعذاب القبر. (نسائی ج ۲ ص ۳۱٦، مسنداحمد ج۱ ص ۲۲، ٥٤، ابن ماجه ص ۲۷٤، مستدرک حاکم، ج۱ ص ۵۳۰، وقال هذاحدیث صحیح علی شرط الصحیحین، واقره الذهبی، ابن ابی شیبه ج ۲ ص ۳۷٤)

ترجمه: نبي كريم ﷺ به پناه غوښتله، له بزدلي نه. بخل نه، د كمزوري دعمرنه، دقبردعذاب نه او دسينې له فتنې نه.

۱۳: دحضرت مقدام بن معديكرب رضي الله عنه دحديث الفاظ دادي:

**لشهيدعندالله ست خصال: يغفرله من أول دفعة، ويرى مقعده من الجنة، ويجارمن عذاب القبر.... الخ. (ترمذى ج ١ ص ١٩٩، ابن ماجه ص ٢٠١، مسنداحمد ج ٤ ص ١٣١، مشكوة ص ٣٣٣، كنزالعمال ج ٤ ص ٤٠٥)**

ترجمه: شهيد ته شپږ انعامونه وركول كيږي، لومړى مرتبه كې هغه وبښل شي، جنت كې هغه ته خپل كور وښودل شي او هغه دقبرعذاب نه وساتل شي.

۱۴: دحضرت عبدالله بن مسعود رضي الله عنه دحديث الفاظ دادي:

**لوسالت الله أن يعافيك من عذاب فى النار وعذاب فى القبر، لكان خيراً لك. (صحيح مسلم ج ٢ ص ٣٣٨، جامع الاصول ج ٤ ص ٣٤٨، مسنداحمد ج ١ ص ٤٢٣، ابن ابي شيبه ج ٣ ص ٣٧٤، شرح السنه ج ٥ ص ١٦٣)**

ترجمه: كه چېرې تاله تعالى غوښتنه كړې واى چې تاسو ددوزخ او قبر له عذاب نه محفوظ وساتي؛ نو دا ستاسو له پاره بهتروه.

دترمذي شريف دروايت الفاظ دادي:

**وأعوذبك من عذاب النار وعذاب القبر. (ترمذى ج ٢ ص ١٧٥)**

ترجمه: اوزه دالله تعالى سره پناه غواړم ددوزخ اوقبرله عذاب نه.

دحاكم دروايت الفاظ دادي:

**أللهم إنى أعوذبك.... من فتنة الدجال وعذاب القبر.**
**(مستدرك حاكم ج ١ ص ٥٣٤)**

ترجمه: اي الله! زه ستاسره پناه غواړم.... ددجال دفتنې نه اودقبردعذاب نه.

۱۵: دفضاله بن عبيد رضي الله عنه دحديث الفاظ دادي:

**الذى مات مرابطا فى سبيل الله فإنه ينمى له عمله إلى يوم القيامة، ويأمن فتنة القبر. (ترمذى ج ١ ص ١٩٥، ابوداؤد ج ١ ص ٣٣٨، مشكوة ص ٢٣٢، مستدرك حاكم ج ٢ ص ٧٩، مسنداحمد ج ٦ ص ٢٠، مواردالظمآن ص ٣٩١، اتحاف ج ١٠ ص ٣٨١، درمنثور ج ٢ ص ١١٤)**

ترجمه: كوم سړى چې دالله په لاره كې چوكيداري كولو كې مړشي تر قيامته پورې دهغه عمل زياتيږي او هغه به د قبرله فتنې نه محفوظ وي.

۱۶: دحضرت براء بن عازب رضي الله عنه دحديث (كوم چې مخكې تيرشوى دى) الفاظ دادي:

قال ویاتیه ملکان فیجلسانه فیقولان له: من ربک؟....الخ.(ابو داؤد ج ٢ ص ٦٥٤، عبدالرزاق ج ٣ ص ٥٨١، ابن ابی شیبه ج ٣ ص ٣٧٤، ٣٧٥، مسند احمد ج ٤ ص ٤٩٦)

ترجمه: او مړي ته دوه فرښتې راشي، هغه کینوي، او هغه ته وایي: چې ستارب څوک دی؟

١٧ دحضرت عمرو بن میمون رضي الله عنه دحدیث الفاظ دادي:

إن رسول الله ﷺ کان یتعوذ بهن دبر الصلوة: اَللّٰهم إني أعوذبک من الجبن، وأعوذبک من البخل، وأعوذبک من أرذل العمر، وأعوذبک من فتنة الدنیا وعذاب القبر.

(ترمذي ج ٢ ص ١٩٦، نسائي ج ٢ ص ٣١٦، ٣١٧، ابن ماجه ص ٢٧٣)

ترجمه: حضور ﷺ به دهر لمانځه نه وروسته له دې شیانونه پناه غوښتله، او فرمایل به یې: اې الله! زه ستاسره دبزدلي نه، بخل نه، د ذلیل عمرنه، ددنیا دازمیښت او دقبر دعذاب نه پناه غواړم.

١٨: دحضرت سلیمان بن صرو او خالد بن عرفطه رضي الله عنهما دحدیث الفاظ دادي:

من یقتله بطنه لم یعذب في قبره. (ترمذی ج ١ ص ١٢٦، نسائي ج ١ ص ٢٨٨، کنزالعمال ج ٤ ص ٤٢٤، مسند احمد ج ٤ ص ٢٦٢، ج ٥ ص ٢٩٢، موارد الظمآن ص ١٨٦)

ترجمه: هغه کس کوم چې دخیټې په مرض باندې مړشي، هغه ته به د قبر عذاب نه وي.

١٩: دحضرت علي کرم الله وجهه دحدیث الفاظ دادي:

اَللّٰهم إني أعوذبک من عذاب القبر ووسوسة الصدر. (ترمذی ج ٢ ص ١٩٠، کنزالعمال ج ٢ ص ١٨١، عن شعب الایمان بیهقي)

ترجمه: اې الله! زه ستاسره پناه غواړم دقبر دعذاب نه او دسینې د وسوسونه.

٢٠: دحضرت عمرو بن شعیب عن ابیه عن جده رضي الله عنهم دحدیث الفاظ دادي:

اَللّٰهم إني أعوذبک من الکسل.... وأعوذبک من عذاب القبر، وأعوذبک من النار. (نسائي ج ٢ ص ٣١٦، مسند احمد ج ٢ ص ١٧٥، ١٧٦)

ترجمه: اې الله! زه ستاسره پناه غواړم دسستی نه، دقبر دعذاب نه او اورنه.

٢١: دحضرت ابو مسعود رضي الله عنه دحدیث الفاظ دادي:

کان النبي ﷺ یتعوذ من خمس: من البخل، والجبن، وسوء العمر، وفتنة الصدر، وعذاب القبر. (نسائي ج ٢ ص ٣١٣)

ترجمه: حضور ﷺ به ددې پنځو شیانونه پناه غوښتله، بخل، بزدلي، بدعمر، دسینې له فتنې او دقبر دعذاب نه.

٢٢: دحضرت راشد بن سعد عن رجل من اصحاب النبي ﷺ دروایت الفاظ دادي:

قال: يارسول الله! ما بال المؤمنين يفتنون فى قبورهم إلاّ الشهيد؟ (نسائی ج ۱ ص ۳۸۹)
ترجمه: يارسول الله! ايا د شهيد نه پرته د ټولو مومنانو به قبر کې ازميښت وي؟
۲۳: د حضرت عثمان بن ابو العاص رضی الله عنه د حديث الفاظ دا دي:

أللهم إنى أعوذ بک.... ومن فتنة المحيا والممات. (نسائی ج ۲ ص ۳۱٦)
ترجمه: اې الله! زه ستا سره پناه غواړم د ژوند او مرګ د وروسته فتنو څخه.
۲۴: د حضرت ام سلمه رضی الله عنها د حديث الفاظ دا دي:

أعوذ بک... من عذاب القبر... ومن فتنة الغنى ومن فتنة القبر. (مستدرک حاکم ج ۱ ص ٥۲٤)
ترجمه: اې الله! زه پناه غواړم د قبر د عذاب نه. د مال له فتنې نه او د قبر د ازميښت نه.
۲۵: د حضرت جابر بن عبد الله رضی الله عنه د حديث الفاظ دا دي:

إن هذه الأمة تبتلى فى قبورها. (مسند احمد ج ۳ ص ۳٤٦، کنز العمال ج ۱٥ ص ٦۳٦، مجمع الزوائد ج ۳ ص ٤۸)
ترجمه: بې شکه له دې امت نه په قبرونو کې اخستل کيږي.
د مصنف عبد الرزاق د روايت الفاظ دا دي:

فأمر أصحابه أن يتعوذوا من عذاب القبر. (مصنف عبد الرزاق ج ۳ ص ٥۸٤)
ترجمه: حضور صلی الله علیه وسلم خپلو صحابه کرامو رضی الله عنهم ته وفرمايل: د قبر د عذاب نه پناه غواړئ!
۲٦: د حضرت ابو سعيد خدري رضی الله عنه د حديث (کوم چې مخکې تيرشوي دي) الفاظ دا دي:

إن هذه الأمة تبتلى فى قبورها. (مسند احمد ج ۳ ص ۳، ابن ابی شيبه ج ۳ ص ۳۷۳)
ترجمه: بې شکه د دې امت به په خپلو قبرونو کې ازميښت کيږي.
د مجمع الزوائد د روايت الفاظ دا دي:

من توفى مرابطاً وقى فتنة القبر. (مجمع الزوائد ج ٥ ص ۲۹۰)
ترجمه: کوم کس چې د اسلامي سرحدونو حفاظت کې وفات شي، هغه به د قبر د عذاب نه محفوظ وي.
د موارد الظمان د روايت الفاظ دا دي:

لولا أن تدافنوا لدعوت الله أن يسمعكم عذاب القبر الذى أسمع منه. إن هذه الأمة تبتلى فى قبورها. (موارد الظمان ص ۱۹۹، کنز العمال ج ۱٥ ص ٦٤٤)
ترجمه: که چېرې دا ويره نه وه چې تاسو به مړي خښول پريږدئ نو ما به الله تعالى ته دعا کړې وه، چې تاسو باندې يې د قبر عذاب اوروَلی وای. کوم چې زه اورم.
د اتحاف السادة المتقين شرح احياء العلوم الدين الفاظ دا دي:

من توفى مرابطاً وقى فتنة القبر. (اتحاف السادة المتقين ج ۱۰ ص ۳۸۲)

ترجمه: کوم کس چې داسلامي سرحدونوحفاظت کې وفات شي. هغه به دقبردعذاب نه محفوظ وي.

۲۷: دحضرت ام بشر دحديث الفاظ دادي:

**إستعيذوبالله من عذاب القبر! قلت: يارسول الله! وللقبرعذاب؟ قال: إنهم ليعذبون فى قبورهم عذابا تسمعه البهائم. (ابن ابى شيبه ج ۳ ص ۳۷٤، ۳۷۵، موارد الظمآن ص ۲۰۰، مجمع الزوائد ج ۳ ص ٥٦)**

ترجمه: د قبر د عذاب نه دالله تعالى سره پناه غواړئ، ما وويل: يارسول الله! ايا قبرونوكې به عذاب وي؟ ويې فرمايل: هو! هغوى (كافرانو) ته داسې وركول كيږي، چې ټول ځناورېې اوري.

۲۸: دحضرت عقبه بن عامر رضي الله عنه دحديث الفاظ دادي:

**ويؤمن من فتان القبر. (مسنداحمد ج ٤ ص ۱۵۰، مجمع الزوائد ج ٥ ص ۲۸۹، اتحاف السادة ج ۱۰ ص ۳۸۱)** ترجمه: كوم كس چې داسلامې سرحدپه حفاظت كې وفات شي، هغه به دقبردعذاب نه محفوظ وي.

۲۹: دحضرت واثله بن اسقع رضي الله عنه دحديث الفاظ دادي:

**ألا! إن فلان بن فلان فى ذمتك وحبل جوارك فقه فتنة القبر وعذاب النار. (مسنداحمد ج ۳ ص ۳۹۱)** ترجمه: اې الله! فلاني دفلاني زوى ستا امان اوستا ګاونډ ته درغلى دى، هغه دقبردازميښت نه وساته!

۳۰: دجارة النبي صلى الله عليه وسلم دحديث الفاظ دادي:

**أللّهم إنى أعوذبك من عذاب القبر وفتنة القبر. (مسنداحمد ج ٥ ص ۲۷۱)**

ترجمه: اې الله! زه ستاسره پناه غواړم دقبردعذاب اودقبردفتنې نه.

۳۱: دحضرت عباده بن صامت رضي الله عنه دحديث الفاظ دادي:

**ويجار من عذاب القبر. (مسنداحمد ج ٤ ص ۱۳۱، مجمع الزوائد ج ٥ ص ۲۹۳)**

ترجمه: او (شهيد) به دقبردعذاب نه محفوظ وي.

۳۲: دحضرت عمروبن دينار رضي الله عنه دحديث الفاظ دادي:

**كيف بك ياعمر! يفتان القبر. (مصنف عبدالرزاق ج ۳ ص ۵۸۲)**

ترجمه: اې عمر! هغه وخت كې به ستاڅه حال وي، كله چې قبركې تاته منكراونكيرراشي؟

۳۳: دحضرت عبدالرحمن بن حسنه رضي الله عنه دحديث الفاظ دادي:

**فقال: أوماعلمتم ماأصاب صاحب بنى اسرائيل؟ كان الرجل منهم إذاأصابه الشي من البول قرضه بالمقراض فنهاهم عن ذالك فعذب فى قبره. (مصنف ابن ابى شيبه ج ۳ ص ۳۷۵، ۳۷٦)**

ترجمه: تاسو ته پته نشته چې دبنی اسرائیلو هغه سړي سره څه وشول؟
بنی اسرائیلو کې به که چاباندې متیازې ولګېدې نوهغه ځای به یې کټ کړ، خوهغه کس هغه وساته، په دې وجه باندې هغه ته دقبرعذاب ورکړل شو.
۳۴: دحضرت یعلی بن شبابه رضي الله عنه دحدیث الفاظ دادي:

**إن صاحب هذا القبر يعذب.... (ابن ابی شیبه ج ۳ ص ۳۷۶)**
ترجمه: بې شکه دې قبروالاته عذاب ورکول کیږي.
۳۵: دحضرت حکم رضي الله عنه دحدیث الفاظ دادي:

**اللهم إني أعوذبك من غلبة العدو ومن غلبة الدين وفتنة الدجال وعذاب القبر. (ابن ابی شیبه ج ۱۰ ص ۱۹۵)**

ترجمه: اې الله! زه ستاسره پناه غواړم ددښمن دغلبې نه، دقرض دغلبې نه، ددجال دفتنې او د قبر دعذاب نه.
۳۶: دحضرت ابودرداء رضي الله عنه داثرالفاظ دادي:

**فان بهاعذاباً من عذاب القبر، (ابن ابی شیبه ج ۵ ص ۳۲۶)**
ترجمه: بې شکه هلته دقبردعذاب په شان یوعذاب دی.
۳۷: دحضرت عبید الله بن عمر رضي الله عنه دحدیث الفاظ دادي:

**وأعوذبك من عذاب القبروأعوذبك من عذاب النار. (کنزالعمال ج ۲ ص ۲۱۰)**
ترجمه: اې الله! زه ستاسره پناه غواړم دقبردعذاب نه، اوداوردعذاب نه.
۳۸: دحضرت حسن رضي الله عنه دحدیث الفاظ دادي:

**حادت عن رجل يضرب في قبره من أجل النميمة. (کنزالعمال ج ۱۵ ص ۷۳۹)**
ترجمه: (زماکچرپه دې وجه باندې) ویریده چې یوسړی قبرکې دچغل خوري په وجه باندې وهل کیده.
۳۹: دحضرت میمونه رضي الله عنها مولاة النبي صلى الله عليه وسلم دحدیث الفاظ دادي:

**ياميمونة! تعوذي بالله من عذاب القبر، (کنزالعمال ج ۱۵ ص ۷۸)**
ترجمه: اې میموني! دقبردعذاب نه الله تعالی سره پناه غواړه!
۴۰: دحضرت ابوالحجاج ثماني رضي الله عنه دحدیث الفاظ دادي:

**يقول القبر للميت... ألم تعلم إني بيت الظلمة وبيت الفتنة... الخ. (کنزالعمال ج ۱۵ ص ٦٤٤، حلية الاولياء ج ٦ ص ۹۰، اتحاف ج ٦ ص ۳۰۱)**
ترجمه: قبرمړي ته وايي چې اياتاته پته نه وه، چې زه دتيارو او ازميښتونوکوريم.
۴۱: دحضرت ابوامامه رضي الله عنه دحدیث الفاظ دادي:

من رابط فى سبيل الله أمنه الله من فتنة القبر. (مجمع الزوائد ج ٥ ص ٢٨٩، كنز العمال ج ٤ ص ٢٨٢)
ترجمه: کوم کس چې داسلامي سرحد څوکيداری وکړه، هغه به الله تعالی دقبردفتنې نه محفوظ وساتي.
۴۲: دحضرت ابودرداء رضي الله عنه دحديث الفاظ دادي

رباط يوم وليلة يعدل صيام شهروقيامه .... ويوقى الفتان، (كنزالعمال ج ٤ ص ٣٢٧، مجمع الزوائد ج ٥ ص ٢٩٠)
ترجمه: دالله تعالی په لارکې يوه ورځ څوکيداری کول ديوې مياشتې دروژواولمونځونونه غوره دي ....اوکوم کس چې دې حالت کې مړشي هغه به دقبردسوال ځواب نه وساتل شي.
۴۳: دحضرت عثمان رضي الله عنه دحديث الفاظ دادي

من مات مرابطافى سبيل الله .... أمن من الفتان ويبعثه الله تعالى آمناً من الفزع الأكبر. (اتحاف ج ١٠ ص ٣٨٢)
ترجمه: کوم کس چې دالله تعالی په لارکې څوکيداري کوي ... الله تعالی هغه دمنکر او نکير دسوال اوځواب نه محفوظ ساتي اود قيامت په ورځ به هغه باندې هيڅ ويره نه وي.
۴۴: دحضرت ثابت بنائي رضي الله عنه دحديث الفاظ دادي:

إذاوضع الميت فى قبره إحتوشته اعماله الصالحة وجاء ملك العذاب، فيقول له بعض اعماله: إليک عنه، فلولم يكن إلاأنالماوصلت إليه. (حلية الاولياء ج ٦ ص ١٨٩)
ترجمه: کله چې مړي قبرکې کيښودل شي نودهغه ښه عملونه دهغه نه شا اوخوا راتاوشي، اوکله چې دعذاب فرښته راشي نودهغه په ښه عملونوکې يوعمل وايي: ده نه لېرې اوسه! که چېرې زه يواځې وای، نوبياهم ته ده ته نزدې نه شوې راتلی.
۴۵: دحضرت ام سلمه رضي الله عنها دحديث الفاظ دادي:

أللّهم اغفرلى لأبى سلمه وارفع درجته... وافسح له فى قبره ونورله فيه. (صحيح مسلم، جامع الاصول ج ١١ ص ٨٤، ابوداؤد ج ٢ ص ٤٤٥، مسنداحمد ج ٦ ص ٢٩٧، بيهقى سنن كبرى ج ٣ ص ٣٨٤، شرح السنه ج ٥ ص ٣٠٠، اتحاف ج ٥ ص ١٠٣) ترجمه: اې الله! ابوسلمه وبښه !اودهغه درجې اوچتې کړه! اې الله! دهغه قبرورته ازاد کړه اوهغه ورته رڼا کړه!
۴۶: دحضرت عوف بن مالک رضي الله عنه دحديث الفاظ دادي:

أللّهم اغفرله... وأعذه من عذاب القبر. (صحيح مسلم، ج ١ ص ٣١١، نسائى ج ١ ص ٢٨١، مسنداحمد ج ٦ ص ٢٣، ابن ابى شيبه ج ٣ ص ٢٩١، ج ١٠ ص ٤٠٩)
ترجمه: اې الله! دی وبښه! اوده ته دقبردعذاب نه خلاصی نصيب کړه!

## نکیراومنکر مړی په قبرکې راکینوي

حدیثونوکې یوطرف ته مړي ته دنکیراومنکردراتلواوسوال اوځواب ذکردی. نوبل طرف حدیثونوکې راغلي دي چې منکراو نکیر مړي ته قبرکې دکښناستوحکم وکړي. اوهغه دسوال اوځواب له پاره په قبرکې کښني. دې باره کې په دې حدیثونوحواله کافي ده

۱: دحضرت انس رضی الله عنه حدیث کې دي:

**أتاه ملكان فأقعداه.** (صحيح بخاري ج ۱ ص ۱۷۸، ۱۸٤، صحيح مسلم ج ۲ ص ۳۸٦، نسائي ج ۱ ص ۲۸۸، ابن حبان ج ٦ ص ٤۹، شرح السنه ج ٥ ص ٤۱٥، كنز العمال ج ۱٥ ص ٦۳٤، مشكوة ص ۲٤)

ترجمه: قبرکې مړي ته دوه فرښتې راځي او هغه کښنوي.

۲: دحضرت براء بن عازب رضی الله عنه حدیث کې دي:

**إذا أقعد المؤمن في قبره...** (صحيح بخاري ج ۱ ص ۱۸۳، ابوداؤد ج ۲ ص ٦٥٤، مجمع الزوائد ج ۳ ص ٥۰، ابن ابي شيبه ج ۳ ص ۳۸۱، مشكوة ص ۲٥)

ترجمه: مؤمن چې کله قبرکې کښنول شي.

دمسند احمد د حدیث الفاظ دادي:

**فيأتيه ملكان فيجلسانه....** (مسند احمد ج ٤ ص ۲۸۷، كنز العمال ج ۱٥ ص ٦۲۷)

ترجمه: مړي ته دوه فرښتې راځي او هغه کښنوي.

۳: دحضرت ابوهریره رضی الله عنه دحدیث الفاظ دادي:

**إن الميت يصير إلى القبر فيجلس الرجل الصالح في قبره غير فزع ولا مشغوف إلى قوله، ويجلس الرجل السوء في قبره فزعاً مشغوفاً.** (ابن ماجه ص ۳۱٥، ابن حبان ج ٦ ص ٤٥، موارد الظمان ص ۱۹۸، كنز العمال ج ۱٥ ص ٦۳۰، شرح الصدور ص ٥۸ مشكوة ص ۲٥)

ترجمه: بې شکه کله چې مړی قبرکې کښنودل شي. نوښه سړی په قبرکې کښنول شي. هغه وخت کې نه هغه وېرېږي او نه پریشانه وي، اوبد سړی چې په قبرکې کښنول شي. نوهغه وخت کې هغه ډېرزیات وېریدلی او پریشانه وي.

دمستدرک حاکم په روایت کې دالفاظ دي:

**فيقال له: أقعد! فيقعد وتمثل له الشمس.** (ج ۱ ص ۳۷۹)

ترجمه: مړي ته وویل شي چې کښېنه! هغه کښني او هغه ته لمر په غورځیدو باندې ښکاري.

مجمع الزوائدکې دطبراني په روایت باندې داالفاظ دي:

**فيقال له: أجلس! فيجلس، وقد مثلت له الشمس للغروب.** (مجمع الزوائد ج ۳ ص ٥۱، قال الهيثمي حسن)

ترجمه: مړي ته وويل شي، چې پورته شه کېنه. هغه کېني. اوهغه ته لمړد غوړځېدو غوندې په نظرسره راځي.

۴: دحضرت ابوسعيد خدري رضی الله عنه حديث کې دي:

فإذاالإنسان دفن فتفرق عنه أصحابه، جاء ه ملك في يده مطراق فأقعده.... الخ. (مسنداحمد ج ۳ ص ۳. مجمع الزوائد ج ۳ ص ۴۷، کنزالعمال ج ۱۵ص ۶۳۷، اتحاف السادة بين المتقين ج ۱۰ ص ۴۱۷، شرح الصدور ص ۵۵، وقال بسند صحيح)

ترجمه: کله چې يو انسان خښ کړل شي اودهغه خښونکي دهغه ځای نه لاړشي، نوهغه ته يوه فرښته راشي، چې دهغې په لاس به کې ګرز وي،نوفرښته هغه کېنوي.

۵: دحضرت اسماء بنت ابی بکر رضی الله عنها حديث کې دي:

قال: فيناديه، أجلس! قال فيجلس فيقول له.... الخ. (مسنداحمد ج ۶ ص ۳۵۲، مجمع الزوائد ج ۳ ص ۵۱، کنزالعمال ج ۱۵ ص ۶۳۵، اتحاف السادة المتقين ج ۱۰ ص ۴۱۸)

ترجمه: ويې فرمايل، قبرکې مړي ته يوه فرښته راځي ،هغه کېنوي اوهغه ته وايي.

کنزالعمال کې يوبل روايت کې دحضرت اسماء رضی الله عنها دحديث الفاظ داسې دي:

إن المؤمن ليقعد في قبره. (کنزالعمال ج ۱۵ ص ۶۳۶، بحواله طبراني)

ترجمه: بې شکه مومن په قبرکې کېنول کيږي.

۶: دحضرت عائشه رضی الله عنها دحديث الفاظ دادي:

فإذاكان الرجل الصالح أجلس في قبره غيرفزع ولامشغوف.... الخ. (مسند احمد ج ۱ ص ۱۴۰، مجمع الزوائد ج ۳ ص ۴۸، اتحاف السادة ج ۱۰ ص ۴۱۸، شرح الصدور ص ۵۹)

ترجمه: کله چې مړی ښه اونېک وي، نو هغه قبرکې کېنول شي، اوهغه وخت کې هغه باندې هيڅ وېره ياپرېشاني نه وي.

۷: دحضرت جابربن عبدالله رضی الله عنه حديث کې دي:

أماالمنافق! فيقعد إذاتولى عنه اهله .... (مسنداحمد ج ۳ ص ۳۴۶، کنزالعمال ج ۱۵ ص ۶۳۶، اتحاف السادة ج ۱۰ ص ۴۱۶، طبراني وبيهقي عذاب القبر وابن ابي الدنيا شرح الصدور ص۵۰)

ترجمه: پاتې شومنافق! نوکله چې دهغه خښونکي لاړشي، نوهغه قبرکې کېنول شي.

دابن ماجه دروايت الفاظ دادي:

إذادخل الميت القبرمثلت الشمس عندغروبها، فيجلس يمسح عينيه ...(ابن ماجه ص ۳۱۶)

ترجمه: کله چې مړی په قبرکې خښ کړل شي نوهغه ته لمرغوړځېدوکې ښکاري، بياهغه کېنول شي او سترګې موښي.

۸: د حضرت عبد الله بن مسعود رضی الله عنه حدیث کې دي

**إن المؤمن إذا مات جلس فی قبره فیقال: من ربک؟** (مجمع الزوائد ج ۳ ص ۵٤، وقال: رواه الطبراني فی الکبیر واسناده حسن، اتحاف السادة ج ۱۰ ص ٤۱٦، شرح الصدور ص ۵۳)

ترجمه: مؤمن چې کله مړشي نو هغه قبرکې کینول شي. او هغه ته وویل شي چې ستارب څوک دی؟

۹ د حضرت ابو درداء رضی الله عنه په موقوف حدیث کې دي:

**ثم جاءک ملکان أسودان أزرقان جعدان اسماء هما منکر ونکیر فأجلساک ثم سألاک....** (ابن ابی شیبه ج ۳ ص ۳۷۹)

ترجمه: بیابه تاته دوه د توررنګ اوشنوسترګووالا وېرونکي دوه فرښتې راځي، چې د هغونوم به منکراونکیروي، بیابه هغوی تاکښنوي اوتانه به پوښتنه کوي.

۱۰: د حضرت عبد الله بن عباس رضی الله عنهما د حدیث الفاظ دادي:

**إن المیت یسمع خفق نعالهم حین یؤتون، قال ثم یجلس فیقال له:....** (اتحالف السادة ج ۱۰ ص ٤۱٦، طبراني اوسیط حسن، شرح الصدور ص ۵۲)

ترجمه: مړی له خښولونه وروسته د تلونکوخلکو د پڼواواز اوري، بیاهغه کښنول شي اوهغه ته وویل شي.

۱۱: د حضرت ابو قتاده رضی الله عنه د حدیث الفاظ دادي:

**إن المؤمن إذا مات أجلس فی قبره.** (اتحاف السادة ج ۱۰ ص ٤۱۸، مجمع الزوائد ج ۷ ص ٤٤، ابن ابی حاتم، طبراني فی الاوسط، ابن منده، شرح الصدور ص ۵۵، ۵٦.)

ترجمه: کله چې مومن مړشي، نو هغه قبرکې کینول کیږي.

۱۲: د حضرت معاذ رضی الله عنه د حدیث الفاظ دادي:

**أتاه منکر ونکیر، فیجلسانه فی قبره....** (اتحاف السادة ج ۱۰ ص ٤۱۷، شرح الصدور ص ۵٤)

ترجمه: مړي ته منکراونکیرراځي اوهغه په قبرکې کښنوي.

## د جنازې اوچتونکوپه اوږوباندې د مړي خبرې

کله چې څوک مړشي اوهغه مړی د قبرخواته وړل کیږي، که چېرې هغه ښه انسان وي، نو هغه وایي چې ما زماکورته زر بوځئ، اوکه چېرې هغه بدکار وي، نوهغه وایي چې هی افسوس! تاسوماکوم خواته بیایئ، په حدیثونوکې د دې ذکرموجوددی.

**عن أبی سعید رضی الله عنه یقول: قال رسول الله ﷺ: إذا وضعت الجنازة فاحتملها الرجال علی أعناقهم، فإن کانت صالحة قالت: قدموني! قدموني! وإن کانت غیر صالحة قالت: یاویلها! این تذهبون بها؟ یسمع صوتها کل شئ إلا الانسان، ولو سمعها الانسان لصعق.** (صحیح بخاري ج ۱ ص ۱۷۵، ۱۷۵،

۱۸٤، مسنداحمد ج ۳ ص ٤١، ٥٨، ٨٥، نسائي ج ١ ص ٢٧٠، سنن کبری بیهقي ج ٤ ص ٢١، شرح السنه ج ٥ ص ٣٢٥، کنزالعمال ج ١٥ ص ٥٩٩، حديث ٤٢٣٧٤)

ترجمه: دحضرت ابوسعيد خدري رضي الله عنه نه روايت دی چې رسول الله ﷺ وفرمايل کله چې جنازه کيښودل شي، اوخلک هغه په خپلو اوږو باندې واخلي، که چېرې هغه ښه وي، نوهغه وايي چې ما زر بوځئ! مازر بوځئ اوکه هغه ښه نه وي، نووايي چې هی هلاک شوم، تاسودا جنازه کومې خواته وړئ، دهغه اوازله انسان پرته هريو شی اوري، اوکه چېرې انسان دا اواز واوريده، نوبې هوشه به شي.

**عن عبدالرحمن بن مهران أن أباهريرة قال: سمعت رسول الله ﷺ: إذاوضع الرجل الصالح على سرير قال: قدموني! قدموني! وإذاوضع الرجل يعني السوء على سريره قال: ياويلتی ! اين تذهبون بي؟ (نسائي ج ١ ص ٢٧٠، سنن کبری بيهقي ج ٤ ص ٢١)**

ترجمه: دحضرت ابوهريره رضي الله عنه نه روايت دی چې ما دحضور ﷺ نه اوريدلي دي چې کله دښه سړي جنازه کټ کې کېښودل شي، نو هغه وايي چې ما زر مخکې بوځئ! زرمخکې لاړشئ. اوکله چې ديوبدکارجنازه کټ کې کېښودل شي، نوهغه وايي چې هی هلاک شوم! ماکومې خواته بيايئ.

## د قبر زوروركول

مړی چې کله خښ کړل شي، نوهغه ته نکيراومنکرراځي او سوال اوځواب ورسره کوي، بيامړي سره دهغه دعملونومطابق معامله کيږي.

کله ناکله قبرمړي ته زور ورکوي، دې ته "ضغطة القبر.ويل شوي دي، په لاندې حديثونو کې ددې ذکرموجوددی.

## د حضرت ابن عمر رضي الله عنهما حديث

دحضرت عبدالله بن عمر رضي الله عنهما حديث الفاظ دادي:

**قال هذاالذی تحرک له العرش وفتحت له أبواب السماء وشهده سبعون ألفامن الملائكة لقدضم ضمة ثم فرج عنه. (نسائي ج ١ ص ١٨٩، اتحاف ج ١٠ ص ٤٢٢، ابن ابي شيبه ج ٣ ص ٣٧٧، کنزالعمال ج ١١ ص ٦٨٦، شرح الصدور ص ٤٥، المعتصر من المختصر ج ١ ص ١١٥)**

ترجمه: ويې فرمايل: دی هغه و، دچاپه مرګ باندې چې عرش خوځېدلی و، اودده دروح له پاره داسمان دروازې خلاصې شوې وې، دده په جنازه کې اويا زره فرښتې حاضرې وې، خوبياهم ده ته قبرکې زور ورکړل شواو بيا روسته بېرته عذاب ترې ليرې شو.

## د حضرت عائشې رضي الله عنها حدیث

دحضرت عائشه رضي الله عنها د حدیث الفاظ دادي:

إن للقبر ضغطة ولو كان أحد ناجيا منها نجا منها سعد بن معاذ. (المعتصر من المختصر ج ۱ ص ۱۱۵، الاحسان بترتیب صحیح ابن حبان ج ٦ ص ٤٥، مسند احمد ج ٦ ص ٥٥، ۹۸، مجمع الزوائد ج ۳ ص ٤٦، رجالها رجال الصحيح، كنز العمال ج ۱٥ ص ٦۳۹، اتحاف ج ۱۰ ص ٤۲۲، البدايه والنهايه ج ٤ ص ۱۲۸، شرح الصدور ص ٤٥)

ترجمه: بې شکه قبر زور ورکوي، که چېرې دې نه چاته خلاصی وي، نو حضرت سعد بن معاذ رضي الله عنه به ضرور ساتل شوی و.

## د حضرت جابر رضي الله عنه حدیث : دحضرت جابر رضي الله عنه دحدیث الفاظ دادي:

قال: لقد تضايق على هذا العبد الصالح قبره حتى فرجه الله عزوجل عنه. (مسند احمد ج ۳ ص ۲٦۰، ۳۷۷، مشكوة ص ۲٦، كنز العمال ج ۱٥ ص ٦٤۲، ٦٤۳، مجمع الزوائد ج ۳ ص ٦٤، شرح الصدور ص ٤٥، البدايه والنهايه ج ٤ ص ۱۲۸)

ترجمه: ويې فرمايل: بې شکه په هغه نېه اونېک انسان باندې قبر تنګ شوی و، تردې پورې چې الله تعالی ورته خلاصی نصيب کړ.

## د حضرت ابو هریره رضي الله عنه حدیث: دحضرت ابو هریره رضي الله عنه دحدیث الفاظ دادي:

ويضيق عليه قبره حتى تلتقي أضلاعه، (مصنف عبد الرزاق ج ۳ ص ٥٦۸، موارد الظمأن ص ۱۹۸، ابن جبان ج ٦ ص ٤٦، ٤۸، اتحاف ج ۱۰ ص ٤۰٤)

ترجمه: هغه(مړي) باندې قبر تنګ کړل شي، تردې چې د هغه پښتۍ يو په بل کې ننوځي.

## د حضرت ابو سعید رضي الله عنه حدیث

دحضرت ابو سعيد خدري رضي الله عنه دحدیث الفاظ دادي:

قال: يضيق عليه قبره حتى تختلف أضلاعه، (مصنف عبد الرزاق ج ۳ ص ٥۸٤، مجمع الزوائد ج ۳ ص ٤۷) ترجمه: ويې فرمايل: هغه باندې به قبر تنګ کړل شي، تردې پورې چې د هغه پښتۍ يو په بل کې ننوځي.

## د حضرت ابن عمرو رضي الله عنه حدیث

دحضرت عبد الله بن عمرو رضي الله عنه دحدیث الفاظ دادي:

ثم يؤمر به في قبره فيضيق عليه حتى تختلف أضلاعه، (مصنف عبد الرزاق ج ۳ ص ٥٦۷، ٥٦۸، مجمع الزوائد ج ۲ ص ۳۲۸)

ترجمه: بیابه په قبرکې دهغه اړوند حکم وشي :نوقبربه پرې تنګ شي . تردې پورې چې دهغه پښتۍ یو په بل کې ننوځي.

## د حضرت حذیفه رضي الله عنه حدیث

دحضرت حذیفه بن یمان رضي الله عنه دحدیث الفاظ دادي:

عن حذيفة قال: كنامع النبي ﷺ في جنازة فلما انتهيا إلى القبر قعد على شفته فجعل يردّ بصره فيه ثم قال: يضغط فيه المؤمن ضغطة تزول منها حمائله، ويملأ على الكافر ناراً. (مجمع الزوائد ج ۳ ص ٤٦، اتحاف ج ۱۰ ص ٤٢٢، كنزالعمال ج ۱٥ ص ٦٤٣، شرح الصدور ص ٤٥)

ترجمه: دحضرت حذیفه رضي الله عنه نه روایت دی چې: موږ حضور ﷺ سره یوې جنازې کې شریک وو، موږ یو قبرته ورسیدو .نو حضور ﷺ دهغه قبرخواکې کېناست اوهغه کې یې نظرکول شروع کړل. بیایې وفرمایل: چې دې مومن ته داسې زور ورکول کیږي چې دده اوږې او سینه به سره بیل شي، او دکافرقبربه له اور نه ډک کړل شي.

## د حضرت ابن عباس رضي الله عنهما حدیث

دحضرت عبدالله بن عباس رضي الله عنهما دحدیث الفاظ دادي:

وعن ابن عباس أن النبي ﷺ يوم دفن سعد بن معاذ وهو قاعد على قبره قال: لو نجا أحد من فتنة القبر أو مسئلة القبر لنجا سعد بن معاذ، ولقد ضم ضمة ثم أرخى عنه، رواه الطبراني في الكبير و رجاله موثقون. (مجمع الزوائد ج ۳ ص ٤٦، كنزالعمال ج ۱٥ ص ٦٤٠، شرح الصدور ص ٤٥)

ترجمه: دحضرت ابن عباس رضي الله عنهما نه روایت دی چې نبي کریم صلی الله علیه وسلم په کومه ورځ چې حضرت سعدبن معاذ رضي الله عنه خښ شو.دهغه دقبرپه خواکې ناست و ،حضور ﷺ وفرمایل: که چیرې څوک دقبردازمیښت یا دقبردسوالو نه بچ کیدای شوی.نوحضرت سعد بن معاذ رضي الله عنه به بچ شوی و . هغه ته هم یوځل زور ورکړل شو ، بیابېرته عذاب ترې لیرې شو.

## د حضرت انس رضي الله عنه حدیث

دحضرت انس رضي الله عنه دحدیث الفاظ دادي:

عن أنس قال: توفيت زينب بنت رسول الله ﷺ فخرجنا معه فرأينا رسول الله ﷺ مهتما شديد الحزن، فجعلنا لانكلمه حتى انتهينا إلى القبر. فإذا هو لم يفرغ من لحده فقعد رسول الله ﷺ وقعدنا حوله، فحدث نفسه هنيعة وجعل ينظر إلى السماء ثم فرغ من القبر فنزل رسول الله ﷺ فرأيته يزداد حزنه ثم إنه فرغ فخرج فرأيته سرى عنه وتبسم ﷺ فقلنا: يارسول الله ﷺ! رأيناك مهتما حزينا، فلم نستطع ان نكلمك، ثم رأيناك سرى عنك،

فلم ذالک؟ قال: کنت أذکر ضیق القبر وغمه وضعف زینب فکان ذالک یشق علیّ, فدعوت الله عزوجل أن یخفف عنها ففعل, ولقد ضغطها ضغطة سمعها من بین الخافقین. (مجمع الزوائد ج ۳ ص ٤٧، کنز العمال ج ١٥ ص ٢٤٢، اتحاف السادة المتقین ج ١٠ ص ٤٢٢، ٤٢٣، شرح الصدور ص ٤٥)

ترجمه: د حضرت انس رضی الله عنه نه روایت دی چې د حضور ﷺ لور حضرت زینب رضی الله عنها وفات شوه. نو موږ هم د حضور ﷺ سره ووتو. موږ ولیدل چې حضور ﷺ ډیر زیات خفه دی. موږ د حضور ﷺ سره خبرې نه کولې. تردې پورې چې قبرته ورسیدو. نو مو ولیدل چې او سه پورې د هغې لحد نه دی تیار شوی، حضور ﷺ کېناست او موږ هم له هغه سره کېناستو. حضور ﷺ ځه وخت پورې زړه کې ځه سوچ کاو او د اسمان طرف ته یې کتل. بیا قبر تیار شو، نو حضور ﷺ قبرته پخپله ور کوز شو، ما ولیدل چې د حضور ﷺ غم نور هم زیاتیده. بیا حضور ﷺ فارغ شو او باندې (بهر) راووت. نو ما ولیدل چې د حضور ﷺ هغه حالت ختم شوی و او حضور ﷺ مسکې شو، موږ وویل یارسول الله! موږ تاسو ولیدئ چې تاسو ډیر زیات غم او فکر کې یئ، په دې وجه باندې موږ تاسو سره خبرې ونه شوې کړای. بیا موږ ولیدل چې ستاسو هغه حالت ختم شو، ویې فرمایل: ددې وجه داوه چې ماته د قبر تنګې او غم او د زینب کمزوري رایاد په دل، دا خبره ما باندې ډیره سخته و. بیا ما الله تعالی ته دعا وکړه، چې دې کې کمی وکړي؛ نو الله تعالی هم داسې وکړل قبر هغې ته داسې زور ورکړ، چې د مشرق او مغرب خلکو به اوریدلی وي.

## د حضرت ابن مسعود رضی الله عنه حدیث

د حضرت ابن مسعود رضی الله عنه د حدیث الفاظ دا دي:

**عن عبدالله بن مسعود قال: إذا أدخل الرجل قبره فإن کان من أهل السعادة ثبته الله بالقول الثابت فیسأل: ما انت؟ فیقول: أنا عبدالله حیا ومیتا وأشهد أن لا إله إلا الله وأشهد أن محمداً عبده ورسوله، قال: فیقال: کذالک کنت! فیوسع علیه قبره ماشاء الله ویفتح له باب إلی الجنة.... الخ. (ابن ابی شیبه ج ۳ ص ۳۷۷، اتحاف ج ١٠ ص ٤١٧)**

ترجمه: د حضرت عبدالله بن مسعود رضی الله عنه نه روایت دی چې کله انسان قبرته داخل کړل شي، نو که چیرې هغه نېک بخته وي. نو الله تعالی هغه له صحیح قول سره ثابت قدم وساتي. له هغه نه پوښتنه وشي چې ته څوک یې؟ هغه ووایي: چې زه د الله تعالی بنده یم. په ژوند کې هم او د مرګ نه وروسته هم، او زه ګواهي ورکوم چې د الله تعالی نه پرته د عبادت څوک لائق (ور) نشته، او زه ګواهي ورکوم چې حضرت محمد ﷺ د الله تعالی رسول او بنده دی. ویې فرمایل: هغه ته به وویل شي چې ته هم داسې وې. دې باندې به هغه ته قبر پراخ کړل شي. څومره چې د الله تعالی خوښه وي. او د هغه له پاره به د جنت دروازه خلاصه شي.

## د حضرت براء بن عازب رضی الله عنه حدیث

دحضرت براء بن عازب رضی الله عنه دروایت الفاظ دادي:

**فينادي منادمن السماء أن كذب عبدي فأفرشوا له من النار، وافتحواله بابا إلى النار، فيأتيه حرهاوسمومها ويضيق عليه قبره حتى تختلف أضلاعه.**

(كنزالعمال ج ۱۵ ص ۶۲۹، ۲۴۳، ابن ابي شيبه ج ۳ ص ۳۸۲)

ترجمه: ددوزخي دحالاتوذكركولوسره يې وفرمايل: داسمان نه يواوازكونكى اعلان وكړي چې: زمابنده دروغ وايي. ده له پاره داور قالينې وغوړوئ او ده له پاره داور طرف ته دروازه خلاصه كړئ، هغه كس ته به داوركرموالى اوتاو(دوپ)رارسيږي اوپه هغه باندې به قبرتنګ كړل شي تر دې پورې چې دهغه پښتې يوپه بل كې ننوځي.

## د حضرت معاذ رضی الله عنه حدیث: دحضرت معاذ رضی الله عنه دحديث الفاظ دادي:

**ألضمة في القبر كفارة لكل مؤمن لكل ذنب بقي عليه ولم يغفرله.** (كنزالعمال ج ۱۵ ص ۶۳۹، ۶۴۲)

ترجمه: قبركې زور وركول دهرمومن له پاره كفاره ده. دهغې ګناه له پاره كومه چې دهغه په ذمه وي، اوهغه نه وي ببښل شوي.

## د حضرت عبيد بن عمير رضی الله عنه حدیث

دحضرت عبيدبن عمير رضی الله عنه دحديث الفاظ دادي:

**ثم يسلب كفنه فيبدل ثيابامن نار، ويضيق عليه حتى تختلف فيه أضلاعة. (مصنف عبدالرزاق ج ۳ص ۵۹۱)**

ترجمه: بيا د هغه نه كفن واخستل شي او دهغه پر ځاى به ورته داورجامې ور واغوستل شي او قبر به په هغه باندې تنګ كړل شي. تر دې پورې چې دهغه ديوطرف پښتې به دبل طرف پښتيو كې ننوځي.

## د حضرت صفيه بنت ابى عبيد حديث

دحضرت صفيه بن ابوعبيد رضی الله عنها دحديث الفاظ دادي:

**وعن نافع قال: أتيناصفية بنت أبي عبيد فحدثتناأن رسول الله ﷺ قال: إن كنت لأرى لوأن احدا اعفى من ضغطة القبرلعفى سعدبن معاذ، ولقدضم ضمة. (مجمع الزوائد ج ۳ ص ۴۷)**

ترجمه: حضرت نافع رضی الله عنه فرمايي چې: مونږ دحضرت صفيه بنت ابى عبيدرضي الله عنها په خدمت كې حاضرشو، (دادحضرت عبدالله بن عمر رضی الله عنهما بى بى وه) نوهغې مونږته وفرمايل چې: رسول الله ﷺ وفرمايل: زماخيال و كه چاته دقبردزور نه معافي كېدلاى شوه، نوحضرت

سعدبن معاذ رضی الله عنه ته به ضرورمعافي شوې وه او په حقيقت کې يوځل هغه ته هم زور ورکړل شوی و.

## د حضرت ابو ايوب رضی الله عنه حديث

دحضرت ابو ايوب انصاري رضی الله عنه دحديث الفاظ دادي:

**وعن أبي أيوب أن صبيادفن فقال رسول الله ﷺ: لوافلت أحدمن ضمة القبر لأفلت هذا الصبي، رواه الطبراني في الكبير ورجاله رجال الصحيح.**

(مجمع الزوائد ج ۳ ص ٤٧، کنزالعمال ج ١٥ ص ١٤٠)

ترجمه: دحضرت ابو ايوب انصاري رضی الله عنه نه روايت دی چې يوماشوم خښ کړل شو. نورسول الله ﷺ وفرمايل: که چېرې څوک دقبر د زورنه محفوظ پاتې کيداي، نوداماشوم به ضرور پاتې شوی و.

## د بدر دواقعې حديثونه

دمسلمانانو عقيده ده چې دانسان دمرګ نه وروسته دهغه دروح دهغه بدن سره تعلق وي، چې دهغه په ذريعه باندې هغه ته دثواب او عذاب احساس کيږي، دبدر دغزا په وخت باندې دکافرانو اويا سرداران مړ شول، نوحضور ﷺ حکم وکړ، دوی تول په کنده کې واچوئ، کله چې تول په کنده کې واچول شول، نو حضور ﷺ هغې کندې ته لاړاو ويې فرمايل: اې دکندې والو! اياتاسو هغه شيان وموندل، دکوموچې تاسوسره مو رب وعده کړې وه؟ ځکه چې ماهغه شی وموندہ دکوم چې ماسره زمارب وعده کړې وه! حضرت عمر رضی الله عنه وفرمايل: تاسو داسې بدنونو سره خبرې کوئ، په کوموکې چې روحونه نشته. حضور ﷺ وفرمايل: زه چې هغوی ته څه وايم، ته يې دهغوی نه ښه نه اورې، په حديثونوکې ددې ذکرموجوددی،

**هل وجدتم ماوعد ربكم حقا؟**

**د حضرت عائشه رضی الله عنها حديث** : دحضرت عائشې رضی الله عنها دروايت الفاظ دادي:

**عن عائشة قالت: أمررسول الله ﷺ بالقتلى أن يطرحوا في القليب، فطرحوا فيه، إلاماكان من امية بن حلف، فانه انتفخ في درعه فملاها فذهبوا يحركوه فتزايل فأقروه والقواعليه ماغيبه من التراب والحجارة، فلما القاهم في القليب وقف عليهم رسول الله ﷺ فقال: يااهل القليب! هل وجدتم ما وعد ربكم حقا؟ فإني وجدت ماوعدني ربي حقا.** (مسنداحمد ج ٦ ص ٢٧٦، ج ٢ ص ٣٨، صحيح بخاري ج١ ص ١٨٣، صحيح مسلم ج١ ص ٣٠٣، البدايه والنهايه ج ٣ ص ٢٩٣)

ترجمه: حضرت عائشه رضی الله عنها فرمايي چې حضور ﷺ په بدرکې دقتل شويو خلکوباره کې حکم وکړ، چې دوی تول په يوې کندې کې واچوئ، هغوی يوې کندې ته واچول شول. خوداچې

امیه بن خلف په خپلې زغرې کې پړسیدلی و. دهغه په وجه باندې هغه غټ شوی و. هغه ته یې چې حرکت ورکړ. نونورهم غټیدو. هغه هم هغه شان پرېښودل شو اوهغه باندې څه داسې شي واچول شو. چې هغه یې په کې پټ کړ. یعنې خاورې اوکاڼي. کله چې صحابه کرامو رضی الله عنهم هغوی په کنده کې واچول. نورسول الله صلی هغوی ته ودریدا او ویې فرمایل چې اې دکندې والو! ایاتاسوهغه شیان وموندل. دکوم چې تاسو سره ستاسورب وعده کړې وه؟ ځکه چې ماخوهغه څه وموندل دکوم چې ماسره زمارب وعده کړې وه.

## د حضرت انس رضی الله عنه حدیث

دحضرت انس رضی الله عنه دروایت الفاظ دادي:

**عن أنس قال: كنامع عمربين مكة والمدينة أخذ يحدثنا عن أهل بدر. فقال: إن رسول الله صلی الله علیه وسلم ليرينامصارعهم بالأمس، قال هذامصرع فلان إن شاء الله غداً. قال عمر: والذى بعثه بالحق! ماأخطؤاتيک فجعلوفى بير. فأتاهم النبي صلی الله علیه وسلم فنادى: يافلان بن فلان! يافلان بن فلان! هل وجدتم ماوعدربكم حقا؟ فإني وجدت ماوعدنى الله حقا! فقال عمر! تكلم اجسادا لاأرواح فيها؟ قال: ماأنت بأسمع لماأقول منهم! (نسائي ج ۱ ص ۲۹۳، ابن ابي شيبه ج ١٤ ص ۳۷۹، مسلم ج ۱ ص ۳۰۳، ج ۲ ص ۳۸۷، مسنداحمد ج ۳ ص ۱۰٤، ۱٤٥، ۲٦۳، ۲۸۷، اتحاف ج ٥ ص ۲۳، دلائل النبوة ج ۳ ص ٤٨، درمنثور ج ٥ ص ١٥٧)**

ترجمه: دحضرت انس رضی الله عنه نه روایت دی هغه فرمايي چې: موږ د حضرت عمر رضی الله عنه سره دمکې اومدینې په مینځ کې وو. نوحضرت عمر رضی الله عنه موږ ته داهل بدرپه باره کې بیان شروع کړ. ویې فرمایل چې: رسول الله صلی الله علیه وسلم دمابنام په وخت کې موږته دهغوی دقتل کیدوځایونه وښودل، ویې فرمایل چې: انشاء الله صبابه دا د فلاني سړي دقتل ځای وي. حضرت عمر رضی الله عنه فرمايي چې: قسم مې دې وي په هغه ذات باندې کوم چې محمد صلی الله علیه وسلم ربښتونی نبي راليږلی دی. چې هغه خلک دهغه ځای نه یوې بلې خواته نه شول. هغوی په یوه کنده کې واچول شول، بیاحضور صلی الله علیه وسلم هغوی ته ورغی او ویې فرمایل: اې دفلاني زویه! اې دفلاني زویه! ایا تاسو هغه څه وموندل چې ستاسو رب درسره وعده کړې وه؟ ځکه چې الله تعالی ماسره کومه وعده کړې وه. هغه خومارښتونې وموندله. حضرت عمر رضی الله عنه وفرمایل: چې تاسوداسې بدنونوسره خبرې کوئ، کوموکې چې روح نشته؟ حضور صلی الله علیه وسلم وفرمایل: زه چې دوی ته څه وایم، ته یې ددوی نه ښه نه اورې.

## د حضرت عبد الله بن عمر رضی الله عنهما حديث:

دحضرت عبد الله بن عمر رضی الله عنهما د روايت الفاظ دادي

حدثنی نافع أن ابن عمر أخبره قال: إطلع النبي ﷺ على أهل القليب فقال: هل وجدتم ماوعدربكم حقا؟ فقيل له: تدعوا أمواتا؟ قال: ماأنتم بأسمع منهم، ولكن لايجيبون. (صحيح بخاري ج ١ ص ١٨٣، صحيح مسلم ج ١ ص ٣٠٣، نسائی ج ١ ص ٢٩٣، مسند احمد ج ١ ص ٣٨، ١٣١، ابن ابي شيبه ج ١٤ ص ٣٧٧، البدايه والنهايه ج ٣ ص ٢٩٣)

ترجمه: دحضرت ابن عمر رضی الله عنهما نه روايت دی چې حضور ﷺ دهغې کندې طرف متوجه شو په کومه کې چې دبدر مړي اچول شوي وو. وبې فرمايل: اياتاسو هغه څه وموندل دکومو چې ستاسو رب تاسو سره وعده کړې وه. ورته وويل شو: چې اياتاسو مړوته خبرې کوئ؟ وبې فرمايل: ته زماخبره ددوی نه ښه نه اورې. خودوی يواځې ځواب نه شي ورکولای.

## د حضرت ابن عباس رضی الله عنهما حديث

دحضرت عبد الله بن عباس رضی الله عنهما د روايت الفاظ دادي:

أخرج أبوسهل السری ابن سهل الجندنيسابوری الخامس من حديثه من طريق عبدالقدوس عن أبي صالح عن ابن عباس رضی الله عنهما فی قوله: إنک لاتسمع الموتی. وماأنت بسمع من فی القبور. قال: كان النبي ﷺ يقف على القتلى يوم بدرويقول: هل وجدتم ما وعدربكم حقا؟ (درمنثور ج ٥ ص ٢٤٩)

ترجمه: دحضرت ابن عباس رضی الله عنهما نه د إنک لاتسمع الموتی او وماأنت بمسمع من فی القبور (بې شکه تاسو مړي نه شی اورولی) او (تاسو هغوی نه شی اورولئ کوم چې قبرکې دي) په تفسيرکې نقل دي چې: حضور ﷺ دبدر په ورځ قتل شويو خلکوته ولاړ واوداسې يې فرمايل چې: کومه وعده چې تاسو سره ستاسو رب کړې وه. هغه تاسو رښتونې وموندله.

## د حضرت ابو طلحه رضی الله عنه حديث

دحضرت ابوطلحه رضی الله عنه د روايت الفاظ دادي:

عن ابن طلحة أن نبي ﷺ أمريوم بدربأربعة وعشرين رجلامن صناديد قريش، فقذفوافی طوی من اطواء بدرخبيث مخبث وكان إذاظهرعلى قوم أقام بالعرصة ثلاث ليال فلمان كان ببدراليوم الثالث أمر براحلته فشدعليها رحلهاثم مشى وأتبعه أصحابه وقالوا مانرى ينطلق إلالبعض حاجته حتى قام على شفة الركی فجعل يناديهم بأسمائهم وأسماء أباء هم: يافلان بن فلان! ويافلان بن فلان! أيسركم إنكم أطعتم الله ورسوله؟ فإناقدوجدناماوعدنا ربناحقا! فهل وجدتم ماوعدربكم حقا؟ قال: فقال عمر: يارسول الله ﷺ! ماتكلم من اجسادلاأرواح

لها؟ فقال النبي ﷺ: والذي نفس محمد بيده! ما أنتم بأسمع لما أقول منهم. (صحيح بخاري ج ۲ ص ٥٦٦، مسند احمد ج ٤ ص ۲۹)

ترجمه: دحضرت ابو طلحه رضی الله عنه نه روایت دی چې: حضور ﷺ دبدر په ورځ څلېرویشتو سړو باره کې چې دقریش سرداران وو، حکم وکړ چې دوی دبدر په ګنده کنده کې واچوئ او حضور ﷺ به چې کله په یو قوم باندې غالب شو، نوهغه میدان کې به درې ورځې اوسیده. کله چې دریمه ورځ شوه حضور ﷺ دخپلې سورلۍ باره کې حکم وکړ، په هغه باندې کجاوه کېښودل شوه. بیا ولاړ او صحابه کرام رضي الله عنهم هم ورسره وو. موږ ته پته نه وه چې حضور ﷺ دکوم کار په غرض باندې ولاړ. تردې چې دهغې کندې خواکې ودرید. دهغوی او دهغو دپلرنو نومونه یې واخستل او ویې ویل: اې فلانیه دفلاني زویه! دفلاني زویه! ایا تاسو ته داخبره ښکاره شوه چې تاسو دالله تعالی او دهغه رسول ﷺ خبره منلې وای؟ ځکه چې موږ سره خپل رب څه وعده کړې وه، هغه مو رښتونې وموندله او ایا تاسو هغه وعده چې خپل رب درسره کړې وه رښتونې وموندله؟ روایت کونکی وایي چې حضرت عمر رضی الله عنه وویل: چې اې رسول الله ﷺ تاسو له داسې بدنونو سره خبرې کوئ. کومو کې چې روحونه نشته؟ حضور ﷺ وفرمایل: قسم مې دې وي په هغه ذات چې دهغه په قبضه کې دمحمد ﷺ ساه ده، ته زما خبره ددوی نه ښه نه اورې.

## د حضرت موسی بن عقبه رضی الله عنه حدیث

دحضرت موسی بن عقبه رضی الله عنه دروایت الفاظ دادي:

**وأمر رسول الله ﷺ بقتلى قريش من المشركين فألقوا في قليب بدر ولعنهم وهو قائم يسميهم بأسماء هم غير أن أمية بن خلف كان رجلا مسمناً فانتفخ في يومه فلما أرادوا أن يلقوه في القليب تفقأ، فقال رسول الله ﷺ: دعوه! وهو يلعنهم، هل وجدتم ما وعدكم ربكم حقاً؟ (دلائل النبوة ج ۳ ص ۱۱۷)**

ترجمه: حضور ﷺ دقریش قتل شویو خلکو باره کې حکم وکړ. هغوی دبدر په کنده کې واچول شول، او هغوی باندې یې لعنت وکړ، او حضور ﷺ ولاړ و، دهغوی او دهغو دپلرنو نومونه یې اخستل، له امیه بن خلف نه پرته. هغه چاغ سړی و او هغه ورځ باندې پړسیدلی و، خلکو چې کله دهغه په کنده کې دغورځولو اراده وکړه، نوهغه وشلید. حضور ﷺ وفرمایل، دی پرېږدئ! او حضور ﷺ لعنت پرې وکړ او دا یې وویل چې: کومه وعده چې تاسو سره ستاسو رب کړې وه، ایا تاسو هغه رښتونې وموندله او که نه؟

## دقبر خاوند ته عذاب مه ورکوئ

قبر دخاورو ډیرۍ نه ده بلکې دجنت دباغونو نه یو باغ دی، یا ددوزخ له کندونه یوه کنده ده.

قبر والاوو ته نه یوازې دعذاب اوثواب پته لګیږي. بلکې قبرباندې دکیناستو یاختلو په وجه باندې هغوی ته تکلیف هم رسیږي. حضور ﷺ هدیرې ته دتللو اداب بیان کړي دي. په لاندې حدیثونو کې یې ذکرموجود دی:

**عن زیاد بن نعیم أن بن حزم أباعمارة أوأباعمرو قال: رأني النبي ﷺ وأنا متکی علی قبر فقال: قم! لاتؤذ صاحب القبر أو یؤذیک.** (البغوي، کنزالعمال ج ۱۵ ص ۷۵۹، حدیث ۴۲۹۸۸)

ترجمه: حضرت ابوعماره رضی الله عنه یا ابوعمرو رضی الله عنه فرمایي چې: حضور ﷺ زه ولیدم چې قبرته مې ډډه وهلې وه اوناست وم. حضور ﷺ وفرمایل جګ شه! قبروالاته تکلیف مه رسوه. یایې وفرمایل: چې قبرته ډډه مه وهه. ددې په وجه باندې به تاته عذاب درکړل شي.

**عن عمروبن حزم قال: رآی النبي ﷺ وأنامتکی علی قبر، قال: لاتؤذ صاحب القبر.** (ابن عساکر، مسنداحمد، کنزالعمال ج ۱۵ ص ۷۶۰، حدیث ۴۲۹۹۰)

ترجمه: عمروبن حزم رضی الله عنه فرمایي چې: حضور ﷺ ولیدم چې ماقبرته ډډه وهلې ده اوناست یم، حضور ﷺ وفرمایل: چې قبروالا ته تکلیف مه رسوه.

**عن عمارة بن حزم رضی الله عنه قال: رأني رسول الله ﷺ جالساعلی قبر، قال: أنزل عن القبر! لاتؤذي صاحب القبر ولایؤذیک!** (طبراني، مستدرک، عماره بن حزم ج ۳ ص ۵۹۰، شرح معاني الاثار ج ۱ ص ۳۴۶، کنزالعمال ج ۱۵ ص ۶۵۷، حدیث ۴۲۶۰۵، ترغیب ج ۴ ص ۳۷۴، مجمع الزوائد ج ۳ ص ۶۱)

ترجمه: دحضرت عماره بن حزم رضی الله عنه نه روایت دی چې حضور ﷺ زه قبرباندې ناست ولیدم، نووېې فرمایل: قبروالاته تکلیف مه رسوه! قبرنه کوزشه! چې ستاداعمل ستاله پاره داخرت دعذاب ذریعه جوړه نه شي.

له ذکر شویو حدیثونونه ثابت شو چې:

۱: دقبرعذاب اوثواب حق دي.

۲: دعذاب اوثواب تعلق هم دې کندې سره دی، کومې ته چې عام طورباندې قبرویل کیږي، په حدیث کې یې وضاحت شوی دی چې: **القبرروضة من ریاض الجنة أوحفرة من حفرالنار.** (قبر دجنت په باغونو کې یوباغ دی، یادوزخ په کندوکې یوه کنده ده.)

۳: اودا هم ثابت شو چې دقبردعذاب اوثواب له پاره حدیثونه متواتر راغلي دي، اوله دې نه انکار دیومسلمان له پاره (چې په الله تعالی اودهغه په رسول ﷺ باندې ایمان لري) ممکن نه دی.

۴: دبرزخ معاملات دعامو خلکوپه احساس اومشاهده کې نه راځي، په دې وجه باندې یوازې دخپلواحساساتو ومشاهداتوپه وجه باندې دقبَردعذاب اوثواب نه انکارکول غلط دي، موږ ته د حضور ﷺ په ارشاداتو اومشاهداتوباندې ایمان لرل ضروري دي اوهغه د

ضرورت مطابق پورته بیان شوي دي، کوم چې دیو مومن له پاره کافي دي.
تراوسه پورې موږ د عامو مړیو باره کې خبرې وکړې اودا مووویل چې دهغوی ثواب اوعذاب متواتردی. چې په هغه کې دهیڅ قسمه شک ګنجائش نشته اوپه دې باندې ایمان راوړل فرض دي. اوله دې نه دانکارکونکي په حق کې دکفرویره ده
اوس به موږ دې باندې خبرې کوو چې انبیاء کرام علیهم السلام اوخاص طورباندې دسیدالانبیاء سیدناحضرت محمدرسول الله ﷺ په خپل قبرکې ژوندي کیدل اوقبرکې دژوند ټول کارونه اداکول حق دي. اوپه دې باندې دامت اتفاق دی. پورته بیان شوي تقریبا یونیم سل حدیثونه دانبیاء کرام علیهم السلام ژوند،کوم چې له عامو مړیو. شهیدانو اوصدیقینونه غوره دي، دلالت النص نه ثابت دی. محدث العصرحضرت مولانامحمدیوسف بنوري قدس سره دخپل خاص ملګري حضرت مولاناسیداحمدرضابجنوري رحمه الله په نوم لیکل شوي یوخط کې لیکلي دي:
۱: شهیدانونه دقران دایت له وجې ژوندحاصل دی. اودشک ختمولو له پاره "یرزقون. هم ذکرشوي دي، څنګه چې نن سبامحاوره هم ده: فلان حی یرزق، دعام اهل برزخ نه دهغوی ژونداعلی دی.
۲: کله چې دانبیاوو علیهم السلام درجه له عامو شهیدانونه غوره ده نوپه دلالة النص یابالاولی پخپله دقران کریم نه دهغوی ژوندثابت دی(علیهم الصلوات والتسلیمات) اوکله چې مرتبه پورته اواعلی ده نوژوندبه یې هم قوي اوکامل وي.
۳: ددې ژوند دکاملیت باره کې دوه حدیثونه راغلي دي:
۱: إن الله حرم على الأرض أن تأكل أجساد الأنبياء.
۲: ألأنبياء أحياء في قبورهم يصلون.
اودې نه پرته هم نوروبیررو ایتونه موجوددي .... اوپه دې حدیثونودګواهي په توګه باندې نوروبیرصحیح احادیث هم موجود دي. مثلاً دموسی علیه السلام دحج تلبیه .
۴: دروح بدن سره پنځه قسمه تعلقات دي:
(۱) فی حالة الجنین.
(۲) بعدالولادة فی الدنیااوددې دوه صورتونه دي.
(۳) حالت نوم کې اوحالت یقظة کې.
(۴) دمرګ نه وروسته برزخ کې.
(۵) بعد البعث فی الحشر.
تر ټولو ضعیف لومړی اوڅلورم دی. دټولونه قوي پنځم اومینځنی دی. كماحققه المتكلمون وابن القيم في كتاب الروح والقاري في شرح الفقه الأكبر.

۵: دانبياء عليهم السلام (خوب) چې څنګه دعامو خلکو له خوب نه جلا (ممتاز) دی (إن عيناي تنامان ولاينام قلبي) هم دغه راز دهغوی مړي هم دعامو مړيو په شان نه دي، النوم اخ الموت، اوعامو مړيو کې تحقيق دادی. چې دهغوی دروح تعلق بدن په پوره توګه ختم شي اودلته په پوره ډول نه ختميږی اوبياچې څومره مرتبه پورته وي، هغومره به تعلق هم قوي وي
۶: دمفارقة الروح عن الجسد نه مفارقت تعلق الروح عن الجسد لازم نه راځي.
۷: که چېرې دنبي کريم ﷺ بدن مبارک ته دتروح حالت حاصل وي. څنګه چې معراج کې بدن باندې دروح کيفيت طاري و. تجسد ارواح اوتروح اجساد .ددواړو مثالونه په دنياکې موجوددي. نود عالم ارواح نه ولې استعباد وشي اودهغه تعلق عالم غيب سره دی.
۸: دنياکې دصوفياء کرامودمثالي بدنونوتعدد په يووخت کې.په متعددو ځايونو کې ښکاره کيدل اوداثارو په ثبوت باندې مشهور واقعات دي. دانبياء کرام عليهم السلام حرکت بالاجساد المتروحه به ددې مثال وي.
۹: غرض داچې دانبياء کرامو له پاره دجسد دبقاژوند ، نقل اوحرکت ،علم اوپوهه ټول شيان حاصل دي.
۱۰: داژوند ددنياوي ژوند په شان بلکې له هغه نه قوي دی. دنيا کې همېشه بدن ته دروح خاصيت حاصل نه وي اوپه برزخ کې حاصل وي اوس که چېرې داژوندځينو عالمانو ددنياژوند سره تعبير کړی دی، نوددې حقيقت واضح کولوله پاره دې، په هرحال کې هغه دنياوي ژوند هم دی اوبرزخي هم، يواځې برزخي ژوندنه دی کوم کې چې عام شهيدان اومړي هم شريک دي، بلکې قوي اومکمل ژوند دی. په دې وجه باندې ددنيادژوند په شان دی. بلکې ددې نه هم قوي دی.
د تعبيراتو په اختلاف کې نزاع لفظي ده.له دې دنيانه دَرسمي تعلق ختميدونه وروسته د برزخ دور شروع شي، اوس موچې څه خوښه وي هغه نوم ورکړئ.
۱۱: که چېرې حديثونوکې دژوندثبوت دی اوبياله ازواج مطهرات سره دنکاح نه جواز او دهغه مال په ميراث نه پاتې کېدل او داسې نورو .. ته دژونداصلي علت وويل شي، نو صحيح دی په هرحال دشرعي حکم چې څنګه علت وي اودلته علت (من قبيل علل المعتبرة) دی نه د (علل مرسله) له قسم نه اوددې علت تنقيح. ددتنقيح اصول المناط اوتحقيق المناط نه ډيرقطعي دی. (بينات شعبان ۱۳۸۸ هـ)
دخيرالقرون نه ترڅوارلسمې پېړۍ پورې په دې مسئله کې دهيڅ قسمه اختلاف اوتفرق نه و .بلکې دامت ټولواکابرينوپه خپلوخپلو کتابونوکې په خپل خپل اندازکې ددې مسئلې وضاحت کړی دی. تردې پورې چې په اسلافواواکابرينوکې ځينو دې باندې مستقلې رسالې هم ليکلې دي اوثابت کړي يې دي چې دانبياء عليهم السلام دژوندمسئله

بالکل واضحه. ښکاره او دټول امت داتفاق عقیده ده اوځنګه چې دشهیدانو ژوند دقران کریم نه ثابت دی. همدارنګه دانبیاء علیهم السلام ژوند هم د دلالت النص په طور دقران کریم نه ثابت دی. خو هغه هلاک وي چې دتحقیق په نوم یې باندې جهالت اودسنت په نوم باندې بدعت ته رواج ورکړ. چې دهغه په وجه باندې تش په نوم محققینو یوطرف ته له نورواتفاقي مسائلو نه رجوع وکړه. بل طرف ته یې له دې عقیدې نه هم انکاروکړ. محدث العصرحضرت بنوري رحمه الله لیکي:

دانبیاء کرام علیهم الصلوات والتسلیمات دوفات نه وروسته دژوند مسئله بالکل صفااو واضحه ده. دشهیدانوژونددقران نه ثابت دی اودلالة النص نه دانبیاء کرام ژونددقران نه ثابت دی اودنبي کریم ﷺ دحدیثونو نه دعبارة النص په ذریعه باندې ثابت دي. خوداتریخ حقیقت دی چې داختلاف اوفتنې له وجې یوحقیقت دبحث په وجه باندې شکمن شو. څومره تاریخي بدهیات بې علمه بحثونونظري جوړ کړل اوڅومره شرعي حقیقتونه یې خراب کړل. دادنیاده اوددنیاپه مزاج کې داخل دي چې دلته هردورکې بې علمه،ګنده اوبې علمه بحثونه موجودوی. ژبې بندول خوداالله تعالی په قدرت کې دي، دملاحده اوزنادقه ژبې کله بندیدای شي؟ ایاپه دې دورکې دحضرت امام حسین رضي الله عنه شهادت ته ټوکه نه ده ویل شوې؟ او وویل شول چې دابالکل واقعه نه ده اوایاامام حسین رضي الله عنه باغي،واجب القتل اویزیدبن معاویه رضي الله عنه امیرالمؤمنین اوحق خلیفه نه دی ثابت کړل شوی؟ دیوصحیح حدیث دضعیف ثابتولوله پاره دیورواې باره کې داسماء رجال په کتابونو کې یوازې دجرح څه کلمه لیدل کافي دي چې په هغه باندې بنیادقائم کړل شي؟ که چېرې دعقل نه کار وانه خستل شي اویوازې په یوکتاب کې جرح وکتل شي. نوداامام ابوحنیفه رحمه الله.امام مالک رحمه الله، امام شافعي رحمه الله، امام احمد رحمه الله په مجروح کیدوسره به ددین رښتنی دولت ختم شي.

غرض داچې دانبیاء علیهم السلام دژوندمسئلې نه هم دهمدارنګه بې علمه بحثونوپه وجه باندې فتنه جوړه شوې ده. عصمت خودانبیاء علیهم السلام خاصیت دی. عالمان خومعصوم نه دي ،څه حضراتوعلماوو په قصد یاخطاسره حدیثي اوکلامي بحثونه پیداکړي دي اوداسې نظر ورکول کیږي چې دې سره توسل بالأموات اودالله نه پرته استعانت او داسې نور... ډیربدعتونه ختم شي. یعنې دا علاج یې تجویز کړی دی چې دانبیاء علیهم السلام دژوندنه انکارکولوسره به داټول مفاسد ختم شي. ددې مثال خو دباران نه پټیدو له پاره دناوې لاندې کیناستل دي. په هرحال ددې دتفصیلاتو ضرورت نشته. دمعاملې ختمولوله پاره دفکر او اخلاص خاوندانو دیوڅوحضراتونومونه تجویزکړل. چې ددې اختلاف چې دفتنې شکل یې اختیارکړی دختمولوله پاره کوشش شي، دراقم الحروف نوم هم هغوی کې شامل و، تجویز داوشوچې په دې موضوع باندې یوتحقیقي کتاب په ښه اندازکې ولیکل شي اوشک پیدا کونکو حضراتو د شکونوځواب ورکړل شي اودمسئلې په ټولو اړخونو

باندې پوره تبصره وشي، اتفاق سره ددې کارکولوله پاره محترم ورور ماثر مولانا ابوالزاهد محمد سرفرازصاحب منتخب شو، چې دهغه په دماغوکې دبحث اوتمحیص صلاحیت هم موجود دی اوقلم کې پختګي هم ، دینی علومو ،علم حدیث اواسماء رجال سره ښه اود قدر قابل مناسبت لري، بلکې اعلی بصیرت هم ،دمختلفو ځایونونه دموادو راجمع کولوقدرت هم ورته حاصل دی اودښه ترتیب اهلیت هم. الحمدالله چې موصوف دامیدنه ښه اوډیرو موادو جمع کولوسره ټول اړخونه ښه صحیح طورباندې واضح کړل اودتحقیق حق یې اداکړ. زمادناقص خیال مطابق دالیکنه (دزړه دسکون له پاره في تحقیق احوال الموتی فی البرزخ والقبور) په مسئله کې مکمل ترین کتاب دی اوپه دې دورکې چې څومره کتابونه په دې مسئلې باندې لیکل شوي دي، هغه ټولوکې مکمل، واضح او علمي بلکې تحقیقي دی.الله تعالی دې دموصوف داخدمت قبول کړي اوهغه ته دې دنوروخدماتوموقع ورکړي.(تسکین الصدورص ۲۲ تا۲۴)

له دې تمهید نه وروسته اوس موږ په ترتیب سره دقران اوسنت اود امت داتفاق په حواله حیات النبي ﷺ باندې یوڅوګذارشات وړاندې کوو، دټولونه مخکې حیات الانبیاء دقران کریم په رڼاکې.

## حیات الانبیاء دقران په رڼاکې

قران کریم کې په ډیرځایونوکې دانبیاء علیهم السلام ژوند، اشارتا، دلالتا اواقتضاء موجوددي، ددې ټولو راټولول مشکل دي اوداوړدوالي وېره هم ده، په دې وجه باندې مختصرطورباندې یوڅو ایتونه دلته وړاندې کیږي:

,,وَسْـَٔلْ مَنْ أَرْسَلْنَا مِن قَبْلِكَ مِن رُّسُلِنَآ أَجَعَلْنَا مِن دُونِ ٱلرَّحْمَٰنِ ءَالِهَةً يُعْبَدُونَ ﴿٤٥﴾،،(سوره الزخرف ۴۵)

ترجمه: اوتاسوله هغو پیغمبرانونه چې موږ له ستانه مخکې لیږلي و، پوښتنه وکړئ چې ایاموږ دالله تعالی نه پرته بل څوک دعبادت لائق ګرځولي و، چې دهغوی عبادت وکړل شي.

له دې ایت لاندې صاحب زادالمسیرلیکي:

أنه لما أسری به جمع له الأنبياء فصلی بهم، ثم قال له جبریل سل من أرسلنا قبلك، الاية، فقال: لاأسأل، قدا كتفيت، رواه عطاء عن ابن عباس وهذا قول سعيدبن جبيروالزهری وابن زيد،قالوا: جمع الرسل ليلة اسری به فلقيهم وأمرأن يسالهم فماشك ولاسأل.(زادالمسيرفی علم التفسيرج۷ ص ۳۱۹)

ترجمه: کله چې حضور ﷺ باندې معراج وکړل شو، نودحضور ﷺ له پاره ټول انبیاء علیهم السلام راجمع کړل شو، حضور ﷺ په لمانځه کې دهغوی امامت وکړ، بیاحضرت جبریل علیه السلام

حضور ﷺ ته وویل: چې تاسوله دې ټولو پیغمبرانو نه پوښتنه وکړئ. کوم چې مونږ له تاسو نه مخکې لیږلي دي.....الخ. حضور ﷺ وفرمایل: ماته دسوال کولو ضرورت نشته. ماپه دې باندې صبر وکړ (څه چې ماته ویل شوي دي).

حضرت سعید بن جبیر، زهري او ابن زید فرمایي: چې د معراج په شپه حضور ﷺ له پاره ټول انبیاء علیهم السلام راجمع کړل شو. په دې وخت کې حضور ﷺ له هغوی سره ملاقات وشو او حضور ﷺ ته حکم وشو چې تاسوله دوی نه پوښتنه وکړئ. حضور ﷺ ته هیڅ شک نه و او نه حضور ﷺ پوښتنه وکړه.

تفسیر کبیر کې دي.

**قال عطاء عن ابن عباس رضي الله عنهما لماأسری به ﷺ إلی المسجی الأقصی بعث الله له آدم وجمع المرسلین من ولده فأذن جبریل ثم أقام فقال: یامحمد! تقدم فصل بهم. فلما فرغ رسول الله ﷺ من الصلاة قال له جبریل علیه السلام، واسأل یامحمد من أرسلنا من قبلک من رسلنا، الایة. فقال ﷺ لاأسأل لأني لست شاکاً فیه. (تفسیر کبیر ج ۲۷ ص ۲۱۶)**

ترجمه: حضرت عطاء له حضرت ابن عباس رضي الله عنهما نه نقل کړي دي. چې کله حضور ﷺ معراج ته بوتلل شو. چې کله حضور ﷺ مسجد اقصی ته ورسید. نو الله تعالی حضرت ادم علیه السلام او باقي ټول انبیاء علیهم السلام کوم چې دادم علیه السلام اولادکې وو. ټول راجمع کړل. حضرت جبرئیل علیه السلام اذان او اقامت وکړ او ویې ویل: اې محمده ﷺ! مخکې شه. دوی ته لمونځ ورکړه، کله چې حضور ﷺ دلمانځه نه فارغ شو. نو حضرت جبرئیل علیه السلام وفرمایل: اې محمده! له دوی نه پوښتنه وکړه چې مونږ له تاسو نه مخکې رسولان کړي وو. حضور ﷺ وفرمایل چې زه دوی نه هیڅ پوښتنه نه کوم او ماته دې کې هیڅ شک نشته.

تفسیر قرطبي کې د دې نور تفصیلات داسې بیان شوي دي:

**لماأسری برسول الله ﷺ من المسجد الحرام إلی المسجد الأقصی، وهو مسجد بیت المقدس، بعث الله له آدم ومن ولد من المرسلین، وجبرئیل مع النبي ﷺ. فأذن جبریل علیه السلام ثم أقام الصلاة، ثم قال: یامحمد! تقدم فصل بهم. فلمافرغ رسول الله ﷺ قال له جبریل علیه السلام: سل یامحمد من أرسلنا من قبلک من رسلنا أجعلنا من دون الرحمن الهة یعبدون، فقال: رسول الله ﷺ: لاأسأل قد اکتفیت، قال ابن عباس: وکانوا سبعین نبیاً منهم ابراهیم وموسی وعیسی علیهم السلام. فلم یسألهم لأنه کان أعلم بالله منهم. في غیر روایة ابن عباس: فصلوا خلف رسول الله ﷺ سبعة صفوف، المرسلون ثلاثة صفوف والنبیون أربعة، وکان یلي ظهر رسول الله ﷺ ابراهیم خلیل الله، وعلی یمینه اسماعیل وعلی یساره اسحاق ثم موسی، ثم سائر المرسلین**

فأمهم ركعتين، فلما انفتل قام فقال: إن ربي أوحى إليّ أن أسألكم هل أرسل أحد منكم يدعو إلى عبادة غيرالله؟ فقالو: يامحمد! انانشهدانا أرسلنا اجمعين بدعوة واحدة أن لااله إلاالله وأن مايعبدون من دونه باطل، وأنک خاتم النبين وسيدالمرسلين، قداستبان ذالک لنابإمامتک إيانا، وأن لانبي بعدک إلى يوم القيامة إلاعيسى بن مريم فإنه مأمورأن يتبع أثرک.

ترجمه: كله چې حضور ﷺ دمسجدحرام نه مسجداقصى ته معراج باندې بوتلل شو.نوالله تعالى حضرت ادم علیہ السلام اودهغه په اولادكې چې كوم انبياء كرام و.هغوى يې راجمع كړل. جبرائيل علیہ السلام هم حضور ﷺ سره موجودو. جبرائيل علیہ السلام اقامت اواذان وكړل اوويې ويل: . اې محمده! مخكې شه اودوى ته لمونځ وركړه. كله چې حضور ﷺ فارغ شو. نوحضرت جبرئيل علیہ السلام عرض وكړ.اې محمد ﷺ تاسوپوښتنه وكړئ له دې رسولانونه كوم چې له ستاسونه مخكې ليږل شوي وو.چې اياموږ دالله تعالى نه پرته څوک دعبادت لائق ګرځولي و، چې دهغه عبادت وشي؟ حضور ﷺ وفرمايل: چې ماته دپوښتنې كولوضرورت نشته. ماپه دې باندې صبركړى دى په هغه څه چې ماته ويل شوي دي.

ابن عباس رضی اللہ عنہما فرمايي چې هلته اوياانبيان موجود وو. په هغوى كې حضرت ابراهيم. حضرت موسى. اوحضرت عيسى عليهم السلام هم و. حضور ﷺ دهغوى نه هيڅ پوښتنه ونه كړه. ځكه چې حضور ﷺ ته دالله تعالى دطرف نه دهغوى نه زيات علم و. دابن عباس رضی اللہ عنہما دې روايت نه پرته بل روايت كې دي چې: حضور ﷺ پسې شاته اوو صفونه ول. په هغو كې درې صفونه درسولانواوڅلوردنبيانو وو. دحضور ﷺ شاته حضرت ابراهيم علیہ السلام اوښي طرف ته حضرت اسماعيل علیہ السلام اوچپ طرف ته حضرت اسحاق علیہ السلام. بياموسى علیہ السلام اوبياعيسى علیہ السلام اوبيا نور ټول انبياء كرام وو. حضور ﷺ هغوى ته دوه ركعته لمونځ وركړ. كله چې حضور ﷺ له لمانځه نه فارغ شو. نوودريد اوويې فرمايل: بې شكه زمارب ما ته وحي وكړه چې زه تاسونه پوښتنه وكړم چې اياتاسوكې يوداسې رسول ليږل شوى و.چاچې به خلک دغيرالله دعبادت طرف ته رابلل او دعوت به يې وركاو؟ هغوى ټولووويل: اې محمد ﷺ موږ ګواهي وركووچې موږليږل شوي يو.ديوالله تعالى طرف ته ددعوت له پاره اوداچې بل څوک دعبادت لائق (ور)له الله تعالى پرته نشته اوداچې كوم خلک دالله تعالى نه پرته دچاعبادت كوي هغه ټول باطل دي. اوبې شكه تاسوخاتم النبين يئ اودټولو رسولانو سردار يئ اوداخبره له دې نه واضحه شوه چې تاسو زموږ امامت وكړ اوداچې ستاسونه پرته به دقيامت ترورځې پورې بل نبي نه راځي.دعيسى بن مريم نه پرته اوهغه په دې باندې ماموردى چې هغه ستاسواتباع وكړي.

همدارنګه له دې ايت نه په حيات الانبياء باندې استدلال كولوسره خاتم المحدثيين علامه سيدانورشاه كشميري رحمہ اللہ فرمايي:

يستدل به على حياة الأنبياء. (مشكلات القران ص ۲۳٤، درمنثور ج ٦ ص ١٦، روح المعاني ج ٢ ص ٢٥، جمل ج ٤ ص ٨٨، شيخ زاده ج ٣ ص ٢٩٨، خفاجى ج ٤ ص ٤٤٤)

۲: ايت ,,وَلَقَدْ ءَاتَيْنَا مُوسَى ٱلْكِتَـٰبَ فَلَا تَكُن فِى مِرْيَةٍ مِّن لِّقَآئِهِۦ (سورة الم سجده ۲۴)

ترجمه: او مونږ موسى عليه السلام ته كتاب وركړى و. نو ته له هغه سره په ملاقات كې هيڅ شک مه كوه!

ددې ايت په تفسير كې حضرت شاه عبد القادر صاحب رحمة الله عليه فرمايي:

د معراج په شپه بې هغه سره ملاقات شوى وا ونورهم ډيرځله. (موضح القران)

او ملاقات دژوندنه پرته ممكن نه دى. دې ايت كې داقتضاء النص نه د حضور ﷺ دژوند ثبوت ښكاره كيږي. دلته داصول فقه دامسئله هم مخې ته ساتل پكاردي چې كوم حكم داقتضاء النص نه ثابت وي هغه انفرادي قوت او استدلال كې دعبارت النص په شان وي.

همدارنګه علامه آلوسي رحمة الله عليه فرمايي:

**وأراد بذالک لقائه ﷺ اياه ليلة الأسراء كماذكر في الصحيحين وغيرهما، وروي نحوذالک عن قتادة وجماعة من السلف.... وكان المراد من قوله تعالى: ,,وَلَقَدْ ءَاتَيْنَا مُوسَى ٱلْكِتَـٰبَ فَلَا تَكُن فِى مِرْيَةٍ مِّن ـهِ بِٱلْقِل،، على هذا وعده تعالى نبيه عليه السلام بلقاء موسى وتكون الأية نازلة قبل الأسراء.**

**(روح المعاني ج ٢١ ص ١٣٨)**

ترجمه: له دې نه مراد دادي چې د معراج په شپه حضور ﷺ د حضرت موسى عليه السلام سره ملاقات شوى و. څنګه چې په صحيحين وغيره كې دي او هم همدارنګه يوبل روايت د حضرت قتاده رضي الله عنه او دبزرګانو ديوې ډلې نه هم نقل دي او دالله تعالى دارشاد. تاسو دهغه په ملاقات كې هيڅ شک مه كوئ، معنا داده چې الله تعالى خپل نبي ﷺ سره د حضرت موسى عليه السلام د ملاقات وعده وكړه، په دې اعتبار سره داايت د معراج دواقعې نه مخكې نازل شوى دى.

تفسير زاد المسير كې دي:

**والثاني من لقاء موسى ليلة الأسراء قاله أبو العاليع ومجاهد وقتادة وابن السائب. (زاد المسير ج ٦ ص ٤٣)** ترجمه: دويمه خبره داده چې د حضور ﷺ له موسى عليه السلام سره ملاقات د معراج په شپه باندې شوى و.

تفسير بحر محيط كې له دې ايت لاندې ليكل شوي دي:

**أي من لقائک موسى أي: في ليلة الأسراء، أي: شاهدته حقيقة وهو النبي الذى أوتي التوراة وقد وصفه الرسول فقال طوال جعد كأنه من رجال شنوءة حين رأه ليلة الأسراء. (بحر محيط ج ٧ ص ٢٠٥)**

ترجمه: یعني تاسو (حضور ﷺ د معراج په شپه باندې حضرت موسی علیه السلام سره ملاقات کې شک مه کوئ، یعني حضور ﷺ په رښتیا باندې هغه لیدلی دی او هغه. هم هغه نبي و کوم ته چې تورات ورکړل شوی و او په یقین سره حضور ﷺ د هغه حلیه مبارکه بیان کړه. چې هغه اوږده او څه کوټي وښنته یې و. لکه د شنوءة قبیلې د سړیو په شان.

۳. ,,وَلَا تَقُولُواْ لِمَن يُقْتَلُ فِي سَبِيلِ ٱللَّهِ أَمْوَٰتُۢ بَلْ أَحْيَآءٌ وَلَٰكِن لَّا تَشْعُرُونَ ﴿١٥٤﴾.. (سورة البقره ۱۵۴) ترجمه: او کوم خلک چې د الله تعالی په لارکې قتل کړل شي د هغوی باره کې داخیال مه کوئ چې هغوی مړه دي، بلکې هغوی ژوندي دي. خو تاسو ته پته نه لګیږي.

۴. ,,بَلْ أَحْيَآءٌ عِندَ رَبِّهِمْ يُرْزَقُونَ ﴿١٦٩﴾ فَرِحِينَ بِمَآ ءَاتَىٰهُمُ ٱللَّهُ مِن فَضْلِهِۦ" (ال عمران ۱۶۹)

ترجمه: بلکې هغه ژوندي دي او خپل پروردګارته نژدې دي، هغوی ته رزق هم ورکول کیږي هغوی خوشحاله دي. په هغه څه باندې کوم چې الله تعالی هغوی ته په خپل فضل باندې ورکړي دي.

د دې دوا رِوایتونو باره کې حافظ ابن حجر رحمه الله فرمایي:

**وإذا ثبت أنهم أحياء من حيث النقل فإنه يقويه من حيث النظر كون الشهدا أحياء بنص القرآن والأنبياء أفضل من الشهدا.** (فتح الباري ج ٦ ص ٣٧٩)

ترجمه: کله چې د نقل په اعتبارباندې داخبره ثابته شوې ده چې شهیدان ژوندي دي. نو د عقل په اعتبارباندې داخبره یقیني ده چې انبیاء کرام علیهم السلام ژوندي دي او انبیاء کرام علیهم السلام خود شهیدانو نه په هرحالت کې غوره دي، په دې وجه باندې له دې ایت نه د هغوی ژوند په اولی طریقه باندې ثابتیږي.

غور وکړئ چې حافظ الدنیا څومره قوت سره د دې ایت مبارک له دلالة النص نه په لومړۍ درجه کې د انبیاء کرام علیهم السلام ژوند ثابتوي.

۵. ,,فَلَمَّا قَضَيْنَا عَلَيْهِ ٱلْمَوْتَ مَا دَلَّهُمْ عَلَىٰ مَوْتِهِۦٓ إِلَّا دَآبَّةُ ٱلْأَرْضِ تَأْكُلُ مِنسَأَتَهُۥ ۖ فَلَمَّا خَرَّ تَبَيَّنَتِ ٱلْجِنُّ.. (سورة سبا ۱۴)

ترجمه: بیا هر کله چې موږ هغه باندې د مرګ حکم جاري کړ. نو هیڅ یو شی ته د هغه د مرګ پته نه وه، پرته له هغه چنیجي نه چې د حضرت سلیمان علیه السلام امسایي خوړله. کله چې هغه راپریوت، نو بیا پیریانو ته پته ولګېده.

له دې ایت نه هم د دلالة النص په طریقه باندې د انبیاء کرام علیهم السلام د ژوند عقیده ثابتیږي، ځکه چې کله چنجو مضبوطه او سخته امسا وخوړله. نو د بدن خوړل د یرزیات اسان و. خو د دې باوجود بدن ولاړ و. بلکې محفوظ پاتې کېدل د ژوند ښکاره دلیل دی.

همدارنګه په دې ایت کې ذکرشوي د "خرورسلیمان. نه هم د انبیاء علیهم السلام په ژوند باندې استدلال کیدای شي چې الله تعالی دحضرت سلیمان علیه السلام بدن مبارک ځمکې ته راتلل دلفظ "خر، سره تعبیرکړي دي. هغه یې سقط سره تعبیر کړي نه دي. ځکه چې د "خر. لفظ قران مجید یا حدیثونوکې چېرته هم ذکر شوی دی. هغه دژوندي انسان دغورځیدوله پاره ویل شوي دي. مثلاً:

الف: وخرّواله سجدا. (یوسف ۱۰۰) ترجمه: اوټول یوسف ته په سجده پرېوتل

ب: فلما تجلی ربه للجبل جعله دکاوخرّ موسی صعقا. اعراف ۱۴۳)

ترجمه: هرکله چې الله تعالی په غره باندې تجلي وکړه. نو هغه یې زرې زرې کړ او موسی (علیه السلام) بې هوشه راپرېوت.

دحضرت سلیمان علیه السلام بدن مبارک صحیح ځمکې باندې غورځیدونه وروسته چې څوک دمرګ نه وروسته ژوندنه انکارکوي هغه دقران دعلوموا واصولونه بې خبره دي.

۲: ,,وَإِذَا جَآءَكَ ٱلَّذِينَ يُؤۡمِنُونَ بِـَٔايَٰتِنَا فَقُلۡ سَلَٰمٌ عَلَيۡكُمۡۖ كَتَبَ رَبُّكُمۡ عَلَىٰ نَفۡسِهِ ٱلرَّحۡمَةَ ،، (سوره الانعام ۵۴)

ترجمه: اې نبي کریم صلی الله علیه وسلم کله چې تاته راشي هغه خلک چې زمونږ اياتونه مني. نوهغوی ته ووایه چې په تاسودې سلام وي. ستاسورب په خپل ځان باندې رحم لازم کړی دی.

مطلب دا چې هرهغه کس کوم چې دایمان دولت سره دنبوت بارګاه کې حاضرشي. دهغه له پاره دالله تعالی خپل نبي ته حکم دی چې تاسو ته هغه دالسلام علیکم دعاسره درب درحمت اومغفرت پیغام ورسوئ. نودالله تعالیٰ داحکم دواړوحالتونو (دمرګ نه مخکې اوروسته) له پاره عام دی. یعنې دباقي پاتې دنیاله پاره به داحکم باقي وي. څنګه چې دقران کریم دنوروایتونوباره کې دااصول دي اګرچې هغه دڅه خاصې واقعې له پاره نازل شوي وي. خودهغو حکم به دقیامت پورې جاري اوباقي وي. همدارنګه په دې ایت مبارک کې به هم داحکم ترقیامت پورې وي.

۷: ,,وَلَوۡ أَنَّهُمۡ إِذ ظَّلَمُوٓاْ أَنفُسَهُمۡ جَآءُوكَ فَٱسۡتَغۡفَرُواْ ٱللَّهَ وَٱسۡتَغۡفَرَ لَهُمُ ٱلرَّسُولُ لَوَجَدُواْ ٱللَّهَ تَوَّابًا رَّحِيمًا ﴿٦٤﴾ ,, (سورة النساء ۶۴)

ترجمه: اوکه هغه کسان چې په ځانونې زیاتی کړی وي. تاسوته راغلي وای. له الله تعالی نه یې بښنه غوښتې وای اورسول هم دهغوی له پاره دالله تعالی نه بښنه غوښتې وای، نوضرور به یې الله تعالی توبه قبلونکی اورحمت کونکی موندلی و.

دامت دعالمانو د تصریحاتو نه داثابت شوې ده چې د نبي کریم ﷺ ژوند په ښکاره طور باندې ختمیدونه وروسته هم چې کوم مومن د حضور ﷺ دربارکې حاضریدو سره د الله تعالی نه مغفرت اوغواړي، هغه به د حضور ﷺ د طرف نه د دعا او مغفرت حقدار وي. تفسیر قرطبی کې دي:

**عن علي قال قدم علينا أعرابي بعد ما دفنا رسول الله ﷺ بثلاثة أيام. فرمى بنفسه على قبر رسول الله ﷺ وحثا على راسه من ترابه. فقال: قلت يا رسول الله ﷺ فسمعنا قولك. ووعيت عن الله فوعينا عنك وكان فيما انزل الله عليك، ولو أنهم إذ ظلموا أنفسهم. الآية وقد ظلمت نفسي وجئتك تستغفر لي افنودي من القبر: أنه قد غفر لك. (تفسير قرطبي ج ٥ ص ٢٦٥، ٢٦٦)**

یعنې حضرت علی ﷺ نه نقل دي چې د رسول الله ﷺ د ښخیدونه درې ورځې وروسته یو کلي وال د حضور ﷺ روضې مبارکې ته حاضرشو او د دې ایت په حواله باندې یې د مغفرت غوښتنه وکړه. روایت دی چې د قبر مبارک نه اوازراغی: انه قد غفر لك.

د الله تعالی د دې ارشاداتو مطابق د رحمة للعالمین ﷺ ذات مبارک د دې دنیا د ژوند ختمیدونه وروسته هم حاضرشوي هر امتی ته د السلام علیکم ځواب ورکوي او تاسو هغه ته د رب د رحمت او مغفرت پیغام رسولو او د هغه له پاره د مغفرت د دعا کولو له پاره د الله تعالی له طرف نه مقرریږ. دا هم د حضور ﷺ د ژوند د همیشه والی او د هغه په قبرکې په ژوند باندې د قران دلیل اوواضح ثبوت دی. له دې نه وروسته هم که څوک انکار کوي نو منکر داویل کېدای شي چې: که ته یې نه منې! نو بانې په زړګو نو دي.

## د انبیاء کرامو ژوند د حدیثو په رڼاکې

**۱: عن أنس ﷺ قال قال رسول الله ﷺ الأنبياء أحياء في قبورهم يصلون، رواه ابويعلى البزار ورجال أبي يعلى ثقات. (مجمع الزوائد ج٨ ص ٢١١. لسان الميزان: حسن بن قتيبة ص ٢٤٦، مسند ابويعلى ج ٦ حديث ٣٤٢٥، فتح البارى ج ٦ ص ٤٨٧، المطالب العاليه ج ٣ ص ٢٦٩، حديث ٣٤٥٢، احاديث صحيحة للالبانى حديث ٦٢١. الجامع الصغير ص ١٢٤، تكمله فتح الملهم ج ٥ ص ٢٨، بيهقى حيات الانبياء ص ٣ الحاوي للفتاوي ج ٢ ص ١٤٨، خصائص الكبرى ج ٢ ص ٢٨١، مسند بزار ص ٢٥٦)**

ترجمه: د حضرت انس ﷺ نه روایت دی چې حضور ﷺ وفرمایل: انبیاء کرام علیهم السلام په قبرونو کې ژوندي دي او لمونځ اداکوي. داحدیث روایت کړې دې. ابویعلی او مسندبزار. او دابویعلی ټول روایت کونکي داعتبار قابل دي.

علامه جلال الدين سيوطي رحمه الله په خپل مشهور کتاب الحاوي للفتاوی کې دانبياء کرامو دژوند باره کې دخپلې عقيدې بيانولو پر مهال ليکلي دي:

**حياة النبي ﷺ فی قبره هو وسائر الأنبياء معلومة عندنا علماقطعياً کماقام عندنامن الأدلة فی ذالک وتواترت(به) الأخبار.** (ج ۲ ص ۱۴۷)

ترجمه: دحضور ﷺ او نورو انبياء کرامو په خپلو خپلو قبروکې ژوند زموږ په نزد باندې بالکل ثابت دي ،ځکه چې دې باره کې موږ ته دليلونه او خبرونه متواتر راغلي دي.

هغه دې باره کې زياتوي:

**قال البيهقی فی کتاب الإعتقاد: الأنبياء بعدماقبضوا ردت إليهم أرواحهم، فهم أحياء عندربهم کالشهداء. وقال القرطبی فی التذکرة فی حديث الصعقة نقلاً عن شيخه: ألموت ليس بعدم محض إنماهوانتقال من حال إلى حال.** (الحاوي للفتاوي: ج ۲ ص ۱۴۹)

ترجمه: امام بيهقي په کتاب الاعتقادکې فرمايي چې دانبياء کرام(عليه السلام) روح قبض کولونه وروسته هغوی ته بېرته ورکول کيږي، هغوی دخپل رب په نزدباندې دشهيدانو په شان ژوندي دي، علامه قرطبي په دې ذکرکې دصعقه حديث لاندې دخپل شيخ نه دنقل پرمهال ليکلي دي : دمرګ معنا يوازې ختميدل نه دي بلکې ديوحال نه بل حال طرف ته دمنتقل کيدو نوم مرګ دی.

مخکې زياتوي: **قال المتکلمون المحققون من أصحابناأن نبيناﷺ حی بعدوفاته.** (الحاوي للفتاوي ج ۲ ص ۱۴۹)

ترجمه: زموږ په اصحابوکې تحقيق کونکي حضرات فرمايي چې بې شکه زموږ نبي کريم ﷺ دمرګ نه وروسته ژوندی دی.

نور مخکې ليکي:

**وقال الشيخ تقی الدين ألسبکی: حيات الأنبياء والشهداء فی القبر کحياتهم فی الدنياويشهدله صلاة موسى فی قبره فان الصلاة تستدعي جسداً حيا.** (الخاوي للفتاوي ج ۲ ص ۱۵۲)

ترجمه: شيخ تقي الدين سبکي فرمايي : دانبياء کرام اوشهيدانو د قبرژونددنيادژوندپه شان دی اوددې ثبوت دادی چې حضرت موسی عليه السلام په خپل قبرکې لمونځ کاو،ځکه چې لمونځ کول دژوندي بدن کاردی

حضرت مجدد الف ثاني رحمه الله، دحضرت انس رضي الله عنه دروايت نه استدلال کولوسره فرمايي:

"برزخ صغری چون ازيک وجه ازمواطن دنيوي است ،گنجائش ترقی دارد ،واحوال اين موطن نظرباشخاص متفاوته تفاوت فاحش دارد الانبياء **يصلون فی القبور** شنيده باشند.

(مکتوبات دفتردوم مکتوب ۱۷)

ترجمه: وړوکی برزخ (قبر) په یوه وجه باندې دنیاوي ځای دی. نو دې کې د ترقي ګنجائش شته او د مختلفو کسانو په اعتبار باندې ددې ځای حالات ډیر مختلف وي. تاسو خو به دا اوریدلي وي چې انبیاء کرام حضرات په خپلو قبرونو کې لمونځ کوي.

۲: عن أبي هريرة رضي الله عنه قال قال رسول الله ﷺ: من صلى عليّ عند قبري سمعته ومن صلى علي نائياأبلغته. رواه البيهقي في شعب الإيمان. (مشكوة ص ۸۷. خصائص كبرى ج ۲ ص ۲۸۰. كنزالعمال ج ۱ ص ۴۹۲، حديث ۲۱۶۵، ص ۴۹۸، حديث ۲۱۹۷، ۲۱۹۸. اتحاف السادة المتقين زبيدى رحمه الله ج ۳ ص ۲۸۹. تفسير درمنثور ج ۵ ص ۲۱۹. فتح الباري ج ۶ ص ۴۸۸. الحاوي للفتاوي ج ۲ ص ۱۴۷)

ترجمه: د حضرت ابوهریره رضي الله عنه نه روایت دی. فرمایي چې حضور ﷺ وفرمابل: چاچې زما د قبر خوا کې ما باندې درودشریف ولوست. زه هغه پخپله اورم او څوک چې ما باندې لیرې نه درود او سلام لولي. هغه ماته رارسول کیږي

## د حدیث په سند باندې دشوي اعتراض ځواب

امام ابوالحسن علي بن محمد بن عراقي الكنائي (المتوفي ۹۲۳هـ) ددې حديث په ضعف او ثقاهت باندې د بحث کولو پر مهال لیکي:

حديث من صلى عليّ عند قبري سمعته، ومن صلى علي نائيا وكل الله بها ملكا يبلغني وكفى أمر دنياه وآخرته وكنت له شهيدا أوشفيعا (خط) من حديث أبي هريرة ولا يصح فيه محمد بن مروان وهو السدي الصغير وقال العقيلي: لا أصل لهذا الحديث (تعقب) بأن البيهقي أخرجه في شعب الإيمان من هذا الطريق وتابع السدي عن الأعمش فيه أبو معاوية أخرجه أبو الشيخ في الثواب. قلت: وسنده جيد كما نقله السخاوي عن شيخه الحافظ ابن حجر والله تعالى أعلم وله شواهد من حديث ابن مسعود وابن عباس وأبي هريرة اخرجها البيهقي ومن حديث أبي بكر الصديق أخرجه الديلمي ومن حديث عمار أخرجه العقيلي من طريق علي بن القاسم الكندي وقال علي بن قاسم شيعي فيه نظر لايتابع على حديثه انتهى. وفي لسان الميزان. (ج ۴ ص ۲۴۹) أن ابن حبان ذكر علي بن القاسم في الثقات وقد تابعه عبدالرحمن بن صالح وقبيصة بن عقبة أخرجهما الطبراني. (تنزيه الشريعة ج ۱ ص ۳۲۵، بيروت)

ترجمه: حديث من صلى علي....الخ. یعنې چاچې زما قبرته نژدې درودشریف ولوست نو زه یې پخپله اورم او چاچې د لیرې نه ولوست. نو الله تعالی د هغه له پاره فرښته مقرر کړې ده. چې هغه یې ماته رارسوي او الله تعالی د هغه د دنیا او اخرت کارونه پوره کوي او زه به

دهغه په حق کې ګواه اوشفاعت کونکې يم. (خطيب بغدادي داحديث نقل کړی دی) داحديث دحضرت ابوهريره رضی الله عنه نه روايت شوی دی اوصحيح نه دی. ځکه چې ددې په سند محمدبن مروان السدی الصغيردی اوامام عقيلي رحمه الله وايي چې دهغه يوحديث هم اصل نه دی. (دعقيلی په دې خبره باندې رد شوی دی ، چې امام بيهقي په شعب الايمان کې دې طريقې سره ددې حديث تخريج کړی دی اوابومعاويه اعمش رحمه الله نه روايت کولوکې دسند متابع دی، ددې تخريج امام ابوالشيخ په کتاب الثواب کې کړې دی، زه وايم چې دابوالشيخ سندصحيح دی. ځنګه چې علامه سخاوي رحمه الله دخپل استاذ حافظ ابن حجر رحمه الله نه نقل کړې دي. والله تعالی اعلم. اوددې حديث دحضرت ابن مسعود رضی الله عنه، حضرت ابن عباس رضی الله عنهما او حضرت ابوهريره رضی الله عنه نه ګواهي موجودده، چې دهغو تخريج امام بيهقی کړی دی اودحضرت ابوبکرصديق رضی الله عنه حديث هم ګواه دی. دکوم تخريج چې امام ديلمي رحمه الله کړی دی اودحضرت عمار رضی الله عنه حديث هم ددې ګواه دی. دکوم تخريج چې دعلي بن القاسم الکندي په طريقه باندې امام عقيلي رحمه الله کړي دی اوويلي يې دي چې داروايت کونکی شيعه دی، په هغه کې خبره شته اودهغه دحديث متابعت نه دی شوی خولسان الميزان(ج ۴ ص ۲۴۹) کې دي چې امام ابن حبان علي بن القاسم په ثقاتو کې ليکلی دی اوعبدالرحمن بن صالح اوقبيصه بن عقبه ددې متابع موجوددي.

۳: عن أوس بن أوس رضی الله عنه عن النبي صلی الله عليه وسلم قال إن من افضل أيامکم يوم الجمعة فيه خلق آدم عليه السلام وفيه قبض وفيه النفخة وفيه الصعقة فأکثروا عليّ من الصلوة فإن صلوتکم معروضة عليّ، قالو: يارسول الله صلی الله عليه وسلم! کيف تعرض صلاتنا عليک وقدأرمت؟ ای: يقولون قدبليت، قال إن الله عزوجل قدحرم على الارض أن تاکل أجساد الأنبياء عليهم السلام. (سنن نسائی ج ۱ ص ۲۰۳، ۲۰۴، مستدرک حاکم ج ٤ ص ٥٦٠، هذاحديث صحيح على شرط الصحيحين ولم يخرجاه، ابوداؤد ج ۱ ص ۳۰۷ (باب الاستغفار) سنن کبری بيهقي ج ۳ ص ۲٤۹، دارمي ج ۱ ص ۳۰۷ (باب فضل الجمعة) مسنداحمد ج ٤ ص ۸، صحيح ابن حبان خزيمه ج ۳ ص ۱۱۸، حديث ۱۷۳۳، ابن حبان (باب ذکروفاته صلی الله عليه وسلم) ص ۱۱۸، الاحسان بترتيب ابن حبان ج ۳ ص ۷۸، حديث ۹۰۷، کتاب الروح (ابن القيم رحمه الله) ص ٦۳، کنزالعمال ج ۸ ض ۳٦۸، حديث ۲۳۳۰۱، ايضاً ج ۷ ص ۷۰۸، حديث ۲۱۰۳۷، ترغيب منذری ج ۱ ص ٤۹۱، ايضاً ج ۲ ص ٥۰۳، ٥۰٤، نيل الاوطار ج ۳ ص ۳۰٤، ابن ابی شيبه ج ٦ ص ٥۱٦، ابن ماجه ص ۷٦، ۱۱۸، شرح الصدور ص ۱۳۷، مطابع الرشيد مدينه منوره)

ترجمه: حضرت اوس بن اوس رضی الله عنه دحضور ﷺ نه روایت کوي چې بې شکه په ورځوکې ترټولو غوره ورځ دجمعې ده، په دې ورځ باندې حضرت ادم علیه السلام پیدا شوی دی، په هم دې ورځ باندې وفات شوی دی. په هم دې ورځ باندې به شپیلۍ وهل کیږي اوپه هم دې ورځ باندې به په دويم ځل باندې ژوندې کول کیږي. نو(دجمعې په ورځ) ماباندې درودشریف ډیرلولئ، بې شکه ستاسو درود ماته وړاندې کیږي. صحابه کرامو رضی الله عنهم عرض وکړ: یارسول الله! زموږ درود اوسلام به ستاسو دوفات نه وروسته تاسوته څنګه درسیږي؟ سره له دې تاسوخوبه هغه وخت خاوره شوي یئ؟ یعني خاوره کې به ستاسو ډیروخت شوي وي. حضور ﷺ وفرمایل: بې شکه الله تعالی ځمکه باندې داحرام کړي دي چې دانبیاء کرامو بدنونه وخوري.

**٤: عن ابن مسعود رضی الله عنه قال قال رسول الله ﷺ: إن لله ملائكة سياحين فى الأرض يبلغونى عن أمتى السلام. (نسائی ج ١ ص ١٨٩، مسنداحمد ج ١ ص ٤٤١، ابن ابی شيبه ج ٢ ص ٥١٧، مواردالظمآن ص ٥٩٤، مشکوة ص ٨٦، البدايه والنهايه ج ١ ص ١٥٤، الجامع الصغير ج ١ ص ٩٣، خصائص کبری ج ٢ ص ٢٨٠، الاحسان بترتيب ابن حبان ج ٣ ص ٨، حديث ٩، ١٠، مصنف عبدالرزاق ج ٢ ص ١٥)**

ترجمه: دحضرت عبدالله بن مسعود رضی الله عنه نه روایت دی چې حضور ﷺ وفرمایل: بې شکه ځمکې باندې دالله تعالی دطرف نه داسې ملائکې مقررې دي چې ماته زمادامت سلام رارسوي.

**٥: عن أبي الدرداء رضی الله عنه قال قال رسول الله ﷺ أكثروا الصلوة علىّ يوم الجمعة فإنه مشهودتشهده الملئكة وإن أحدا لن يصلى علىّ إلاعرضت علىّ صلوته حتى يفرغ منها. قال: قالت وبعدالموت؟ قال وبعدالموت، إن الله حرم على الأرض أن تاكل أجسادالأنبياء فنبي الله حي يرزق. (ابن ماجه ص ١١٨، ترغيب ج ٢ ص ٥٠٣، نيل الاوطار، ج ٣ ص ٣٠٤، شرح الصدور ص ١٣٧، مطابع الرشيدمدينه منوره)**

ترجمه: دحضرت ابودرداء رضی الله عنه نه روایت دي چې دجمعې په ورځ ماباندې ډیردرودلولئ، ځکه چې دجمعې په ورځ ماته ملائکې حاضریږي اوکله چې تاسوکې څوک ماباندې درود وايي، نودهغه لوستلوسره هغه درودماته وړاندې کیږي. حضرت ابودرداء رضی الله عنه فرمايي چې ماعرض وکړ: ایاد مرګ نه وروسته هم؟ ويې فرمایل هو: دمرګ نه وروسته هم. بې شکه الله تعالی ځمکه باندې داحرام کړي دي چې دانبیاء کرامو بدنونه وخوري. دالله تعالی نبي ژوندی وي، هغه ته رزق ورکول کیږي.

٦: عن أبي هريرة رضي الله عنه أن رسول الله صلى الله عليه وسلم قال: ما من أحد يسلم عليّ إلا رد الله عليّ عزوجل روحي حتى أرد عليه السلام. (ابوداؤد ج ١ص ٢٧٩. مسند احمد ج ٢ ص ٥٢٧. سنن كبرى بيهقي ج ٥ ص ٢٤٥. ترغيب وترهيب ج ٢ ص ٤٩٩. كنز العمال ج ١ ص ٤٩٨. حديث ٢٢٠٠. فيض القدير ج ٥ ص ٤٦٧. مجمع الزوائد ج ١٠ ص ١٦٢. وقال فيه عبدالله بن يزيد الاسكندراني ولم اعرفه ومهدي بن جعفر ثقه وفيه خلاف وبقية رجاله ثقات)

ترجمه: دحضرت ابوهريره رضي الله عنه نه روايت دی چې حضور ﷺ وفرمايل چې کله يوکس په ماباندې درود ولولي. نوالله تعالى زماروح ماته ببرته راکړي . تردې چې زه دهغه سلام کونکي دسلام ځواب ورکړم.

٧: عن أبي هريرة رضي الله عنه قال: قال رسول الله ﷺ :حيثما كنتم فصلوا عليّ فإن صلوتكم تبلغني. (مسند احمد ج ٢ص ٣٧٦. ابوداؤد ج ١ ص ٢٧٩. خصائص كبرى ج ٢ ص ٢٨٠. مشكوة ص ٨٦. فتح الباري ج ٦ ص ٤٨٨)

ترجمه: دحضرت ابوهريره رضي الله عنه نه روايت دی چې رسول الله ﷺ وفرمايل: چې هرځای يئ ماباندې درود لولئ. ځکه چې ماته ستاسو درود رارسيږي.

٨: عن أبي هريرة رضي الله عنه قال سمعت رسول الله ﷺ يقول: والذي نفس أبي القاسم بيده! لينزلن عيسى ابن مريم، ثم لئن قام على قبري فقال يا محمد! لأجيبنّه .(مسند ابويعلى ج ١١ ص ٤٦٢. حديث ٦٥٨٤. مجمع الزوائد ج ٨ ص ٢١١. المطالب العاليه ج ٤ ص ٢٣. باب حياته في قبره ج ٤ ص ٣٤٩. حديث ٤٥٧٤. الحاوي للفتاوي ج ٢ ص ١٤٨. خصائص كبرى ج ٢ ص ٢٨٠. روح المعاني ج ٢٢ ص ٣٥)

ترجمه: دحضرت ابوهريره رضي الله عنه نه روايت دي. فرمايي چې ما رسول الله ﷺ نه اوريدلی دي چې قسم مې دې وي په هغه ذات باندې دچاپه قبضه کې چې دابوالقاسم ﷺ ساه ده، چې حضرت عيسى بن مريم به نازليږي اوکه چېرې هغه زماقبرته ودريږي اودا ووايي يامحمد! زه به هغه ته خامخا ځواب ورکړم.

علامه الوسي رحمه الله خودې حدپورې فرمايلي دي چې:

.... أنه عيسى عليه السلام يأخذ الأحكام من نبينا ﷺ شفاهاً بعد نزوله وهو ﷺ في قبره الشريف، وايد بحديث أبي يعلى والذي نفسي بيده لينزلن عيسى ابن مريم ثم لئن قام على قبري وقال يامحمد! لأجبته. (روح المعاني ج ٢٢ ص ٣٥)

ترجمه: حضرت عیسی علیه به د نازلیدو نه وروسته زموږ د پیغمبر ﷺ قبر شریف ته حاضریږي اوله حضور ﷺ څخه به مخامخ حکمونه حاصلوي اوحضور ﷺ به خپل قبر شریف کې موجود وی اوددې تائید دابویعلی ددې حدیث نه کیږي. په کوم کې چې دي که چیرې حضرت عیسی علیه السلام زما قبرته راغی اوویې ویل چې یامحمد. نو زه به ورته ځواب ورکوم.

# ❖ انبیاء کرام علیهم السلام سره ملاقات ❖

## د حضرت ابوهریره رضی الله عنه حدیث

عن أبي هريرة رضی الله عنه قال قال النبي ﷺ ليلة أسرى بي لقيت موسى قال فنعته فإذا رجل حسبته قال: مضطرب رجل الرأس كأنه من رجال شنوئة قال: ولقيت عيسى فنعته النبي ﷺ فقال: ربعة أحمر كأنما خرج من ديماس يعني الحمام ورايت ابراهيم وأنا أشبه ولده به ....(صحيح بخاري ج ١ ص ٤٨٩، ٤٨١، ج ٢ ص ٦٨٤، ٨٣٦، ٨٣٨، صحيح مسلم ج ١ ص ٩٦، ترمذی ج ٢ ص ١٤١، مصنف عبدالرزاق ج ٥ ص ٣٢٩، مسند احمد ج ٢ ص ٢٨٢، نسائي ج ٢ ص ٣٢٩، الاحسان برتيب صحيح ابن حبان ج ١ ص ٢٢١)

ترجمه: د حضرت ابوهریره رضی الله عنه نه روایت دی چې حضور ﷺ وفرمایل: د معراج په شپه باندې حضرت موسی علیه السلام سره زما ملاقات وشو. (حضرت ابوهریره رضی الله عنه وفرمایل: چې بیا حضور ﷺ د حضرت موسی علیه السلام شکل مبارک بیان وکړ او ویې فرمایل: هغه ځوان و، زما خیال دي حضور ﷺ وفرمایل: داوږدو اوخلاصو ویښتووالا و. داسې لکه د شنوه قبیلې سړی چې وي. بیایې و فرمایل: عیسی السلام سره مې ملاقات وشو. بیا حضور ﷺ د حضرت عیسی علیه السلام شکل مبارک بیان کړ. اوویې فرمایل چې: دهغه بدن پلن اورنګ یې سور و. داسې ښکاریدل لکه چې همدا اوس له غسل خانې راوتلی وي اوما حضرت ابراهیم علیه السلام ولیده اوزه دهغه په اولاد کې د ټولو نه زیات دهغه په شان یم.

**د حضرت ابن عمر رضی الله عنهما حدیث:** عن عبدالله بن عمر رضی الله عنهما قال: قال النبي ﷺ: رأيت عيسى وموسى وابراهيم. فأما عيسى فأحمر جعد عريض الصدر وأما موسى فأدم جسيم سبط كأنه من رجال الزطّ. (صحيح بخاري ج ١ ص ٤٨٩)

ترجمه: د حضرت عبدالله بن عمر رضی الله عنهما نه روایت دی چې حضور ﷺ وفرمایل: د معراج په شپه باندې ما حضرت عیسی، حضرت موسی اوحضرت ابراهیم علیهم السلام ولیدل. د حضرت عیسی علیه السلام رنګ سورو. بدن یې ډک و اوسینه یې غټه وه اوحضرت موسی غنم رنګه د صحیح بدن والاو اوهغه داسې و لکه چې د (سوډان) اوږد زطي وي.

# ❖ د انبياء عليهم السلام امامت ❖

د حضرت ابو هريره رضي الله عنه حديث:

.... وقد رأيتني في جماعة من الأنبياء فإذا موسى عليه السلام قائم يصلي....وإذا عيسى بن مريم عليه السلام قائم يصلي....وإذا ابراهيم عليه السلام قائم يصلي.... فقامت الصلوة فأممتهم فلما فرغت من الصلو...قال قائل يا محمد! هذا مالک صاحب النار فسلم عليه....(صحيح مسلم ج ١ ص ٩٦، مشکوة ص ٥٣٠)

ترجمه: ما خپل ځان د انبياء كرام په ډله كې وليده، ګورم چې حضرت موسى عليه السلام ولاړ دى لمونځ كوي او بيا مې وليدل چې حضرت عيسى عليه السلام ولاړ دى لمونځ كوي او حضرت ابراهيم عليه السلام ولاړ دى لمونځ كوي د غه دوران كې د لمانځه وخت شو، نو ما هغوى ته لمونځ وركړ، كله چې زه د لمونځ نه فارغ شوم...نو چا وويل چې اې محمد! دا دوزخ مالكان دي، دوى ته سلام وكړه.

## په قبر كې د حضرت موسى عليه السلام لمونځ

انبياء كرام عليهم السلام نه يوازې په خپلو قبرونو كې ژوندي دي بلكې هغوى لمونځ هم اداكوي، په حديثونو كې د حضرت موسى عليه السلام په خپل قبر كې د لمونځ كولو ذكر دى، حضرت انس رضي الله عنه د حضور صلى الله عليه وسلم ارشاد نقل كوي:

عن أنس بن مالک رضي الله عنه أن رسول الله صلى الله عليه وسلم قال مررت على موسى ليلة أسري بي عند الكثيب الأحمر وهو قائم يصلي في قبره. (صحيح مسلم ج ٢ ص ٢٦٨، طبع رحيميه ديوبند، مسند احمد ج ٥ ص ٥٩، ٣٦٢، ٣٦٥، مسند احمد ج ٣ ص ١٤٨، ٢٤٨، تلخيص الحبير ج ٢ ص ١٢٦، الاحسان بترتيب صحيح ابن حبان ج ١ ص ٢١٦، طبع مكتبه اثريه شانګله هل پاکستان)

ترجمه: د حضرت انس رضي الله عنه نه روايت دى، هغه فرمايي چې حضور صلى الله عليه وسلم وفرمايل: د معراج په شپه زه حضرت موسى عليه السلام باندې تيرشوم، هغه وړوكي سور غر (ډيپې) سره خپل قبر كې لمونځ كاو.

## حيات النبي صلى الله عليه وسلم د صحابه كرامو د اثارو په رڼا كې

١: وعن عائشه رضي الله عنها قالت كنت أدخل بيتي الذي فيه رسول الله صلى الله عليه وسلم وإني واضع ثوبي وأقول إنما هو زوجي وأبي فلما دفن عمر رضي الله عنه معهم فوالله ما دخلته إلا وأنا مشدودة عليّ ثيابي حياء من عمر. (مشکوة ص ١٥٤)

ترجمه: د حضرت عائشې رضي الله عنها نه روایت دی. هغه فرمایي چې زه خپلې کمرې ته کومې کې چې حضور ﷺ خښ دی له پردې پرته داخلیدم او ما دا ګڼل چې یوزما خاوند او بل مې پلار دی خو وروسته کله چې هغوی سره حضرت عمر رضي الله عنه خښ شو. نو په الله تعالی مې دې قسم وي. چې زه هغې کمرې ته د حضرت عمر رضي الله عنه نه د حیا په وجه باندې له پردې پرته یم داخله شوې ددې حدیث دوضاحت پرمهال دمشکوة په حاشیه کې لیکل شوي دي.

**حیاء من عمر أوضح دلیل علی حیات المیت.** (حاشیه مشکوة ص ۱۵٤)

ترجمه: د **حیاء من عمر** الفاظ د مړي په ژوند باندې ښکاره طورباندې دلالت کوي.

دې باندې علامه سیوطي رحمه الله دمشکوة په شرحه کې لیکلي دي:

**قال الطیبی فیه أن إحترام المیت کإحترامه حیًا.**

**(شرح طیبي ج ۳ ص ٤۱۸، ادارة القران کراچی)**

ترجمه: علامه سیوطي رحمه الله ویلي دي چې دې (حدیث) کې ددې خبرې دلیل دی چې د مړي هم هغه شان احترام کول پکار دي څنګه چې په ژوند کې کیږي.

**۲: عن سعید بن المسیب قال لم أزل أسمع الأذان والإقامة فی قبر رسول الله ﷺ أیام الحرة حتی عاد الناس. (خصائص کبری ج ۲ ص ۲۸۱، الحاوي للفتاوي ج ۲ ص ۱٤۸، بحواله دلائل النبوة زرقانی ج ۵ ص ۳۳۲، ۳۳۳)**

ترجمه: د حضرت سعید بن مسیب رضي الله عنه نه روایت دی هغه فرمایي: د حره د واقعې په ورځو کې. ما د حضور ﷺ په قبر باندې د اذان او اقامت اواز اوریده. تردې پورې چې خلک وروسته شول.

شیخ الاسلام حضرت مولانا شبیر احمد عثماني قدس سره لیکي:

**أن النبي ﷺ حي کما تقرر، وانه یصلی (کما ثبت) فی قبره بأذان واقامة. (فتح الملهم ج ۳ ص ٤۱۹)**

ترجمه: بې شکه نبي کریم ﷺ په خپل قبرشریف کې ژوندی دی (څنګه چې ثابته شوې ده) او بې شکه حضور ﷺ په خپل قبر کې د اذان او اقامت سره لمونځ اداکوي.

# ❖ د حضور ﷺ د حیات عقیده او غلور واړه مذهبونه ❖
# [حنفیه رحمهم الله]

## فضل الله بن حسین تورپشتي الحنفي رحمه الله المتوفی ۶۳۰ هـ:

د فارسي عبارت ترجمه: دې خصوصیاتو کې یو داهم پیژندل پکاردي چې دحضور ﷺ بدن مبارک ځمکه نه خوري .نه به هغه زرې زرې کیږي اودقیامت په ورځ به چې کله ځمکه وشلیږي (وشکیږي) نودحضور ﷺ بدن مبارک به صحیح حالت کې محفوظ وي اوهم دې وجودسره به دحضور ﷺ اونورانبیاء کرامو علیهم السلام حشروي اوصحیح حدیث کې راغلي دي چې الله تعالی ځمکه باندې دانبیاء کرام علیهم السلام بدنونه حرام کړي دي (بیایې مخکې فرمایلي دي ) انبیاء علیهم السلام په خپل قبرونوکې ژوندي دي اولمونځونه کوي اوډیولونه مخکې به دقبرنه زموږپیغمبر ﷺ راپورته کیږي.

(المعتمدفی المعتقدباب ۲ فصل ۴ ص ۱۰۷ مطبع مظهرالعجائب مدارس ۱۲۸۸ھ)

## ملاعلي قاري رحمه الله (المتوفی ۱۰۱۴هـ):

فمن المعتقدالمعتمدأنه ﷺ حيٌّ فی قبره کسائرالأنبیاء فی قبورهم وهم أحیاء عندربهم وأن لأرواحهم تعلقابالعالم العلوي والسفلي کماکانوفی الحال الدنیوي فهم بحسب القلب عرشیون وباعتبارالقالب فرشیون.

(شرح شفاء ج ۲ ص ۱٤۲ طبع مصر)

ترجمه: داعتمادقابل(وړ) عقیده داده چې حضور ﷺ په خپل قبرکې ژوندی دی څنګه چې نورانبیاء کرام علیهم السلام په خپلو قبرونوکې ژوندي دي. اودخپل رب په نزدباندې ژوندي دي اودهغوی د روحونودې دنیااوهغې دنیادواړوسره تعلق دی. څنګه چې دنیا کې و، هغوی دزړه په لحاظ باندې عرشي اوډبدن په لحاظ باندې فرشي دي.

## علامه ابن الهمام رحمه الله (المتوفي ۶۸۱هـ):

....تستقبل القبربوجهک، ثم تقول: السلام علیک أیهاالنبي ورحمة الله وبرکاته... وذالک أنه ﷺ فی القبرالشریف المکرم علی شقه الأیمن مستقبل القبلة... ثم یسئل النبي الشفاعة فیقول یارسول الله! أسالک الشفاعة یارسول الله! أسالک الشفاعة....ولیکثردعائه بذالک فی الروضة الشریفة عقیب الصلوة وعندالقبر, ویجتهدفی خروج الدمع فإنه من إمارات القبول وینبغي أن یتصدق بشيءٍ علی جیران النبي ثم ینصرف.

متباكياً متحسراً على الفراق الحضرة الشريفة النبوية والقرب منها. (فتح القدير ج ۲ ص ۳۳۶، ۳۳۷، ۳۳۹. اواخر الحج، مصر)

ترجمه: او تاسو د حضور ﷺ قبرته مخامخ دريدو سره السلام عليک يا ايها النبي ورحمة الله ووايئ... او داځکه چې حضور ﷺ په خپل قبرشريف کې ښى طرف ته په ډډه باندې پروت دى.... او بيا حضور ﷺ ته د شفاعت کولو خواست هم وکړئ او ووايئ چې يارسول الله! زه د شفاعت له پاره سوال کوم. روضې شريفې کې د درود شريف نه وروسته.... او قبر سره خوا کې بيا ډيرې دعاګانې وکړئ او د ژړيدو د پورې کوشش وکړئ. ځکه چې دا د قبليدو نښې دي او پکار دي چې د روضې په ګاونډيانو باندې څه صدقه کړئ. بيا په ژړا او د حضور ﷺ نه د بېلدو غم سره بېرته راستانه شئ.

## حضرت علامه عيني المتوفي (۷۵۵هـ):

ومذهب أهل السنة والجماعة أن فى القبر حياة وموتا فلا بد من ذوق الموتتين لكل أحد غير الأنبياء. (عمدة القارى شرح بخاري ج۷ ص ۶۰۱)

ترجمه: د ټولو اهل سنت والجماعت دا عقيده او مذهب دى چې قبر کې ژوندا او بيا مرګ دا دواړو سلسلې وي. نو هر يو کس له پاره دوه مرګونه دي. پرته له انبياء کرامو عليهم السلام نه چې هغوى په خپلو قبرونو کې ژوندي دي. هغوى ته په دويم ځل باندې مرګ نه راځي.

علامه عيني رحمه الله بل ځاى کې ليکي:

فإنهم لا يموتون فى قبورهم بل هم أحياء. (باب فضيلة أبي بكر على سائر الصحابة، عمدة القارى شرح بخاري ج۷ ص ۶۰۰)

بې شکه انبياء عليهم السلام په خپلو قبرونو کې مړه نه بلکې هغوى هلته ژوندي دي.

علامه بدالدرين محمود بن احمد العيني الحنفي رحمه الله د الله تعالى د دې ارشاد "آمتنا اثنتين" ألآية .. په تفسير کې ليکي:

أراد بالموتتين الموت فى الدنيا والموت فى القبر وهما موتتان المعروفتان المشهورتنان فلذالك ذكرهما بالتعريف وهما الموتتان الواقعتان لكل أحد غير الانبياء عليهم السلام فإنهم لا يموتون فى قبورهم بل هم أحياء واما سائر الخلق فإنهم يموتون فى القبور ثم يحيون يوم القيامة. (عمدة القارى شرح بخاري ج ۸ ص ۱۸۵، جزء ۱۶ باب فضيلة ابى بكر على سائر الصحابة، مطبع دالفكر بيروت)

ترجمه: دوو مرګونو کې له یو مرګ نه هغه مرګ مراددي کوم چې دنیاکې راځي اودویم هغه دی کوم چې قبرکې راځي. هم دادوه مشهورمرګونه دي.(په دې وجه باندې دادالف اولام حرف سره تعبیر شوی دی) اوانبیاء کرام علیهم السلام له دې نه مستثنی دي. هغوی په خپل قبرونوکې نه مري. بلکې هغوی ژوندي وي. دنورومخلوقاتوپه خلاف ځکه چې هغوی دحساب کتاب نه وروسته) قبرونوکې مړه کیږي اوبیابه دقیامت په ورځ ژوندي کیږي.

## امام ملاعلي قاريؒ المتوفي( ۱۰۱۴هـ):

إن الأنبياء أحياء في قبورهم فيمكن لهم سماع صلوة من صلى عليهم. (مرقات طبع ممبي ج ۲ ص ۲۰۹)

ترجمه: بې شکه انبیاء کرام علیهم السلام په خپلو خپلو قبرونوکې ژوندي دي. تردې چې کوم کس چې په هغوی باندې درود وايي هغوی يې اوري.

## حضرت شيخ عبدالحق محدث دهلويؒ (المتوفی ۱۰۵۲هـ):

''حیات انبیاء متفق علیه است. هیچ کس رادروی خلافی نیست.(اشعة اللعمعات ج ۱ ص ۲۱۳. مطبع نول کشورلکهنؤ)

ترجمه: دحضور ﷺ ژوندیو اجتماعي او متفقه مسئله ده. دیواهل حق هم دې کې هیڅ اختلاف نشته.

## علامه شر نبلا نيؒ (المتوفي ۱۰۶۹هـ):

ومماهومقررعندالمحققين أنه ﷺ حيٌّ يرزق, متمتع بجميع الملاذ والعبادات غيرأنه احجب عن ابصارالقاصرين عن شريف المقامات .... ينبغي لمن قصدزيارة النبي ﷺ أن يكثرالصلوة عليه ,فإنه يسمعهاوتبلغ اليه. (مراقي الفلاح ص ۴۰۵. طبع مير محمد كراچى)

ترجمه: دمحققينوپه نزدباندې دامنل شوې ده چې حضور ﷺ ژوندی دی. حضور ﷺ ته رزق هم ورکول کیږي اودعبادتونو نه هم حضور ﷺ مزه(خوند) اخلي اویواځې دومره خبره ده چې حضور ﷺ دهغه نظرونونه پرده کې دی. چې هغه ځای ته نه شي رسیدلی .... کوم کس چې دحضور ﷺ زیارت ته لاړشي. هغه ته پکاردي چې ډیر درود اوسلام عرض کړي. ځکه چې حضور ﷺ هغه پخپله باندې اوري اودلیرې نه حضور ﷺ ته رسول کیږي.

## علامه طحاويؒ (المتوفي ۱۲۳۳هـ):

فإنه يسمعها أي :إذاكانت بالقرب منه ﷺ (وتبلغ إليه) أي: يبلغهاالملك إذاكان المصلي بعيداً. (طحطاوي ص ۴۰۵. طبع مير محمد كراچى)

ترجمه: حضور ﷺ درود او سلام هغه وخت کې پخپله باندې اوري کله چې قبرته نژدې ویل کیږي او فرښتې ورته هغه وخت کې رسوي کله چې دلیرې نه لوستل کیږي.

## علامه ابن عابدین شامي رحمه الله (المتوفي ۱۲۵۲هـ):

فقد أفاد فی الدر المنتقی أنه خلاف الإجماع قلت: مانسب إلی الإمام الأشعري رحمه الله إمام اهل السنة والجماعة من إنکار ثبوتها بعد الموت فهو افتراء وبهتان, والمصرح به فی کتبه وکتب اصحابه خلاف مانسب إلیه بعض أعدائه, لأن الأنبیاء علیهم الصلوة والسلام أحیاء فی قبورهم وقد أقام النکیر علی إفتراء ذالک الإمام العارف ابوالقاسم القشری....(ردالمحتار، باب المغنم ج ٤ ص ١٥١، ایچ ایم سعید کراچی)

ترجمه: دارالمنتقي کې دي چې د حضور ﷺ رسالت د حضور ﷺ دوفات نه وروسته هم حقیقي طورباندې باقی دی اودې ته یواځې حکماً باقی ویل داجماع خلاف دی، زه وایم چې دامام اهل سنت امام اشعري رحمه الله طرف ته چې کومه خبره منسوب شوې ده چې هغه دحضور ﷺ دوفات نه وروسته دحضور ﷺ دحقیقي رسالت منکردی. داهغه باندې بهتان دی. ځکه چې دهغه او دهغه دشاګردانو کتابونوکې ددې خلاف ذکرشوې دې. حقیقت کې داخبره دهغه دښمنانو دهغه طرف ته منسوب کړې ده. ځکه چې انبیاء علیهم السلام په قبرونوکې ژوندي دي،ددې افتراء خلاف امام عارف ابوالقاسم قشیري رحمه الله په خپل کتاب کې رد کړی دی.

علامه شامي رحمه الله یوبل ځای کې لیکي:

إن المنع هنا لإنتقاء الشرط وهو إماعدم وجود الوارث بصفة الوارثیة کما اقتضاه الحدیث ,وإماعدم موت الوارث بناء علی أن الأنبیاء أحیاء فی قبورهم کماورد فی الحدیث. (رسائل ابن عابدین ج ۲ ص ۲۰۲، سهیل اکیدمي لاهور).

ترجمه: بې شکه دلته منع دشرط دختمیدوپه وجه باندې ده اوهغه یاخودوارث وجود دوراثت صفت نه بغیر دی. څنګه چې حدیث ددې غوښتنه کوي اویادوارث نه مرګ دی، په دې وجه باندې انبیاء په خپل قبرونوکې ژوندي دي. څنګه چې حدیث کې راغلي دي:

علامه ابن عابدین شامي رحمه الله دامام ابوالحسن اشعري رحمه الله طرف ته دمنسوب شوې غلطې عقیدې په تردید کې لیکي:

لأن الأنبیاء علیهم الصلوة والسلام أحیاء فی قبورهم وقد أقام النکیر علیٰ افتراء ذالک الإمام العارف أبوالقاسم القشیري.(شامي ج ٤ ص ١٥١ باب المغنم)

ترجمه: ځکه چې انبیاء کرام علیهم السلام په خپلو قبرونوکې ژوندي دي اوامام ابوالقاسم القشیری ددې افتراء سختې سره تردید کړی دی.

نو موږې په یو بل ځای کې لیکي
ان الأنبیاء أحیاء فی قبورهم کما ورد فی الحدیث. (رسائل ابن عابدین ج ٤ ص ٢٠٢. سهیل اکیدمي لاهور)
ترجمه: انبیاء کرام علیهم السلام په خپلو قبرونوکې ژوندي دي. څنګه چې په حدیث کې راغلي دي.

## علامه محمد عابد السندي رحمه الله (المتوفي ١٢٥٧هـ):

أما هم (أی: الأنبیاء) فحیاتهم لاشک فیها ولا خلاف لأحد من العلماء فی ذالک.... فهو ﷺ حیٌّ علی الدوام. (رساله مدینه ص ٤١)
ترجمه: دانبیاء کرامو علیهم السلام په ژوندکې هیڅ شک نشته اونه دعالمانو دي کې څه اختلاف شته. حضور ﷺ همیشه له پاره ژوندې دی.

## نواب قطب الدین دهلوي رحمه الله (المتوفي ١٢٨٩هـ):

انبیاء علیهم السلام قبرونوکې ژوندي دي. دې مسئلې باندې دټولو اتفاق دی. دهیچا هم دې کې اختلاف نشته. چې هلته دهغوی ژوند ددنیاوي بدني ژوند په شان دی.
(مظاهر حق ج ١ ص ۴۴۵)

# [مالکیه رحمهم الله]

## امام مالک رحمه الله (المتوفي ١٧٩ هـ):

نقل عن الإمام مالک أنه کان یکره أن یقول رجل: زرت قبر النبي ﷺ. قال ابن رشد من أتباعه: أن الکراهة لغلبة الزیارة فی الموتی وهو ﷺ أحیاه الله تعالی بعد موته حیاة تامة واستمرت تلک الحیوة وهي مستمرة فی المستقبل ولیس هذا خاصة به ﷺ بل یشارکه الأنبیاء علیهم السلام فهو حیٌّ بالحیاة الکاملة مع الإستغناء عن الغذا الحسي الدنیوي. (نور الایمان بزیارة اثار حبیب الرحمن ص ١٤ مولانا عبد الحلیم فرنګي محلي، وکذلک فی وفاء الوفاء ج ٢ ص ١٣٦٣ مصر)
ترجمه: له امام مالک رحمه الله نه نقل دي چې هغه دانه خوښوله چې چابه داسې وویل ما دحضور ﷺ دقبر زیارت وکړ. دامام مالک رحمه الله په مقلدینوکې ابن رشد ددې تشریح داسې کوي چې ددې ناخوښوالي وجه داوه چې دزیارت لفظ عام طورباندې دمړي له پاره استعمالیږي اوحضور ﷺ دوفات نه وروسته دهمیشه له پاره ژوندی دی اوداژوندبه بیاهم همداسې وي. دایواځې دحضور ﷺ خاصیت نه دی بلکې ټول انبیاء کرام علیهم السلام دې

صفت کې حضور ﷺ سره شریک دي. حضور ﷺ د دنیاوي خوراک کولو نه پرته هم دهمیشه له پاره ژوندي دي.
مالکي عالمانوکې امام قرطبي رحمه الله (تفسیرقرطبی ج ۵ ص ۲۷۵) امام ابوحیان اندلسي (بحرالمحیط ج ۱ ص ۲۸۳) علامه ابن الحاج. علامه ابن رشداندلسي اوابن ابی جمرة وغیره ددې مسئلو ښه وضاحت کړی دی.

## علامه سمهودي رحمه الله (المتوفي ۹۱۱هـ):

**لاشک فی حیاته ﷺ بعدوفاته وکذاسائرالأنبیاء علیهم الصلوة والسلام أحیاء فی قبورهم حیاة أکمل، من حیوة الشهداء التی أخبرالله تعالی بهافی کتابه العزیز. (وفاء الوفاء ج ۲ ص ۱۳۵۲هـ مطبعة السعادة مصر)**

ترجمه: دوفات نه وروسته دحضور ﷺ په ژوندکې هیڅ شک نشته، اوهمدارنګه ټول انبیاء علیهم السلام په خپلو خپلو قبرونوکې ژوندي دي اودهغوی داژوندد شهیدانوله ژوندنه -کوم چې په قران کریم کې ذکرشوی دی- اعلی دی.
یوبل ځای کې لیکي:

**وأماأدلة حیاة الأنبیاء فمقتضاهاحیاة الأبدان کحالة الدنیامع الإستغناء عن الغذا. (وفاء الوفاء ج ۲ ص ۱۳۵۵)**

ترجمه: په هرحال دانبیاء کرام علیهم السلام دژونددلیلونه ددې خبرې غوښتنه کوي چې داژوند دبدنونو سره هم څنګه چې دنیاکې و .خو د خوراک او څښاک ضرورت ورته نشته.

## [شوافع رحمهم الله]

شوافعوکې امام بیهقي رحمه الله اوامام سیوطي رحمه الله دحیات انبیاء په عنوان باندې مستقل کتابونه لیکلي دي، دعلامه طیبي رحمه الله او حافظ ابن حجرعسقلاني رحمه الله په ډیروحوالو اوحدیثونوباندې بحثونه دې باره کې ستاسومخې ته راغلل اوعلامه سبکي رحمه الله هم ددې حقیقت تصدیق فرمایلی دی:

## علامه تاج الدین السبکي رحمه الله (المتوفی ۷۷۷هـ)

دحضرت انس رضي الله عنه دحدیث حواله ورکولوسره لیکي:

**عن أنس قال: قال رسول الله ﷺ :الأنبیاء أحیاء فی قبورهم یصلون فإذا ثبت أن نبینا ﷺ حيٌ ،فالحی لابدمن أن یکون إماعالماً أوجاهلاً ولایجوزأن یکون النبي ﷺ جاهلاً. (طبقات الشافعیه الکبری ج ۳ ص ٤۱۱، طبع دارالاحیاء)**

ترجمه: دحضرت انس رضی الله عنه نه روایت دی چې حضور ﷺ فرمایلي دي چې انبیاء علیهم السلام په خپلو خپلو قبرونوکې ژوندي دي اولمونځونه کوي. کله چې داخبره ثابته شوه چې حضور ﷺ ژوندی دی، نود ژوندله پاره لازم دي چې هغه یاعالم وي اویاجاهل او(معاذالله) حضور ﷺ هیڅکله جاهل نه دی.

بل ځای کې لیکي: **لأن عندنارسول الله ﷺ حیٌّ یحس ،ویعلم، وتعرض علیه أعمال الأمة ویبلغ الصلوة والسلام علی مابیناً.** (ج ۳ ص ۴۱۲)

ترجمه: زموږ په نزدباندې حضور ﷺ ژوندی دی. علم اوحس ورته حاصل دی اوحضور ﷺ ته دامت عملونه وړاندې کیږی اوحضور ﷺ ته درود اوسلام رسیږي. څنګه چې موږ بیان کړي دي.

اوعلامه سبکي رحمه الله خپله عقیده بیانولو سره لیکي:

**ومن عقائدناأن الأنبیاء علیهم السلام أحیاء فی قبورهم ،فأین الموت إلی أن قال: وصنف البیهقی رحمة الله جزاً سمعناه فی ''حیوة الأنبیاء علیهم السلام فی قبورهم، واشتد نکیر الأشاعرة علی من نسب هذا القول إلی الشیخ.** (طبقات ج ٦ ص ۲٦٦)

ترجمه: زموږ عقیده دا ده چې انبیاء علیهم السلام په خپلو خپلو قبرونوکې ژوندي دي، نوبیاهغوی باندې مرګ له کوم ځای نه؟ (بیایې مخکې فرمایلي دي) چې امام بیهقي رحمه الله دانبیاء کرام علیهم السلام په قبرکې ژوندباندې یوه رساله لیکلې ده. کومه چې موږ خپله اوریدلې ده، اوکومو خلکوچې دامام ابوالحسن اشعري رحمه الله طرف ته داغلطه خبره منسوب کړې ده، اشاعره دهغې سختې سره تردید کړی دی.

## حافظ ابن حجر رحمه الله (المتوفي ۸۵۲ هـ):

**ان حیاته ﷺ فی القبر لایعقبهاموت بل یستمر حیًا والأنبیاء أحیاء في قبورهم.** (فتح الباری ج ۷ ص ۲۲ طبع مصر)

ترجمه: دحضور ﷺ قبرکې ژوندمبارک داسې دي چې هغه ته مرګ نه راځي. بلکې حضور ﷺ به همیشه ژوندی وي. انبیاء کرام علیهم السلام به قبرونوکې همشه ژوندي وي

یوبل ځای کې لیکي

**وإذا ثبت أنهم أحیاء من حیث النقل فإنه یقوّیه من حیث النظرکون الشهداء أحیاء بنص القران والأنبیاء أفضل من الشهداء.** (فتح الباری ج ٦ ص ٤۸۸ دار النشر الاسلامیه لاهور)

ترجمه: اوکله چې له نقل څخه دهغوی ژوندي کیدل ثابت دي نو عقلي دلیل اوقیاس هم ددې تاییدکوي. هغه داچې دشهیدانو ژوند دقران نه ثابت دی اوانبیاء کرام علیهم السلام خو دشهیدانونه افضل دي، (نوهغوی ته په درجه اولی باندې ژوند حاصل دی)

## [حنابله رحمهم الله]

## ابن عقیل رحمه الله

قال ابن عقیل من الحنابلة هو ﷺ حیٌّ في قبره یصلی. (الروضة البهیه ص ۱٤)
ترجمه: د (حنابله وو مشهوربزرگ، ابن عقیل فرمايي چې حضور ﷺ په خپل قبرکې ژوندی دی اولمونځونه اداکوي.

## ❖ د نبي کریم ﷺ د حیات عقیده اودامت اکابرین ❖

### امام عبدالقادرالبغدادي (المتوفي ٤٢٩هـ)

واجمعوا علی أن الحیوة شرط في العلم والقدرة والارادة والرؤیة والسمع وان من لیس بحی لایصح أن یکون عالماً قادراً مریداً سامعًا مبصراً وهذا خلاف قول الصالحی وأتباعه من القدریة في دعواهم جواز وجود العلم والقدرة والرؤیة والأرادة في المیت. (الفرق بین الفِرق ص ۳۳۷ طبع مصر)
ترجمه: اهل سنت والجماعت دې خبرې باندې متفق دي چې دعلم. قدرت. ارادې کتلو او اوریدو له پاره ژوند شرط دی اودې خبرې باندې هم داهل سنت اتفاق دی چې کوم ذات کې ژوندنه وي هغه عالم، قادر، مرید، اوریدونکی اولیدونکی نه شي کیدای. دتقدیر منکرانو کې صالحي اودهغه دپیروانو قول ددې خلاف دی. دهغوی دعوه داده چې علم او قدرت کتل اواراده دژوندنه پرته هم جائزکیدای شي.

### امام بیهقي رحمه الله (المتوفي ٤٥٨هـ):

إن الله جل ثنائه ردإلی الأنبیاء أرواحهم فهم أحیاء عندربهم کالشهداء....الخ. (حیات الانبیاء ص ١٤ وفاء الوفاء ج ۲ ص ۱۳۵۲ شرح مواهب زرقانی ج ٥ ص ۳۳۲)
ترجمه: بې شکه الله تعالی دانبیاء کرامو علیهم السلام روحونه هغوی ته بېرته ور کړی دی. هغوی دخپل رب په نزد باندې دشهیدانو په شان ژوندي دي.

### امام شمس الدین محمدبن عبدالرحمن السخاوي رحمه الله (المتوفي ۹۰۲هـ):

نحن نؤمن ونصدق بأنه ﷺ حیٌّ یرزق في قبره وأن جسده الشریف لا تأکله الأرض والإجماع علی هذا. (القول البدیع ص ۱۲۵ طبع اله آباد)
ترجمه: مونږ دې خبرې باندې ایمان راوړو اوددې تصدیق کووچې حضور ﷺ په خپل قبرکې ژوندی دی اوحضور ﷺ ته رزق ورکول کیږی اودحضور ﷺ بدن مباک خاوره نه شي خوړلی اوپه دې باندې اتفاق دی.

## علامه جلال الدين سيوطي رحمه الله (المتوفي ٩١١هـ):

حياة النبي ﷺ فی قبره هو وسائر الأنبياء معلومة عندنا علماً قطعياً لما قام عندنا من الأدلة فی ذالک وتواترت به الأخبار الدالة علی ذالک. (الحاوي للفتاوي ج ٢ ص ١٤٧، مطبوعه دار الكتب العلميه بيروت بحواله انباء الاذكياء)

ترجمه: حضور ﷺ په خپل قبرکې او همدارنګه د نورو انبياء كرامو عليهم السلام ژوند زموږ په نزد باندې د علم نه ثابت دي، ځکه چې زموږ په نزد باندې دليلونه قائم او تواتر سره موجود دي، چې دې باندې دلالت کوي.

علامه سيوطي رحمه الله د حضور ﷺ د ژوند د عقيدې باره کې د تواتر دعوه کوي:

إن من جملة ما تواتر عن النبي ﷺ حياة الأنبياء فی قبورهم. (النظم المتاثر من الحديث المتواتر كذا فی شرح البوستوي ص ٤ طبع مصر)

ترجمه: يعني كوم شيان چې حضور ﷺ نه تواتر سره روايت شوي دي هغو کې ذاهم دي چې انبياء عليهم السلام په خپلو قبرونوکې ژوندي دي.

## علامه عبدالوهاب شعراني رحمه الله (المتوفي ٩٧٣هـ):

نوموړي د نبي كريم ﷺ د ژوند د عقيدې باره کې ليکي:

قد صحت الأحاديث أنه ﷺ حيٌّ فی قبره يصلي بأذان وإقامة. (منح المنه ص ٩٢ طبع مصر)

ترجمه: بې شکه د صحيح حديثونو نه ثابت دي چې حضور ﷺ په خپل قبرکې ژوندی دی او په اذان او اقامت سره لمونځ کوي.

## عبدالله بن عبدالوهاب نجدي رحمه الله (المتوفی ١٢٠٦هـ):

والذی نعتقد أن رتبة نبينا ﷺ علی مراتب المخلوقين علی الإطلاق وأنه حيٌّ فی قبره حيوة مستقرة أبلغ من حيات الشهداء المنصوص عليها فی التنزيل إذ هو أفضل منهم بلاريب وأنه يسمع من يسلم عليه.

(بحواله اتحاف النبلاء ص ٤١٥ طبع كانپور)

ترجمه: د هغه څه عقيده چې موږ لرو هغه داده چې حضور ﷺ مطلق درجې سره د ټولو مخلوقاتو نه اعلې کيدو سره خپل قبرکې د همېشه له پاره ژوندی دی، كوم چې د شهيدانو د ژوندنه اعلی او غوره دی، او دڅه ثبوت چې د قران كريم نه معلوميږي، ځکه چې حضور ﷺ بې شکه د شهيدانونه افضل دی، او كوم کس چې حضور ﷺ باندې (عند القبر) سلام وايي، هغه حضور ﷺ اوري.

## علامه قاضي شوكاني رحمه الله (المتوفى ۱۲۵۵هـ):

وقد ذهب جماعة من المحققين إلى أن رسول الله ﷺ حيٌّ بعد وفاته وأنه يسر بطاعات أمته وأن الأنبياء لايبلون مع أن مطلق الإدراك كالعلم والسماع ثابت بسائر الموتى. إلى أن قال: وورد النص في كتاب الله في حق الشهداء أنهم أحياء يرزقون وأن الحيوة فيهم متعلقة بالجسد فكيف بالأنبياء والمرسلين وقد ثبت في الحديث أن الأنبياء أحياء في قبورهم رواه المنذري وصححه البيهقي وفي صحيح مسلم عن النبي ﷺ قال: مررت بموسى ليلة أسرى بي عند الكثيب الأحمر وهو قائم يصلي في قبره.

(نيل الاوطار ج ۳ ص ۳۰۵ طبع دار الفكر بيروت)

ترجمه: بې شكه د محققينو يوه ډله دې طرف ته تللې ده چې حضور ﷺ د خپل وفات نه وروسته ژوندي دي، حضور ﷺ د خپل امت داطاعت په وجه باندې خوشحالیږي اوداچې دانبياء كرام عليهم السلام بدنونه نه خاورې كيږي، سره له دې چې مطلق شيان مثلاً علم اواوریدل خود ټولو مړوله پاره ثابت دي (بيايې مخكې ويلي دي) اوداالله تعالى په كتاب كې دشهيدانوله پاره ايت راغلى دى چې هغوى ژوندي دي اوهغوى ته رزق وركول كيږي اودهغوى ژوند بدن سره تعلق ساتي. نودانبياء اومرسلين عليهم السلام ژوندبه بدن سره تعلق ولې نه ساتي؟ اودحديث نه داهم ثابت دي چې انبياء عليهم السلام په خپلو قبرونوكې ژوندي دي، امام منذري رحمه الله دارِوايت كړى دى اوامام بيهقي رحمه الله ددې تصحيح كړې ده اوصحيح مسلم كې دي چې حضور ﷺ فرمايلي دي چې مادمعراج په شپه باندې دسوررنګ غره سره موسى عليه السلام په قبركې لمونځ كولوباندې ليدلى دى.

## نواب قطب الدين خان صاحب رحمه الله (المتوفي ۱۲۷۹هـ):

انبياء كرام عليهم السلام ژوندي دي، دې مسئلې باندې دټولواتفاق دى، دچاپه دې كې هيڅ اختلاف نشته چې هلته دهغوى ژوند ددنيا وي بدن په شان دى. (مظاهرحق ج ۱ ص ۴۴۵، باب الجمعة قبيل فصل الثالث طبع منشي نولكشورلكهنؤ)

## مولانا شمس الحق صاحب عظيم آبادي رحمه الله (المتوفي ۱۳۲۹هـ):

أن الأنبياء في قبورهم أحياء. (عون المعبود ج ۱ ص ۴۰۵، نشر السنع بوهر گيت ملتان)

ترجمه: انبياء كرام عليهم السلام په خپلو خپلو قبرونوكې ژوندي دي.

مولانا ابوالعتيق عبدالهادى محمد صديق نجيب آبادى الحنفي:

انهم اتفقوا على حيوته ﷺ بل حيوة الأنبياء عليهم الصلوة والسلام متفق عليها، لاخلاف لأحد فيها. (انور المحمود شرح ابي داؤد ج ۱ ص ۶۱۰)

ترجمه: محدثين حضرات دې باندې متفق دي چې حضور ﷺ ژوندی دی. بلکې دټولو انبياء کرامو عليهم السلام په ژوند باندې اتفاق دی او په دې کې د هيچا اختلاف نشته.

## د ديوبند د عالمانو او اکابرينو تصريحات

**السؤال الخامس.... ماقولكم فى حيوة النبي ﷺ فى قبره الشريف، هل ذالك أمر مخصوص به أم مثل سائر المؤمنين رحمة الله عليهم حيوة برزخية؟**

**الجواب .... عندنا وعند مشائخنا حياة حضرة الرسالة ﷺ حيٌّ فى قبره الشريف وحيوته ﷺ دنيوية من غير تكليف وهى مختصة به ﷺ وبجميع الأنبياء صلوت الله عليهم والشهداء لابرزخية كماهى حاصلة لسائر المؤمنين بل لجميع الناس كمانص عليه العلامة السيوطي فى رسالته (أنباء الأذكياء بحيوة الأنبياء) حيث قال: قال الشيخ تقى الدين السبكى: حيوة الأنبياء والشهداء فى القبر كحياتهم فى الدنيا ويشهد له صلوة موسى عليه السلام فى قبره فإن الصلوة تستدعي جسداً حياً إلى أخر ماقال فثبت بهذا أن حيوته دنيوية برزخية لكونها فى عالم البرزخ ولشيخنا شمس الاسلام والدين محمد قاسم العلوم على المستفيدين قدس الله سره العزيز فى هذا المبحث رسالة مستقلة دقيقة المأخذ بديعة المسلك لم ير مثلها قد طبعت وشاعت فى الناس واسمها (آب حيات، اى: ماء الحيات).... الخ. (المهند على المفند ص ۱۳، ۱۴، عقائد علماء ديوبند او حسام الحرمين ص ۲۲۱ مطبوعه دار الاشاعت کراچی)**

ترجمه: پنځم سوال.... څه فرمايئ ! د جناب رسول الله ﷺ په قبر کې د ژوند باره کې چې حضور ﷺ ته قبر کې خاص ژوند حاصل دی او که د عامو مسلمانانو په شان برزخي ژوندی دی؟

**جواب:** زمونږ او زمونږ د مشايخو په نزد باندې حضور ﷺ په قبر کې ژوندی دی او د حضور ﷺ ژوند د دنيا د ژوند په شان دې، له هر ډول تکليف پرته. دا ژوند خاص د حضور ﷺ سره او ټول انبياء کرامو عليهم السلام سره او شهيدانو سره. برزخي نه دی کوم چې عامو مسلمانانو بلکې ټولو خلکو ته حاصل وي. علامه سيوطي رحمه الله په خپلې رسالې انباء الاذکياء بحيوة الانبياء کې تصريح سره ليکلي دي. هغوی فرمايي چې علامه تقي الدين سبکي رحمه الله فرمايلي دي چې انبياء عليهم السلام او شهيدان قبر کې داسې ژوند تيروي څنګه چې په دنيا کې و او د موسی عليه السلام قبر کې لمونځ کول د دې دليل دی. ځکه چې لمونځ ژوندی بدن اداکولی شي.... الخ. د دې نه ثابته شوه چې د حضور ﷺ ژوند دنيوي دی او په دې معنا کې برزخي هم چې برزخ کې

ورته حاصل دی. اوزموږ دشیخ مولانامحمدقاسم صاحب قدس سره دې بحث کې یوه مستقله رساله هم ده.ډیره دقیق او نوي انداز کې بې مثله ده اوچاپ شوې هم ده. دهغې رسالې نوم آب حیات دی.

## حضرت مولانا احمدعلی سهارنپوری رحمه الله الحنفي (المتوفي ۱۲۹۷هـ):

والأحسن أن يقال أن حياته ﷺ لايتعقبهاموت بل يستمرحياً والأنبياء أحياء فى قبورهم.
(حاشيه بخاري ج۱ ص ۵۱۷)

ترجمه: ښه خبره داده چې وویل شي چې دحضور ﷺ ژونداسې دي چې دهغه نه وروسته مرګ نه راځي. بلکې حضور ﷺ ته نه ختمیدونکی ژوند حاصل دی اونورانبیاء کرام علیهم السلام هم په خپلو خپلو قبرونو کې ژوندي دي.

## حضرت مولانا رشیداحمد ګنګوهي رحمه الله (المتوفي ۱۳۲۳هـ):

قبرته نژدې دانبیاوو په اوریدلوکې دهیڅاهم اختلاف نشته.(فتاوي رشیدیه ج ۱ ص ۱۰۰)

## حضرت مولانا خلیل احمدسهارنپوري رحمه الله (المتوفي ۱۳٤٦هـ):

أن نبي الله ﷺ حيٌّ فى قبره كماأن الأنبياء عليهم السلام أحياء فى قبورهم. (بذل المجهودباب التشهيد ج ۲ ص ۱۱۷)

ترجمه: حضور ﷺ په خپل قبرکې ژوندی دی. لکه څنګه چې نورانبیاء کرام علیهم السلام په خپلو قبرونوکې ژوندي دي.

## حضرت مولانا سید محمدا نورشاه (المتوفي ۱۳۵۲هـ):

وقد يتخايل أن ردالروح ينافى الحيوة وهويقررهافان الردإنمايكون إلى الحى
لاإلى الجمادكماوقع فى حديث ليلة التعريس يريدبقوله: الأنبياء مجموع الأشخاص لاالأرواح فقط.... الخ.
(تحية الاسلام ص ۳۵. ۳۲. مدينه پريس بجنور. يوپی)

ترجمه: کله کله داخیال کیږي چې روح واپس کول دژوند خلاف دي. سره له دې چې دروح رد ژوندثابتوي، ځکه چې روح دژوندي طرف ته واپس کیږي ، دمړي طرف ته نه. لکه چې دليلة التعريس په حدیث کې دي:(کله چې ټول حضرات ویده شول اودلمر ختلونه وروسته ټول بیدارشول اوهغه کې دردروح ذکردی. بخاري ج ۱ ص ۸۳) اود انبیاء کرام علیهم السلام د ژوند نه . یواځې روح نه(یعنې هغوی دخپلو بدنونوسره ژوندي دي)

یو بل ځای کې لیکي:

إن كثيراً من الأعمال قد ثبتت في القبور كالأذان والاقامة عند الدارمي وقراءة القران عند الترمذي....الخ. (فيض الباري ج ۱ ص ۸۳ كتاب العلم، باب من اجاب الفتياء. طبع مجلس علمي ډابهيل)

ترجمه: قبرونو کې دډیرو عملونو ثبوت شته، لکه داذان او اقامت ثبوت ددارمي په روایت کې، او دقران دتلاوت ثبوت دترمذي په روایت کې.

## حضرت مولانا اشرف علي تهانوي رحمه الله المتوفي (۱۳۶۲هـ):

بیهقي وغیره دحضرت انس رضي الله عنه نه روایت کړی دی چې رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمایلي دي چې انبیاء علیهم السلام په خپلو خپلو قبرونوکې ژوندي وي اولمونځونه کوي، كذا في المواهب. او دالمونځ تکلیفی نه وي بلکې دخوند (تلذذ) له پاره دی اودې ژوندنه داسې کَمل پکار نه دي چې حضور صلی الله علیه وسلم ته له هرځای نه اوازکول روا دي....الخ.

(نشر الطیب ص ۲۰۸، ۲۰۹ طبع کتب خانه اشاعت العلوم سهارنپور)

اویو بل ځای کې لیکي:

حضور صلی الله علیه وسلم دقران مطابق، قبرکې ژوندی دی. (التکشف ص ۴۴۲)

## شیخ الاسلام حضرت مولانا شبیراحمد عثماني رحمه الله (المتوفي ۱۳۶۹):

أن النبي صلی الله علیه وسلم حيٌّ كما تقرر وأنه يصلي في قبره بأذان وإقامة. (فتح الملهم ج ۳ ص ۴۱۹، باب فضل الصلاة بمسجدي مكة والمدينة، المطبعة الشهيرة بهانده پریس جالندهر)

ترجمه: حضور صلی الله علیه وسلم ژوندی دی څنګه چې داثابت دي، او حضور صلی الله علیه وسلم قبرکې اذان او اقامت سره لمونځ کوي.

## حضرت مولانا سید حسین احمد مدني رحمه الله (المتوفي ۱۳۷۷هـ):

دحضور صلی الله علیه وسلم ژوندنه یواځې روحاني دی چې عامو شهیدانوته هم حاصل دی بلکې دبدني اودنیاوي ژوندپه شان دی اوپه ډیرو وجو باندې له دې بهتر هم دی. (مکتوبات الاسلام مکتوب نمبر ۴۴ ج ۱ ص ۱۲۰، مطبوعه مکتبه دینیه دیوبند یوپی)

یو بل ځای کې لیکي:

هغوی (وهابیان) دظاهري مرګ نه وروسته دانبیاء علیهم السلام دبدني اوبقایي (علاقة بين الروح والجسم) منکردي اود (دیوبند) عالمان نه یواځې ددې قایل دي بلکې ثابته وي یې هم اوپه ډیر زور او شورسره یې دې باره کې رسالې چاپ کړي دي. (نقش حیات ج ۱ ص ۱۲۰ مطبوعه عزیزپبلی کیشنز لاهور)

# ❖ د حضور ﷺ د حیات په عقیده باندې اجماع ❖

## علامه سخاوي رحمه الله (المتوفي ۹۰۲هـ):

نحن نؤمن ونصدق بأنه ﷺ حيٌ يرزق فى قبره وأن جسده الشريف لا تأكله الأرض والإجماع على هذا. (القول البديع ص ١٦٧ مطبعة الانصاف بيروت)

ترجمه: زمونږ ایمان دی او مونږ ددې تصدیق کوو چې حضور ﷺ په خپل قبرشریف کې ژوندی دی، حضور ﷺ ته هلته رزق هم ورکول کیږي او د حضور ﷺ بدن مبارک خاوره هم نه خوري او دې عقیدې باندې د اهل حق اتفاق دی.

## د منکرین حیات حکم

شیخ الاسلام حضرت علامه عیني رحمه الله (المتوفی ۸۵۵هـ) فرمايي:

**من أنكر الحيوة فى القبر وهم المعتزلة ومن نحا نحوهم وأجاب أهل السنة عن ذالك. (عمدة القاري شرح بخاري ج ۸ ص ۶۰۱)**

ترجمه: کومو خلکو چې د حضور ﷺ د ژوندنه انکار وکړ، نو هغوی معتزله او د هغوی د عقیدې والادي، اهل سنت د هغوی د دلیلونو ځوابونه ورکړي دي.

حافظ ابن حجر عسقلاني رحمه الله (المتوفي ۸۵۲هـ) هم داسې انداز سره فرمائيلي دي چې د حضور ﷺ د ژوندنه انکار کونکي اهل سنت نه دي:

**قد تمسک به من أنكر الحيوة فى القبر وأجيب عن أهل السنة.... أن حيوته ﷺ فى القبر لايعقبها موت بل يستمر حيا. (فتح الباری ج۷ ص۲۲ طبع مصر)**

ترجمه: قبرکې د ژوندنه انکار کونکي ددې حدیث نه استدلال کوي او د اهل سنت د طرف نه ددې ځواب ورکول کیږي چې د حضور ﷺ په قبرکې ژوند داسې دی چې هغه ته په دویم ځل باندې مرګ نه راځي، بلکې حضور ﷺ به همیشه له پاره ژوندی وي.

حضرت مولانا احمدعلي صاحب محدث سهارنپوري رحمه الله هم دا عبارت د بخاري ج ۱ ص ۵۱۷ په حاشیه باندې نقل کړی او دا خبره یې تسلیم کړې هم ده.

تر اوسه پورې بیان شویو قولونو څخه دا واضحه شوه چې د قرآن، سنت او د اکابرو عالمانو د تصریحاتو په رڼاکې دا د اهل سنت بنیادي عقیده ده او دې سره داوسني دور د بعض تجدد خوښونکیو نه پرته د بل چا اختلاف نشته، هلته دا هم ښکاره کول ضروري معلومیږي چې د دیوبند اکابرینو (المهند علی المفند) مرتب کولو سره امت ته دا حقیقت هم واضح کړچې د دیوبند د عالمانو په دې باره کې هغه عقیده ده کومه چې د امت د اسلافو وه.

خو له دې تېرلوسره سره کله چې لږ خلکو (شرذمه قليله) له دې اجماعي عقيدې سره د اختلاف کولو کوشش وکړ، نو نه يواځې يې له دوی نه دبېزاري اظهار وکړ بلکې د اوسني دور عالمانو ددې مسئلې د اهميت او حقيقت ښکاره کولو سره د اليک وليکله او ددې يې اتفاق سره اعلان وکړ.

## دمسئله حيات النبي ﷺ په اړه د ديوبند

## د اوسني دور د اکابرينو مسلک او د هغوی اعلان

دحضرت اقدس نبي کريم ﷺ او دټولو انبياء کرام عليهم السلام باره کې دديوبند د اکابرينو مسلک دادی چې دمرګ نه وروسته هغوی په خپلو قبرونوکې ژوندي دي او دهغوی پاک بدنونه محفوظ دي. له عنصري بدن سره هغوی ته برزخ کې ژوند حاصل دی او ددنياوي ژوند په شان دی.

يواځې دومره خبره ده چې هغوی په شرعي حکمونو مکلف نه دي. خو هغوی لمونځ هم کوي او روضې مبارکې سره چې کوم درودولوستل شي هغه له څه واسطې پرته اوري. هم دا د جمهور محدثينو او داهل سنت والجماعت دمتکلمينو مسلک دی، دديوبند داکابرينو په مختلفو رسالو کې ددې تصريحات موجوددي. دحضرت مولانا محمد قاسم نانوتوي رحمه الله خو مستقله رساله دانبياء کرام عليهم السلام په ژوندباندې د "آب حيات" په نوم باندې موجوده ده. دحضرت مولانا خليل احمدصاحب - چې دحضرت مولانا رشيد احمد ګنګوهي رحمه الله په خاص خليفه ګانوکې دې- رساله (المهند على المفند) هم داهل انصاف او اهل بصيرت له پاره کافي ده. اوس چې څوک ددې مسلک خلاف دعوه کوي. دومره خبره يقيني ده چې دهغوی د ديوبند اکابرينو سره هيڅ تعلق نشته، والله يقول الحق وهويهدي السبيل.

۱: مولانامحمد يوسف بنوري رحمه الله، مدرسيه عربيه اسلاميه کراچی نمبر ۵.

۲: مولاناعبدالحق رحمه الله مهتمم دارالعلوم حقانيه اکوړه خټک.

۳: مولانامحمدصادق رحمه الله سابق ناظم محکمه امورمذهبيه بهاولپور.

۴: مولاناظفراحمد عثماني رحمه الله شيخ الحديث دارالعلوم اسلاميه ټنډو اله يارسنده.

۵: مولاناشمس الحق افغاني رحمه الله صدروفاق المدارس العربيه پاکستان.

۶: مولانامحمد ادريس کاندهلوي رحمه الله شيخ الحديث جامعه اشرفيه لاهور.

۷: مولانامفتي محمد حسن رحمه الله مهتمم جامعه اشرفيه لاهور.

۸: مولانارسول خان رحمه الله جامعه اشرفيه نيلاګنبدلاهور.

۹: مولانامفتي محمد شفيع رحمه الله مهتمم دارالعلوم کراچي

۱۰: مولانااحمدعلي لاهوری رحمه الله اميرنظام العلماء واميرخدام الدين لاهور (تلک عشرة کاملة)

(ماهنامه پيام مشرق لاهور جلد۳ شماره ۴ ربيع الاول ۱۳۸۰ هـ. ستمبر ۱۲۰) (بحواله تسکين الصدورص ۳۷)

غرض دا چې زما او زما د اکابرينو عقيده دا ده چې حضور ﷺ په خپلې روضې کې بدني ژوند سره ژوندی دی، دغه ژوند برزخي دی خو د دنياوي ژوند نه غوره دی. کوم خلک چې د دې مسئلې نه انکار کوي. د هغوی د ديوبند اکابرو عالمانو او د امت اساطينو د تصريح مطابق د ديوبند عالمانو سره هيڅ تعلق نشته .زه هغوی په اهل حق کې نه ګڼم او زما د اکابرينو په نزد باندې هغوی ګمراه دي او د هغوی په اقتداء کې لمونځ جائز نه دی او د هغوی سره هيڅ قسمه تعلق ساتل هم نه دي پکار. والله يقول الحق وهو يهدی السبيل.

## د برزخ ژوند د بحث موضوع ده

**سوال:** له وفات نه وروسته د نبي کريم ﷺ د ژوند قايل ته منکر ويل ستاسو په نزد شرعي طور باندې څنګه دی؟ او ايا د عالمانو مختلف تحقيقات د نبي کريم ﷺ طرف ته منسوبېدای شي؟ مثلاً يو عالم ورته دنياوي ژوندی وويل. بل ورته برزخي وويل. نو لومړي ته شرعي طور باندې حق شته چې هغه دويم ته منکر ووايي؟

**جواب:** سوال باندې پوره طور باندې پوه نه شوم. که چېرې اختلاف يوا ځې د تعبيراتو وي نو نزاع لفظي ده. او که چېرې د نتيجې او مآل فرق وي. نو د اعتناء قابل دی. د ژوند په مسئلې کې د برزخ ژوند د خبرو موضوع ده، د نفي او اثبات تعلق هم د ې سره دی. که چېرې د دواړو فريقينو مقصد يو وي. نو نزاع به لفظي وي. که نه معنوي به وي.

**سوال:** زما په شان ديو ځوان لا ئقو خيال دی چې د حضور ﷺ د ژوند په مسئله کې د ديوبند له عالمانو نه مولانا حسين علي رحمه الله له د شاګردانو سره هم هغه سلوک وکړ کوم چې مولانا احمد رضا خان د ديوبند اکابرينو سره کړی و (يعنې غلطه پراپيګنډه) تاسو د ې باره کې څه فرمايئ؟

**جواب:** هرکس ته حق دی چې هغه خپل خيال صحيح وګڼي، خو که چېرې هغه حقيقت وي، نو هغه به رښتياوي که نه غلط به وي. زما خطاکار په خيال باندې ستاسو خيال له حقيقت نه خلاف دی.

## دروح بېرته ورکول

**سوال:** زمونږ عقيده ده چې حضور ﷺ السلام په خپل قبر کې ژوندی دی. نو بيا د دې حديث شريف څه معنا شوه : کله چې زما قبر باندې څوک درود شريف ولولي نو ما ته زما روح بېرته را کړل شي او زه د هغه د سلام ځواب ورکړم. سو ال دا دی چې څوک له وړاندې ژوندې وي. هغه ته روح بېرته ورکول څه معنا لري؟ دويم دا چې د حضور ﷺ په دربار کې هر وخت د سلام نذرانه وړاندې کېږي نو هم دا رنګه بار بار د روح وتل او دا خليدل خو يو قسمه عذاب شو (نعوذبالله) ايا دا حديث صحيح دی؟

**جواب:** حافظ سیوطي رحمه الله دې موضوع باندې رساله لیکلې ده، هغې کې هغه ستاسو د سوال یو ولس ځوابونه ورکړي دي خوزمازړه ته یوهم لوېدلی ، یاپه صحیح الفاظوکې په یو هم نه یم پوه شوی،ددې رد روح حقیقت خوبه الله تعالی ته معلوم وي،زموږ د عقل اوپوهې نه بهرخبره ده، خو زماخیال دادی چې دنیاکې څوک یوطرف ته متوجه شي. نوبل طرف ته یې توجه نه وي، خوبرزخ اګرچې درسول الله ﷺ روح دالله تعالی په جمال کې مستغرق وي . خوهلته والله اعلم، یوطرف ته توجه دبل طرف توجه نه منع نه کوي، په لکونوبلکې کروړونو امتیان په یووخت کې سلام وړاندې کوي، خودحضور ﷺ روح هرطرفته متوجه دی. رد الله عليّ روحي ،مطلب دادی چې الله تعالی دهرسلام کونکي طرف ته پاک روح متوجه کوي.والله اعلم بحقیقة الحال!

## د اشاعت التوحیدوالسنة پاکستان دمقننه مجلس فیصله

**سوال:** داشاعة التوحید دمقننه مجلس فیصله ستاسوخدمت کې وړاندې کوم. پوښتنه داده چې ایاددې فیصلې په ضد کې ددیوبنداکابرین رحمهم الله تعالی نه راځي، چې دهغوی د انبیاء کرام علیهم السلام دژوندأودهغوی داوریدلوعقیده ده؟

دفیصلې الفاظ دادی:

داشاعة التوحید والسنة پاکستان دمقننه مجلس فیصله:

سماع موتی عقیده دقران کریم خلاف ده، قران کې سماع موتی ثابت نه ده، کوم خلک چې دبمشیة الله خرقاً للعادة عندالقبر سماع قایل دي. هغوی کافرنه دي اوکوم خلک چې دسماع موتی په هروخت لیرې اونزدې نه قایل دي. هغوی زموږپه نزدباندې دداسلام نه خارج دي.

دافیصله شرعي طورباندې صحیح ده؟ دشریعت مطابق ځواب راکړئ!

صوبیدار اکبرخان

**جواب:** دسماع موتی باره کې چې حضرت ګنګوهي رحمه الله په فتاوي رشیدیه کې څه لیکلي دي هغه صحیح دي اوستاسورالیږل شوې پرچې باندې چې څه لیکل شوي دي هغه غلط دي، دحضرت ګنګوهي رحمه الله الفاظ دادي:

"دامسئله دصحابه کرامو رضي الله عنهم ددورنه مختلف فیها ده، ددې هیڅ فیصله نه شم کولی"

(فتاوي رشیدیه ص ۸۷، مطبوعه قران محل کراچی)

کله چې دامسئله دصحابه کرامو ،تابعینواوسلف صالحینو (رضی الله عنهم) له زمانې نه مختلف فیها راروانه ده، نودې کې یوفریق ته کافرویونکی دګمراه اودخارجي ویلوقابل دی.

والله اعلم.

## د نبي كريم ﷺ د حيات عقيده او مسلمان امت

**سوال:** ۱: د نبي كريم ﷺ د برزخي ژوند باره كې د مسلمان امت او د ديوبند د اكابرينو عقيده څه ده؟

**سوال:** ۲: كوم تقرير كونكي چې په خپل هر يو تقرير كې د نبي كريم ﷺ د ژوند په انكار كې ضرور څه نا څه وايي او د حضور ﷺ د ژوند قايل خلكو ته بد رد وايي. ايا هغه په اهل سنت كې دي؟

**سوال:** ۳: ايا دا په رښتيا باندې د ديوبند د مسلک ترجماني ده. څنګه چې د هغوى دعوه ده؟

**سوال:** ۴: ايا د نبي كريم ﷺ د ژوند عقيده د قران او حديث نه ثابته نه ده؟

**سوال:** ۵: ايا د انبياء عليهم السلام د اوريدو مسئله اختلافي ده؟

**سوال:** ۶: ايا فتاوى رشيديه كومه چې ستاسو په لاس نو كې ده. اصلي ده؟

**سوال:** ۷: د حضور ﷺ د ژوند منكران خپل معتقدينو ته وايي چې اوس ديوبند كې هم تخريب كار شامل شوي دي، په دې وجه باندې هلته هم د اصل عقيدې مخالفت كيږي او د بريلوي ذهن خلک هلته هم شامل شوي دي. ايا دا خيال صحيح دى؟

**سوال:** ۸: مجمع الزوائد او مستدرک وغيره كې چې كوم حديث راغلى دى چې حضرت عيسى عليه السلام به د حضور ﷺ روضې ته حاضر شي او سلام به وكړي، حضور ﷺ به د هغه ځواب وركړي، صحيح دى او كه نه؟

**جواب:** ۱: زموږ او زموږ د اكابرينو د حضور ﷺ د ژوند باره كې دا عقيده ده چې دا برزخي ژوند دى كوم چې د دنياوي ژوند په شان دى.

**جواب:** ۲، ۳: د نبي كريم ﷺ د ژوند قايلينو ته بد رد ويونكي نه د اهل السنة والجماعت ترجمانان دي او نه د ديوبند د عالمانو.

**جواب:** ۴: د حضور ﷺ د ژوند عقيده د قران كريم نه په دلالة النص او د حديثونو نه په صراحة النص سره ثابته ده.

**جواب:** ۵: ما ته دې كې د چا اختلاف معلوم نه دى.

**جواب:** ۶: فتاوي رشيديه كې د سماع موتى باره كې بحث دى. د انبياء كرام عليهم السّلام د ژوند باره كې نه.

**جواب:** ۷: المهند على المفند. خو د بريليانو په مقابله كې ليكل شوى دى، په هغه باندې زموږ د اكابرينو دستخط موجود دى، دې كې د حضور ﷺ د ژوند مسئله شرح او تفصيل سره ذكر شوې ده.

**جواب:** ٨: دا روایت صحیح دی[١] او د صحیح مسلم روایت ددې تائید کونکی دی[٢] والله اعلم

## دحیات النبي په منکرینوپسې اقتداء

**سوال:** یو عالم داعقیده لري چې حضور ﷺ ته برزخي ژوند حاصل دی. دامعنا چې دحضور ﷺ بدن مبارک په خپل قبرکې صحیح سلامت موجود دی. خودغه بدن مړ دی. هغه کې ژوند نشته. یواځې روح ته ژوند حاصل دی اودروح بدن مبارک سره هیڅ تعلق نشته. کوم کس چې ددې عقیدې خلاف عقیده لري هغه کافر اوهندودی. ددې خبرې اظهار هغه اکثره په خپلو تقریرونو کې کوي. اوس سوال دادی چې:

**سوال:** ١: ایاداسې عقیده لرونکي عالم سرهٔ دعقیدت ساتل جائزدي؟

**سوال:** ٢: ایاد داسې عقیدې لرونکي امام وروسته لمونځ کیږي؟

**سوال:** ٣: دداسې عقیده لرونکي کس تقریرونه اوریدل شرعي طور باندې جائزدي اوکه دګناه سبب جوړیږي؟

**سوال:** ۴: ددې عقیدې خلاف ښکاره طورباندې ردکول پکاردي اوکه خاموشي اختیارول پکاردي؟

**جواب:** زمااوزمااکابرینوعقیده داده چې حضور ﷺ په خپل قبر مبارک کې بدني ژوندسره ژوندی دی، اودابرزخي ژونددی. حضور ﷺ درود اوسلام وړاندې کونکوته ددرود اوسلام ځواب ورکوي[٣] اوهغه ټول کارونه دکومو تفصیل چې الله تعالی ته معلوم دی. اداکوي، دحضور ﷺ ژوندته برزخي ژوندپه دې وجه باندې ویل کیږي چې ژوندورته برزخ کې حاصل دی اوددې تعلق روح اوبدن دواړوسره دی، کوم کس چې ددې عقیدې خلاف عقیده لري،

---

١] عن عطاء ، مولى أم حبيبة قال : سمعت أبا هريرة ، يقول : قال رسول الله صلى الله عليه وسلم : « ليهبطن عيسى ابن مريم حكما عدلا ، وإماما مقسطا وليسلكن، فجا: حاجا ، أو معتمرا أو ابنيتهما وليأتين قبري حتى يسلم ولأردن عليه » يقول أبو هريرة : « أي بني أخي إن رأيتموه فقولوا : أبو هريرة يقرئك السلام » « هذا حديث صحيح الإسناد ولم يخرجاه بهذه السياقة (مستدرک حاکم ج:٢،ص: ٥٩٥ هبوط عيسى عليه السلام وقتل الدجال واشاعة الاسلام ، طبع دار الفكر بيروت)

٢] عن ابي هريرة رضى الله عنه ان رسول الله صلى الله عليه وسلم قال : والذى نفسى بيده ! ليهلن ابن مريم بفج الروحاء حاجا او معتمراً او ليثنينهما رواه مسلم (التصريح بما تواتر فى نزول المسيح ص:١٠٠)

٣] عن ابي هريرة رضى الله عنه قال : قال رسول الله صلى الله عليه وسلم ما من احد يسلم على الا رد الله على روحى حتى ارد عليه السلام (رواه ابوداؤد والبيهقى فى الدعوات الكبير( مشكوة ص:٨٦ باب الصلوة على النبى ، طبع قديمى كتب خانه)

هغه زماد اکابرینو په نزد باندې گمراه دی. د هغه په اقتداء کې لمونځ جائزنه دی. د هغه تقریر اوریدل جائزنه دي. او هغه سره هیڅ قسمه تعلق ساتل نه دي پکار.

## د انبیاء علیهم السلام په قبرونوکې د ژوند نه د انکار کونکو حکم

محترم مولانا محمد یوسف لدهیانوي صاحب.....السلام علیکم ورحمة الله وبرکاته.
روزنامه جنگ کراچی ۹ جون ۱۹۹۵ء کې تاسو لیکلي و.
"سلف صالحین سره بې اعتمادي.."

**سوال:** یوه فرقه د انبیاء کرام علیهم السلام په قبرکې د ژوند. سماع موتی، د دنیاکې په قبرکې د حساب کتاب، تعویذ، واسطې او وسیلې قایلینو ته کافر او مشرک وايي، و وايي چې د انبیاء کرام علیهم السلام ژوند او حساب کتاب د برزخ معاملې دي. برزخي قبر هر انسان ته ورکول کیږي، د قبرنه مراد د اکنده نه ده په کوم کې چې انسان خښیږي. افسوس چې د اخلک د کافر او مشرک د فتوا شروع د امام احمد بن حنبل رحمه الله نه کوي. هغوی وايي چې د دې عقیدو شروع له هغه نه وشوه. د هغه نه وروسته امام بن تیمیه رحمه الله. ابن قیم رحمه الله سره ټول صالحین د کفر او شرک د دې فتوا کې داخل دي. د خداې له پاره ځواب راکړئ چې د غه فرقه مسلمانان دی او که کافران؟

د سوال وجه داده چې زما یوماما هم د دې فرقې سره تعلق ساتي. او س هغه کراچۍ کې وفات شوی دی او هم هلته خښ دی. زما هروخت هغه له پاره د دعاکولو او ثواب بخښلو نیت وي. خود هغه د دې عقیدو په وجه باندې ویریږم. چې الله دې نه کړي هسې نه چې د غه فرقه بالکل مسلماني نه خارجه نه وي؟

**جواب:** دا فرقه د خارجیانو په شان ده. چې دوی د امت ټول اکابر اهل سنت او تر حد پورې چې امام احمد بن حنبل رحمه الله هم کافر او مشرک گڼي او د هغوی د عقیدو مقصد سلف صالحینو باندې بې اعتمادي او خپل جهالت باندې غرور دی. د عقیدو په کتابونوکې د بعضې اکابرینو قول دی چې کومه فرقه ټولو سلفو صالحینو ته گمراه وايي. هغه به گمراه گڼل کیږي او کومه فرقه چې د دې ټولو ته کافر وايي هغه به کافر گڼل کیږي. په هرحال هغوی ته کافر ویلو کې احتیاط پکار دی. خود هغوی په گمراهي کې هیڅ شک نشته. تاسو د اسې دعا کوئ که چېرې هغه مسلمان و. نو الله تعالی دې د هغه بښنه وکړي.

د دې ځواب په رڼاکې چې کومه فرقه د انبیاء کرام علیهم السلام په قبرونوکې د ژوند. سماع موتی، دنیاوي قبرکې د حساب کتاب. تعویذ او واسطې وسیلې قایلینو ته مشرکان وايي، هغوی ستاسو په نزد د خارجیانو په شان دي او د هغوی په گمراهي کې هیڅ شک نشته. د دې باره کې زه تاسو نه یو څو سوالونه کول غواړم. تاسو ته خواست دی چې د قران او سنت مستند و حوالو سره ځواب راکړئ. هغه سوالونه دا دي:

## سماع موتی د قران په نظرکې

۱: قران کې الله تعالی نبي کریم ﷺ منع کړی دی چې: وماأنت بمسمع من فی القبور. (پاره ۲۲ رکوع ۱۵ سورة فاطر)
ترجمه: اې نبي ﷺ ته قبرکې موجود و مړو ته څه نه شې وراورولی.
یوبل ایت کې دي: فإنک لاتسمع الموتی. (سورة روم رکوع ۸)
ترجمه: اې نبي ﷺ تاسو مړو ته څه نه شئ وراورلی.
سورت نمل کې هم داسې یوایت موجوددی، کوم چې د سماع موتی نفی کوي. د پورته بیان شویو ایتونو نه د سماع موتی نفی کیږي او ستاسو په ځواب کې (کوم چې روزنامه جنګ کې چاپ شوی دی) د سماع موتی تائید کیږي.
مهربانی وکړئ ددې اصل وجه وښایئ، یعنې ددې ایتونو چې څه مقصددی، دهغه نه موخبرکړئ، چې زموږشکونه ختم شي، کوم چې زماذهن کې پیداکیږي.

## سماع موتی د حدیثونو په نظرکې

عزوه بدرکې چې کوم کافران قتل شول، نبي کریم ﷺ دهغوی (مړه شوي) بدنونه یوې کندې ته وغورځول او هغوی ته یې وفرمایل:
**هل وجدتم ماوعدربکم حقا؟**
ترجمه: تاسو سره چې ستاسو پروردګار کومه وعده کړې وه هغه تاسو حق وموندله؟
صحابه کرامو رضوان الله علیهم اجمعین عرض وکړ. یارسول الله! تاسو مړو ته خبرې کوئ؟
حضور ﷺ وفرمایل:
**ماأنتم بأسمع منهم ولکن لایجیبون.**
ترجمه: تاسو دهغوی نه زیات نه اورئ، خودوی ځواب نه شي ورکولی.
داواقعه چې کله دحضرت عائشې رضی الله عنها خدمت کې وړاندې کړل شوه. نوام المؤمنین رضی الله عنها وفرمایل چې داخبره حضور ﷺ بالکل نه وه فرمایلې. بلکې حضور ﷺ فرمایلی و:
**إنهم آلان لیعلمون أن ماکنت أقول لهم حق! (بخاري ج ۲ ص ۵۶۷)**
ترجمه: دوی به اوس هغه خبره موندلې وي کومه به چې ما دوی ته کوله.
اوحضور ﷺ داسې خبره نه ده کړې ځکه چې دالله تعالی ارشاددی: إنک لاتسمع الموتی.
(یقیناً تاسو مړو ته څه نه شئ وراورولی.) (بخاري ج ۲ ص ۵۶۷)
پورته ذکرشوې واقعه هم دسماع موتی انکارکوي. تاسو سره موږ نه زیات علم دی، تاسو ته به پته وي چې دحضرت عائشې رضی الله عنها په علم کې څومره مقام و؟ دهغې نه ښه مفسره، محدثه،

فقیهه. خطیبه له ټولونه اعلی تاریخ پوهه اوله ټولونه د نسبونوماهره تاید په دنیاکې اوسه پورې څوک نه وي پیداشوې. نه سړیوکې اونه ښځوکې.هغې هم دا فقهي اصول وړاندې کړي وو. چې کوم روایت دقران خلاف وي هغه به داعتبارقابل نه وي. یابه دهغه تاویل کیږي اویابه دهغه رد کیږي.

سوال داپیداکیږي چې تاسووفرمایل چې دسماع موتی انکارکونکې خارجي دی او دا تاریخ کې محفوظ دي چې حضرت عائشې رضی الله عنها دټولونه مخکې دسماع موتی نه انکارکړی دی. زماتاسونه دا غوښتنه ده چې موږ دهغې خبرې نه خبرکړئ. کومه چې دحضرت عائشې رضی الله عنها په نظرکې نه وه.

## سماع موتی دامام ابوحنیفه رحمة الله علیه په نظرکې

امام ابوحنیفه رحمة الله علیه یوسړی دڅه ښوخلکوقبرونوته سلام کولو او هغوی ته داسې ویلوسره ولیدچې: اې قبروالوتاسوته څه پته هم شته.او ایا تاسوباندې ددې څه اثرهم شته چې زه تاسوته دډیرومیاشتونه راځم اوتاسونه زماسوال یوائې داده چې زماپه حق کې دعاوکړئ اووایئ! تاسوته زمادحال څه خبرهم شته اوکه تاسوبالکل غافل یئ؟

امام ابوحنیفه رحمة الله علیه دهغه داخبره واوریده له هغه نه یې پوښتنه وکړه. ایاقبروالوتاته څه ځواب درکړ؟ هغه وویل نه! امام ابوحنیفه رحمة الله علیه چې داواوریدل نوویې ویل : هلاک شې! ستا دواړه لاسونه دې په خاوروشي. ته داسې بدنونوسره خبرې کوې. کوم چې نه ځواب درکولی شي، نه دڅه شی مالکان دي اونه هغوی اوازاوریدای شي. بیاابوحنیفه رحمة الله علیه دایت تلاوت کړ:

**وماأنت بمسمع من فی القبور.**

ترجمه: اې نبي! ته دې خلکوته کوم چې قبرونوکې دي هیڅ نه شې وراورولی . (غرائب فی تحقیق المذاهب وتفهیم المسائل ص ۱)

دلته هم سوال پیداکیږي چې امام ابوحنیفه رحمة الله علیه هم د سماع موتی انکاري و. بیاپه دې خبره باندې نه پوهیږم چې دامام ابوحنیفه رحمة الله علیه داعمل څنګه و؟ لږ ددې هم وضاحت وکړئ!

## واسطه اووسیله

اوس به زماسوالونه دذکرشوي عنوانومطابق وي. امیدلرم چې ځواب راته راکړئ!

## واسطه اووسیله د قران په نظرکې

سورۀ بقرة ایت ۱۸۲ کې الله تعالی فرمایي : او اې زما نبي! زمابندګان که چیرې تاسونه زما باره کې پوښتنه وکړي نوتاسو هغوی ته ووایئ چې زه هغوی ته نژدې یم،بنده چې کله ماته اوازاوکړي نوزه دهغوی اوازاورم اوځواب ورکوم. هغوی ته پکاردي چې زماحکم ومني اوماباندې ایمان راوړي. داخبره تاسوهغوی ته وکړئ.کیدای شي هغه سمې لارې ته راشي.

سورت ق ایت ۱۴ کې ارشاد دی:
"مونږ انسان جوړکړی دی او مونږ ته د هغو خبرو پته ده چې د هغوی زړونو کې راځي او زه هغوی ته د هغوی د ساه د رګ نه هم نژدې یم.
سورة اعراف ایت ۱۸۰ کې ارشاد دی:
"او د الله تعالی ټول نومونه ښه دي. هم د دې په ذریعه باندې د الله تعالی نه غوښتنه کوئ:
د پورته بیان شویو ایتونونه دا خبره ذهن ته راځي چې الله تعالی ته د چا د واسطې او وسیلې ضرورت نشته. خو کیدای شي چې زمونږ په پوهه کې خرابي وي. تاسو محترم ته ادب سره خواست دی چې د پورته بیان شویو ایتونو(کوم چې د واسطو او وسیلو نفې کوي) صحیح مفهوم بیان کړئ:

## واسطه او وسیله د حدیثونو په نظر کې

ابوداؤد، نسائي، ترمذي او ابن ماجه د حضرت انس رضي الله عنه نه روایت نقل شوی دی چې زه د رسول الله صلی الله علیه وسلم سره جومات کې ناست وم، یو کس لمونځ کاو، هغه دعا وکړه:
"اې الله! زه تا نه د هغه وسیلې په ذریعه سوال کوم چې ټول ثنا صفت ستا له پاره دی، او ستا نه پرته بل څوک د عبادت لائق نشته، ته مهربان او احسان کونکی یې، د ځمکې او اسمانونو جوړونکی یې. اې د جلال او اکرام والا! اې ژوندیه! اې بند وبست کونکیه! زه تا نه سوال کوم.
(ترمذي ج ۲ ص ۲۱۲)
حضور صلی الله علیه وسلم دې اورید و سره وفرمایل:
"ده د الله تعالی د نوم په ذریعه باندې دعا کړې ده. کله چې هم دې ذریعه باندې دعا وکړل شي، قبلیږي. او کله چې هم څه سوال وکړل شي ورکول کیږي.
د ذکرشویو حدیثو نه دا معلومیږي چې الله تعالی ته د نبي، پیر یا فقیر د واسطې او وسیلې څه ضرورت نشته او داسې څه حدیث هم مونږ ته نه دی معلوم چې په هغه کې نبي کریم صلی الله علیه وسلم د الله تعالی د نومونو نه پرته د څه واسطې یا وسیلې ذکر وي.
تاسو نه سوال دا دی، چې مونږ د واسطې او وسیلې قایل یو نو ولې؟ لږ تفصیل سره ځواب راکړئ:

## واسطه او وسیله د ابوحنیفه رحمه الله په نظر کې

دا خبره د هیچا له پاره هم صحیح نه ده چې د الله تعالی نه د بل چا په وسیله باندې دعا وغواړي، بلکې پکار دي چې د الله تعالی په نومونو او صفتونو وسیله ونیسي او دا دې هم نه وایې چې زه ستا نه غواړم د فلانی فرښتې یا د ستاد فلاني نبي په ذریعه باندې، یا داسې نور...(درمختار)
وګورئ د امام ابوحنیفه رحمه الله فتوا حاضره ده، که مونږ د واسطې یا وسیلې قایل شو نو ولې؟
ادب سره عرض کوم.

## تعویذاو بندونه

محترم مولوي صاحب!
دتعویذاوبندونو ذکرموږته قران کې نه دی پیداشوی اوحدیثونوکې ددې ردراغلی دی.
مثلاً عبدالله بن مسعود رضی الله عنه روایت کوي چې مادرسول الله ﷺ نه اوریدلي دي چې دم. تعویذ او بندونه ټول شرک دي. (ابوداؤد. مشکوة ص ۳۸۹)
زموږناقص عقل خوداوايي چې قران دهدايت لاره ده. اودا هدايت موږهغه باندې پوهيدوسره حاصلولولی شو. تعويذجوړولوپه غاړه يامټ باندې تړلوسره نه. هسې هم موږ دهدايت طالبان يو. تاسوچې ددې نه منونکوته خارجي وايئ. خامخابه ستاسوپه نظرکې څه حديث. ياواقعه وي. مهرباني وکړئ. موږهم دهغې نه خبرکړئ. مهرباني به وي.
قران مجيدکې الله تعالی دقران اوشهدودواړوباره کې فرمايلي دي چې دې دواړوکې مومنانوله پاره شفا ده. نواياڅنګه چې قران مټ باندې تړل کيږي. ياغاړه کې اچول کيږي. همدارنګه دشهدوبوتلې هم غاړه کې اچولويامټ باندې تړلوسره شفا ورکول کېدای شي؟ ځواب راکړئ! ډيره مهرباني به مو وي.

## د نياوي قبرکې حساب کتاب

محترم لدهيانوي صاحب!
دپورته ذکرشويو عنوانو مطابق زماسوال دادی چې دنياوي قبرکې حساب کتاب څوک نه مني هغوی خارجيان څنګه شول؟ اوپه قران مجيدکې الله تعالی فرمايي چې:
"دنطفې نه موږانسان پيداکړ. بياموهغه تقديرمقررکړ. بياموهغه له پاره دژوندلاراسانه کړه. بياموهغه ته مرګ او قبر ورکړ. (سورة عبس آيات ۱۸ تا ۲۱)
اوموږوينوچې ډيروخلکوته قبر(دخاورې والاقبر) نه پيداکيږي. څه خاروي وخوري. څه په اوبوکې مړه شي. څوک زرې زرې شي. څوک خلک وسوځوي. غرض داچې ډيرزيات خلک داسې دي. چې هغوی ته دنياوي قبرنه پيداکيږي. نوبيادقران ددې دعوی نه چې موږانسان ته قبرورکړ. څه مراددي؟
زما د ناقص خيال مطابق دقران دادعوه بالکل رښتوني ده اوقران کې دذکرشوي قبرنه مراد برزخي قبردی. کوم چې هريوته ورکول کيږي . مړي باندې دعذاب اوسکون وخت تيريږي.
قران کريم کې الله تعالی فرمايي. چې: الِ فرعون سهاراوماښام داورګرموالي ته وړاندې کيږي. (سورت مومنون ۴۵)
دفرعون بدن(لاش) وګوره يورپ کې محفوظ دی. خوقران وايي چې هغه اورته وړاندې کيږي. دې نه داخبره په عقل کې نه راځي چې دعذاب دادورهغه باندې کوم وخت کې تيريږي.

دفرعون دلاش (بدن) دمحفوظ ساتلو ذکرپخپله باندې الله تعالی په سورت یونس (ایت ۹۰ نه ۹۲) کې کړی دی. چې خلک ترې عبرت واخلي

## په قبرونوکې دا نبیاء علیهم السلام ژوند

محترم لدهیانوي صاحب: الله تعالی قران پاک کې ارشادفرمایي چې

**ثم إنکم یوم القیمة عند ربکم تختصمون.** (مؤمنون ایت ۱۵، ۱٦)

ترجمه: ددنیاوي ژوندنه وروسته یو ورځ به تاسو ضرور مرئ او بیابه دقیامت په ورځ باندې تاسو دالله تعالی په وړاندې خصومت (جنګ) کوې.

دغورکولو خبره دادد چې ددې اصولو له پاره، دنبي، ولي یادبزرګ دتخصیص ضرورت نشته. داعام اصول دي. دې کې څوک هم مستثنی نشته.

یوبل ځای کې ارشادفرمایي: **إنک میت وإنهم میتون.** (الزمر ۳۰)

ترجمه: بې شکه (اې نبي) ته هم مړکیدونکي یې او هغوی به هم مړه کیږي.

داایتونه موږته داوایي چې هرژوندي کس ته به مرګ راځي، که هغوی انبیاء هم وي، دمرګ یو وخت مقرردی او هغه مقرروخت باندې به ټولو خلکوته مرګ راځي.

سوال داپیداکیږي چې ددې واضح ایتونوپه موجودیت کې داویل چې انبیاء علیهم السلام په خپلو قبرونوکې ژوندي دي. نودقران پاک داخبره دکوموخلکوله پاره ده؟ ایادعامو خلکوله پاره؟ ځکه که چیرې دانبیاء کرام علیهم السلام په قبرونوکې ژوندصحیح وګڼل شي، نوددې مطلب داشوچې انبیاء علیهم السلام ته مرګ نه راځي. اوکه چیرې راځي نوډیرلږوخت له پاره، قبرته تلوسره هغوی ژوندي شي اوقران کې داویل کیږي چې هرمړشوی کس به دقیامت په ورځ بیا راژوندی کیږي.

دانبیاء کرام علیهم السلام په قبرونوکې دژوندباره کې یوه واقعه لیکم، دبخاري شریف یواوږدحدیث دی اودمعراج دواقعې باره کې دی، دهغه اخري برخه داده:

"نبي کریم ﷺ وفرمایل.... جبرایل خپل تعارف کولو سره وفرمایل: زه جبرایل یم، دازما ملګری میکائیل دی، لږ خپل سراوچت کړئ. ماخپل سراوچت کړ، نومادخپل سردپاسه وریځ شان ولیدله. هغوی دواړو وویل چې داستاسومقام دی، ماوویل چې ماپریږدئ چې زه خپل کورته داخل شم. هغوی وویل چې ستاسو دعمرڅه برخه باقي پاتې ده. چې هغه اوسه پورې تاسونه ده پوره کړې، که تاسوهغه پوره کړئ، نوتاسوبه خپل کورته راشئ.

(ترجمه ازعبارت ص ۱۷۵ بخاري ج ۱ مطبوعه دهلی)

پورته بیان شوی حدیث خوداثابتوي چې دمرګ نه وروسته حضور ﷺ دمدینې منورې په قبرکې ژوندی نه دی بلکې خپل کورکې ژوندی دی. کوم چې جبرائیل علیه السلام هغه ته دمعراج په وخت کې ښودلی و.

سعید بن مسیب رحمة الله علیه او عروة بن الزبیر رحمة الله علیه او ډیر عالمان بیانوي چې
حضرت عائشې رضي الله عنها وویل حضور ﷺ به د تندرستي په زمانه کې فرمایل یو نبي ته هم مرګ نه راځي، ترڅو پورې چې هغه ته جنت کې خپل ځای ونه ښودل شي. د ځای ښودلو نه وروسته هغه ته دانتخاب (خوښې) موقع ورکړل شي. چې په دنیاکې اوسیدل غواړي او که الله تعالی سره ملاقات کول غواړي. کله چې د حضور ﷺ اخري وخت راغی او هغه وخت کې د حضور ﷺ سرمبارک زما غیږکې و. حضور ﷺ باندې لږ وخت له پاره بې هوشي راغله. عائشې رضي الله عنها وویل اخری کلمه. چې د هغې نه وروسته حضور ﷺ بله خبره ونه کړه (اللهم رفیق الأعلی) یعني حضور ﷺ د الله تعالی ملاقات ته ترجیح ورکړه. (بخاري ص ۹۳۹ ج ۲ مطبوعه دهلي)
د بخاري دا حدیث ثابتوي چې نبي کریم ﷺ د الله تعالی ملاقات ته ترجیح ورکړه او ددې دنیانه لاړ. اوس که چېرې هغه موږ د مدینې په قبرکې ژوندی ومنو. نو ددې مطلب به داوي چې نبي کریم ﷺ د دنیا خلکو ته ترجیح ورکړه او له دوی سره یې تعلق وساته.
مهرباني وکړئ. ددې وضاحت وکړئ چې ددې حدیثونو صحیح مفهوم څنګه دی؟ کیدای شي چې زموږ پوهیدو کې غلطي شوي وي.

د بخاري یو حدیث دا هم دی چې:
حضرت عائشه رضي الله عنها فرمایي چې: رسول الله ﷺ هغه وخت وفات شو. کله چې ابوبکر رضي الله عنه مکې ته نژدې یو ځای کې و. هغه وخت کې حضرت عمر رضي الله عنه ودرید او ویې فرمایل: په الله مې دې قسم وي. نبي ﷺ نه دی وفات شوی او عمر رضي الله عنه دا هم وویل چې الله تعالی به حضور ﷺ بیا ژوندی کوي او حضور ﷺ به د خلکو (منافقانو کوم چې خوشحالی کوي) پښې او لاسونه ضرورکټ کړي. بیا ابوبکر رضي الله عنه راغی او هغوی د حضور ﷺ د مخ مبارک نه څادر لیرې کړ او د حضور ﷺ مخ مبارک یې ښکل کړ او ویې ویل: زما مور او پلار له تا قربان! په ژوند او مرګ کې تاسو پاک یئ. په هغه ذات مې دې قسم وي. چې د هغه په قبضه کې زما ساه ده. الله تعالی به تاسو ته دوه مرګونه درنه کړي. بیا هغه بهر ته راووت او عمر رضي الله عنه ته یې وفرمایل: اې قسم خوړونکیه! دومره تیزي مه کوه!
الزهري رحمة الله علیه وایي چې ابوسلمه ماته وویل چې عبدالله بن عباس رضي الله عنهما وویل: ابوبکر رضي الله عنه بهرته راووت. عمر رضي الله عنه خلکو سره خبرې کولې. بیا خلک د حضرت ابوبکر رضي الله عنه طرف ته متوجه شول او عمر رضي الله عنه یې پرېښود. د حمد او ثنانه وروسته ابوبکر رضي الله عنه وویل: واورئ! چې تاسو کې چا د محمد ﷺ بندګي کوله. هغه دې خبر شي چې محمد ﷺ وفات شو او څوک چې د الله تعالی عبادت کونکې وو. نو الله تعالی ژوندی دی. هغه ته به چېرې هم مرګ نه راځي. بیا یې د قران پاک ددې ایتونو تلاوت وکړ چې د هغو ترجمه دا ده:

ترجمه: محمد ﷺ له دې نه پرته هیڅ نه دی چې یواځې یو رسول دی. دده نه مخکې ډیر رسولان تیر شوي دي. که چېرې دهغه وفات شي یا شهید شي. نو تاسو به وروسته شئ اوښوک چې وروسته شي. نو هغه الله تعالی ته هیڅ نقصان نه شي رسولی. الله تعالی خپل شکر کونکو بندګانو ته جزا ورکونکی دی.
(ترجمه ص ۵۱۷. جلد ۱ ص ۲۴۰ جلد ۲ بخاري)
صحابه کرامو رضی الله عنهم به خپل نبي ﷺ سره ډیره زیاته مینه کوله. که چېرې هغوی ته داپته وی چې محمد ﷺ ژوندی دی. نو چېرې به یې هم د هغه خلیفه نه و ټاکلی. نه به یې خپل پیغمبر خښ کړی و اونه به یې هغه قبرته کوز کړی و. بیانه داجتهادضرورت پېښېده. نه درجالو د تلاش کولو، نه به دحدیثونو په تحقیق کې د محنت کولو ضرورت و. کله به چې دڅه شی ضرورت و، قبرته به ورتلل او پوښتنه به یې کوله. ابوبکر رضی الله عنه به دارتداد په موقع کې، عمر رضی الله عنه به دقحط په وخت کې، عثمان رضی الله عنه به دفتنې په وخت کې، اوحضرت عائشې رضی الله عنها او حضرت علی رضی الله عنه به د جنګ جمل او صفین په موقع باندې له هغه ځخه مخامخ لارښو ونې حاصلولې.
زمادناقص عقل مطابق قبرکې دژوندي کېدوعقیده دقبرپرستي بنیاددی. ځکه چې کله یوقبرپرست ته دایقین وشي چې قبرکې موجودکس ستا اواز نه اوري، ستاحاجت نه شي پوره کولی، بلکې هغه ته خوپخپله باندې ددې پته نشته چې کله به ژوندی کیږي؟ نو قبر پرست به دقبرپرستي نه توبه وکړي.
محترم لدهیانوي صاحب! دې معاملې باندې هم زموږ راهنمایي وکړئ! مهرباني به وي.
خط ډیرزیات اوږدشو. څه اوکړودعقیدومسئلې وي. په کومو باندې چې زموږددوزخ اوجنت معامله ده، ځکه چې دکوم کس عقیدې هغه نه وي کومې چې قران اوصحیح حدیثونوبیان کړي وي، نوهغه کس که هرڅومره ښه عملونه وکړي. مثلاً: لمونځ، روژه، حج وغیره خوداشیان هغه ته هیڅ فائده نه شي رسولی. ځکه چې ایمان دټولونه وړاندې دی.
محترم! خط اوږددی، دابه ستاسو ډیرقیمتي وخت اخلي، خوامیدلرم چې تاسو به ځواب ضرورراکړئ!
ستاسو په روزنامه جنګ کې ورکړل شویو ځوابونو په وجه باندې شکونه پیداشوي وو، زه هغه معلومول غواړم اوزه به ډیرشکرګذاریم چې تاسوما په ځواب باندې مطمئن کړئ!

فقط تحریم احمد صدیقي
مکان نمبر ۱۷ اے میرفضل ټاون
نزدفضل مسجدوالی ګلی لطیف آبادنمبر ۹
۱۰ دسمبر ۱۹۹۵ء

## ځواب

محترم و مکرم جناب تحریم احمد صدیقی صاحب!
د سنت سلام نه وروسته خواست دی چې ستاسو خط زمادیو لیکل شوي ځواب په باره کې کوم چې ۹ جون ۱۹۹۵ء باندې جنګ اخبارکې چاپ شوې و راغی. په کوم کې چې جناب د سماع موتی، حیات فی القبور، تعویذ، توسل اوداسې نورو مسئلو باره کې خپل خیال ښکاره کولو سره ماته دځواب لیکلو باره ویلي دي.
دې خطاکار دغې فرقې ته "دخارجیانوپه شان" ویلي دي اوددې بنیادي وجه دمستفتي دافقره ده:
"افسوس چې داخلک دکفراوشرک دفتوا شروع دامام احمد بن حنبل رحمه الله نه کوي. چې ددې عقیدوشروع دهغه نه وشوه. دهغه نه وروسته امام ابن تیمیه رحمه الله، اوابن قیم سره ټول صالحین رحمهم الله دهغوی په فتوا کې داخل دي.
خارجي خلک هم دخپلونظریاتوله پاره دقران پاک حوالې ورکوي اوصحابه کرام او تابعین رحمه الله کوم چې دهغوی دبدونظریاتو سره متفق نه وو. هغوی ته کافروایي، که چېرې تاسوهم د امام ابوحنیفه رحمه الله، امام شافعی رحمه الله امام احمدبن حنبل رحمه الله نه ترامام رباني مجددالف ثاني رحمه الله، شاه ولي الله محدث دهلوي رحمه الله، مسند الهند شاه عبدالعزیز محدث رحمه الله پورې اوددوی نه وروسته ټول اکابرینو باندې دکفراوشرک فتوا جاری کوئ. نوبې شکه تاسو دخارجي فرقې په شان یئ، دې صورت کې ستاسو په دلیلونو باندې دغورکولو اوستاسو د استدلال غلطي ښکاره کول فضول دي. ځکه چې دحدیث مطابق **"لایعرف معروفاً ولاینکر منکرا إلا ما اشرب من هواه"** تاسو دیوې خبرې منلوله پاره تیار نه یئ. کله چې یو کس په خپل خیال باندې دومره مضبوط وي چې دخپل ځان نه پرته دټول امت اکابرین کافراومشرکان ګڼي. هغه سره په څه جزي مسئلو باندې خبرې کول فضول کاردي. خو یوڅوخبرې دجناب په خدمت کې وړاندې کوم، که دهغو وضاحت وکړئ نوانشاء الله دجناب ذکر شویو مسئلو باندې به معروضات وړاندې کولو سره دجناب نه دانصاف کولو خواست وکړم، دوضاحت خبرې دا دي:
۱: ایاتاسو دامت هغه اکابرین حضرات کوم چې دحیات الانبیاء فی القبور، سماع موتی، په هغه قبرکې چې مړی ښخېږي. دحساب کتاب یاسوال ځواب کیدو اودتعویذ په جواز یادوسیلې اوواسطې قایل دي. په رښتیاباندې کافر اومشرک ګڼئ؟ او شرعي طورباندې دهغوی هغه حکمونه دي کوم چې دکافرانو اومشرکانو دي؟
۲: تاسو دام المومنین حضرت عائشه رضی الله عنها باره کې لیکلي دي:
"له هغې نه ښه مفسره، محدثه، فقیهه، خطیبه، دټولونه اعلی تاریخ دانه، دټولونه اعلی ماهرانساب دنیاکې اوسه پورې څوک نه دي پیداشوي، نه سرېوکې اونه ښځوکې،

که چېرې پورته بيان شويو پنځو مسئلو کې ديوې مسئلې هم هغه قايله وي. نو ايا هغه به هم ستاسو حضراتو په نزد (نعوذ بالله) کافره او مشرکه وي؟

۳: کوم صحابه کرام رضي الله عنهم چې دې مسئلو باره کې ستاسو خلاف خيال لري. ايا هغوی هم کافران او مشرکان وو؟

۴: تاسو په خپل خط کې دامام ابو حنيفه رحمة الله عليه دوه ځايونو کې حواله ورکړې ده. حالانکه امام ابو حنيفه رحمة الله عليه په قبر کې دژوند قايل و اوهغوی دامسئله په عقيدو کې ذکرکړې ده. سوال دادی چې امام ابو حنيفه رحمة الله عليه هم ددې عقيدې په وجه باندې کافر او مشرک شو او که نه؟

۵: دصحابه کرامو رضي الله عنهم دزمانې نه دنن پورې کوم حضرات چې ددې پنځو مسئلو قايل دي. هغوی خو ستاسو په نظر کې کافران او مشرکان وو او څوک چې کافر او مشرک مسلمان وګڼي. هغه هم کافر وي. نو ايا ځوارلس سوو کالو په امت کې داسې څوک شته. کوم چې ددې پنځو مسئلو قايل نه وي؟ يا ددې مسئلو قايلين مسلمانان نه ګڼي؟ که چېرې څه خوش قسمته خلک داسې وي کوم چې ستاسو حضراتو مطابق مسلمانان وي نو مهرباني وکړئ دهريوې صدئ دلسو لسو کسانو نومونه وليکئ!

۶: دکافر او مشرک قول هم داعتبار قابل نه دی او دهغوی نقل او روايت هم داعتماد قابل نه دی. نو:

الف: دقران کريم متواتر نقل کيدل به څنګه ثابت شي؟ او دقران نقل کونکي خو په دې مسئلو کې ديوې نه يوې مسئلې قايل دي. يا ددې مسئلو قايلين ستاسو په شان کافر او مشرک نه ګڼي. او پورته نمبر کې مابيان کړي دي چې کافر او مشرک کافر نه ګڼونکي هم کافر دي. د ځوارلس سوو کالو ټول امت کافر او مشرک و او ددې کافرانو او مشرکانو لخوا نقل شوی کتاب به څنګه داعتماد قابل وي؟ او له دې نه به استدلال کول څنګه جائز وي؟

ب: همدا سوال به دصحيح بخاري باره کې هم وي. دې کې بې شميره روايتونه ستاسو په فکر کافرانو او مشرکانو نه نقل شوي دي او دصحيح بخاري کوم سند چې مونږ ته رارسيدلی دی، هغه کې هم بعضې اکابرين داسې دي چې هغوی ددې ټولو مسئلو يا دځينو قايل دي. سوال دادی چې صحيح بخاري کوم چې دکافرانو او مشرکانو (نعوذ بالله) په ذريعه باندې مونږ ته رارسيدلی دی. هغه داعتبار قابل څنګه کيدای شي؟ او ددې نه به استدلال څنګه جائز وي؟ بلکې پخپله امام بخاري رحمة الله عليه ددې ټولو مسئلو يا بعضې مسئلو قايل و او هغه هم ستاسو په نزد باندې کافر او مشرک شو. بيا هغه دامام احمد بن حنبل رحمة الله عليه شاګرد دی او صحيح بخاري کې يې دهغه نه روايتونه کړي دي او امام احمد بن حنبل رحمة الله عليه ستاسو په نزد باندې د مشرکانو مشر دی، نو دداسې کس دکتاب څه اعتبار دی؟ کوم چې پخپله باندې مشرک وي او د مشرکانو شاګرد هم وي.

ج: دحدیث دصحیح یاضعیف کیدو له پاره چې کوم اکابرین معیار دي. هغوی دې پنځومسئلوکې دټولو یاخینوپخپله قایل وو. باکه نه که ددې مسئلوقایلینونه بې کافراومشرک نه ویل. دې صورت کې به یوحدیث نه دصحیح یاضعیف ویلوڅه صورت وی؟
۷: کومه فرقه یاسړی چې ټول امت کافراومشرک ګڼي. هغه مسلمان څنګه کیدای شي؟ اوداسلام اصول اوفروع به دچانه حاصلوي؟
زه امیدلرم چې تاسوبه ددې اوو سوالوپه ښه سوچ اوپوهې سره ځواب راکړئ. بیابه ستاسوداصولوپه رڼاکې ستاسودمسئلوباره کې خپل خیال ښکاره کړم. والسلام

## د حضور ﷺ په قبرمبارک کې دسماع حدود

**سوال:** درسول الله ﷺ قبرته ددریدوسره درودشریف لوستل ددیوبند داکابرینومتفقه عقیده ده. چې حضور ﷺ یې پخپله اوري. سوال دادی چې دغه مبارک قبرباندې د اوریدو حد کوم ځای پورې دی؟
۱: ایادحضرت عائشې رضي الله عنها حجرې پورې؟
۲: دحضور ﷺ دزمانې دجومات حدددود؟
۳: دحضرت عثمان رضي الله عنه دزمانې دجومات حدکله چې دحضرت عائشې رضي الله عنها حجره هم جومات کې شامله شوه؟
۴: اوسنی جومات؟
۵: دراتلونکې جوړشوي جومات حدود؟
۶: دحضور ﷺ په زمانې کې دمدینې ښار؟
۷: اوسنی دمدینې ښار؟
۸: راتلونکی دمدینې ښار؟

**جواب:** څه تصریح خوراته یا د نه ده. خوداکابرینونه مواوریدلي دي چې جومات شریف کې دهرځای نه درود اوسلام ولوستل شي. پخپله باندې یې اوري. دجومات حدبه چې کوم ځای پورې وي هغه ځای پورې به داوریدوحکم وي اودحجرې شریفې نه سلام عرض کول به «أقرب إلى الأدب والمحبة» وي.

## د قبرشرعي تعریف

**سوال:** ۱: دقبرشرعي تعریف څه دی؟ که چېرې دې نه مرادشرعي طور باندې هغه کنده وي، نوددې شرعي قبرکیدوباندې څه دلیل دی؟
**سوال:** ۲: منکرین حیات وایي چې دا کنده شرعي طورباندې قبرنه دی. که نه دهغو خلکو باره کې به څه ویل کیږي کوم چې وسوځول شي یاسمندرکې ډوبیدوسره یې کبان وخوري؟

**سوال:** ۳: که چېرې قبرنه شرعي طورباندې هم داکنده مرادده. نود بنه کس له پاره ددې قبر وسعت(خلاصېدل) اودبدعمله له پاره ددې قبر تنګېدل په نظرباندې ولې نه راځي؟ امیدلرم چې دیوطالب علم دتسلي له پاره به تفصیلي ځواب ورکړئ.

**جواب:** دقبرنه مرادهم داکنده ده کومه کې چې مړی خښېږي . هم دې کې عذاب اوثواب ورکول کېږي، ددې دلیلونه ډیردي:

۱: إن رسول الله ﷺ قال: إنّ العبدإذاوضع فی قبره وتولی عنه أصحابه إنّه لیسمع قرع نعالهم أتاه ملکان فیقعدانه ,الحدیث.(صحیح بخاري ج۱ ص ۱۸٤)

مړي هم دې قبرکې کېښودل کېږي. هم دې کې هغه دراستنېدونکو خلکودپښواوازونه اوري اوهم دې قبرکې هغه ته دوه فرښتې راځي، کومې یې چې هم دې قبرکې هغه کېنوي.

۲: خرج النبي ﷺ وقدوجبت الشمس فسمع صوتا,فقال: یهودتعذب فی قبورها. (بخاري ج۱ ص ۱۸٤) حضور ﷺ هم دې قبرنه دعذاب اوازاورېدوسره فرمایلي وچې یهودیانوته دهغوی په قبرونوکې عذاب ورکول کېږي.

۳: مرالنبي ﷺ علی قبرین فقال إنهما لیعذبان....الخ.(بخاري ج۱ص ۱۸٤)

حضور ﷺ قبرونوباندې تیرشواو ویې ویل چې دوی دواړوته عذاب ورکول کېږي.

٤: بینماالنبي ﷺ فی حائط لبني النجار علی بغلة له ونحن معه إذحادت به فکادت تلقیه وإذاأقبرة ستة اوخمسة اواربعة.... فقال: إن هذاالأمة تبتلی فی قبورها, فلولاأن لاتدافنوا لدعوت الله أن یسمعکم من عذاب القبرالذی أسمع منه....الخ. (صحیح مسلم ج ۲ ص ۳۸٦)

له هم دې ظاهري قبرنه دحضور ﷺ سورلی ویریدلې وه اوهم دې قبرونوکې هغو خلکوته عذاب ورکول کیده اودهمدې قبرونوباره کې یې فرمایلي و: که چېرې داویره نه وای چې تاسوبه خپل مړی خښ نه کړئ. نومابه الله تعالی ته دعاکړې وه چې تاسوباندې یې هم دقبرعذاب اورولی وای.

۵: قولی:السلام علی أهل الدیارمن المؤمنین والمسلمین.(صحیح ج۱ص ۳۱٤)

السلام علیکم یاأهل القبور. (ترمذی ج۱ ص ۱۲۵)

السلام علیکم دارقوم مومنین. (ابوداؤد ج ۳ ص ۱۰۵)

هم دې قبرونوته تلونکوته دالسلام علیکم ویلوحکم وشو اوهم دې قبرونوته (دارقوم مومنین) وویل شو.

دقبرعذاب اوثواب دغیبودعالم شی دي، په دې وجه باندې دازموږدنظرونونه پټ ساتل شوي دي، څنګه چې دخوب حالات بیداروخلکونه پټ وي. کوم خلک چې نه خښېږي.

کیدای شي چې هغوی له پاره دهوانه قبرجوړکړل شي؟ په هرحال دقبردعذاب نه انکار کول یادنصوصو خلاف قبرکې تاویلونه کول دایمان اودانصاف له غوښتنو خلاف دی والله اعلم

## د نبي ﷺ د حیات عقیده

**سوال:** دحیات النبي ﷺ دمسئلې په باره کې مې دمولانا الله یار خان کتاب "حیات انبیاء" ولوست اوددې نه وروسته دامسئله صراحتًا شیخ القران پخپل تفسیر جواهرالقران کې بیان کړې ده.خو مولانا الله یارخان دحیات کیفیت دروح دجسم اطهریعنې دبدن عنصری دمنلوله پاره دلائل ذکر کړي دي.حالانکه شیخ القران جسم مثالي منلی دی.مهرباني وکړئ ددې وضاحت وکړئ او اودا ووایئ چې ایادامسئله دایمان برخه ده؟

**جواب:** زما او زمادااکابرینوعقیده دا ده چې نبي کریم ﷺ پخپله پاکه روضه کې په حیات جسماني سره ژوندی دی[1].دا برزخي ژوندی دی.خوددنیاوي ژوندنه ډېرقوي دی[2].کوم حضرات چې له دې نه منکردي .زه هغوی اهل حق نه ګڼم نه هغوی دعلماء دیوبندپه مسلك باندې دي.

# ❖ معراج ❖

## د جسماني معراج ثبوت

**سوال:** دنبي کریم ﷺ معراج جسماني و اوکه روحاني و؟ ځواب په تفصیل سره راکړئ! ځینې وايي چې نبي کریم ﷺ ته جسماني معراج نه و حاصل شوی.

**جواب:** حکیم الامت مولانا اشرف علي تهانوي رحمه الله په نشرالطیب کې لیکي:

"دریم تحقیق: دجمهوراهل سنت والجماعت مذهب دادی. چې معراج په ویښه دجسم سره وشواودلیل یې اجماع ده اومستندې اجماع له پاره داموركیدای شي"وړاندې بیاددې دلایل وايي) (نشرالطیب ص ۸۰ مطبوعه سهارنپور)

---

[1]) فاقول حیاة النبی صلی الله علیه وسلم فی قبره وهو سائر الانبیاء معلومة قطعاً........ فمن الاخبار الدالة فی ذلک ما اخرجه مسلم عن انس رضی الله عنه ان النبی صلی الله علیه وسلم لیلة اسری به مر بموسی علیه السلام وهو یصلی فی قبره...... وعن انس رضی الله عنه ان النبی صلی الله علیه وسلم قال: الانبیاء احیاء فی قبورهم یصلون (الحاوی للفتاوی ،انباء الاذکیاء بحیاة الانبیاء ج:۲،ص: ۱۴۷ طبع دارالکتب العلمیة ،بیروت،لبنان وایضاً آب حیات او المهند علی المفند اوګوری)

[2]) والحق عندی عدم اختصاصها بهم بل حیاة الانبیاء اقوی منهم واشد ظهوراً (تفسیر مظهری ج:۱،ص: ۱۵۲ سورة البقرة آیة: ۱۵۴ وایضاً فتاوی خلیلیة ج:۱،ص:۴۱۱)

اوعلامه سهيلي رحمه الله په الروض الانف شرح سيرت ابن هشام کې ليکلي چې "مهلب په شرح بخاري کې د اهل علم د يو جماعت قول نقل کړی دی. چې معراج دوه ځله شوی دی. يو ځل په خوب کې دويم ځل په ويښه د جسم اطهر سره"[۱] (ص۲۴۴ ج۱)
له دې نه معلومه شوه چې کوموحضراتو دا ويلي و. چې معراج په خوب کې شوی دی هغوی د لومړۍ واقعې په باره کې ويلي دي او دويمه واقعه چې په قران کريم او په حديثو متواتره کې ذکر ده هغه بيشکه د ويښې (بيداري) واقعه ده.[۲]

## په معراج کې د نبي کريم ﷺ حاضري څوځلې وشوه؟

**سوال:** نبي کريم ﷺ د معراج په شپه د الله تعالی په دربار کې څوځله حاضر شوی و؟

**جواب:** په لومړي ځل حاضري کې خو يې شک نشته او نهه(۹) ځله حاضري د لمونځونو د اسانتيا په سلسله کې وشوه. د هر ځل په حاضري سره پنځه لمونځونه کم شوي وو. په دې ډول لس ځله حاضري شوې وه.[۳]

## ايا د معراج په شپه نبي عليه السلام الله تعالی ليدلی دی؟

**سوال:** ايا د معراج په شپه نبي کريم ﷺ الله تعالی ليدلی دی؟

**جواب:** په دې سلسله کې د صحابو کرامو اختلاف و. سهې داده چې ليدلی يې دی. خو د ليدلو کيفيت يې معلوم نه دی.[۴]

---

۱] ورايت المهلب فی شرح البخاری قد حکی هذا القول عن طائفة من العلماء وانهم قالوا: کان الاسراء مرتين، مرة فی نومه،ومرة فی يقظته ببدنه صلی الله عليه وسلم (قال المؤلف) وهذا القول هو الذی يصح وبه تتفق معانی الاخبار.....الخ (الروض الانف شرح سيرت ابن هشام ج:۱،ص:۲۴۴ شرح ما حديث الاسراء من المشکل طبع ملتان وطبع مصر)

۲] سُبْحٰنَ الَّذِي اَسْرٰي بِعَبْدِه لَيْلًا مِّنَ الْمَسْجِدِ الْحَرَامِ اِلَي الْمَسْجِدِ الْاَقْصَا الَّذِي بٰرَكْنَا حَوْلَه لِنُرِيَه مِنْ اٰيٰتِنَا اِنَّه هُوَ السَّمِيْعُ الْبَصِيْرُ وَاٰتَيْنَا مُوْسَي الْكِتٰبَ وَجَعَلْنٰهُ هُدًي لِّبَنِي اِسْرَاءِيلَ اَلَّا تَتَّخِذُوْا مِنْ دُوْنِي وَكِيلًا شرح عقائد (ص:۱۴۳،طبع خيرکثير) کښې دی : والمعراج لرسول الله صلی الله عليه وسلم فی اليقظة بشخصه الی السماء، ثم الی ما شاءالله تعالی من العلی حق ای ثابت بالخبر المشهور وايضاً تفسير ابن کثير ج:۴،ص: ۱۱٦ وشرح العقيدة الطحاوية ص:۲۴۵)

۳] وفيها وفی ليلة والمعراج ........ فراجع رسول الله صلی الله عليه وسلم ربه عزوجل تسع مرات يساله التخفيف، وکان يخفف عنه کل مرة خمسة صلوات حتی بقی منها خمس.....الخ (بذل القوة ص:۳٦)

۴] ثم الصحيح انه عليه السلام انما رای ربه بفواده لا بعينه (شرح عقائد ص:۱۴۴، نيز مشکوة ص:۵۰۱) وايضاً شرح العقيدة الطحاوية ص:۲۴۸،وشرح العقائد ص:۷۵)

## ایا د معراج په شپه حضرت بلال رضي الله عنه د نبي علیه السلام سره و؟

**سوال:** ایا د معراج په شپه حضرت بلال رضي الله عنه د نبي علیه السلام سره و؟

**جواب:** د معراج په شپه حضرت بلال رضي الله عنه د نبي علیه السلام د سفر ملګری نه و.[1]

## نبي کریم صلی الله علیه وسلم د معراج نه بېرته په څه شي راغلی و؟

**سوال:** زموږ د دوستانو په مینځ کې یو بحث دی چې نبي کریم صلی الله علیه وسلم د معراج په شپه خو په براق تللی و. خو بېرته په براق راغلی و؟

**جواب:** د دې څه تصریح مې نه ده ترسترګو شوې. خو داسې معلومیږي چې په کوم شي اسمان ته تللی و. په هغه باندې بېرته هم راغلی و.[2]

# ❖ په خوب کې د نبي کریم صلی الله علیه وسلم زیارت ❖

## د نبي علیه السلام د زیارت حقیقت

**سوال:** په خوب کې د نبي کریم صلی الله علیه وسلم د زیارت حقیقت څه دی. یعني چې کوم سړی نبي علیه السلام په خوب کې ویني د هغه شفاعت ضروري شي. ایا ابلیس لعین د پیغمبر علیه السلام او د نورو انبیاء علیهم السلام او د اولیاوو په شکل کې راتلای شي؟

**جواب:** په حدیث شریف کې دي: "چا چې زه په خوب کې ولیدم. نو هغه زه ولیدم. ځکه چې شیطان زما په شکل کې نه شي راتللی"[3] په دې وجه د نبي علیه السلام په خوب کې لیدل مبارك دي. خو دا د بزرګي دلیل ګڼل نه دی. اصل شی په ویښه سره د نبي علیه السلام د سنتو تابعداري ده. څوك چې د سنتو اتباع کوي. هغه انشاءالله مقبول دی او څوك چې د نبي علیه السلام د سنتو نه منحرف وي هغه مردود دی، اګر که هغه روزانه زیارت کوي او د ده له پاره شفاعت هم ضروري نه دی.

---

[1] عن أبي هريرة رضي الله عنه:أن النبي صلى الله عليه و سلم قال لبلال عند صلاة الفجر ( يا بلال حدثني بأرجى عمل عملته في الإسلام فإني سمعت دف نعليك بين يدي في الجنة ) . قال ما عملت عملا أرجى عندي أني لم أتطهر طهورا في ساعة ليل أو نهار إلا صليت بذلك الطهور ما كتب لي أن أصلي متفق عليه (مشكوة ص:۱٦، باب التطوع) وفى المرقاة:قال ابن الملک وهذا امر کوشف به عليه السلام من عالم الغيب فى نومه او يقظته او بين النوم واليقظة او راى ذلک ليلة المعراج..... وانما اخبره عليه الصلوة والسلام بما رآه ليطيب قلبه ويدوم على ذلک العمل ولترغيب السامعين اليه (المرقاة شرح المشكوة ج:۲.ص:۱۸٤.باب التطوع الفصل الاول)

[2] المعراج...... وهو بمنزلة السلم لكن لا يعلم كيف هو.وحكمه كحكم غيره من المغيبات نؤمن به ولا نشتغل بكيفيته (شرح العقيدة الطحاويةص:۲٤٥)

[3] من رآنى فى المنام فقد رآنى،فان الشيطان لايتمثل فى صورتى (مشکوة ص:۳۹٤،کتاب الرؤيا الفصل الاول)

## په خوب کې د نبي عليه السلام د زيارت بنيادي اصول

**سوال:** مولاناصاحب! په خوب کې د رسول الله ﷺ د زيارت د پيژندلو څه معيار دی؟ چې داخوب رښتيادی او که دروغ. ځکه چې شيطان د اشرف الانبياء په شکل سره په خوب کې نه شي راتللی. خو د لکونو انسانانو په شکل سره په خوب کې راتللی شي او يوشکل د نبي په عنوان سره درښودلی شي او په هغه شکل کې هغه نښې هم پيداکولی شي چې په نبي کې ښکاره وي او دا خو يواځې نبي پيژندلی شي چې دا شيطان دی.

حقيقت دادی چې که چېرې يو سړي بل سړی ليدلی نه وي. نو هغه يې په خوب کې هم نشي ليدلی او که چېرې يې ويني هم. نو هغه به يواځې يو خيالي تصويروي. نو کومو خلکو چې رسول الله ﷺ بيخي ليدلی نه وي. دهغه په خوب باندې په کومو دليلونو سره يقين وکړل شي چې خوب رښتيادی. که دروغ؟ دلائل مضبوط پکار دي ځکه چې په کمزورو دلائلو سره هرسړی په خوب کې د زيارت دعوه کولی شي.

**جواب:** په خوب کې که چېرې چا نبي کريم ﷺ زيارت وکړ. نو دهغه خوب خو صحيح دی. ځکه چې شيطان د نبي عليه السلام په شکل کې نشي راتلای[۱]. البته يو څو خبرې ياد ساتل پکار دي.

۱. دځينو اهل علمو ويناده. چې که چېرې د نبي کريم ﷺ زيارت دهغه ﷺ په اصل شکل او صورت کې و. نو دا خو دهغه زيارت کول دي او که چېرې په بل شکل کې وي. نو دا د نبي عليه السلام زيارت نه دی. خو اکثرمحققين ددې قايل دي چې د نبي عليه السلام زيارت چې په هرشکل کې و. نو دا دهغه ﷺ زيارت دی او که چېرې نبي عليه السلام يې په ښه شکل او صورت کې وليده. نو دا د ليدلو والا دحالت دښه کيدو علامت دی او که چېرې په خراب حالت کې يې ويني نو دا ليدونکي دزړه، دماغ او ددين حالت د منتشر کيدو علامه ده. ګويا د نبي عليه السلام زيارت يوه اينه ده چې په هغه کې د هر کتونکي د حالت عکس په نظر راځي.[۲]

۲. په خوب کې د نبي کريم ﷺ زيارت هم ځينې وخت د تعبير محتاج وي مثلاً نبي عليه السلام يې د ځوانۍ په شکل کې وليد. نو ددې به يو تعبيروي او که په بوډاوالي کې يې وليد. نو ددې به بل تعبير وي. د خوشالۍ په حالت کې يې که وليده. نو يو تعبير به يې وي او که د خفګان په

---

۱] من رآني في المنام فقد رآني. فان الشيطان لايتمثل في صورتي(مشکوة ص: ۳۹٤. کتاب الرؤيا، الفصل الاول)

۲] فعلم ان الصحيح بل الصواب کما قال بعضهم ان رؤياه حق على اى حالته فرضت ثم قال ابن ابى جمرة: رؤياه في صورة حسنة حسن في دين الرائي. ومع شين او نقص في بعض بدنه خلل في دين الرائي. لانه صلى الله عليه وسلم کالمرآة الصقيلة ينطبع فيها ما يقابلها. وان کانت ذات المرآة على احسن حاله واکمله. وهذه الفائدة الکبرى في رؤياه صلى الله عليه وسلم اذبه يعرف حال الرائي..الخ(تعطير الانام في تعبير المنام ج:۲، ص:۲۷۷)

حالت کې بې ولیده. نو ددې به بل تعبیروي. وعلی هذا [۱]

۳:هرکله چې خوب لیدونکي کله هم په ویښه دنبي علیه السلام زیارت نه دی کړی. نو دده نه به څنګه معلومه شي چې دانبي علیه السلام دی؟نو ددې ځواب دادی چې په خوب کې به هم دده نه ضرور علم حاصلیږي اوهم په دغه علم باندې دارومدار دی او ددې نه پرته بله ذریعه دعلم نشته. یواځې دا چې دنبي علیه السلام زیارت صحیح هم په هغه شکل او خصلتونوسره وي کوم بې چې وصال نه مخکې په ژوند مبارك کې و او په دې سره دخوب تصدیق وشي.

۴:په خوب کې دنبي کریم ﷺ زیارت خوحق دی. خو ددې خوب نه دیوشرعي حکم ثابتول صحیح نه دي. ځکه چې په خوب کې دانسان حواس معطل کیږي. په دې حالت کې دده په ضبط باندې اعتمادنشي کیدای چې ده په صحیح طریقه داضبط کړی دی که نه؟ له دې نه پرته شریعت دنبي کریم ﷺ له دنیانه تر تلو وړاندې مکمل شوی دی او اوس په هغه کې دکمي او زیاتي او دترمیم اومنسوخ کولو هیڅ ګنجائش نشته. څنګه چې ټول علماء په دې باندې متفق دي چې خوب شرعي دلیل نه دی [۲]، که چیرې په خوب کې چادنبي علیه السلام څه فرمان واوریده. نوهغه به دشریعت په تله باندې تلل کیږي که چیرې دشریعت دقاعدو سره موافق و. نودا دخوب لیدونکي دسلامتیا او استقامت دلیل دی.که نه . نودا دهغه دنقص اوغلطئ علامت دی.

۵:په خوب کې دنبي کریم ﷺ زیارت دډېرلوی برکت اونیك بختي خبره ده. خو دادخوب لیدونکي دالله تعالی په نزد دمحبوبیت او مقبولیت څه دلیل نه دی. بلکې دمقبولیت دارومدار په ویښه دسنتو تابعداري ده. مثلا یوسړي ته روزانه دنبي علیه السلام زیارت کیږي. خو هغه دنبي علیه السلام دسنتو پرېښودونکی دی او په فسق اوګناه کې مبتلا دی. نو داسې سړی مردود دی اویوبل سړی دی چې هغه ډېرنیك. صالح اودسنتوتابعداردی. خو ده کله هم نبي علیه السلام په خوب کې ونه لید ، نو دادخدای تعالی په نزد باندې مقبول دی. خوب خوخوب دی. په ویښه چې کوموخلکو دنبي علیه السلام ملاقات کړی و . خو نبي علیه السلام داتباع نه محروم پاتې شول.هغوی مردود شول اوپه دې زمانه کې هم چې کوموخلکوته دنبي علیه السلام زیارت نصیب نه شو . خو

[۱] فعلم ان الصحیح بل الصواب کما قاله بعضهم ان رؤیاه حق ..... ومن ثم قال بعض علماء التعبیر: من رآه شیخاً فهو غایة سلم ومن رآه شاباً فهو غایة حرب، ومن رآه متبسماً فهو متمسک بسنته، وقال بعضهم: من رآه علی هیئته وحاله کان دلیلاً علی صلاح الرائی وکمال جاهه وظفره بمن عاداه.ومن رآ متغیرا الحال عابساً کان دلیلاً علی سوء حال الرائی..الخ(تعطیر الانام فی تعبیرالمنام للشیخ عبدالغنی النابلسی ج:۲،ص:۲۷۶)

[۲] ان الرؤیا من غیرالانبیاء لا یحکم بها شرعاً علی حال الا ان تعرض علی ما فی ایدینا من الاحکام الشرعیة فان سوغتها عمل بمقتضاها والا وجب ترکها والاعراض ولنا فائدتها البشارة اوالنذارة خاصة واما استفادة الاحکام فلا.....الخ (الاعتصام للشاطبی ج:۱،ص:۲۶۰ طبع بیروت)

دهغه تابعداري بې نصيب شو ده هغه خلک مقبول شول

۲ دنبي کريمﷺ دزيارت به دروغو سره دعوه کول په نبي عليه السلام پورې دروغ تړل دي او دپوسړي دبدبختي له پاره داکافي دهٔ[1] که چېرې چاته ربښتياهم دنبي عليه السلام زيارت نصيب شي. نو بياهم پرته دڅه ضرورت نه دهغه ښکاره کول مناسب نه دي

## په خوب کې د نبي عليه السلام زيارت کولوسره د صحابي درجه

**سوال:** ايادا ويل صحيح دي چې که چېرې يو سړی په خوب کې دنبي کريمﷺ زيارت وکړي. نو هغه ته دصحابو کرامو درجه ورکول کيږي؟

**جواب:** داسې خيال بالکل غلط دی. په خوب کې په زيارت کولو سره دصحابي درجه نه ورکول کيږي. صحابي هغه کس ته وايي چاچې دايمان په حالت کې دنبيﷺ په ژوندکې دهغه زيارت کړی وي او بياپه ايمان باندې دهغه خاتمه شوي وي[2]. خودلته داهم يادساتل پکاردي چې دصحابي درجه بل هيچاته نه شي ورکول کيدای. که هغه لوی غوث. قطب ياولی الله هم وي.[3]

## ايا غيرمسلم ته د نبيﷺ زيارت کيدلی شي؟

**سوال:** په وړاندې ورځوکې زماکراچي ته دتلوموقع راغله هلته يوه جلسه جوړه شوه. يو امام راغی هغه پخپل بيان کې وويل چې يوځل يوسړی ماته راغي او ويې ويل چې حافظ صاحب يوعيسايي وايي چې زرکوه ماته کلمه ووايه مادشپې په خوب کې نبي کريمﷺ ليدلی دی اوماته يې وفرمايل چې الله تعالى تاته دين اوايمان درکړی دی. زر کوه اوايمان راوړه؛ لهذا امام صاحب دهغه سړي خبره واوريده اوبياهغه عيسايي ته ورغي اوکلمه يې ورته وويله اوهغه سړی دکليمې ويلو نه وروسته فورا وفات شواوس تاسودا ووايئ چې د حافظ صاحب داخبره صحيح ده؟چې عيسايي سړی په خوب کې دنبي عليه السلام زيارت کولی شي؟

---

[1] من كذب على متعمداً فليتبوا مقعده من النار(مشكوة ص:۳۵.كتاب العلم.الفصل الثانى)

[2] الفصل الاول فى تعريف الصحابى.واصح ما وقفت عليه من ذلك ان الصحابى من لقى النبى صلى الله عليه وسلم مؤمنا به ومات على الاسلام فيدخل فيمن لقيه.من طالت مجالسته او قصرت ومن روى عنه او لم يرو(الاصابة فى تميز الصحابة.خطبة الكتاب ومقدمته ج:۱.ص:۷ طبع دارصادر.بيروت)

[3] وروى ابن بطة باسناد صحيح عن ابن عباس انه قال: لا تسبوا اصحاب محمد صلى الله عليه وسلم،فلمقام احدهم ساعة يعنى مع النبى صلى الله عليه وسلم خير من عمل احدكم اربعين سنة، وفى رواية وكيع خير من عبادة احدكم عمره (شرح فقه اكبر ص:۸۳، طبع مجتبائى دهلى) عن جابر قال:قال رسول الله صلى الله عليه وسلم :ان الله اختار اصحابى على الثقلين سوى النبيين والمرسلين(الاصابة فى تميز الصحابة خطبة الكتاب ومقدمته ج:۱،ص:۱۲ طبع دارصادر.بيروت)

**جواب:** ضرور کيدلی شي ستا په دی کې څه شك دی ؟ که ستا دا خيال وي چې په خوب کې دنبي عليه السلام زيارت خوډېره دعزت او شرافت خبره ده،داعزت کافرته څنګه حاصليدلی شي؟ نوددې ځواب دادی چې په ويښه دنبي عليه السلام زيارت ددې نه ډېره دعزت خبره کيدل پکار دي،ابوجهل اوابولهب نبي عليه السلام په ويښه ليدلی و ،هرکله چې دا شی دهغوی له پاره دشرف سبب جوړنه شو، نو ديو کافر دنبي عليه السلام په خوب کې ليدل دشرف باعث څنګه کيدای شي، اصل شرف د نبي عليه السلام زيارت نه دی بلکې دهغه تصديق اوتابعداري ده، که دانه وي نوبيا ځې زيارت هيڅ شرف نه دی.[1]

## په خوب کې د نبي عليه السلام زيارت

**سوال:** اياپه خوب کې دحضور صلی الله عليه وسلم زيارت ممکن دی؟ که ممکن وي ،نوڅنګه به پته ولګيږي چې خوب ربښتونی دی؟ ځينې خلک په خوب کې حضور صلی الله عليه وسلم په بل شکل کې ويني، نوهغه به هم صحيح خوب وي؟

**جواب:** دصحيحينوپه رواياتوکې دحضور صلی الله عليه وسلم دارشاداتو په ګڼو اومختلفو الفاظوکې روايت دی چې: من رأني في المنام فقد رأني،فإن الشيطان لا يتمثل بي.

ترجمه:چاچې په خوب کې زه وليدم، هغه زه وليدم، ځکه چې شيطان زما په صورت کې نه شي راتلی.

په يوبل روايت کې دي : من رأني فقد رأى الحق. (مشكوة ص:٣٩٤)

ترجمه :چاچې زه وليدم هغه ربښتونی خوب وليد.

په خوب کې دحضور صلی الله عليه وسلم دزيارت مبارک دوه صورتونه دي:

۱: حضور صلی الله عليه وسلم په خپل اصلي شکل اوحليه مبارکه کې ويني.

۲: په بل څه هيئت اوشکل کې يې ويني.

داهل علموپه دې کې پوره اتفاق دی، چې دحضور صلی الله عليه وسلم زيارت دهغه صلی الله عليه وسلم په اصلي حليه مبارک کې وي، نودارشادنبوي صلی الله عليه وسلم مطابق، په ربښتيا دهغه زيارت نصيب شو ،که په څه بل هيئت اوشکل کې يې ويني، نودې ته به هم زيارت نبوي صلی الله عليه وسلم ويل کيږي که نه؟ په دې کې دعلماوو دوه قوله دي:

---

۱) عن ابی هريرة رضی الله عنه قال:قال رسول الله صلی الله عليه وسلم :كل امتی يدخلون الجنة الا من ابی،قيل:ومن ابی؟ قال:من اطاعنی دخل الجنة ومن عصانی فقدابی(رواه البخاری (مشكوة ص:٢٧،باب الاعتصام بالكتاب والسنة،الفصل الاول)

۱: دې ته به زيارت نبوي ﷺ ويل کيږي. ځکه چې دارشادنبوي ﷺ مطابق په خوب کې دحضور ﷺ دزيارت يواځې دامقصددی چې تاسوپه اصلي شکل اوصورت اوحليه مبارکه کې ووينی که چاپه مختلف حليه کې وليده، نوداد پورتني حديث په شان نه دی.
۲: اودځينوعلماووقول دادی: چې تاسو که په هرصورت اوحليه کې يې ووينی، هغه هم دهغه ﷺ زيارت دی اودحضور ﷺ په مختلف شکل اوحليه کې ليدل دخوب ليدونکي دنقص علامت دی، شيخ عبدالغنی نابلسي رحمه الله په ..تعطيرالانام فی تعبيرالمنام. کې ددواړه قولونو له نقل کولونه وروسته ليکلي دي:

فعلم أن الصحيح، بل الصواب كما قاله بعضهم: أن رؤياه حق على أي حالته فرضت، ثم إن كانت بصورته الحقيقة في وقت ما، سواء كان في شبابه او رجوليته او كهولته او آخر عمره لم تحتج إلى تأويل، وإلااحتيجت لتعبيريتعلق بالرائي ، ومن ثم قال بعض علماء التعبير: من رأه شيخا فهوغاية سلم ،ومن رأه شابا فهوغاية حرب ، ومن رأه متبسما فهومتمسك بسنته.

وقال بعضهم،من رأه على هيئته وحاله كان دليلاً على صلاح الرائي وكمال جاهه وظفره بمن عاداه،ومن رأه متغير الحال عابسا كان دليلا على سوء حال الرائي.

وقال إبن أبي جمرة: رؤياه في صورة حسنة حسن في دين الرائي،ومع شين اونقص في بعض بدنه خلل في دين الرائي،لأنه صلى الله عليه وسلم كالمرآة الصقيلة ينطبع فيها مايقابلها،وإن كانت ذات المراة على أحسن حاله وأكمله،وهذا الفائدة الكبرى ففي رؤياه صلى الله عليه وسلم إذ به يعرف حال الرائي.(ج:۲ ص:۲۷٦،۲۷۷)

ترجمه:معلومه شوه چې صحيح بلکې صواب هغه خبره ده چې ځينوحضراتووفرمايله، چې په خوب کې دحضور ﷺ زيارت په هرحال حق دی، بياکه هغه ﷺ يې په اصلي حليه مبارکه کې وليداوکه هغه حليه دهغه ﷺ ځوانی وي يادپوخ عمروي، يادپيرۍ دزماني،ياداخري عمرمبارک وي، نوددې تعبيرحاجت نشته اوکه حضور ﷺ يې په اصلي شکل مبارک کې ونه ليده،نوخوب ليدونکي ته به دمناسب حال تعبيروي، ددې په وجه دخوبونوتعبيرځيني علماء فرمايي: چې چاحضور ﷺ په بوډاوالي کې ، نوداډيرښه دی اوچاچې حضور ﷺ ځوان وليده، نودانهايت جنګ دی اوچاچې حضور ﷺ په خنداباندې وليده، نوداکس دسنتو ټينګ نيونکی دی.

اوځينودتعبيرعلماووفرمايلي دی :چاچې حضور ﷺ په اصلي شکل اوحالت کې وليده، نودادکتونکي درست حالت، دهغه کمال اوجاهت اوپه دشمنانوباندې دغلبې علامت دی اوچاچې حضور ﷺ په غيرحالت کې مثلا دغصې په حالت کې وليده، نودادليدونکي دحالت دبديدو علامت دی.

حافظ ابن ابي جمرة رحمه الله فرمايي چې: حضور ﷺ په ښه حالت کې ليدل. دکتونکي د دين د ښه کيدو علامت دی او دعيب يانقص په حالت کې دليدونکي په دين کې دخلل علامت دی. ځکه چې دحضور ﷺ مثال ديوې صفا اينې په شان دی. چې داينې مخې ته هرڅه راشي دهغه عکس پکې راځی. اينه په خپله که هرڅومره ښائسته اوباکماله وي (خوبدصورت شی به په کې بدصورت په نظر راځي) اوپه خوب دحضور ﷺ دزيارت شريف لويه فائده داده چې دې سره دخوب ليدونکي دحالت پته لګيږي.

په دې سلسله کې مسندالهندشاه عبدالعزيزمحدث دهلوي قدس الله سره يوتحقيق په فتاوی عزيزي کې بيان کړی دی کوم چې په لاندې ډول دی:

**سوال:** دحضور ﷺ زيارت په خوب کې اهل سنت اوشيعه دواړو فرقوپه په نظرکيږي اودهرې فرقې خلک دحضور ﷺ لطف وکرم سره په خپل حال باندې بيانول کوي اوخپل ځان موافق احکام له حضور ﷺ نه اوريدل بيانوي،غالبا دواړو فرقوته دحضور ﷺ په شان کې افراط کول ښه نه معلوميږي اوشيطاني خطراتوته په دې مقام کې دخل نشته.نودداسې خوب په باره کې څه خيال کول پکاردي؟

**ځواب:** داحديث:من رأني في المنام فقدرأني!،،يعنې جناب حضور ﷺ فرمايلي دي: چاچې زه په خوب کې وليدم، نوهغه في الواقع زه وليدم،نواکثروعلماوو ويلي دي چې دا حديث خاص دهغه کس په باره کې دی چې حضور ﷺ په هغه صورت مبارک کې ويني چې دوفات په وخت کې دحضور ﷺ صورت مبارک و اوځينو علماوو ويلي دي چې: دا حديث عام دی. حضور ﷺ که په هرصورت کې ويني، نودهغه خوب به صحيح وي، يعنې د نبوت له پيل نه دوفات تروخت پورې .په پوخ عمر کې اودسفر اوحضر اوصحت اومرض په حالت کې چې کوم دحضور ﷺ صورت مبارک و، په دې صورتونوکې که حضور ﷺ په هرصورت مبارک کې ويني، نوهغه خوب به صحيح وي، يعنې في الواقع حضور ﷺ به يې ليدلی وي او څنګه چې دحضور ﷺ په صورت کې سني حضور ﷺ په خوب کې وليده هغه شان شيعه کله هم ليدلی نه دی اوفرضياتو ته اعتبارنشته.

تحقيق دادی چې دحضور ﷺ په خوب کې ليدل څلورقسمه دي:

۱: روياء الهي دی،چې اتصال تعين يې دحضور ﷺ سره دی.

۲: روياء ملکي دی اوهغه دحضور ﷺ متعلقات ليدل دي مثلاً:دحضور ﷺ دين، د حضور ﷺ سنت ،دحضور ﷺ ورثه ،دحضور ﷺ پاک نسب اودحضور ﷺ اطاعت اومحبت کې د سالک درجه اودداسې نور... نودا امورد حضور ﷺ په صورت مقدس کې ليدل پټ مناسبات وي،چې په فن تعبيرکې معتبر وي.

۳: روياء نفساني دی، چې په خپل خيال کې د حضور ﷺ کوم صورت مبارک دی په هغه صورت کې ليدل، دا دريواړه قسمونه د حضور ﷺ په خوب کې د ليدلو په باره کې صحيح دي.
۴: روياء شيطاني دی، يعنې د حضور ﷺ په صورت مقدس کې شيطان ورته ځان وښايي، دا صحيح کيدای نه شي، يعنې ممکن نه دی چې د حضور ﷺ د صورت مطابق شيطان خپل خبيث صورت جوړ کړي او په خوب کې ورته وښايي، خو مغالطه ورکولی شي او په دريم قسم خوب کې هم شيطان کله کله داسې کوي، چې د حضور ﷺ د خبرو په شان شيطان کله کله خبرې کوي او وسوسه لکه چې د ځينو رواياتونه ثابته ده چې حضور ﷺ به د سورت نجم د لوستلو پر مهال د بعضو ايتونونه وروسته سکوت وکړ. نو شيطان څه عبارت له خپل طرف نه جوړ کړ او ويې لوستلو، دې سره د ځينو او ريدونکو مشرکانو شبه پخه شوه، دا روايت په يو مقام باندې په تفصيل سره ذکر شوې دې، نو هر کله چې د حضور ﷺ په ژوند کې شيطان داسې وکړل نو په خوب کې به داسې څنګه نه شي کيدای؟ له دې وجې نه په شريعت کې د هغو احکامو هيڅ اعتبار نشته چې په خوب معلوم شي او نه د خوب خبره حديث ګڼل کيږي، که يو بدعتي ووايي چې حضور ﷺ مې په خوب کې وليده ا فلانی حکم يې وکړ او هغه حکم د شريعت خلاف وي، نو د دې بدعتي په قول به اعتبار نه کيږي .والله اعلم. (فتاوي عزيزي ج: ۱ ص: ۲۸۵ تا ۲۸۷)

تيرو ورځو کې د قاديانيانو د نوي مشر مرزا طاهر احمد صاحب د خلافت په تايد کې قادياني اخبار (الفضل ربوه) کې د اسماني بشارتونو په عنوان سره ځينې شيان خپاره شول، په هغو کې ديو تعلق په خوب کې د حضور ﷺ د زيارت سره دی. له دې وجې يې ټکي مټ هماغسې رانقلوم: .... ، ، ومې ليدل چې مسجد (ربوه) ته ننوځم. هر طرف ته د سپوږمۍ رڼا خپره ده، خو مره په تيزي سره چې ورد کوم هغومره خوند زياتيږي او رڼا نوره هم واضح کيږي، په محراب کې بابا ګرونانک بزرګ ته ورته صورت کې حضرت نبي کريم ﷺ تشريف راوړی دی، د حضور ﷺ ګير چا پيره د نوره اله دومره تيزه ده چې سترګې له ډير کوشش سره مې بياهم په شبيه مبارک نظر نه دريږي. (الفضل ربوه ۲ نومبر ۱۹۸۲ء)

د علم تعبير په رڼا کې د دې خوب تعبير بالکل واضح دی. د خوب خاوند ته حضور ﷺ د سکانو د مشر په شکل کې په نظر راتلل د دې خبرې دليل دی چې د هغه دين او مذهب کوم چې هغه په غلط فهمي کې ((اسلام)) ګڼي، په اصل کې د سک مذهب شبيه ده او د هغوی روحاني مشر (پيشوا) د حضور ﷺ په شان نه بلکې د سکانو د مشر بابانانک په شان دی.
او د خوب خاوند ته انوارات په نظر راتلل چې د هغو په وجه د خوب اصل مراد پورې ونه رسيده، د شيطان هغه دوکه ده د کومې تذکره چې شاه عبدالعزيز محدث دهلوي قدس سره فرمايلې ده او په دې انوارتو کې داا شاره ده چې د دوی مشر د بابانانک په شان تلبيس او

تدلیس په ذریعه خپل ځان د حضور ﷺ په نقش قدم باندې تلونکی ثابتوي، چې له دې وجې ددوی په شان ډېرو له حقیقت نه نا خبره خلکو دوکه خوړلې ده.

څنګه چې د خوب دا تعبیر بالکل واضح و له دې وجې خوب لیدونکی مرزا بشیر احمد صاحب او مرزا ناصر احمد صاحب د خوب له ښکاره کولو منع کړ. خوب لیدونکی لیکي:

،،بیا (مرزا بشیر احمد صاحب) وویل: چاته خوب مه بیانوه! کله چې د خلافت ثالثه انتخاب وشو، نو بیا مې د انظاره دلیک په واسطه د (مرزا ناصر احمد صاحب) خدمت ته ولیږله، د حضرت مولانا جلال الدین شمس صاحب په ذریعې راته پیغام وشوچې حضور یعنې (مرزا ناصر احمد صاحب) فرمایي: دا خوب نور خلکو ته مه بیانوه! (مرزا عبد الرشید وکالت تبشیر ربوه) -

مناسبه ده چې د دې خوب په تایید کې د ځینو نورو اکابرو خوب او کشف هم ذکر شي:

۱::مولانا محمد لدهیانوي مرحوم په (فتاوی قادریه) کې لیکي:

مولانا محمد یعقوب صاحب نانوتوي (قدس سره صدر المدرسین دار العلوم دیوبند) له وعدې سره سم یوه فتوا په خپل لاس ولیکله اومونږ ته یې د ډاک په ذریعه راولیږله، چې د هغې مضمون دا و: دا کس زما په علم غیر مقلد معلومیږي، دده الهامات د اولیاء الله د الهاماتو سره هیڅ تعلق نه لري او نور دا چې دې کس د کوم ولي الله په صحبت کې اوسیدلو سره باطني فیض هم نه دی حاصل کړی، معلومه نه ده چې ده ته د کوم روح اویسیت دی. (فتاوي قادریه ص: ۱۷)

حضرت مولانا محمد یعقوب نانوتوي قدس سره خوله دې نه د ناپوهی اظهار وکړ چې مرزا صاحب ته د کوم ،، روح ،، نه فیض رسیدلی دی. خو په الفضل کې د ذکر شوي خوب سره دا مسئله حل کیږي، چې مرزا صاحب د سکانو د مشر سره روحاني تعلق و. مرزا صاحب چې څه هم حاصل کړي دي له هغه نه یې حاصل کړي دي.

۲::مرزا غلام احمد قادیاني د لودیانې ښارته راغی او ۱۳۰۸ هجري کې یې دعوه وکړه چې زه مجددیم، عباس علي صوفي او منشي احمد جان له مریدانو سره او مولوي محمد حسن له خپلې ډلې سره او مولوي شاهدین، مولوي عبد القادر او مولوي نور محمد د هغه دعوه ومنله او د هغه د مدد له پاره یې ملا وتړله. منشي احمد جان سره د مولوي شاهدین او عبد القادر یوې ډلې ته چې د مدرسه اسلامیه د اهتمام له پاره وه د شاهزاده صفدر جنګ د ځای د پاسه بیان وکړ، چې سبا سهار به مرزا غلام احمد قادیاني صاحب دې ښار لودیانې ته راشي او د هغه په تعریف کې یې ډېر زیات د مبالغې نه کار واخست او ویې ویل چې کوم کس په ده باندې ایمان راوړي ګویا هغه به اولنی مسلمان وي.

مولوي عبد الله صاحب مرحوم د کمال بردباري او تحمل نه وروسته وفرمایل:

اګرچې اهل مجلس باندې به زما بیان ښه ونه لګیږي، خو چې کومه خبره الله جل شانه په دې وخت کې زما په زړه کې اچولې ده درته بیانولو نه پرته به زما د طبیعت اضطرار ختم نه شي،

هغه خبره داده چې مرزاقادياني چې دچا تاسو تعريف کوئ بې دينه دی.
منشي احمدجان وويل چې: ماداول نه ويل چې په ده باندې به څوک عالم ياصوفي حسد کوي.
راقم الحروف (مولانامحمدعبدالقادرلوديانوي رحمه الله) دجلسې دختمېدلونه وروسته عبدالله صاحب ته وويل چې: ترڅوپورې څه دليل معلوم شوې نه وي، پرته دڅه ثبوت نه دچاپه باره کې دطعن ژبه پرانستل مناسب نه دي. مولوي عبدالله ورته وفرمايل چې: دغه وخت کې ماخپل طبيعت ډېرمنع کړ، خواخر داخبره الله جل شانه په دې موقع باندې زما په ژبه جاري کړه ، له الهام نه خالي نه ده.
په دغه ورځ مولوي عبدالله صاحب ډېرزيات پريشانه و. ماښام يې ډوډۍ هم ونه خوړله. دشپې په وخت کې يې په دووکسانوباندې استخاره هم وکړه اوپه خپله هم په دغه فکرکې ويده شو. څه وينی چې زه په يواوچت مکان کې دمولوي محمدصاحب اوخواجه احسن شاه صاحب سره ناست يم. دريوو کسانولنګونه وهلي دي او راروان دي.کله چې نږدې راورسيدل نويوکس کوم چې مخکې و. هغه لنګ وسپړلواودپرتوګ په شان يې وتاړه ، په خوب کې اواز راغی چې مرزاغلام احمدهم دغه دی. هم دغه وخت کې بيدارشواودزړه تياره يې فورا ختمه شوه اودا کامل يقين ورته حاصل شوچې داکس داسلام په جامه کې خلک ګمراه کوي، دخوب دتعبيرموافق په دويمه ورځ قادياني له دووهندوانو سره لودهيانيه ته راغی،(په دې خوب کې هم دغه اشاره وه چې داصاحب هندمذهب ته داسلام لباس وراغوندي .ناقل.)(فتاوی قادريه ص:۲)
۳،۴: دمولاناعبدالله لدهيانوي رحمه الله سره چې کومودووکسانو استخاره کړې وه، دهغه په باره کې مولانامحمدصاحب رحمه الله ليکي:
استخاره کونکوکې ديوکس نه معلومه شوه چې داکس بې علمه دی اودويم کس مرزاصاحب په خوب کې داسې وليده، چې يوې ښځې بربنډه په خپله غيږ کې نيولی دی اوپه بدن ورته لاس موږي، چې ددې تعبرداده چې مرزا ددنيا راغونډولوپسې لګيدلی دی اوددين يې هيڅ پرواه نشته.(پورتنۍ حواله)
په فتاوی قادريه کې دي چې: شاه عبدالرحيم صاحب سهارنپوري مرحوم(چې صاحب کشف اوکرامت بزرګ و)دملاقات په وخت کې وفرمايل چې: ماته داستخارې نه وروسته معلومه شوه چې داکس په مينبه باندې داسې سپور دی. چې دده مخ لکۍ(شاطرف ) ته دی. کله چې مې ورته په غورسره وکتل نوزنار(يوقسم تاردی چې هندوان يې په غاړه تړي)په نظرراغی. چې هغه سره ددې کس بې دينی ظاهره ده اوداهم زه درته په يقين سره وايم چې کوم اهل علم دده په تکفيرکې اوس ترد دکوي څه موده وروسته به ورته ټول کافروايي.(زنارهم په ځانګړې ډول دهندوکيدوعلامت دی اوپه الفضل کې دبيان شوي خوب تايدورسره کيږي چې داصاحب دهندوانونه مستفيدی. ناقل) (پورتنۍ حواله)

۲: مولانا محمد ابراهیم میرسیالکوټي "شهادة القران" کې (چې په ۱۳۲۱ هجري کې د مرزا صاحب په ژوند کې خپور شو) لیکي:
کله چې دې مبتدعې میرزایي فرقې ته څوک مخکښنی تفسیر ووایي نو د کفارو په شان اساطیر الاولین، ویلو سره فوري انکار کوي او که د دوی په وړاندې حدیث نبوي ﷺ ولولې نو هغه د بې علمي او مخالفت په وجه معارض قران جوړ کړي او لیرې بې وغورځوي او د خپلې رایې تفسیر ته چې په حقیقت کې تحریف او تاویل منهی عنه وي مویدبالقران وايي، (ظاهره ده چې دا طرز عمل د هیڅ یو مسلمان نه شي کیدای، ناقل) او بې علمه خلک د دوی د وکه کړي او په ډیر زیات تردد او شبهاتو کې راګیر شي. نو د داسې شبهاتو په وخت کې الله تعالی ما عاجز ته یو اځې په خپل فضل او کرم سره د حق د لارې هدایت وکړ او په هر قسمه ظاهرا او باطنا معقولا او منقولا بې حق مسئله را وښودله. د ځوانۍ په شروع کې په ۱۸۹۱ ماد مسیح علیه السلام زیارت بابرکت وکړ. همدارنګه تاسو په یو ګاډي کې سپاره یئ او بنده هغه له مخې نه راکاږي، په دې حالت باسعادت کې تاسو د قادیاني علیه ما علیه په نسبت سره عرض وکړ، تاسو د وحې د ترجمان په ژبه په پاکو الفاظو داسې وفرمایل: هیڅ د خطرې خبره نشته، الله تعالی به دی ډیر ژر هلاک کړي (شهادة القران طبع اول ص: ۴)

## ❖ صحابه رضي الله عنهم، صحابیات رضي الله عنهن او د نبي ﷺ بیبیانې او لونه ❖

### حواري چاته وايي؟

**سوال:** موږ په قران مجید کې د حواریینو ذکر په دریمه او ومه او اته ویشتمه سیپاره کې ولوست، په دې ضمن کې څه سوالونه دي:
۱: حواریین کوم خلک و؟
۲: د حواري مطلب څه دی؟
۳: حواري ته په اردو کې څه ویل کیږي؟
۴: د حواري نه پرته دویمه ډله خلك څوک وو چې کافر وګرځول شول؟
۵: د دې تفصیل بیان کړئ او د حوارییو خطاب چاته وشو؟

**جواب:** د حواري لفظ د "حَوَرَ" نه اخستل شوی دی چې معنا یې سپینوالی دی، په دې ایاتونو کې د حواري لفظ د حضرت عیسی علیه السلام د مخلصو دوستانو له پاره استعمال شوی دی چې

دهغوی تعداد دولس کسان وو[1] اودحواري لفظ په اردو کې هم دمخلص او دمددګار دوست په معنا استعمالیږي.د وارث سرهندي صاحب په کتاب" علمي لغت" کې دي:
"حواري خاص، برګزیده،مددګار، دوبي ،دحضرت عیسی علیه السلام صحابي، هغه چې دچابدن ډېرسپین وي.[2]
هغه دکافرو ډله چې دهغه ذکر سورة الصف ایت ۱۴ کې دی، په دې باره کې حضرت ابن عباس رضي الله عنهما فرمایي : کله چې حضرت عیسی علیه السلام اسمان ته پورته کړل شو . نو دعیسایانوقوم درې ډلې شو:
۱: ډلې وویل: چې هغه پخپله خدای و ، ځکه اسمان ته ولاړ.
۲: ډلې وویل چې هغه په خپله خدای نه و ، خودخدای زوی و ، له دې وجې نه پلار خپل زوی ځان ته وروغوښته،دا دواړه ډلې کافرشول.
۳: ډله دمسلمانانوه،هغوی وویل : هغه نه خدای و اونه دخدای زوی، بلکې دالله بنده اودهغه رسول و ، الله تعالی دخپل خاص حکمت په وجه اسمان ته پورته کړ، (او قیامت ته نژدې به هغه بیا راکوزیږي) داډله مومنان وو، دحضرت عیسی علیه السلام د حواریونو اودهغه دریښتوني تابعدارو هم دا عقیده وه.[3]

## عشره مبشره چاته وایي؟

**سوال:** یوحافظ صاحب ویل چې دبي بي فاطمې رضي الله عنها ذکرپه عشره مبشره کې دی ،عشره مبشره چاته وایي؟

**جواب:** عشره مبشره هغه لسوصحابه ووته وایي چې هغوی ته نبي کریم صلی الله علیه وسلم په یووخت کې دجنت زیری ورکړ، چې دهغوی نومونه دا دي:
۱. حضرت ابوبکرصدیق رضي الله عنه.
۲. حضرت عمربن خطاب رضي الله عنه.
۳. حضرت عثمان بن عفان رضي الله عنه.

---

[1] الحواری اصله من الحور وهو شدة البياض...... كانوا الحواريون اثنى عشر رجلاً اتبعوا عيسى عليه السلام (التفسير الكبيرج:۸،ص:۶۳،طبع دار احياء التراث العربي،بيروت)
[2] علمی لغت ص:۶۵۷ (مطبوعه علمی کتب خانه)
[3] عن ابن عباس قال: لما اراد الله عزوجل ان يرفع عيسى الى السماء .... فتفرقوا ثلاث فرق،قالت فرقة: كان الله فينا ما شاء ثم صعد الى السماء، وهؤلاء اليعقوبية،وقالت فرقة:كان فينا ابن الله ماشاءالله ثم رفعه اليه، وهؤلاء النسطورية،وقالت فرقة: كان فينا عبدالله ورسوله ماشاءالله ثم رفعه اليه وهؤلاء المسلمون (تفسير ابن كثيرج:۶،ص:۲۱۰ طبع رشيديه كوئته)

۴ـ حضرت علی رضي الله عنه.
۵ـ حضرت طلحه بن عبيد الله رضي الله عنه.
۶ـ حضرت زبيربن العوام رضي الله عنه.
۷ـ حضرت عبدالرحمن بن عوف رضي الله عنه.
۸ـ حضرت سعدبن ابی وقاص رضي الله عنه.
۹ـ حضرت ابوعبيده بن جراح رضي الله عنه. ۱۰ـ حضرت سعيدبن زيد رضي الله عنه.

دحضرت فاطمې رضي الله عنهافضائل بېشماره دي،هغه به دجنت دښځو سرداره وي. خو عشره مبشره يوخاص اصطلاح ده په هغه کې حضرت فاطمه رضي الله عنها شامله نه ده.هم داسې د هر صحابه کرام رضي الله عنهم ته دنبي کريم ﷺ په ژبه دجنت زيري ورکړل شوي دي. خو په "عشره مبشره" کې هغوی نه شمېرل کيږي.[1]

## په خلفايې راشدينو کښې د څلوروخلفاو نه پرته نورخلفاء ولې شامل نه دي؟

**سوال:** ديني طورباندې چې کله دخلفاء راشدينوذکرراځي ، نوله دې نه يواځې څلورخلفاء راشدين مراداخستل کيږي، يعني حضرت ابوبکر صديق رضي الله عنه، حضرت عمرفاروق رضي الله عنه، حضرت عثمان غنی رضي الله عنه او حضرت علي المرتضی رضي الله عنه اوله دې نه وروسته حضرت امام حسن رضي الله عنه او حضرت اميرمعاويه رضي الله عنه چې دا هم صحابه دي، ددوی نومونه په کې ولې نه دي شامل شوي، سره له دې چې دوی هم خلفاء راشدين دي اود حضرت عمربن عبدالعزيز د ورخو انتهايي مثالي دور و، تاسوته خواست دی چې خاص طور باندې چې کومو څلور خلفاوو ته حق چار يار ويل کيږي، تاسو په قران اوحديث سره د دې څلورو خلفاوو د خصوصيت ثبوت سره ځواب راکړئ او داهم چې حضرت امام حسن رضي الله عنه او دحضرت امير معاويه رضي الله عنه ذکر د دوی سره ولې نه کيږي؟

**جواب:** "خلافت علی منهاج النبوة" له پاره د نورو اوصافوسره هجرت هم شرط دی[2]،چې دهغه طرف ته دسورة النور د استخلاف ايت کې اشاره فرمايل شوې ده[3]اوداشرط يواځې

---

۱] عن سعيد ان رسول الله صلى الله عليه وسلم قال: عشرة فى الجنة ابوبكر فى الجنة، وعمر فى الجنة، و عثمان وعلى وزبير وطلحة وعبدالرحمن وابوعبيدة وسعد بن ابى وقاص وسعيد بن زيد،وقد ورد ان فاطمة سيدة نساء اهل الجنة(شرح فقه اكبر ص:۱۴۵،ابوداؤد ج:۱ص:۲۸۳ كتاب السنة،شرح عقيدة الطحاوية ص:۵۴۹)

۲] ازجمله لوازم خلافت خاصه آنست كه خليفه از مهاجرين اولين باشد(ازالة الخفاء عن خلافة الخلفاء ج:۱،ص:۱۰،مطبوعه سهيل اكيڈمى)

۳] قوله تعالى: ليستخلفنهم فى الارض فيه قولان :احدهما يعنى ارض مكة لان المهاجرين سالو الله تعالى ذلك فوعدوا كما وعدت بنواسرائيل...... الثانى: بلاد العرب والعجم(تفسير القرطبى ج:۱۲،ص:۲۹۹)

په څلورو خلفاء راشدينو کې موندل شوی دی، دحضرت امام حسن رضی الله عنه خلافت دحضرت علي رضی الله عنه دخلافت تتيمه وه چې دهغه سره دنبوت دخلافت ديرش کاله پوره شو[۱] چې دهغه تصريح حديث نبوي ﷺ "خلافة النبوة ثلثون سنة" کې راغلی دی، يعنې دنبوت خلافت به ديرش کاله وي، دادترمذي او ابوداود روايت دی[۲]، حضرت اميرمعاويه رضی الله عنه کې دهجرت شرط نه دی موندل شوي ځکه هغه په خلفاء راشدينوکې نه شمارل کيږي.دهغه خلافت دعدل خلافت واوحضرت عمربن عبدالعزيز صحابي نه و بلکې تابعي و ځکه دهغه خلافت ته هم خلافت راشده نه ويل کيږي،خو د خلافت راشده سره مشابه و.[۳]

## د حضرت ابوبکر صديق رضی الله عنه د پيدائش او وفات تاريخ

**سوال:** د اميرالمومنين سيدنا حضرت ابوبکر رضی الله عنه د ولادت او وفات تاريخ څه و؟

**جواب:** د ولادت تاريخ يې معلوم نه دی وفات يې دسې شنبې په شپه ۲۲جمادی الأخری۱۳ھ، بمطابق ۲۳اگست ۶۳۴ء د۶۳ کالو په عمر کې وشو[۴]،ددې نه معلومه شوه چې دهجرت نه پنځوس کاله مخکې يې ولادت شوی و.

## د حضرت ابوبکر صديق رضی الله عنه خلافت په حقه و

**سوال:** که څېرې زمونږ ددريو خليفه گانو حضرت علي رضی الله عنه سره مينه وه، اوکله چې حضرت علي رضی الله عنه دحضور ﷺ نائب ،اهل بيت اودهغه خوږ وروروموجودو اوکه هغه کې هيڅ هم نه و ،خوداصفت خوپکې موجودو، دحضور ﷺ دحديث مطابق "دچاچې زه مولايم،دهغه علي مولادی،،

اوحضرت عمر رضی الله عنه حضرت علي رضی الله عنه ته په غديرخم کې ددې مبارکی ورکړه، چې اې علی رضی الله عنه مبارک شه ته دټولو مسلمانانو سړواومسلمانانو ښځو مولا مقررشوې، نوبياڅه وجه وه چې

---

۱] وخلافة النبوة ثلاثون سنة منها خلافة الصديق سنتان اشهر،وخلافة عمر عشر سنين ونصف،وخلافة عثمان اثناعشرسنة،وخلافة على اربعة سنين وتسعة اشهر،وخلافة الحسن ابنه ستة اشهر(شرح فقه اكبر ص:۸۳)

۲] ترمذى ج:۲،ص:۴۵ ابواب الفتن، باب ماجاء فى الخلافة،طبع رشيديه ساهيوال،ابوداؤد ج:۲، ص:۲۸۱،كتاب السنة،باب فى الخلفاء،طبع ايچ ايم سعيد

۳] والخلافة ثلاثون سنة بعدها ملك وامارة لقوله عليه السلام الخلافة بعدى ثلاثون سنة..... فمعاوية ومن بعده لايكون خلفاء بل ملوكاً وامراء(شرح عقائدص:۱۰۵،قديم نسخه)

۴] كانت وفاة الصديق رضى الله عنه فى يوم الاثنين.....وذلک لثمان بقين من جمادى الآخرة سنة ثلاث عشرة.... وكان عمره يوم توفى ثلاث وستين سنة(البداية والنهاية ج:۷،ص:۱۸،طبع بيروت)

خلفاوو حضرت علي رضی الله عنه خلیفه مقررنه کړ؟ اوپه سقیفه کې ولې دې دریو واړو خلفاوونه یوهم حضرت علي رضی الله عنه ونه ټاکل شو؟

**جواب:** غدیرخم کې چې کوم اعلان شوی و، هغه حضرت علي رضی الله عنه سره ددوستۍ اعلان و. دخلافت نه،هم دغه وجه ده چې حضور صلی الله علیه وسلم حضرت ابوبکر رضی الله عنه په خپله مصله باندې ودراواوپه خپله ناروغي کې یې هغه ته دلمونځ ورکولوحکم وکړ. حضرت ابوبکر رضی الله عنه امام و اوحضرت علي رضی الله عنه مقتدي. په دې وجه باندې خلافت هم حضرت ابوبکر رضی الله عنه ته ورکړل شو.[1]

**سوال:** زموږدریوواړوخلیفه ګانودحضور صلی الله علیه وسلم په جنازه کې شرکت ولې ونه کړ اوکه چېرې دخلافت مسئله وه، نودخلافت مسئله یې وروسته کوله ولې نه؟ ایاخلافت دهغوی له پاره درسول الله صلی الله علیه وسلم نه زیات اهمیت لاره؟ اودې حضراتوداخبرولې نه ورکاوچې دلته دخلافت مسئله ده؟ اوحضرت علی رضی الله عنه سره یې دې باره کې مشوره ولې نه کوله؟

**جواب:** دریوواړوخلیفه ګانودحضور صلی الله علیه وسلم په جنازه کې شرکت کړی دی[2]. اوداصولي خبره ده چې دیوحکمران دمرګ نه وروسته دهغه ځای ناستی(خلیفه) ټاکل کیږي، امت دخلیفه اوحاکم نه پرته نه شي پاتې کیدای.

**سوال:** حضرت ابوبکر رضی الله عنه چې څه ډول خلیفه شو، هغه ته څه ویل کیږي؟ الیکشن خونه شي کېدای. داسلیکشن هم نه شي کیدای، ټاکل هم نه دي، نوداڅه معامله ده؟ اودې ته به څه نوم ورکول کیږي؟ اوداخلافت به څنګه جائزګڼل کیږي؟

**جواب:** ټولوصحابه کرامو رضی الله عنهم (چې هغو کې حضرت علي رضی الله عنه هم شامل و) حضرت ابوبکر رضی الله عنه سره بیعت وکړ،ددې نه زیات انتخاب (الیکشن) به څه وي؟ یوکس هم داسې نه و

---

[1] عن عبدالله بن زمعة بن الاسود بن المطلب بن اسد قال: لما استعزبرسول الله صلى الله عليه وسلم وانا عنده فى نفر من المسلمين دعا بلال للصلاة فقال: مروا من يصلى بالناس قال: فخرجت فاذا عمر فى الناس وكان ابوبكر غائباً، فقلت: قم يا عمر! فصل بالناس،قال:فقام،فلما كبر عمر سمع رسول الله صلى الله عليه وسلم صوته وكان عمر رجلاً مجهراً، فقال رسول الله صلى الله عليه وسلم :فاين ابوبكر؟ يابى الله ذالک والمسلمون قال : فبعث الى ابى بكر فجاء بعد ما صلى عمر تلک الصلوة فصلى بالناس(البداية والنهاية ج:۵،ص:۲۳۲،طبع دارالفكر،بيروت)

[2] لما كفن رسول الله صلى الله عليه وسلم ووضع على سريره دخل ابوبكر وعمر رضى الله عنهما ومعهما نفر من المهاجرين والانصار بقدر مايسع البيت فقالا: السلام عليک ايهاالنبى ورحمة الله وبركاته وسلم المهاجرون والانصار كما سلم ابوبكروعمر،ثم صفوا صفوفاً لا يؤمهم احد(البدايه والنهاية ج:۵،ص:۲۹۵ طبع دارالفكر،بيروت)

چې هغه د حضرت ابوبکر رضی الله عنه په مقابله کې د خلافت دعوه کوله.[۱]

**سوال:** د فاطمې رضی الله عنها د ژړه حالت تر وفات پورې د دريو خلفاوو رضی الله عنهم سره څنګه و؟ که چېرې راضي وه نو هغې او د هغې خاوند حضرت علي رضی الله عنه په خپل ژوند کې بیعت ولې ونه کړ؟ او که چېرې هغه د خلکو نه خفه وه او د خفګان په حالت کې وفات شوي وي نو د هغې مذهبي عقيده هم هغه شوه کومه چې د شيعه ګانو ده؟

**جواب:** حضرت فاطمه رضی الله عنها د حضرت ابوبکر رضی الله عنه نه راضي وه[۲]. او حضرت علي رضی الله عنه د حضرت ابوبکر رضی الله عنه سره بیعت کړی و.[۳]

**سوال:** مولانا صاحب زما اخري سوال دادی چې ابوطالب کافر وو که مسلمان؟

**جواب:** د هغه اسلام نه راوړل ثابت دي.[۴]

## د حضرت عمر رضی الله عنه د ولادت او شهادت تاريخ

**سوال:** د اميرالمؤمنين سيدنا حضرت عمر رضی الله عنه د پيدائش او شهادت تاريخ څه دی؟

**جواب:** ولادت يې د هجرت نه څلويښت کاله مخکې وشو. په ۲۲ ذی الحجه ۲۳ھ د چارشنبې په ورځ په مطابق د ۳۱ اکتوبر ۶۴۴ء د سهار په مانځه کې ابولؤلؤ مجوسي په توره

---

۱] فقلت ابسط يدک يا ابابکر فبسط يده فبايعته وبايعه المهاجرون ثم بايعه الانصار(البداية والنهاية ج:۵،ص:۲٤٦)

۲]وقد روينا عن ابى بكر رضى الله عنه ان ترضى فاطمة وتلاينها قبل موتها فرضيت رضى الله عنه (البداية والنهاية ج:۵،ص:۲۸۹،طبع دارالفكر،بيروت)

۳] ثم نظر فى وجوه القوم فلم ير علياً فدعا بعلى بن ابى طالب فجاء فقال: قلت ابن عم رسول الله صلى الله عليه وسلم وختنه على ابنته اردت ان تشق عصا المسلمين قال: لا تثريب يا خليفة رسول الله صلى الله عليه وسلم فبايعه(البداية والنهاية ج:۵،ص:۲٤۹،طبع دارالفكر،بيروت)

٤] إِنَّكَ لا تَهْدِي مَنْ أَحْبَبْتَ وَلَكِنَّ اللَّهَ يَهْدِي مَنْ يَشَاءُ وَهُوَ أَعْلَمُ بِالْمُهْتَدِينَ } أي: هو أعلم بِمَنْ يستحق الهداية بِمَنْ يستحق الغوَاية، وقد ثبت في الصحيحين أنها نزلت في أبي طالب عَمّ رسول الله صلى الله عليه وسلم، وقد كان يَحوطُه وينصره، ويقوم في صفه ويحبه حبًا شديدا طبيعيًا لا شرعيًا، فلما حضرته الوفاة وحان أجله، دعاه رسول الله صلى الله عليه وسلم إلى الإيمان والدخول في الإسلام، فسبق القدر فيه، واختطف من يده، فاستمر على ما كان عليه من الكفر، ولله الحكمة التامة.(تفسير ابن كثير ج:۵،ص:۲۷)

زخمي کړ، درې ورځې زخمي حالت کې ژوندی و، په ۲۹ ذي الحجه (۳ نومبر) باندې وفات شو، په یکم محرم ۲۴ هـ روضه مبارکه کې دفن کړل شو[1]. حضرت صهیب رضی الله عنه یې دجنازې لمونځ ورکړ.

## د حضرت عمر رضی الله عنه په تائید کې د قران نازلیدل

**سوال:** دا دی چې دحضرت عمرفاروق رضی الله عنه دکومې رایې په حق کې قران مجید کې آیاتونه نازل شوي دي؟

**جواب:** حضرت عمرفاروق رضی الله عنه ته دا سعادت څوځله حاصل شوی دی چې خداوندي وحې دهغه د رایې تائیدوکړ ،حافظ جلال الدین سیوطي رحمه الله په تاریخ الخلفاء کې شل، یویشت ځایونه ښودلي دي اوامام الهندشاه ولي الله محدث دهلوي رحمه الله په "ازالة الخلفاء عن خلافة الخلفاء"[2] کې لس، یولس واقعات ذکرکړي دي په هغه کې څوپه لاندې ډول دي:

۱: دحضرت عمر رضی الله عنه رایه دا وه چې دبدردجنګ قیدیان دې قتل کړل شي ،دده دخبرې په تائیدکې دسورت انفال آیاتونه ۶۷ نه تر ۶۹ پورې نازل شو.

۲:دمنافقانومشرعبدالله بن ابی چې مړشونودحضرت عمررایه دا وه چې ددې منافق جنازه دې ونه شي ،ددې په تائیدکې دسورت توبه ایت ۸۴ نازل شو.

۳:دهغه رایه دا وه چې مقام ابراهیم دې دلمانځه ځای جوړ کړل شي،ددې په تائیدکې د سورت بقره ایت نمبر ۱۲۵ نازل شو.

۴: حضرت عمر رضی الله عنه د ازواج مطهراتو په پرده کې د اوسیدومشوره ورکوله په دې باندې دسورت احزاب ایت نمبر ۵۳ نازل شواوپرده لازم شوه.

۵: ام المومنین حضرت عائشه رضی الله عنها باندې چې کله منافقانوناروا تهمت ولګاواونبي کریم صلی الله علیه وسلم (دنورو صحابه وو نه پرته) دحضرت عمر رضی الله عنه نه هم رایه واخسته،نوهغه له اوریدو سره سمدستي وویل " توبه! توبه !داخوښکاره بهتان دی" او وروسته هم دې الفاظوکې دحضرت عائشې رضی الله عنها براءت نازل شو.

---

[1] فاتفق له ان ضربه ابو لؤلؤ فيروز المجوسى ...وهو قائم يصلى فى المحراب صلاة الصبح من يوم الاربعاء، لاربع يقين من ذى الحجة من هذه السنة بخنجر ...ومات رضى الله عنه بعد ثلاث ودفن فى يوم الاحد مستهل المحرم من سنة اربع وعشرين بالحجرة النبوية. (البداية والنهاية ج۷ ص۱۳۷، ۱۳۸، طبع دارالفكر بيروت)

[2] والفق عمر ربه فى احدوعشرين موضعاً(تاريخ الخلفاء ص:۴۸، ۴۷)

۲: په يوه موقعه باندې هغه د پيغمبر عليه السلام د بيبيانو په هولو په غرض وويل چې که چېرې پيغمبر صلى الله عليه وسلم تاسو ته طلاق درکړي، نو الله تعالى به هغه ته تاسو نه بهترې بيبيانې ورکړي، نو د دې په تائيد کې د سورت تحريم آيت نمبر ۵ نازل شو او د اسې نور...

## د حضرت عمر فاروق رضى الله عنه خلاف دروغ تړل

**سوال:** مادنن نه څه موده مخکې د جمعې په وعظ کې د امام صاحب نه يوه واقعه واوريدله چې حضرت عمر فاروق رضى الله عنه باندې په قبر کې عذاب و (معاذالله) چې هغه سره د هغه د پنډې د ماتيدلو اواز بهرهم خلکو واوريده، د دې عذاب وجه دا وه چې په هغه باندې يو ځل د متيازو يو څاڅکى پريوتى و"

جناب عالي دغه وخت کې خوزمادومره پوهه نه وه خو نن زه په دې واقعه باندې غور کوم، نو زمازړه يې نه مني چې دا واقعه به رېښتيا وي خو بياداسوچ کوم چې دا واقعه مې ديوعالم دين له خولې نه اوريدلې ده، يو عجيب کشمکش کې ګير يم. اُميد دى چې تاسو به زماداکشمکش ليرې کړئ، زما په خيال کې دا واقعه غلطه ده؟

**جواب:** ماته د حضرت عمر فاروق رضى الله عنه په باره کې د داسې واقعې هيڅ علم نشته. لومړى ځل مې ستاسو ليك کې ولوسته دا ښکاره غلطي اوعظيم بهتان ګڼم د دغه واعظ صاحب نه د حوالې پوښتنه وکړئ!

## د حضرت عمر فاروق رضى الله عنه کشف

**سوال:** له ډېرو عالمانو نه مې اوريدلې دي چې دويم خليفه حضرت عمر رضى الله عنه د جمعې خطبه لوستله او د شام په ملك کې د ده فوج د کافرو سره جنګيده، حضرت عمر رضى الله عنه د خطبې دوران کې د فوج جنرال حضرت سارية رضى الله عنه ته وفرمايل: "اې ساريه غرسنبال کړه!" ساريه رضى الله عنهما د عمر فاروق رضى الله عنه آواز واوريده او غرېې سنبال کړ، داشان هغه ته فتحه نصيب شوه، ايا دا صحيح دى؟

**جواب:** دا د حضرت عمر رضى الله عنه کشف او کرامت و، دا واقعه د حديثو په کتابونو کې موجوده ده. (وګوره حياة الصحابه ص۵۲۸ج۳، الاصابة ص۳ج۲، البداية والنهاية ص۱۳۱ج۷)[1]

---

[1] .....فوقع فى خاطر عمر وهو يخطب يوم الجمعة ان الجيش المذكور لاقى العدو وهم فى بطن واد وقد هموا بالهزيمة وبالقرب منهم جبل، فقال فى اثناء خطبته: ياسارية! الجبل،ورفع صوته فالقاه الله فى سمع سارية فانحاز بالناس الى الجبل، وقاتلوا لعدو من جانب واحد ففتح الله عليهم (الاصابة ج:۲، ص:۳،طبع دار صادر،مصر دې سره سره اوګورئ حياة الصحابة ج:۳،ص:۵۶۸،طبع دارالمعرفة، بيروت، البداية والنهاية ج:۷، ص:۱۳۱ طبع دارالفكر،بيروت)

# د حضور ﷺ د حجة الوداع په خطبه کې حضرت عمر رضی اللہ عنہ ژړلي و او که حضرت ابوبکر رضی اللہ عنہ ؟

**سوال:** دجنگ اسلامي صفحه مې ولوستله، ریټائرډ (متقاعد) جسټس قدیرالدین صاحب په خپل مضمون "اسلام ایک مکمل ضابطه حیات هے،، کې لیکي: چې د ۹ ذي الحجه په ورځ باندې په ۱۰ هـ کې حضور ﷺ چې دعرفات په میدان کې کومه خطبه بیان کړې وه هغې کې ددین اسلام دمکمل کیدوزیری (خوشخبري) ورکړل شوی و. هغه وخت کې مسلمانان خوشال شول، خوحضرت عمر رضی اللہ عنہ ژړل، رسول الله ﷺ ترې دژړاپوښتنه وکړه. نوحضرت عمر رضی اللہ عنہ وفرمایل کیدای شي اوس تاسوموږسره ډیرې ورځې پاتې نه شئ، خومولاناصاحب! څه ورځې مخکې هم دامضمون اسلامي صفحې باندې مولانااحتشام الحق صاحب هم لیکلی و، هغه کې نوموړي دهمدې خطبې دوران کې دحضرت عمر رضی اللہ عنہ په ځای باندې دحضرت صدیق اکبر رضی اللہ عنہ دژړا باره کې لیکلي و. اوبالکل هم داالفاظ یې لیکلي و، مهرباني وکړئ هم دې صفحه باندې ځواب راکړئ چې تسلي مووشي، په پردي ملک کې دکتابونو نه پیدا کیدوپه وجه باندې دمطالعې نه محروم یم، که نه دپوښتنه کولوضرورت به نه و، امیددی چې تاسوبه ضرور ځواب راکړئ!

**جواب:** ددې ایت دنازل کیدوپه موقع باندې دژړا واقعه دحضرت عمر رضی اللہ عنہ ده، خوجسټس صاحب دحدیث الفاظ صحیح نه دي نقل کړي، چې دهغه په وجه باندې تاسوته ددې واقعې اشتباه دحضرت ابوبکر رضی اللہ عنہ دژړا له واقعې سره وشوه، دحضور ﷺ په پوښتنه کولوباندې حضرت عمر رضی اللہ عنہ دانه و فرمایلي چې کیدای شي اوس به تاسوموږ سره ډیرې ورځې پاتې نه شئ. بلکې دایې فرمایلي و، چې اوسه پورې زموږپه دین کې اضافه کیده. خونن هغه مکمل شو اوکله چې یوشی مکمل شي، نوهغه کې بیااضافه نه کیږي، بلکې کمی اونقصان پکې شروع شي، حضور ﷺ وفرمایل چې ته رښتیاوایې. (تفسیرابن کثرج ۲ ص ۱۳)

دحضرت ابوبکرصدیق رضی اللہ عنہ دژړاواقعه داده چې حضور ﷺ دوفات په مرض کې یوه خطبه فرمایلې وه، چې الله تعالی خپل یو بنده ته اختیارورکړی دی. چې هغه دې یادنیاکې پاتې شي اويادې دالله تعالی رحمت ته لاړشي، حضرت ابوبکر رضی اللہ عنہ په دې اشاره باندې پوه شواوپه ژړاشو، اونورصحابه کرام رضی اللہ عنہم هغه وخت کې نه وو پوه شوي.

## د نبي کريم ﷺ دا قول چې که زما نه وروسته پيغمبر واى نو فلانى به و، ددې مصداق څوک دى؟

**سوال:** ښکاره حوالې سره داوښايئ چې نبي کريم ﷺ دکوم صحابى په باره کې فرمايلي و، چې که چېرې زمانه وروسته بل نبي واى نو فلانى به و؟

**جواب:** دحضرت عمرفاروق رضی اللہ عنہ په باره کې يې فرمايلي و:

,, لوکان نبي بعدي لکان عمر بن الخطاب . (ترمذي ص۲۰۹ ج۲)

## د حضرت عثمان رضی اللہ عنہ دشهادت تاريخ او عمر

**سوال:** د اميرالمومنين سيدنا حضرت عثمان غني رضی اللہ عنہ د ولادت تاريخ او دشهادت تاريخ څه دى؟

**جواب:** دشهادت په تاريخ کې يې ګڼ اقوال دي ،مشهور قول ۱۸ذى الحجه ۳۵هـ (۱۷جون ۶۵۵ع) دجمعې ورځ دى، عمر مبارک يې دمشهور قول مطابق دوه اتيا (۸۲) کاله و. [۱]

د حضرت عثمان رضی اللہ عنہ نکاح د حضرت أم کلثوم رضی اللہ عنہا سره د اسماني وحې په ذريعه وشوه.

**سوال:** ايانبي کريم ﷺ سيدنا حضرت عثمان غنى رضی اللہ عنہ ته فرمايلي و چې دسيده أم کلثوم رضی اللہ عنہا نکاح الله تاسره وکړه؟

**جواب:** دطبراني روايت دى چې ما ﷺ دحضرت عثمان رضی اللہ عنہ سره دام کلثوم رضی اللہ عنہا نکاح نه ده کړې داسمانى وحې په ذريعه سره شوې ده [۲] "اود ابن ماجه په روايت کې دي چې نبي علیہ السلام حضرت عثمان رضی اللہ عنہ ته وفرمايل:" داجبرائيل علیہ السلام وايي چې الله تعالى دام کلثوم سره ستا نکاح کړې ده، دحضرت رقيه رضى الله عنها دمهرپه اندازه مهرسره .

(مجمع الزوائد ص۸۲ج۹) کې ددې مضمون ګڼ روايتونه دي او دطبراني پورته ذکرشوي حديث ته يې حَسن ويلى دى).

---

[۱] انه قتل يوم الجمعة لثمانى عشرة خلت من ذى الحجة سنة خمس وثلاثين على الصحيح المشهور .....توف عن ثنتين وثمانين سنة واشهر(البداية والنهاية ج:۷،ص:۱۹۰

[۲] عن ام عياش قالت:سمعت رسول الله صلى الله عليه وسلم يقول: ما زوجت عثمان ام كلثوم الا بوحى من السماء(رواه الطبرانى فى الكبير والاوسط اسناده حسن،مجمع الزوائد ج:۹،ص:۶۱،باب تزويجه،طبع دارالكتب العلمية،بيروت)

## د حضرت علي رضي الله عنه له نوم سره ,,کرم الله وجههٗ،، ولې ويل کيږي؟

**سوال:** مهرباني وکړئ دا بيان کړئ چې دهرصحابي نوم سره (رضی الله عنه) ويل کيږي او د علي رضي الله عنه له نوم سره کرم الله وجهه. نو ددې څه وجه ده؟

**جواب:** خوارجوبه دحضرت علي رضي الله عنه له نوم مبارك سره دښيرو ګنده الفاظ استعمالول، له دې وجې نه اهل سنت والجماعت دهغوی په مقابله کې دا دعائيه الفاظ ويل شروع کړل چې" الله تعالی دې دهغوی مخ روښانه کړي"[۱].

## ايا د حضرت علي رضي الله عنه نکاح موقته وه؟

**سوال:** په روزنامه جنګ کې" دحضرت علي رضي الله عنه اولاد" په عنوان سره ديوصاحب په ځواب کې ليکل شوي و ،چې حضرت علي رضي الله عنه د فاطمهِ الزهرا دوفات نه وروسته ډيرې نکاح ګانې کړې وې اوډيراولاديې هم پيداشوی و ،هغه دبعضې اولاد نومونه هم ليکلي وو.

مولانا صاحب! سوال دادی چې دفاطمې رضي الله عنها دوفات نه وروسته چې حضرت علي رضي الله عنه کومې نکاح ګانې کړې وې اياهغه هميشه له پاره وې اوکه مَوقتي وې؟

مهرباني وکړئ ددې وضاحت وکړئ چې دفاطمه الزهرا رضي الله عنها دوفات نه وروسته چې حضرت علي رضي الله عنه څومره نکاح ګانې کړې وې.ايا داهميشه وې که موقتي(متعه) ؟.بل داچې دحضرت فاطمې رضي الله عنها نه پرته دحضرت علي رضي الله عنه دځوبيبيانو نومونه وليکئ!

**جواب:** په اسلام کې دوموقتي نکاح هيڅ تصور نشته[۲]،که چيرې داسې کيدای شو نو طلاق به نه جائزشوی ،حضرت علي رضي الله عنه چې څومره نکاحونه کړي وو هغه وقتي نه وو، دهغه رضي الله عنه څه بيبياني دهغه په ژوندکې وفات شوي بعضوته يې طلاق ورکړی اوڅه ترآخري وخته پورې ورسره وې ،حافظ ابن کثير په البدايهة والنهايهة جلد ۷ صفحه ۳۳۲ کې ليکي:

---

۱] سوال: د حضرت علي رضی الله عنه نوم مبارک سره د کرم الله وجهه ويلو وجه څه ده؟ جواب: د ځينو علماء کرامو نه مو اوريدلي دي چې خوارجو د حضرت علی رضی الله عنه نوم مبارک سره سودالله وجهه زيات کړي و د دې په جواب کښې د کرم الله وجهه عادت جوړ کړل شو او د يو بزرګ نه مې اوريدلي و چې چونکه دوی مبارک په ماشوموالی کې اسلام قبول کړی و او د دوی مخ مبارک بت وغيره ته بالکل ښکته شوی نه دی په دې وجه ورته ويل کيږي (امداد الفتاوی ج: ٤،ص: ۳۷٤)

۲] عن امير المؤمنين علی بن ابی طالب رضی الله عنه قال: نهی رسول الله صلی الله عليه وسلم عن نكاح المتعة.....الخ (تفسير ابن كثيرج:۲ص:۲۳۱) ايضاً فی الدر المختار: وبطل نكاح متعة ومؤقت وان جهلت المدة او طالت فی الاصح وليس منه مالو نكحها علی ان يطلقها بعد شهر او نوی مكثه معها مدة معينة(الدرالمختار مع الرد المحتارج:۳،ص:۵۱)

علي رضي الله عنه د حضرت فاطمې رضي الله عنها په ژوند کې دویمه نکاح نه وه کړې، د هغې له وفات نه وروسته یې څو نکاح ګانې وکړلې.
بعضې بیبیانې د هغه رضي الله عنه په ژوند کې وفات شوي او بعضو ته یې طلاق ورکړی، د وفات په وخت کې د هغه رضي الله عنه څلور بیبیانې او نولس (۱۹) وینزې وې، څوارلس، پنځلس زامن یې وو او اوولس (۱۷) لونړه وې.
د زامنو نومونه یې دا دي:
(۱): حسن رضي الله عنه (۲): حسین رضي الله عنه (۳): محسن (۴): عمر (۵): محمد بن حنیفه (۶): محمد اوسط (۷): عبدالله (۸): عباس (۹): جعفر (۱۰): عُبیدالله (۱۱): یحیی (۱۲): عون (۱۳): ابوبکر (۱۴): عثمان (۱۵): محمد اصغر
او د لوڼو نومونه یې دا دي:
(۱) زینب کبریٰ (۲): اُم کلثوم (د دې نکاح د امیرالمومنین حضرت عمر رضي الله عنه سره شوې وه)، (۳): رقیه (۴): اُم الحسن (۵): رمله کبری (۶): ام هاني (۷): میمونه (۸): زینب صُغریٰ (۹): رمله صغریٰ (۱۰): اُم کلثوم صغریٰ (۱۱): فاطمه (۱۲): امامه (۱۳): خدیجه (۱۴): ام الکرام (۱۵): اُم جعفر (۱۶): اُم سلمه (۱۷): جمانه.[۱]

## د آل رسول صلی الله علیه وسلم وجه

**سوال:** حضرت حسن او حسین رضي الله عنهما ته اولاد رسول صلی الله علیه وسلم ویل کیږي، د حضرت بی بی فاطمې رضي الله عنها په وجه باندې. نو څه وجه ده چې د حضور صلی الله علیه وسلم د نورو لوڼو اولاد ته ال رسول صلی الله علیه وسلم نه ویل کیږي؟ حالانکه د حضرت عثمان رضي الله عنه د بیبیانو حضرت ام کلثوم (رضي الله عنها) او حضرت رقیه (رضي الله عنها) هم اولاد وو؟

**جواب:** دا عزت د حضرت فاطمې رضي الله عنها خصوصیت و، چې د هغې اولاد ته آلِ رسول صلی الله علیه وسلم وویل شو، د نورو لوڼو نه یې نسل نه دی چلیدلی.[۲]

## د حضرت علي رضي الله عنه عمر مبارک او د شهادت تاریخ

**سوال:** د امیرالمومنین سیدنا حضرت علي حیدر رضي الله عنه د ولادت او د شهادت تاریخ څه و؟

---

۱] البدایة والنهایة ج:۷، ص: ۳۳۱، ۳۳۳ طبع دارالفکر، بیروت.
۲] وقد ولدت لعلی حسناً وحُسیناً سیدا شباب اهل الجنة کما ثبت فی السنة ومحسناً فمات محسن صغیراً...... ولم یکن لرسول الله صلی الله علیه وسلم عقب الا من ابنته فاطمة فانتشر نسله الشریف منها، فقط من جهة السبطین اعنی الحسنین (شرح فقه اکبر ص: ۱۳۳، طبع مجتبائی دهلی)

**جواب:** دهغوی شهادت په ۱۷ رمضان المبارک ۴۰ هـ بمطابق ۲۴ جنوري ۶۶۱ ع باندې د درې شپیتو (۶۳) کالو په عمر کې وشو.[1]

## د حضرت عباس او حضرت علي رضی الله عنهم

## په باره کې د یو څو شبهاتو لیرې کول

محترم المقام جناب یوسف لدهیانوي صاحب!

السلام علیکم ورحمة الله وبرکاته امابعد:

قاضي ابوبکر ابن العربي (۴۶۸هـ تا ۵۴۳هـ) پخپل کتاب د "العواصم من القواصم" په یو باب کې لیکلي دي چې:

"درسول الله ﷺ وفات یوه ملاماتونکي حادثه وه او دټول عمر مصیبت و، ځکه حضرت علي رضی الله عنه دحضرت فاطمې رضی الله عنها په کور کې پټ کیناست".

"حضرت علي رضی الله عنه او حضرت عباس رضی الله عنه دنبي کریم ﷺ دناروغي دوران کې په خپل مصیبت کې پریوتل، حضرت علي رضی الله عنه ته حضرت عباس رضی الله عنه وویل چې دمرګ په وخت چې دبنی عبدالمطلب دمخونو کوم حالت وي، نوزه دنبي علیه السلام دمخ هغه حالت وینم، راځه چې موږ دنبي علیه السلام نه پوښتنه وکړو او معامله موږ ته وسپاري، نوموږ ته به معلومه شي".

"بیا ددې نه وروسته حضرت عباس رضی الله عنه او حضرت علي رضی الله عنه دنبي علیه السلام په میراث کې لګیا شول، دفدك، بنی نضیر او دخیبر په ترکه کې یې دمیراث برخه غوښتله".

دحدیثو دامامانو د روایت مطابق حضرت عباس رضی الله عنه د حضرت علي رضی الله عنه متعلق ویلي و چې کله حضرت عباس رضی الله عنه او علي رضی الله عنه دواړو درسول الله ﷺ دوقف شوي مال په باره کې حضرت عمر رضی الله عنه ته خپله شخړه یوړله، نوحضرت عبّاس رضی الله عنه حضرت عمر رضی الله عنه ته وویل: اې امیر المومنین! زما او دده په مینځ کې فیصله وکړه"!

په بل ځای کې دي چې پخپل مینځ کې یې یو بل ته کنځل وکړل..... (ابن حجر، فتح باری).

" حضرت علي رضی الله عنه رسول الله ﷺ ته راغی اونبي علیه السلام په خپله اخري ناروغۍ کې مبتلا و، خلکو دهغه نه پوښتنه وکړه چې اې ابوالحسنه! دنبي علیه السلام طبیعت څنګه دی؟ نوهغه وفرمایل: اوس دمخکي نه په ښه حالت کې دی، حضرت عباس رضی الله عنه دحضرت علي رضی الله عنه لاس ونیوه اووېې ویل: په الله قسم! ددریو ورځونه وروسته به په تا سودډنډې حکومت وي، ماته معلومیږي چې په دې ناروغۍ کې رسول الله ﷺ ډېر زر وفات کیدونکی دی، ځکه چې دبني

[1] وحاصل الامر ان علياً قتل يوم الجمعة وذلك لسبع عشرة خلت من رمضان..... عن ثلاث وستين سنة (البداية والنهاية ج:۷،ص: ۳۳۰،ج:۸،ص: ۱٤،طبع دارالفكر،بيروت)

عبدالمطلب د مخونو چې کوم حالت د مرګ په وخت کې وي هماغه حالت ماته د نبي علیه السلام هم ښکاري، راځه چې مونږ رسول الله ﷺ ته ورشو او د هغه نه پوښتنه وکړو چې د تاسو نه وروسته به خلیفه څوک وي؟ که مونږ ته یې خلافت راکړ، نو مونږ ته به معلومه شي او که بل چاته یې خلافت ورکړ، نو بیا به زمونږ متعلق هغه ته وصیت وکړي ، حضرت علي رضی الله عنه ورته وویل: په الله قسم! که چېرې د دې متعلق مونږ د نبي علیه السلام نه پوښتنه وکړه او هغه خلافت مونږ ته رانکړ. نو بیا به یې خلک مونږ ته کله هم رانکړي، په الله قسم! زه خو د دې متعلق له رسول الله ﷺ نه بالکل سوال نه کوم"، دا حدیث د صحیح بخاري په کتاب المغازي کې او په البدایه والنهایه کې د ابن عباس نه روایت شوی دی او امام احمد رحمه الله په خپل مسند کې روایت کړی دی.

## پوښتنې:

۱: حضرت علي رضی الله عنه ولې غلی ناست و؟

۲: ایا د دوی د واړو د مال او دولت د ومره حرص و چې بیا بیا یې د میراث غوښتنه کوله سره له دې چې حضرت ابوبکر رضی الله عنه او عمر رضی الله عنه دوی پوه کړي وو، چې د دې مال حیثیت د میراث نه دی دا تقسیمیږي نه؟

۳: دا شخړه نه یوازې د دې د واړو د مال او دولت حرص ثابتوي بلکې اخلاقي کمزوري هم ترې ثابتیږي؛ ځکه چې کنځل د شریفانو طریقه نه وي.

۴: "درې ورځې وروسته به په تاسو د ډنډې حکومت وي" د دې وضاحت وکړئ!

۵: حضرت عباس رضی الله عنه سره څنګه فکرو، چې که خلافت ورکړل شو، نو سمه ده او که نه شو نو وصیت به وکړي چې د دوی مفادات محفوظ شي ،د نبي کریم ﷺ د ناروغۍ او وفات غم که چېرې غالب وی نو دا فکر به چېرته و؟

۶: د حضرت علي رضی الله عنه له الفاظو نه خو دا اراده ښکاربدله چې که رسول الله ﷺ انکار هم وکړي خلافت ماته راکول پکار دي او دا هم چې ده ته د دې احتمال و، چې نبي علیه السلام به منع وفرمایي ځکه یې وویل چې زه پوښتنه نه کوم (د نبي علیه السلام د وفات نه وروسته به دا خلافت حاصلوم) د حضرت علي رضی الله عنه د الفاظو نه که چېرې دا مطلب نه ظاهربږي نو تاسو یې مطلب ولیکئ!

اُمید دی چې تاسو به ځواب زر را ولیږئ!

فقط والسلام: محمد ظهور الاسلام

## الجواب حامدا ومصلیا

په سوالونو باندې د غور کولو نه مخکې یو څو خبرې په د تمهید په طور عرض کول مناسب دي:

۱: د حق پرستو په نزد باندې د صحابه کرامو رضوان الله علیهم اجمعین نه د هیچا سپکاوی جائز نه دی، بلکې ټول صحابه کرام په عظمت او محبت سره یادول لازم دي، ځکه چې هم دا

اکابر د نبي علیه السلام او دامت په مینځ کې واسطه دي. امام اعظم رحمه الله په خپله رساله" فقه اکبر" کې فرمايي: ولانذكر الصحابة (وفي نسخة ولانذكر أحدا من أصحاب رسول الله ﷺ إلا بخير (شرح فقه اكبر: ملاعلي قاري صفحه ۸۵، مجتبائی ۱۳۴۸هـ)

ترجمه: "او موږ صحابه کرام رضي الله عنهم (او په یوه نسخه کې دي چې موږ د رسول الله ﷺ صحابه وو نه څوک) له خیرنه پرته نه یادوو.

امام طحاوي په عقيدة الطحاوية کې فرمايي: ونحب أصحاب رسول الله ﷺ ولانفرط في حب أحدمنهم, ولانتبرأ من أحد منهم ونبغض من يبغضهم ,وبغير الحق يذكرهم ولانذكرهم إلابالخير ,وحبهم دين وايمان واحسان, وبغضهم كفر ونفاق وطغيان. (عقيدة الطحاوي صفحه ۶۲ طبع اداره نشر واشاعت مدرسه نصرة العلوم گوجرانواله)

ترجمه: او موږ د رسول الله ﷺ د صحابه وو سره محبت کوو، د دوی نه د هیچا په محبت کې کمی زیاتی نه کوو او نه له چانه د بیزاري اظهار کوو او موږ د داسې سړي سره بُغض (کینه) ساتو څوک چې د دوی سره بُغض کوي، یا دوی په ناروا الفاظو سره یادوی. د دوی سره محبت ساتل دین، ایمان او احسان دی او دوی سره بُغض ساتل کُفر، نفاق او سرکشي ده.

امام ابوزرعه عبيدالله بن عبدالكريم الرازي رحمه الله (المتوفى ۲۶۴هـ) دا ارشاد له ډېرو اکابرینو نه نقل کړی دی:

إذ رأيت الرجل ينقص أحدا من أصحاب رسول الله ﷺ فاعلم أنه زنديق لأن الرسول ﷺ عندنا حق, والقرآن حق, وإنما ادى الينا هذا القرآن والسنن أصحاب رسول الله ﷺ وإنما يريدون أن يجرحوا شهودنا ليبطلو الكتاب والسنة والجرح بهم أولى وهم زنادقة. (مقدمة العواصم من القواصم صفحه ۳۴)

ترجمه: کله چې ته یو سړی ووینې چې د رسول الله ﷺ د صحابه وو نه د چا نقص (کمی) لټوي، نو پوه شه چې دا زندیق دی، ځکه چې رسول الله ﷺ زموږ په نزد حق دی ، قران کریم حق دی او قران کریم او د نبي علیه السلام ارشادات موږ ته صحابه وو رارسولي دي، دا خلک صحابه وو باندې جرح کوي او زموږ د دین ګواهان مجروح کول غواړي، دې له پاره چې کتاب او سنت باطل کړي سره له دې چې دا خلک پخپله د جرح مستحق دي ځکه چې دوی زندیقان دي.

داخو د عامو صحابه کرامو علیهم الرضوان په باره کې د حق پرستو عقیده ده او حضرت عباس او حضرت علي رضي الله عنه خو په خاصو صحابو کې دي، حضرت عباس رضي الله عنه ته به نبي علیه السلام

"عمّي وصِنو أبي" فرمايل[۱]، يعنې زماتره اوزمادپلارپه ځاى اودهغه به يې بې حده عزت كاو، حضرت عمر رضي الله عنه به دهغه په وسيله سره دباران سوال كاو[۲]، ددې نه پرته دحديثو په كتابونوكې دهغه ډېرزيات فضائل اومناقب راغلي دي.

اودحضرت علي رضي الله عنه فضائل اومناقب خودشمار نه بهردي اودده دنورو فضائلونه پرته هغه دحق پرستوپه نزدباندې په خلفاء راشدينو كې دى. قاضي ابوبكربن العربي رحمه الله په العواصم من القواصم كې چې دهغه حوالي تاسوپه خپل سوال كې ليكلي دي ليكي:

**وقتل عثمان فلم يبق على الأرض أحق بهامن علىّ فجاءته على قدر فى وقتها ومحلها, وبين الله على يديه من الأحكام والعلوم ماشاءالله أن يبين, وقدقال عمر: لولاعلى لهلك عمر, وظهر من فقهه وعلمه فى قتال أهل القبلة من إستدعائهم ومناظرتهم, وترك مبادرتهم والتقدم اليهم قبل نصب الحرب معهم, وندائه: لانبدأ بالحرب ولايتبع مول, ولايجهز على جريح, ولاتهاج امرأة, ولانغنم لهم مالا, وامره بقبول شهادتهم والصلوة خلفهم, حتى قال اهل العلم: لولا ماجرى ماعرفنا قتال أهل البغي. (صفحه ۱۹۲)**

ترجمه: او حضرت عثمان رضي الله عنه شهيد شو نودځمكې په مخ باندې له حضرت علي رضي الله عنه نه زيات بل څوك دخلافت حقدارنه و، هغه ته دالله پاك دتقديرمطابق خلافت په خپل وخت اوخپل محل كې وركړل شواودهغه په لاسونوالله تعالى هغه احكام اوعلوم ظاهركړل كوم چې الله ته منظور وواو حضرت عمر رضي الله عنه فرمايلي دي: "كه چېرې على رضي الله عنه نه واى نوعمر رضي الله عنه به هلاك شوى وُ" او دده په علم او پوهې سره دقبلې والو سره قتال كول ښكاره شو. مثلاً: دوى ته دعوت وركول، دوى سره بحث اومناظره كول، په جنګ كې وړاندې والى نه كول، له دوى سره له جنګ كولونه مخكې دا اعلان كول چې موږ به په جنګ كې وړاندې والى نه كوو، د تښتيدونكوتعاقب به نه كيږي، زخمي به نه قتليږي، په ميرمنو باندې به څوك غرض نه لري، موږ به دهغوى مال غنيمت نه ګڼو، دقبلې والوګواهي به قبوله وي، ددوى په اقتداء كې مونځ روا دى او داسې نور.... تردې چې دعالمانو وينا ده: كه چېرې دحضرت علي رضي الله عنه دقبلې والو سره دجنګ دا واقعات نه وى وړاندې شوې نوموږ ته به دباغيانو سره دقتال هيڅ صورت نه وى معلوم شوى.

---

۱] عن أبي أسيد الساعدي قال قال رسول الله صلى الله عليه وسلم للعباس بن عبدالمطلب ..... ثم قال يا رب هذا عمى وصنو أبي.....(مجمع الزوائد ج:۹،ص:۳۲۲،كتاب المناقب)

۲] عن انس ان عمر بن الخطاب رضى الله عنهما كان اذا قحطوا استسقى بالعباس بن عبدالمطلب فقال: اللهم انا كنا نتوسل اليک بنبينا فتسقينا،وانا نتوسل اليک بعم نبينا فاسقنا فيسقوا،رواه البخارى(مشكوة ج:۱، ص:۱۳۲، باب الاستسقاء)

ځنګه چې د يو پيغمبر تکذيب د ټولو پيغمبرانو تکذيب دى ځکه چې دا په اصل کې د الله
د وحي تکذيب دى، همدارنګه د يو خليفه راشد نقص لټول د ټولو خلفاء راشدينو نقص لټول
دي،ځکه چې دا په اصل کې د نبوت د خلافت نقص لټول دي. همدارنګه د صحابه وو د ډلې نه
د يو صحابي نقص لټول او سپکاوى د ټولو صحابه وو نقص لټول دي،ځکه چې دا په اصل کې
د صحبت نبوت نقص لټول دي.له دې وجې نه نبي عليه السلام فرمايلي دي:

**الله الله في أصحابي لاتتخذوهم غرضًا من بعدي فمن أحبهم فبحبي أحبهم ومن أبغضهم فببغضي أبغضهم** (ترمذى جلد۲صفحه ۲۲۶)

ترجمه:زما د صحابو په باره کې د الله تعالى نه وويرېږئ،د الله تعالى نه وويرېږئ.د وى له ما نه
وروسته د ملامتيا نښه مه جوړوئ! چاچې د وى سره محبت وکړ نو زما د محبت له وجې يې
د وى سره محبت وکړ او چاچې د وى سره بُغض وکړ نو زما د بغض په وجه يې د وى سره بُغض وکړ.
خلاصه دا چې د يو مسلمان له پاره د صحابه کرامو رضوان الله عليهم اجمعين سره محبت
ساتل او د وى په خير سره يادول لازم دي.خصوصًا خلفاء راشدين رضي الله عنهم چې هغوى ته د نبي
کريم صلى الله عليه وسلم نه وروسته د نبوت د خلافت منصب حاصل شو، همدارنګه هغه صحابه کرام چې
د هغوى په دربار نبوت کې د محبوبيت او د محبت درجه ثابته ده،هغوى سره محبت ساتل
د نبي عليه السلام د محبت نښه ده ځکه امام طحاوي رحمه الله دې ته دين ،ايمان او احسان ويلي دي او
د د وى نقص لټول او سپکاوى يې کفر،نفاق او سرکشي ګرځولى دى.

۲: د يوې واقعې ګڼ اسباب او وجې کيداى شي او د يو قول ډېر توجيهات کيداى شي له دې
وجې نه موږ ته د يوې واقعې په خبرو اترو يا د چا د قول توجيه کولو په وخت کې د هغه صاحب
د حيثيت او مرتبې لحاظ ساتل هم ضروري دي،مثلاً :يو مسلمان دا فقره ووايي چې ما ته
د فلاني ډاکټر نه شفاء حاصله شوه نو د ويونکي د عقيدې په لحاظ به دې ته د کفر کلمه نشي
ويلى،خو که دا فقره يو دهري ووايي نو دا به د کفر کلمه وي،يا مثلاً د يو پيغمبر توهين او تذليل
يا د هغه نه ګيره نيول کُفر دى،خو چې کله موږ هم دا واقعه د حضرت موسى عليه السلام په باره کې
لولو، نو د هغه د شان او د حيثيت لحاظ چاته د دې وسوسه هم نه راځي.[۱]

۳: چې کوم شى سړى خپل حق ګڼي د هغه مطالبه کول نه د کمال منافي دى او نه دا په حرص
باندې حمل کول صحيح دي،له پيغمبرانو نه وروسته د صحابه کرامو رضي الله عنهم نه زيات به څوک
کامل او مخلص وي خو په حقوقو کې ځينې وختونو کې د هغوى په مينځ کې به هم شخړه

---

۱] وَلَمَّا رَجَعَ مُوسَىٰ إِلَىٰ قَوْمِهِ غَضْبَانَ أَسِفًا قَالَ بِئْسَمَا خَلَفْتُمُونِي مِن بَعْدِي أَعَجِلْتُمْ أَمْرَ رَبِّكُمْ وَأَلْقَى الْأَلْوَاحَ وَأَخَذَ بِرَأْسِ أَخِيهِ يَجُرُّهُ إِلَيْهِ (الاعراف ۱۵۰)

راتله،نبي كريم ﷺ به دهغوى په مينځ كې فيصلې كولې خو په دې خبره باندې به يې انكار نه كاو چې دا جګړه ولې راغله؟ او نه دحق طلب كولو ته حرص ويل كيږي.

۴:داجتهادي رايې له وجې نه په پوهه كې خطاكيدل دنيولو قابل نه وياونه دادكمال او اخلاص منافي دي،حضرات انبياء كرام عليهم السلام په اجماع داهل حق سره معصوم دي.خو د اجتهادي خطاصادريدل له دوى نه هم ممكن دي،خو په دوى باندې دوحې الهي اوعصمت پيره مقرره ده له دې وجې هغوى په اجتهادي خطاء باندې قائم پاتې كيداى نشي.بلكې الهي وحې فوراً خبر دارى وركوي.انبياءكرام عليهم السلام نه پرته نوركاملين معصوم نه دي،دهغوى نه اجتهادي خطاء كيداى شي اودهغوى په دې باندې قائم پاتې كيدل هم ممكن دي،خو دحق واضحه كيدو نه وروسته خپله اجتهادي خطاء دوباره نه كوي.بلكې دهغه نه رجوع كوي.[1]

۵:درايې اختلاف يوفطري امردى اودكاملينواومخلصينو په مينځ كې درايې داختلاف له وجې نه معمولي خفګان پيداكيدل څه دعقل نه ليرې خبره نه ده،بلكې داخوهره ورځ په مشاهده كې راځي،دبدر دقيديانودقتل يادفديې په باره كې دحضرت ابوبكر صديق اود حضرت عمر رضي الله عنه په مينځ كې چې كوم اختلاف و هغه چاته معلوم نه دى،خو يواځې ددې نظري اختلاف په وجه ديو نوم هم داخلاص اوكمال د دفترنه ليرې نه شو.سره له دې چې الهي وحې دحضرت عمر رضي الله عنه تائيد وكړاودحضرت ابوبكرصديق رضي الله عنه رايې باندې چې هغه ته دنبي كريم ﷺ تائيد حاصل و،يورحيمانه اندازكې ملامتياهم وويله[2]خو څوک دا ويلى شي چې له دې وجې دحضرت ابوبكر رضي الله عنه په بزرګې ، كمال اولوى صداقت كې څه معمولي فرق راغلى دى؟همدارنګه دبنوتميم وفدچې كله په دربارنبوي كې حاضرشو. نوپه دې مسئله باندې چې ددوى رئيس څوک جوړ شي، دحضراتو شيخينو رضي الله عنهما په مينځ كې درايې اختلاف راغى چې دهغه په و جه د دواړو په مينځ كې خبرې هم ترخې شوې اودسورت حجرات اولنې اياتونه په دې باره كې نازل شو[3]،خوله دې سره ددې دواړو بزرګانوپه قرب اومرتبه كې اودالله اودرسول ﷺ په نزدمحبوبيت كې هيڅ فرق هم رانغى.

---

[1] ان المجتهد فى العقليات والشرعيات الاصلية والفرعية قد يخطئ وقد يصيب....والمجتهد غيرمكلف باصابته .....وهذا مبنى على جواز اجتهاد الانبياء وتجويز وقوعهم فى الخطاء لكن بشرط ان ينتبهوا (شرح فقه اكبر ص:۱۶۲، ۱۶۳طبع مجتبائي بمبئ)

[2] مَا كَانَ لِنَبِيٍّ أَنْ يَكُونَ لَهُ أَسْرَى حَتَّى يُثْخِنَ فِي الْأَرْضِ تُرِيدُونَ عَرَضَ الدُّنْيَا وَاللَّهُ يُرِيدُ الْآخِرَةَ وَاللَّهُ عَزِيزٌ حَكِيمٌ (الانفال:۶۷،تفسيرابن كثيرج:۳،ص:۳۳۴)

[3] عن ابى مليكة أن عبد الله بن الزبير أخبرهم : أنه قدم ركب من بني تميم على النبي صلى الله عليه و سلم فقال أبو بكر أمر القعقاع بن معبد وقال عمر بل أمر الأقرع بن حابس فقال أبو بكر ما أردت إلى أو إلا خلافي فقال عمر ما أردت خلافك فتماريا حتى ارتفعت أصواهما فترل في ذلك { يا أيها الذين آمنوا لا تقدموا بين يدي الله ورسوله } . حتى انقضت(صحيح بخارى ج:۲،ص:۶۲۶،باب وفدبنى تميم)

غرض داچې ددې په لسګونو مثالونه شته چې په انتظامي امورو کې د رايې د اختلاف شخړې اوترخې خبرې راتلی شي خو هرسړی په خپل ځای مخلص وي ځکه دا اختلاف دهغه په فضيلت اوکمال کې هيڅ خلل نه شي راوستلی.

۲. حکومت او امارت يوه لويه اودرنه ذمه واري ده اودا ذمه واري پوره کول ډېرمشکل اوسخت کار دی، نوله دې وجې نه چې کوم سړی دخپل ځان په باره کې پوره اطمينان نه لري چې هغه به دالويه ذمه واري پوره کړي اوکه نه؟ دهغه له پاره دحکومت او امارت غوښتنه کول شرعًا او عرفًا ښه نه دي. دنبي کريم ﷺ ارشاد مبارك دی:

**إنكم ستحرصون على الإمارة وستكون ندامة يوم القيمة فنعم المرضعة وبئست الفاطمة. (صحيح بخاري جلد۲ صفحه ۱۰۵۸ كتاب الاحكام باب مايكره من الحرص على الامارة)**

ترجمه: "بيشکه تاسوبه دامارت حرص وکړئ اودابه ډېرزر دقيامت په ورځ پښېمانتيا وي. داچې شېدې ورکوي نوښه يې ورکوي اوچې دشېدو نه يې پرېکوي نو په بده طريقه يې پرېکوي". خو کوم سړی چې ددې حقونو د ادا کولو اهليت او صلاحيت لري، نودهغه له پاره ددې مطالبه کول شرعًا او عقلاً جائز دي. که چېرې دا ديو خير له پاره ذريعه وګرځي نو دا بهتره ده.

دسيدنا يوسف عليه السلام وينا په قران کې نقل شوې ده چې هغه دمصر بادشاه ته فرمايلي و:

﴿ ٱجۡعَلۡنِي عَلَىٰ خَزَآئِنِ ٱلۡأَرۡضِۖ إِنِّي حَفِيظٌ عَلِيمٞ ﴾ (يوسف: ۵۵)

ترجمه: دملك په خزانوباندې مامقررکړه زه به ددې حفاظت کوماو زه ښه پوه يم".

اوپه قران کريم کې دحضرت سليمان عليه السلام دا دعاهم نقل شوې ده:

﴿ رَبِّ ٱغۡفِرۡ لِي وَهَبۡ لِي مُلۡكٗا لَّا يَنۢبَغِي لِأَحَدٖ مِّنۢ بَعۡدِيٓۖ إِنَّكَ أَنتَ ٱلۡوَهَّابُ ﴾ (سوره ص: ۳۵)

ترجمه: اې زماربه! زما (مخکې) قصورمعاف کړه او (اينده له پاره) ماته داسې بادشاهی راکړه چې زمانه پرته (زما په زمانه کې) چاته نه وي ورکړل شوې. (بيان القران)

دنبي کريم ﷺ خلافت اونيابت چې هغه ته په اسلامي اصطلاح کې خلافت راشده وايي، د يو عظيم الشان فضيلت او دالله تعالی دلاندنی وعدې مصداق دی:

﴿ وَعَدَ ٱللَّهُ ٱلَّذِينَ ءَامَنُواْ مِنكُمۡ وَعَمِلُواْ ٱلصَّٰلِحَٰتِ لَيَسۡتَخۡلِفَنَّهُمۡ فِي ٱلۡأَرۡضِ كَمَا ٱسۡتَخۡلَفَ ٱلَّذِينَ مِن قَبۡلِهِمۡ وَلَيُمَكِّنَنَّ لَهُمۡ دِينَهُمُ ٱلَّذِي ٱرۡتَضَىٰ لَهُمۡ وَلَيُبَدِّلَنَّهُم مِّنۢ بَعۡدِ خَوۡفِهِمۡ أَمۡنٗاۚ يَعۡبُدُونَنِي لَا يُشۡرِكُونَ بِي شَيۡـٔٗاۚ ﴾ (النور: ۵۵)

ترجمه: (اې د امت ټولیه) په تاسوکې چې کوم خلك ايمان راوړي اونيك عمل وکړي هغوی سره دالله تعالی وعده ده چې هغوی ته به (ددې اتباع په برکت سره) په ځمکه کې حکومت

ورکړي، څنګه یې چې ددوی نه مخکې (دهدایت والا) خلکوته حکومت ورکړی و او کوم دین چې الله تعالی دهغوی له پاره خوښ کړی (اسلام) هغه ته به د دوی (داخرت دنفع) له پاره قوت ورکړي او ددوی د دې ویرې نه وروسته به هغه په امن بدله کړي، په دې شرط چې زما عبادت کوي او ماسره هیڅ قسمه شرك ونکړي. (بیان القران)

کوم سړی چې ددې خلافت اهل وي دهغه له پاره ددې دحاصلولو خواهش بدنه دی.بلکې دیوې اعلی درجې دفضیلت او کمال حاصلولو فطري خواهش دی، په حدیث کې دي چې کله نبي کریم ﷺ په غزوه خیبرکې دا اعلان وکړ چې "زه به دا جنډه (بیرغ) سباته یوداسې سړي ته ورکوم چې هغه دالله او د رسول ﷺ سره محبت ساتي اوالله او د هغه رسول ﷺ دهغه سره محبت ساتي". نود صحابه کرامو ﷺ نه دهرسړي ددې فضیلت د حاصلولو خواهش و. حضرت عمر ﷺ فرمايي:

**ماأحببت الإمارة إلايومئذ قال: فتساورت لهارجاء أن أدعى لها,قال: فدعا رسول الله ﷺ على بن ابى طالب فأعطاه اياها. الحديث (صحيح مسلم جلد۲صفحه ۲۷۹)**

ترجمه:مادې ورځې نه پرته دامارت غوښتنه کله هم نه ده کړې ، مابه خپل ځان ښکاره کاو،په دې اُمید چې زه راوبلل شم. نبي کریم ﷺ حضرت علی بن ابی طلب ﷺ راوغوښت اوهغه جنډه (بیرغ) یې هغه ته ورکړه.

ښکاره خبره ده چې په دې موقعه باندې دحضرت عمر ﷺ او د نورو صحابه وو دا خواهش کول چې امارت دې ماته راکړل شي، ددې بشارت او فضیلت حاصلولو له پاره و ،شیخ محي الدین نووي ﷫ ددې حدیث لاندې لیکي:

**إنماكانت محبته لها لمادلت عليه الإمارة من محبته لله ولرسوله ﷺ ومحبتها له والفتح على يديه.(حاشيه مسلم)**

ترجمه:دحضرت عمر ﷺ په دغه ورځ دامارت محبت او خواهش کول له دې وجې و چې دادالله اودهغه رسول ﷺ دمحبت او محبوب کیدو دلیل واوددې سړي په لاس باندې فتح کیدونکې وه.

غرض دا چې خلافت یولوی شرف ، امتیاز او دفضائلو او بهتر والي مجموعه ده،کوم حضرات چې ددې اهل وو او هغوی ته ددې پوره اطمینان و چې موږبه ددې حقوق انشاء الله په پوره توګه اداکړو،دهغوی په زړه کې که چېرې ددې شرف او فضیلت حاصلولو خواهش وي نو دا په خواهش اقتدار باندې تعبیر کول جائز نه دي،بلکې دې ته دنبوت په کار کې شرکت او دجارحه نبوي ﷺ دجوړیدلو حرص ویل کیږي.

مسند الهند شاه ولي الله محدث دهلوي رحمة الله فرمايي.
ترجمه:دراشده خلفاوو دور،د نبوت ددورباقي ورخې وې،ګويا دنبوت په دور کې نبي کريم ﷺ ښکاره په ژبه مبارکه حکم کولواو دخلافت په دور کې خاموش ناست دی او دسر او لاس په اشاره سره به يې پوهولو.
ددې مقدماتو په ذهن کې کېنولو نه وروسته اوس په خپلو سوالو په ځوابونوښه غور وکړئ:

## (۱) د حضرت علي رضي الله عنه په کورکې کېناستل

قاضي ابوبکربن العربی رحمة الله لومړی قاصمه (ملاماتونکې حادثه) دنبي کريم ﷺ وفات ښودلی دی اوپه دې سلسله کې يې ليکلي دي چې دې هوش تښتونکې واقعې له وجې نه حضرت علي رضي الله عنه په کورکې غلی کېناست،حضرت عثمان رضي الله عنه باندې بيهوشي راغلې وه اوحضرت عمر رضي الله عنه باندې دبې هوشی پشان حالت راغی او داسې نور.....
له دې پوره عبارت نه داسې معلوميږي چې ددې قيامت پشان واقعې چې کوم اثرات په صحابه وو رضي الله عنهم باندې وو،قاضي ابوبکر ابن العربی رحمة الله هغه اثرات ذکرکوي حضرت علي رضي الله عنه باندې ددې واقعې دااثرشوی و چې هغه په کورکې يواځې ناست و.
تاسوبه ډېرخلک ليدلي وي چې ديومحبوب ترين شخصيت د وفات نه وروسته دنيا دهغه له پاره توره تياره شياودهغه طبيعت مړاوې اوبند شي.
اوپه زړه باندې يې يوه داسې غوټه کېني چې په هيڅ قسمه نشي پرانستل کېدای. دهغه طبيعت چاسره په ملاقات ياخبرو کولو باندې بالکل نه سميږي، هغه دخه قسمه ژړا انګولايابې صبري اظهارنه کوي خو طبيعت يې داسې مړشي چې ترډيرې مودې پورې هغه په خپل معمول نه راځي،دنبئ کريم ﷺ نه زيات بل محبوب دځمکې په مخ نه واو دصحابه کرامو رضوان الله عليهم اجمعين نه زيات څوک عاشقان داسمان سترګونه دي ليدلي،موږ خو ددغو اکابرو په صبراو تحمل باندې حيران يو،چې هغوی ددې عشق او محبت سره سره دالويه حادثه څنګه برداشت کړه.... خو ته ددې عاشقانوپه باره کې پوښتنه کوې چې هغه په کورکې ولې غلی ناست و؟
ماخپل اکابرليدلي دي چې کله به په حديثو کې د نبي کريم ﷺ دوفات دلويې حادثې باب شروع کيده،نودسترګونه به يې د اوښکوقطار روان شواوزبه يې ستوني کې بندشواو بعضې وخت به د ژړا دسلګوسره د ژړا اواز بندشو، هرکله چې د زړونوپه خاوندانو څوارلس سوه کاله وروسته هم ددې حادثې دا اثردی نوکوموعاشقانوچې په خپلوسترګوداهرڅه ليدلي وو دهغوی به څه حال و؟

رفتم و از رفتن من عالمآ ويران شد
من مګرشمعم چون رفتم بزم برهم ساختم

د جنت د ښځو سرداره د نبي علیه السلام د زړه ټکړه حضرت فاطمة الزهراء رضي الله عنها د نبي کريم صلى الله عليه وسلم خاص خادم حضرت انس رضي الله عنه ته فرمايل: "اې انسه! تاسو څنګه وزغمله چې تاسو به نبي کريم صلى الله عليه وسلم باندې خاورې واچوې"[1]. (صحيح بخاري ج۲ص ۶۴۱)

او د مسند احمد په روايت کې دي چې تاسو څنګه وزغمله چې نبي علیه السلام مو دفن کړاو په خپله ترې ببېرته راغلئ[2]. (حياة الصحابه جلد ۲ صفحه ۳۲۸)

حضرت ابوبکر رضي الله عنه ته چې کله د نبي کريم صلى الله عليه وسلم د وفات خبر ورسېد نو وې فرمايل: اه! زما ملا ماته شوه. صحابه رضي الله عنهم فرمايي چې حضرت ابوبکر رضي الله عنه جومات ته راورسيده خو د چا دا اميد نه و چې هغه به تر جومات پورې راشي[3]. (حياة الصحابه جلد ۲ صفحه ۳۲۳)

که چېرې موږ د درد ددې خوند او د محبت ددې غم نه نا اشنا يو. نو ايا موږ دا هم نشو کولای چې په کومو حضراتو باندې دا قيامت تېر شو نو موږ هغوی معذور وګڼو؟

او بيا د حضرت علي رضي الله عنه په کور کې د کېناستو دا مطلب نه دی چې هغه د جمعې او د جماعت لمونځ او ديني او معاشرتي حقوق او فرائض هم پرېښې و. شيخ محب الدين الخطيب رحمه الله په حاشيه العواصم کې ليکي:

**وأضاف الحافظ ابن كثير في البداية والنهاية(۵:۲۴۹) ان عليًا لم ينقطع عن صلوة من الصلوت خلف الصديق وخرج معه إلى ذى القصة لما أخرج الصديق شاهرا سيفه يريد قتال اهل الرّدة. (صفحه ۳۸)**

ترجمه: او حافظ ابن كثير رحمه الله په البدايه والنهايه (۵.۲۴۹) کې په دې باندې دومره اضافه کړې دي چې حضرت علي رضي الله عنه د صديق اکبر رضي الله عنه په اقتداء کې د لمونځ کولو سلسله نه وه پرېښې بل دا چې کله حضرت صديق رضي الله عنه د مرتدينو سره د قتال کولو له پاره توره را ويستله او ذى القصه ته ولاړ، نو حضرت علي رضي الله عنه هم د هغه سره وتلی و.

هر کله چې د هغه نه په ديني او معاشرتي فرائضو کې نقصان نه دی شوی او نه د صديق رضي الله عنه په نصرت کې د هغه نه څه معمولي مخالفت راغلی دی. نو بيا په دې بناء باندې چې د ډېر سخت غم له وجې نه په هغه باندې د يو اځيتوب ذوق غالب شوی و، نو تاسو يې څنګه د الزام ځای ګرځوئ؟

---

۱] عن انس رضى الله عنه ......فلما دفن قالت فاطمة: يا انس! اطابت انفسكم ان تحثوا على رسول الله صلى الله عليه وسلم التراب؟

۲] وعند احمد: قالت فاطمة رضى الله عنها: يا انس! اطابت انفسكم ان دفنتم رسول الله صلى الله عليه وسلم فى التراب ورجعتم.

۳] سمعتم يقولون: مات محمدا! فاشتد ابوبكر وهو يقول: واى انقطاع ظهرى! فلما بلغ المسجد حتى ظنوا انه لم يبلغ.

## (۲) د میراث غوښتنه

څوپورې چې بیابیا دمیراث غوښتلوتعلق دی دا یواځې غلط فهمي ده یوځل دحضرت ابوبکرصدیق رضي الله عنه په دورکې حضرت عباس رضي الله عنه اوحضرت فاطمه رضي الله عنها میراث غوښتی و اوبیشکه دا دهغوی اجتهادي رایه وه چې په دې کې دوی معذور و.دوی هغه خپل حق ګڼلو او غوښتنه یې کوله، په دغه وخت کې دنبي علیه السلام دداې قول:

لانورث، ماترکناه صدقة[1] (زمونږ مال په میراث کې نه وړل کیږي څه چې مونږ پریږدو هغه صدقه وي).

یاخودوی ته علم نه و یاممکنه ده چې دنبي علیه السلام د وفات دحادثې له وجې نه دهغوی نه هیر شوي وي، څنګه چې په دې وخت باندې دحضرت عمر رضي الله عنه نه دا ایت "وما محمد الا رسول" هیرشوی و او حضرت ابوبکرصدیق رضي الله عنه چې کله دا ایت (دنورو ایاتونو سره) په منبرباندې ولوست، نوهغه ته داسې محسوسه شوه چې دا ایت اوس نازل شو.[2]

غرض دا دی چې ددې اکابرو دمیراث غوښتنه نه دمال د حرص په وجه وه اونه داثابته ده چې دحضرت ابوبکرصدیق رضي الله عنه نه یې ددې ارشادی نبوي صلی الله علیه وسلم له اوریدو نه وروسته دوباره غوښتنه کړې وي، یاهغوی په دې حدیث کې ابوبکر رضي الله عنه سره څه بحث کړی وي.قاضي ابوبکر ابن العربي رحمه الله لیکي:

**وقال لفاطمة وعليّ والعباس أن رسول الله صلی الله علیه وسلم قال: لانورث ماتركناه صدقة فذكر الصحابة ذالك.(العواصم صفحه ۴۷)**

حضرت صدیق اکبر رضي الله عنه حضرت فاطمه .علي اوعباس رضي الله عنهما ته وفرمایل : رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمایلي دي چې"زمونږ وراثت نه جاري کیږي،مونږ چې څه پریږدو هغه صدقه وي"بیانورو صحابو هم داحدیث ذکرکړ.

ددې په حاشیه کې شیخ محب الدین الخطیب رحمه الله لیکي:

**قال شیخ الإسلام إبن تیمیة في منهاج السنة: قول النبي صلی الله علیه وسلم لانورث ماتركناه صدقة" رواه عنه**

---

[1] عن ابی بکر رضی الله عنه قال:قال رسول الله صلی الله علیه وسلم :لا نورث، ماترکناه صدقة متفق علیه(مشکوة ص: ۵۵۰)

[2] وما محمد الا رسول......حتی فرغ من الآیة ثم قال: فمن کان یعبدالله فان الله حی لا یموت،ومن کان یعبد محمدا صلی الله علیه وسلم فان محمداً صلی الله علیه وسلم قد مات فقال عمر:او انها فی کتاب الله؟ ما شعرت انها فی کتاب الله(البدایة والنهایة ج:۵،ص:۲۴۲) فقال عمر: هذه الآیة فی القرآن؟ والله! ما علمت ان هذه الآیة انزلت قبل الیوم (ایضاً ج:۵،ص:۲۴۳ طبع دارالفکر،بیروت).

ابوبکر, وعمر, وعثمان, وعلي, وطلحة, والزبير وسعد, وعبدالرحمن ابن عوف, والعباس بن عبدالمطلب, و ازواج النبي, وابوهريرة والرواية عن هولاء ثابتة في الصحاح والمسانيد.

(صفحه۴۸)

ترجمه: شیخ الاسلام ابن تیمیہ رحمۃ اللہ علیہ په منهاج السنه (جلد ۲صفحه۱۵۸) کې لیکي چې د رسول الله ﷺ دا ارشاد چې" زموږ میراث نه جاري کیږي موږ چې څه پریږدو هغه صدقه وي" د نبي ﷺ نه دې لاندینو حضراتو روایت کړی دی: حضرات ابوبکر، عمر، عثمان، علي، طلحه، زبیر، سعد، عبدالرحمن بن عوف، عباس بن عبدالمطلب، ازواج مطهرات او ابوهریره او ددې حضراتو حدیثونه په صحاح او مسانیدو کې ثابت دي. المسانید. (صفحه۴۸)

له دې نه واضحه شوه چې دا حدیث "لا نورث ماترکناه صدقة" چې پخپله حضرت علي او حضرت عباس رضي الله عنهما هم ددې روایت کوي، یا خو دوی ته له دې نه مخکې ددې حدیث علم نه و، یا به ترې په څه وجه باندې هیرشوی و او ددې احتمال هم دی چې ددې حدیث په مطلب کې ورته څه اشتباه شوي وي او دوی هغه یوائې دمنقولي مال په باره کې ګڼلی وي، خو په هرحال د حضرت ابوبکر رضي الله عنه دخبرولو نه وروسته هغوی په دې حدیث باندې نه څه جرح وکړه اونه یې د حضرت ابوبکر رضي الله عنه سره څه بحث وکړ، بلکې خپل موقف یې پرېښوده او دا ددغه مومناتو شان دی چې په هغوی کې دنفسانیت هیڅ ګډون نه و، غرض دا چې "ببابیا د میراث غوښتلو" چې کوم نسبت دې اکابرو طرف ته په سوال کې شوی دی، دا صحیح نه دی، یوځل خو هغوی مطالبه کړې وه، چې په هغه کې دوی معذور وو. خو د دلیل له ښکاره کیدونه وروسته هغوی دحق په مخکې سرښکته کړی وو، خو هغوی د حضرت عمر رضي الله عنه په دخلافت په پیل کې دا غوښتنه کړې وه چې د نبي علیه السلام دوقف شویو شیانو انتظام دې موږ ته وسپارل شي، د حضرت عمر رضي الله عنه خو اول په دې کې څه شك پیدا شو. خو وروسته دهغه رایه هم دا شوه اودا اوقاف یې هغوی ته وسپارل.

وروسته له دې دا وقافو په انتظامي امورو کې د دوی په مینځ کې شخړه هم راغله، نو حضرت عباس رضي الله عنه د حضرت علي رضي الله عنه نه شکایت وکړ، (چې دهغه ذکر په دریم سوال کې شوی دی) او حضرت عمر رضي الله عنه ته یې درخواست وکړ چې دا اوقاف دې دواړو ته بېل بېل وسپارل شي، حضرت عمر رضي الله عنه دا درخواست ونه مانه. په صحیح بخاري کې د مالك بن اوس بن حدثان رضي الله عنه اوږد حدیث خوځایه ذکر شوی دی. "باب فرض الخمس" کې دهغه د روایت متعلقه الفاظ دا دي:

**ثم جئتماني تكلماني وكلمتكما واحدة وامركما واحد جئتني ياعباس تسالني نصيبك من ابن اخيك وجاءني هذا يريد عليا يريد نصيب امرأته من ابيها فقلت لكما أن رسول الله ﷺ قال:" لانورث**

ماتركناه صدقة" فلما بدالي أن أدفعه إليكماقلت إن شئتما دفعتهاإليكما على أن عليكماعهدالله وميثاقه لتعملان فيها بماعمل فيها رسول الله ﷺ وبماعمل فيها ابوبكروبماعملت فيهامندوليتها فقلتما إدفعها الينا. فبذالك دفعتهاالیکما فأنشدكم بالله هل دفعتها اليهما بذالك؟ قال الرهط: نعم ثم أقبل على عليّ وعباس فقال: أنشدكما بالله هل دفعتهاإليكما بذالك؟ قال: نعم! قال: فتلتمسان مني قضاء غيرذالك؟ فوالله الذى بإذنه تقوم السماء والارض لاأقضي فيهاغيرذالك فإن عجزتماعنهافادفعاهاالىّ.فإنّي أكفيكماها.(ص نمبر١٤٤په تصحيح کې وګورئ) (بخاري باب فرض الخمس جلداصفحه٤٣٦)

ترجمه:حضرت عمر رضي الله عنه وفرمایل: بیاتاسو دواړه ماته راغلی او تاسو ماسره خبرې کولې اوپه دې حال کې چې ستاسوخبره یوه وه او ستاسومعامله یوه وه.اې عباسه! ته ماته راغلې تازمانه دخپل وراره(دنبي عليه السلام) دمال نه برخه غوښتله او داصاحب.یعنې على رضي الله عنه دخپلې بې بې برخه دهغې دپلار دمال نه غوښتله، ماتاسو ته وویل چې دنبي كريم ﷺ ارشاد دی چې" زموږمیراث نه ویشل کیږي موږچې څه پرېږدو هغه صدقه وي" بیازمادا رایه شوه چې دا اوقاف دې تاسوته وسپارل شي، نوماتاسوته وویل چې که چېرې تاسو غواړئ، نوزه به داتاسوته وسپارم.مګرپه تاسوباندې به دالله تعالی وعده وي.چې تاسوبه په دې کې هماغه معامله کوئ کومه به چې رسول الله ﷺ او ابوبکر رضي الله عنه کوله اوکومه چې ماوکړله. له کومې ورځې چې حکومت ماته سپارل شوی دی، تاسوویل چې سمه ده.دا تاسو موږ ته وسپارئ ،نوپه دې شرط باندې مادا اوقاف تاسوته حواله کړل.بیاحاضرینوته مخاطب شو او ویې فرمایل: چې زه تاسوته په الله قسم درکوم اوپوښتنه کوم چې ایاماپه دې شرط باندې دوی ته سپارلي وو که نه؟ ټولو وویل :هو ! بیاحضرت علي او حضرت عباس رضي الله عنه ته یې وفرمایل : زه تاسوته په الله قسم درکوم اوپوښتنه کوم ایاما دا اوقاف په دې شرط باندې تاسوته سپارلي وو که نه؟ دواړو وویل: هو! په همدې شرط باندې دې راکړي وو ، هغه و فرمایل: اوس تاسو ما باندې بله فیصله کول غواړئ ؟(چې دواړو ته دې بېله بېله برخه ورکړل شي) زمادې قسم وي په هغه ذات باندې چې دهغه په حکم سره دا ځمکه اواسمان قائم دي.زه له دې پرته ستاسو په مینځ کې هیڅ فیصله نه کوم، که چېرې تاسوددې اوقافو دذمه واري نه عاجزه شوئ،نوماته یې وسپارئ زه به په دې معامله کې ستاسوکفایت وکړم.

ددې روایت دپیل له الفاظونه داوهم پیدا کیږي چې دې دواړو اکابرو دحضرت عمر رضي الله عنه نه بیادمیراث غوښتنه کړې وه. خودسوال اوځواب او ددې روایت دمختلفو برخو دجمع کولونه وروسته مطلب واضحه کیږي چې دا ځل د دوی غوښتنه دمیراث نه وه. بلکې د دوی په نزدهم دا حقیقت منل شوی و چې ددې ځمکو حیثیت دوقف دی او په وقف کې میراث نه

جاري کيږي . بلکې دا ځل هغوی غوښتل چې ددې انتظام دې موږ ته وسپارل شي،حضرت عمر رضي الله عنه ته اول شك پيداشوچې داسې نه چې دا انتظام اخستل هم دوی ميراث وګڼي،خو د غور اوفکرنه وروسته يې ددوی وړانديز قبول کړاودا اوقاف يې دوی دواړوحضراتوته وسپارل.

بياځنګه چې په انتظامي اموروکې دوقف په منتظمينو کې درايې اختلاف وي همداسې د دوی په مينځ کې هم وشو. حضرت علي رضي الله عنه په علم اوپوهه کې لوړمقام درلود ځکه هغه خپلې رايې ته ترجيح ورکوله.ګوياعملي طورباندې په اوقافوکې زيات تصرف يواځې دحضرت علي رضي الله عنه و او دحضرت عباس رضي الله عنه تصرفات مغلوب وو.له دې وجې نه هغه ته شکايت پيداشو او هغه دويم ځل حضرت عمر رضي الله عنه نه مطالبه وکړه چې دا اوقاف دې تقسيم کړل شي او هريوته دې دخپل تصرف برخه بېله شي،خو حضرت عمر رضي الله عنه دا مطالبه ونه منله،بلکې داسې يې وفرمايل: ياخوپه اتفاق سره دواړه ددې انتظام کوئ! که نه ماته يې بېرته راکړئ زه به پخپله ددې انتظام وکړم.

اوکه داسې شي چې دا حضرات،دحضرت عمر رضي الله عنه په خدمت کې هم په لومړي ځل دميراث دغوښتنې له پاره راغلي وو بياهم د دوی په موقف باندې څه علمي اشکال نشته اونه په دوی باندې دمال او دولت دحرص تور(الزام) لګول صحيح دي،بلکې دا ويل پکار دي چې د دوی دحديث په تاويل کې اختلاف و .ځنګه چې دبخاري شريف په حاشيه کې ددې تفصيل ذکر شوی دی:

دهغه تشريح داده چې حديث د"لانورث ماترکناه صدقة" خو دهغوی په نزدهم منل شوی و،خوهغوی دا يواځې دمنقولاتو په حق کې ګاڼه،حضرت ابوبکر رضي الله عنه هغه دمنقولاتو اوغيرمنقولاتو دټولو په حق کې ګڼله.

بيشکه حضرت صديق اکبر رضي الله عنه چې له حديث نه کوم مطلب اخستی و هغه صحيح و،خو ځوپورې چې ددې حضراتو ددې حديث په مفهوم باندې شرح صدر نه و شوی،هغوی ته د اختلاف کولو حق حاصل و.ددې مثال دزکوة نه دانکار کونکوپه باره کې دحضراتو شيخينو رضي الله عنهما مشهوره مناظره ده حضرت عمر رضي الله عنه به حضرت صديق اکبر رضي الله عنه ته بيابيا ويل:

**كيف تقاتل الناس وقدقال رسول الله صلى الله عليه وسلم أمرت أن أقاتل الناس حتى يقولوا لااله الا الله فمن قالها فقدعصم مني ماله ونفسه إلابحقه وحسابه على الله.**(صحيح بخاري جلدا صفحه ۱۸۸)

ترجمه: تاسو له دې خلکوسره ځنګه جنګ کوئ،سره له دې چې دنبي کريم صلى الله عليه وسلم وينا ده چې ماته حکم شوی دی چې زه له خلکوسره جنګ وکړم تردې پورې چې هغوی لااله الاالله ووايي، چاچې دا کلمه وويله نوهغه زمانه خپل مال او ځان بچ کړ،خويواځې داسلام په حق سره او دده حساب دالله په ذمه دی.

دلته حضرت عمر رضي الله عنه ته د يو حديث په مطلب پوهيدو کې مشکلات راځي او هغه د حضرت صديق اکبر رضي الله عنه موقف د حديث نه خلاف وګڼه او د هغه سره يې بحث او اختلاف وکړ، تردې چې الله تعالى په ده باندې هم د نبي عليه السلام د حديث هغه مفهوم پرانست کوم يې چې په حضرت صديق اکبر رضي الله عنه باندې پرانستى و، ترڅو چې د هغه شرح صدر نه و شوى تر هغه يې د حضرت صديق اکبر رضي الله عنه سره نه يوازې اختلاف وکړ بلکې بحث او مناظرې پورې خبره ورسيده.

نو همداسې دې حضراتو ته هم د دې حديث "لانورث ماتركناه صدقة" کې چې ترڅو شرح صدر نه و شوى چې د دې مفهوم هم هغه دى په کوم چې حضرت صديق اکبر رضي الله عنه پوه شوى و، تر هغه پورې يې د اختلاف حق واو د هغوى غوښتنه د خپل اجتهاد مطابق په ځاى او سمه وه خو وروسته دوى ته هم د حضرت عمر رضي الله عنه پشان شرح صدر وشو او هغوى د حضرت ابوبکر رضي الله عنه موقف تسليم کړ، چې د دې واضح دليل داد ى چې حضرت علي رضي الله عنه د خپل خلافت په دور کې د دې اوقافو په حيثيت کې هيڅ تبديلي نه ده کړې، بلکې کوم حيثيت چې ورته حضرت صديق اکبر رضي الله عنه ټاکلى و هما غه يې برقرار وساته.

که چېرې ده ته د حضرت صديق اکبر رضي الله عنه په موقف باندې شرح صدر نه وى شوى، نو د دې اوقافو د حيثيت بدلولو نه هغه ته هيڅ مانع نه و.

خلاصه دا چې د ميراث غوښتنه د دې حضراتو له لورې نه يو غل وشوه بيا بيا نه ده شوې او دا د مال او دولت په حرص سره تعبير کول هيڅکله صحيح نه دي. دې ته اجتهادي رايه بايد وويل شي، که چېرې هغوى له دې موقف نه رجوع هم نه واى کړې بيا هم دوى د ملامتيا قابل نه وو او س کله چې هغوى له دې نه رجوع هم کړې، نو دا د هغوى د نفس سره د مخالفت او د للهيت يو اعلى ترين مثال دى. له دې وروسته د دې حضراتو خلاف خبره کول يوازې د کم علمي نه، بلکې ايمان د نقصان دليل هم دى.

## (۳) د حضرت علي او حضرت عباس رضي الله عنهما خپل مينځ کې اختلاف

د دې تنازع (اختلاف) منشا پورته ذکر شوې ده او دا هم معلومه ده چې دا اختلاف د نفسانيت له وجې نه و، نه د مال او دولت له حرص سره د دې څه تعلق و، بلکې دا وقافو په انتظام کې د رايې د اختلاف په وجه حضرت عباس رضي الله عنه ته د حضرت علي رضي الله عنه نه وقتي طور باندې شکايت پيدا شوى و او څنګه چې مخکې بيان شو چې داسې د نظر اختلاف نه بد دى او نه د فضل او کمال منافي دى، خو پورې چې د حضرت عباس رضي الله عنه د دې الفاظو تعلق دى کوم چې په سوال کې نقل شوي دي او د کومو په وجه چې (نعوذبالله) په هغه باندې د اخلاقي کمزورى فتوا لګول شوې وه، نو مستفتي دا الفاظ وليدل خو دا سوچ يې ونکړ چې دا الفاظ چا ويلي وو او چا ته يې ويلي وو؟ او د دې دواړو په مينځ کې د کشرى او مشرى څه رشته وه؟ او عجيبه داده چې د قاضي ابوبکر بن العربي رحمه الله د کوم کتاب په حوالې سره چې دا الفاظ

نقل شوي دي هماغه کتاب کې په خپله موصوف چې کوم ځواب ورکړی دی هغه هم نظرانداز کول پکار دي، ابوبکربن العربي رحمه الله په "العواصم" کې دحضرت عباس رضي الله عنه دا الفاظ نقل کوي او ليکي:

**قلنا أماقول العباس لعلي, فقول الأب للابن ,وذلك على الرأس محمول, وفي سبيل المغفرة مبذول,وبين الكبار والصغار,فكيف الآباء والأبناء مغفور,موصول.(صفحه۱۹۶)**

ترجمه: موږ وايو چې دحضرت علي رضي الله عنه په باره کې دحضرت عباس رضي الله عنه الفاظ،دزوی په حق کې د پلار الفاظ دي ،چې په سرسترګو کېښودل کيږي اوبواخې په سبيل المغفرت کې ويل کيږي ، مشران که چيرې د کشرانو په حق کې داسې الفاظ استعمال کړي نوهغه دمغفرت لايق (وړ)او په صله رحمي باندې حمل کيږي،نو څنګه به دپلار الفاظ د زوی له پاره دمواُخذې قابل شي.

او د"العواصم" په حاشيه کې دفتح الباري (ج۷ص۱۲۵) په حواله سره يې ليکل شوي دي:

**قال الحافظ: ولم أرفي شئ من الطرق أنه صدر من عليّ في حق العباس شئ بخلاف مايفهم من قوله في رواية عقيل" استبا" واستصوب المازري صنيع من حذف هذه الالفاظ من هذا الحديث, وقال: لعل بعض الرواة وهم فيها, وإن كانت محفوظة فأجود ماتحمل عليه أن العباس قالها دلا لاًعلى عليّ لأنه كان عنده بمنزلة الولد فأراد ردعه عما يعتقد أنه مخطئ فيه.(صفحه ۱۹۳)**

ترجمه: حافظ ابن حجر رحمه الله فرمايي چې په يو روايت کې هم زما له نظرنه دانه دي تيرشوي چې دحضرت علي رضي الله عنه دطرف نه د حضرت عباس رضي الله عنه په حق کې څه ويل شوي وي، بواځې د عقيل په روايت کې د"استبا" دلفظ نه معلوميږي او مازری رحمه الله دهغه راويانو طرزعمل صحيح ګرځولی دی، چاچې په دې حديث کې دا الفاظ حذف کړي دي، مازری رحمه الله وايي چې غالبًا يوراوي ته به وهم شوی وي اوهغه په غلطي سره دا الفاظ نقل کړي دي اوکه دا الفاظ محفوظ وي نوددې بهترين محمل دا دی چې حضرت عباس رضي الله عنه دا الفاظ دناز په بناء باندې وويل ځکه چې دحضرت علي رضي الله عنه حيثيت دهغه په نزد داولاد و ،هغه يې په سختوالفاظو له داسې څه نه منع کول غوښتل چې دهغه په باره کې دهغه دا خيال و چې دی په غلطئ باندې دی.

دحافظ ددې عبارت نه لاندې بيان شوي امور واضحه شو:

۱: دحضرت علي رضي الله عنه دطرف نه دحضرت عباس رضي الله عنه په حق کې هيڅ قسمه نامناسبه لفظ نه دی استعمال شوی اودعقيل په روايت کې چې د"استبا" په لفظ سره کوم وهم راغي هغه صحيح نه دی.

۲:دحضرت عباس رضي الله عنه چې کوم الفاظ دحضرت علي رضي الله عنه په حق کې نقل شوي دي په هغه کې هم د راويانو اختلاف دی بعضی دا نقل کوي اوبعضی يې نه نقل کوي، حافظ مازري رحمه الله په

دهغو راويانو تصديق کړی چاچې دا الفاظ نه دي نقل کړي،کومو راويانوچې نقل کړي دي هغوی ته يې دخطاء نسبت کړی دی اودا يې ديو راوي وهم ګڼلی دی.

۳.که چېرې فرض کړه دا الفاظ محفوظ هم وي نودحضرت علی رضی الله عنه حيثيت دحضرت عباس رضی الله عنه په وړاندې دزوی پشان دی او مورپلارکه چېرې د اولاد په حق کې داسې الفاظ استعمال کړي نو دادهغوی په بزرګانه نازباندې حمل کيږي،څوک عقلمن دا الفاظ نه په حقيقت باندې حمل کوي اونه مور او پلار دداسې الفاظو په ويلو ملامت ګڼل کيږي،په دې وجه دحضرت عباس رضی الله عنه دا الفاظ دمشرۍ په ناز باندې محمول دي.

په تمهيدي نکاتوکې مې دحضرت موسی علیه السلام واقعې طرف ته اشاره کړی ده دحضرت عباس رضی الله عنه دا واقعه دموسی علیه السلام واقعې سره پرتله(مقايسه) کړئ او و ګورئ ! ايادا واقعه هغې واقعې نه هم زياته سخته ده؟

که چېرې دحضرت موسی علیه السلام په مقام اومرتبه کې ددې غوسې له وجې څه فرق نه راځي نوکه حضرت عباس رضی الله عنه دخپل زوی په حق کې دخپل مقام او مرتبې په لحاظ سره څه الفاظ استعمال کړل په هغه باندې (نعوذبالله ثم نعوذبالله) د اخلاقي کمزورئ فتوا ورکول زه نه پوهيږم چې ددين،ايمان ،عقل اوپوهې کومه غوښتنه ده ؟بيشکه کنځل کول دشريفانو طريقه نه ده،خو دلته خوبې نه بازاري کنځل کړي دي اونه له پردي کس سره سختې خبرې ،ايا خپل اولادته په سختو الفاظوکې زورنه (تهديد) ورکول هم دشريفانو له طريقې نه خلاف دي؟ اوبيا په حديث کې دنبي کريم صلی الله علیه وسلم دادعا راغلې ده:

اللّهم إني أتخذعندك عهدًالن تخلفنيه, فإنما أنابشرفأی المؤمنين آذيته, شتمته, لعنته, جلدته, فاجعلها له صلوة, وزكوة, وقربة, تقربه بهاإليك يوم القيامة.(صحيح مسلم جلد۲صفحه ۳۲۴)

ترجمه: "اې الله! زه ستانه يوه وعده اخستل غواړم،ته زماپه حق کې هغه ضرور پوره کړه، ځکه چې زه هم انسان يم، که کوم مومن ته ماتکليف رسولی وي،هغه ته مې څه نامناسبه الفاظ ويلي وي ،په هغه مې لعنت کړی وي،هغه مې وهلی وي،نوته دادده له پاره درحمت، پاکې او دقرب ذريعه جوړه کړه چې ددې په وجه هغه ته دقيامت په ورځ خپل قرب او نزديکت ورکړې.

په دې حديث کې نبي کريم صلی الله علیه وسلم خپل طرف ته د بد ر د ويلو نسبت کړی دی،چې دهغه نه مراد دادی چې که چېرې ديومسلمان په حق کې زماڅخه نه داسې لفظ وتلی وي چې هغه يې مستحق نه و نوته دا دهغه له پاره درحمت اودقرب ذريعه جوړه کړې.ايا ددې ترجمه په کنځل کولوسره به نعوذبالله په نبي علیه السلام باندې به هم داخلاقي کمزوري تهمت لګول کيږي او دا به د

- شریفانو د طریقې نه خلاف ګڼل کیږي؟ الله پاك دې په خبرو د پوهیدو او د مرتبې د پیژندلو له دولت نه یو مسلمان هم نه محرومه کوي.

## (٤) د ډنډې (زور) حکومت

دحدیث اصل الفاظ دادي"أنت والله بعدثلث عبدالعصا"(په الله قسم! تاسوبه درې ورځې وروسته محکوم شئ) دصحیح بخاري (ج۲ص۲۳۹) په حاشیه کې "عبدالعصا" لاندی لیکل شوي دي:

**كناية عن صيرورته تابعالغيره كذافى التوشيح قال فى الفتح: والمعنى: أنه يموت بعدثالث وتصيرأنت ماموراعليك وهذامن قوة فراسة العباس.**

ترجمه:دا کنایه ده له دې خبرې چې هغه به دنورو تابع شي،توشیخ کې همدارنګه دي،حافظ په فتح الباري کې لیکي چې مراددادی چې درې ورځې وروسته به رسول الله ﷺ وفات شي اوپه تاسوبه دنورو خلکوحکومت وي دا دحضرت عباس رضی الله عنه دفراست قوت و.

خلاصه دا چې د"عبدالعصا" ترجمه" ترجمه کونکي "دډنډې حکومت"کړې ده،ددې نه مراد دا دی چې تاسوبه محکوم یئ اوستاسو حیثیت به دعامو خلکو پشان وي.

دلته دا عرض کول ضروري دي چې په کنائي الفاظوکې لفظي ترجمه مرادنه وي اوکه چېرې لفظي ترجمه مراد کړل شي نومضمون به بدشکله شیاودویونکي اصل مرادبه دنظرنه پناه. شي،مثلاً په عربوکې "فلان كثيرالرماد" دسخاوت نه کنایه دی که چېرې ددې لفظي ترجمه واخستل شي چې د"فلانکي په کورکې دایروډیری دي"نوکوم سړی چې داصل مرادنه خبرنه وي هغه نه به دا فقره دمدح په ځای دمذمت په نظرراشي.

هم داحال دعبدالعصا ګڼل پکاردي،ترجمه کونکي ددې لفظي ترجمه وکړه اوعام لوستونکي خو دعربودمحاوروا تو اودلفظ ددې کنائي مراد نه خبرنه وي په دې وجه هغه نه به دډنډو د باران نه پرته هیڅ په نظر رانشي.

په یوحدیث کې راځي: **لاترفع عصاك عن أهلك**

(دخپل کوروالونه کله هم همسا(ډنډه) مه پورته کوه!

په مجمع البحارکې ددې په شرح کې لیکل شوي:

**أي لاتدع تأديبهم, وجمعهم على طاعة الله تعالى, يقال:" شق العصا" أى فارق الجماعة ولم يرد الضرب بالعصاالمعروفة بل أرادالأدب وذا حاصل بغيرالضرب.(ج:۳ص:٦١٠.طبع دائرة المعارف العثمانية دكّن هند)**

ترجمه: یعنې هغوی نه ادب ورکول او هغوی دالله پاك په طاعت باندې راجمع کول کله هم مه پریږده،په محاوره کې ویل کیږي چې فلانکي امسا وشکوله "یعنې دډلې نه بېل شو.دلته

دنبي عليه السلام مراد دا مسا نه وهل نه دي بلکې دا يو مثال دی، دلته هم دعصا نه هغه مشهوره امسا مراد نه ده، بلکې ادب ښودل ترې مراد دي او دا له وهلو نه پرته هم کيدای شي.
همدارنګه په "عبدالعصا" کې هم په مشهورو معناو کې امسا مراد نه ده، نه د ډنډې د حکومت دا مطلب دی چې هغه حکومت به په ډنډه باندې قائم وي، يا به قائم ساتل کيږي بلکې پخپله حکومت او اقتدار يې په همدې سره تعبير کړی دی او مطلب دا دی چې تاسو به د نورو د حکومت ماتحت يئ!
حضرت علي رضي الله عنه دنبي کريم صلى الله عليه وسلم رشته دار او زوم و او هغه صلى الله عليه وسلم دسورې لاندې دهغه حيثيت ديو شهزاده و (که چيرې دا تعبير بې ادبي نه وي) حضرت عباس رضي الله عنه چې هغه ته څه ويل هغه دا دي چې درې ورځې وروسته به د نبي عليه السلام دمهرباني دسورې پورته کېدل محسوسيږي، له دې نه وروسته به ستا حيثيت د ملت اسلاميه دعامو کسانو پشان وي.

## (۵) د حضرت عباس رضي الله عنه مشوره

دقاضي ابوبکر رحمه الله په کتاب "العواصم من القواصم" کې د حضرت عباس رضي الله عنه الفاظ داسې نقل شوي دي:

**إذهب بنا إلى رسول الله صلى الله عليه وسلم فلنسأله :فيمن يكون هذا الأمر بعده, فإن كان فينا علمنا ذالك ,وإن كان في غيرنا, علمنا فأوصى بنا.** (صفحه ۱۸۶)

ترجمه: راځه چې نبي کريم صلى الله عليه وسلم ته ورشو او د هغه صلى الله عليه وسلم نه پوښتنه وکړو چې ستاسو نه وروسته به دا د خلافت کار د چا سره وي که چيرې موږ سره وي نو موږ ته به معلومه شي او که د بل چا سره وي نو بيا به هم موږ ته معلومه شي په دې صورت کې به هغه زموږ په حق کې وصيت وکړي.
او دا بعينه د بخاري شريف (ج۲ ص۶۳۹) الفاظ دي "اول خو تا د دې الفاظو ترجمه صحيح نه ده کړې پته نه شته چې دا ترجمه تاسو پخپله کړې ده يا مو د بل چا ترجمه نقل کړې ده.
دويم دا چې عالمان ترننه پورې صحيح بخاري درس کوي ،خو د حضرت عباس رضي الله عنه په الفاظو کې هغوی ته کله هم څه اشکال نه دی وړاندې شوی، پخپله قاض ابوبکر بن العربي رحمه الله دا روايت نقل کوي او ليکي:

**رأي العباس عندي أصح وأقرب إلى الآخرة, والتصريح بالتحقيق, وهذا يبطل قول مدعى الإشارة باستخلاف عليّ, فكيف أن يدعى فيه نص.** (ص۱۸٦،۱)

ترجمه: د حضرت عباس رضي الله عنه رايه زما په نزد زياته صحيحه او آخرت ته زياته نژدې ده ،په دې کې د تحقيق تصريح ده او له دې نه د هغو خلکو قول باطل کيږي کوم چې دعوه کوي چې نبي عليه السلام د حضرت علي رضي الله عنه د خليفه کېدو اشاره کړې وه، څنګه به په دې باب کې د نص دعوه وکړل شي.

انصاف وکړئ چې کومه رایه ابوبکربن العربيؒ زیاته صحیح اوآخرت ته زیاته نژدې ښودلې ده تاسو دهماغه کتاب په حواله سره هغه"دخلافت په فکرکې پریوت"سره تعبیرکوئ "او حضرت عباس رضی الله عنه دتور(الزام) له پاره ښنبه جوړوئ!
ستاسو داخیال هم ښه ګمان دی چې دنبي کریم صلی الله علیه وسلم د ناوغۍ اووفات غم که چېرې غالب وی نو دا خیالات او کارونه به چیرته وو، په خپله چې تاسو کوم روایت نقل کړی دی په هغه کې تصریح ده چې حضرت عباس رضی الله عنه دا اندازه لګولې وه چې دنبي علیه السلام صحت دمایوسي حدته رسیدلی دی اوهغه صلی الله علیه وسلم خپلوخادمانوته دبیلتون داغ ورکونکی دی.نوپه هم دې حالت کې که چېرې یوسړی دا غواړي چې کوم کارونه داختلاف اوجګړې اوپه امت کې دبېلتون اولیرې والي سبب کیدای شي دهغه صفائی پخپله دنبي علیه السلام په ذریعه کول مناسب دي.دې له پاره چې وروسته انتشار او فتنه نه وي،نوستاسوپه خیال هغه ډېرسخت زړی دی،چې دهغه له نبي علیه السلام سره لږتعلق اومحبت هم نه و،نه ورسره دهغه صلی الله علیه وسلم دناروغۍ غم واونه دوفات غم ،تاسو وایئ چې ایاد دسوچ ښه طریقه ده؟
تاسوته معلومه ده چې عباس رضی الله عنه دنبي کریم صلی الله علیه وسلم دخاندان یولوی اومشرسړی واوداهم تاسوته معلومه ده چې دخاندان مشران په داسې موقعوباندې دراتلونکو واقعاتوخطرناك منظر پریشانه کوي،که چېرې دیومشکل خطره وي نوهغه دوفات کیدونکي سړي په ژوند کې دهغه دحل کولوتدبیرکوي،داهغه ورځني واقعات دي.چې تقریباً هرسړی ترې خبردی،په داسې موقعوباندې دداسې تجربه کارومشرانو لاښو ونې دهغوی په ښه تدبیر او ژور نظر باندې حمل کیږي او په هیڅ تولنه (مُعاشره) کې هم دهغه بهترینه مشوره په سخت زړي(سنګ دلي) باندې نه حمل کیږي اونه دچاپه ذهن کې دا وسوسه راځي چې ددې لویومشرانوله مرحوم سره څه تعلق نشته، مړکېدونکی مري او دوی سره د داسې خبرو فکر دی.
هم دې حسن تدبیر او ژور نظر حضرت عباس رضی الله عنه په دې رایې باندې مجبورکړ چې که نبي کریم صلی الله علیه وسلم له دنیا نه تشریف وړي اوله دې وروسته دهغه صلی الله علیه وسلم دخلافت مسئله الله دې نکړي څه مشکل صورت اختیارنه کړي،له دې وجې نه ددې صفایي که پخپله دنبي علیه السلام په ذریعه وشي نوبهتره به وي او دهغه داخطره یوائې یوه وهمي اندازه نه وه بلکې وروسته همداسې وهم و او دا خودالله تعالی یوه خاصه مهرباني وه، چې دا تنازع فوراً ختمه شوه،که نه الله مه کړه که دا شخړه اوږده شوې وای نوفکر وکړئ چې له دې امت به څه جوړشوي و؟ اوس که چېرې ددې نا اُمیدي او مایوسي په حالت کې حضرت عباس رضی الله عنه دخپلې پوهې اوعقل نه دا مشوره ورکړه چې دا قصه پخپله دنبي علیه السلام په ژوندمبارك کې فیصله کول پکار دي نو تاسو ولې وایئ چې هغه څه بدکار وکړ؟

پورته چې ماکوم د الله پاك د مهرباني ذکر کړی دی غالبًا هم دې طرف ته نبي کريم ﷺ پخپل ارشاد مبارك ,, يأبى الله والمؤمنون إلا أبابكر" کې ارشاره کړې ده:

عن عائشة قالت قال لى رسول الله ﷺ فى مرضه :ادعى لى ابابكر أباك وأخاك حتى اكتب كتابا فإني أخاف أن يتمنى متمن ويقول قايل: أنا أولى, ويأبى الله والمؤمنون إلا ابابكر.(صحيح مسلم جلد۲صفحه ۲۷۳)

ترجمه: حضرت عائشه صديقه رضي الله عنها فرمايي چې نبي کريم ﷺ پخپل مرض الوفات کې ماته وفرمايل : ماته خپل پلار ابوبکر رضي الله عنه اوخپل رور راوغواړه چې يوخط وليکم ځکه چې زه ويريږم چې يو ارزو کونى دا ارزو وکړي اويو ويونکى ووايي چې زه له ټولو نه زيات د خلافت حقداريم سره له دې چې الله تعالى او مومنان له ابوبکر رضي الله عنه نه پرته دبل چا انکار کوي.

دصحيح بخاري په يو روايت کې دی:

لقدهممت أو أردت أن أرسل إلى أبي بكر وإبنه فأعهد أن يقول القايلون أويتمنى المتمنون ثم قلت: يأبى الله ويدفع المومنون أويدفع الله ويأبى المؤمنون.(صحيح بخاري جلد۲صفحه ۸۲۶)

ترجمه:زما اراده وه چې زه حضرت ابوبکر رضي الله عنه اودهغه زى را وغواړم اوليک پرې وليکم، ځکه چې ماته ويره ده چې ويونکى به ووايي (او آرزو کونکى به آرزو وکړي، خو بياماوويل چې الله تعالى به (دابوبکرنه پرته دبل چا) انکار وکړي او مسلمانان به دفاع وکړي يايې دا وفرمايل چې الله تعالى به دفاع وکړياو مسلمانان به انکار وکړي.

ددې حديث نه معلومه شوه چې کومه ويره داختلاف اوشخړې دحضرت عباس رضي الله عنه په زړه کې وه چې دهغه صفايي کول يې غوښتل ددې ويرې نه دنبي عليه السلام ذهن مبارك هم خالي نه واو نبي عليه السلام پخپله هم غوښتل چې ددې ليکل شوې فيصله وکړل شي،خو هغه بيا دالله تعالى په رحمت اومهرباني او د مسلمانانو په پوهه اوبصيرت باندې اعتماد وکړاودا معامله يې الله پاك ته وسپارله،چې انشاء الله ددې له پاره به هم د ابوبکر رضي الله عنه انتخاب وي اوداختلاف څه خراب حالت به انشاء الله نه راوړاندې کيږي.

غرض داچې دحضرت عباس رضي الله عنه دا بزرګانه مشوره ډېره صحيحه اومخلصانه وه اوپه هغه کې څه داسې خبره په نظرنه راځي چې دهغې دصفايي يادمعذرت ضرورت وي ،پاتې شو دحضرت عباس رضي الله عنه دا ارشاد چې که چېرې خلافت زموږ نه پرته بل چاته ورکول کيږي نونبي کريم ﷺ به دخپل ځان نه روسته خليفه ته زموږ په باره کې وصيت وکړي،دا هم يواځې دخپلو مفاداتو تحفظ نه دی، (ځنګه چې په سوال کې ويل شوي دي) بلکې دا يو باريك حکمت باندې بنا دی،هغه داچې دنبي کريم ﷺ دمتعلقينو عزت او قدر په حقيقت کې هم دنبي عليه السلام دمحبت ، عظمت ، عزت او قدر يوه برخه ده،هم داوجه ده چې نبي عليه السلام دخپلو ټولو

خادمانو او متعلقینوپه باره کې په مختلفو عنواناتو سره تاکید او وصیت کړی دی،کله دعامو صحابه کراموﷺ په باره کې،کله دخلفاء راشدینوپه باره کې"کله دحضرات انصارو ﷺ په باره کې،کله دامهات المؤمنین په باره کې اوکله دحضرت علي او حسنینوﷺ په باره کې څنګه چې دحدیثو طالبان له دې امورو نه ښه واقف دي.

دحضرت عباس ﷺ دوصیت دمشورې منشا دا ده چې دنبي کریم ﷺ نه وروسته که خلافت دنبي ﷺ رشته دارو ته ورنه کړل شي نو نبي ﷺ دې دهغوی دعظمت او قدر په باره کې خصوصي وصیت وکړي ترڅو دخلافت بلافصل نه د دوی محرومي د دوی نقص او نااهلیت ونه ګڼل شي او خلک په دوی بد رد ووايي او دنبي ﷺ سره دبې وفایي اوبې مروتي مرتکب نشي، حضرت عباس ﷺ سره دخپلو مفاداتوفکر نه و بلکې دهغو خلکو د ایمان او دین فکر و چې دخپلې کم عقلي نه ددوی دخلافت نه محرومي په دوی باندې د اعتراض بانه جوړه کړي.

اوکه چېرې دا فرض شي چې هغه دخلافت نه دمحرومي په صورت کې دخپل خاندان د مفادو د تحفظ په باره کې دنبي کریم ﷺ نه وصیت کول غوښتل بیا هم سوچ کول پکاردي، چې آخر هغه دچاخاندان دی؟ ایا دنبوت دخاندان په باره کې دنبي ﷺ نه دخیر مطالبه کول جرم دی؟ حضرت عباس ﷺ دخپلو ذاتي مفادو تحفظ نه کاو،(اګرکه عقلاً او شرعًا دا هم قابل اعتراض خبره نه ده) هغه خودنبي ﷺ نه دهغه ﷺ دخاندان په باره کې دخیرخبره ویل غوښتل ،ایادنبي ﷺ خاندان دیومسلمان په نظرکې ددې لائق هم نه دی چې نبي ﷺ دهغوی په باره کې څه دخیرخبره امت ته وفرمايي؟ او چې کوم سړی داخیال هم په زړه کې راولي نوهغه دې د بدو ردو ښه جوړکړل شي؟ اناالله وانااليه راجعون!

ایا په دې مرض الوفات کې نبي کریم ﷺ دتکلیف دسختي سره سره دحضرت ابوبکر ﷺ په باره کې وصیتونه نه وو کړي؟[1] ایادحضرات انصارو په باره کې یې وصیت نه و کړی؟[2] ایا

---

[1] عن ابن عباس قال: خرج رسول الله صلى الله عليه و سلم في مرضه الذي مات فيه عاصبا راسه بخرقة فقعد على المنبر فحمد الله وأثنى عليه ثم قال ( إنه ليس من الناس احد أمن علي بنفسه وماله من أبي بكر بن أبي قحافة ولو كنت متخذا من الناس خليلا لاتخذت أبا بكر خليلا ولكن خلة الإسلام افضل سدوا عني كل خوخة في هذا المسجد غير خوخة أبي بكر ).....وفى قوله عليه السلام :سدوا عنى كل خوخة، يعنى الابواب الصغار الى المسجد غيرخوخة ابى بكر اشارة الى الخلافة اى ليخرج منها الى الصلاة بالمسلمين(البداية والنهاية ج:۵،ص: ۲۳۰،طبع دارالفكر،بيروت)

[2] ان رسول الله قال في مرضه: فجلس على المنبر ثم قال: يا معشر المهاجرين إنكم اصبحتم تزيدون، والانصار على هيئتها لا تزيد، وإنهم عيبتي التي أويت إليها، فاكرموا كريمهم، وتجاوزوا عن مسيئهم. (البداية والنهاية ج:۵،ص:۲۲۹) ان رسول الله صلى الله عليه وسلم خرج فى مرضه الذى مات فيه..... فجلس على المنبر فذكر الخطبة وذكر فيه الوصايا بالانصار(البداية والنهاية ج:۵،ص: ۲۳۰)

دغلامانو او خادمانو په باره کې يې وصيت نه و کړی؟[1] که چېرې ديو نيك سړي په زړه کې خيال راشي چې نبي عليه السلام دې دخاندان نبوت په باره کې هم څه وصيت وکړي نودادې خودغرضي و ګڼل شي؟ ايا دا دصحيح فکرطريقه ده؟

غالبًا په هم دې مرض وفات کې نبي عليه السلام امهات المومنين ته وفرمايل:

إن أمركن لمما يهمني من بعدي ولن يصبر عليكنّ إلا الصابرون الصديقون.

(ترمذی جلد۲صفحه ۲۱۶ مناقب عبدالرحمن بن عوف رضي الله عنه مستدرك حاكم جلد۳صفحه ۳۱۲،موارد الظمآن صفحه ۵۴۷حديث ۲۲۱۶،مشکوة صفحه ۵۶۷)

ترجمه: بيشکه زمانه وروسته ستاسو حالت مافکرمندکوي اوستاسو (په خرچ برداشت کولو) باندې به صبرنه کوي، مګر صبرکونکي او رينښتوني خلك.

غرض دا چې دژوند نه دنااميدي په حالت کې دمړه کيدونکي دمتعلقينوپه باره کې دهغه فکرمندي يو فطرتي خبره ده په خپله نبي کريم صلى الله عليه وسلم دتعلق مع الله او دتوکل على الله دټولونه دلوړمقام سره سره دخپل ځان نه وروسته دخپلو متعلقينو په باره کې فکرمندشو، دهمدې عکس دحضرت عباس رضي الله عنه په زړه باندې پريوت او دهغه داخيال شوچې نبي کريم صلى الله عليه وسلم دخپل خاندان والو په باره کې هم څه ارشاد وفرمايي.

نبي کريم صلى الله عليه وسلم دخپلورشته داروپه باره کې هم ډېر تاکيدي وصيتونه کړي دي،دغه وجه ده چې صحابه کرامو رضي الله عنهم خصوصًا خلفاء راشدينو رضي الله عنهم ته دنبي عليه السلام د رشته دارو د رعايت ډېراهميت و،چې دهغه بيشماره واقعات شته ، دلته د حضرت ابوبکرصديق رضي الله عنه يوه فقره نقل کوم،چې هغه د"العواصم" صفحه ۴۸ په حاشيه کې شيخ محب الدين الخطيب رحمه الله دصحيح بخاري په حوالې سره نقل کړې ده:

والذی نفسي بيده لقرابة رسول الله صلى الله عليه وسلم أحب إلىّ أن أصل من قرابتي.

(مناقب قرابت رسول صلى الله عليه وسلم)،(صحيح بخاري ج:۱ ص۵۲۲باب مناقب قرابة رسول الله)

ترجمه: په هغه ذات مې دې قسم وي چې دهغه په قبضه کې زما ساه ده،دنبي کريم صلى الله عليه وسلم خپلوانوسره ښه سلوك کول ماته دخپلو رشته دارو سره تر ښه سلوکه زيات خوښ دي.

بيشکه ديو مومن مخلص هم دا ايماني جذبه پکار ده، ځکه چې دا دنبي عليه السلام سره دمحبت اوتعلق ښکاره علامت دی، دنبي عليه السلام ارشاد مبارك دی:

أحبّوا الله لما يغذوكم به من نعمه وأحبّوني لحب الله وأحبّوا أهل بيتي لحبي.

(ترمذی۲، ۲۲۰حاکم ۳، ۱۵۰ عن ابن عباس رضي الله عنه ،حسنه الترمذی وصححه الحاکم ووافقه

---

[1] عن انس بن مالک قال: كانت عامة وصية رسول الله صلى الله عليه وسلم حين حضرة الموت الصلاة وما ملكت ايمانكم .....الخ (البداية والنهاية ج:۵،ص:۲۳۸)

الذهبی ورقم له السیوطی رحمہ اللہ فی الجامع الصغیر بالصحة. جلد ١ .صفحه ١١)
ترجمه: الله تعالی سره محبت ساتئ، ځکه چې پخپلو نعمتونو سره تاسو پالي. زما سره محبت ساتئ دالله تعالی دمحبت له وجې نه او زما داهل بیتو سره محبت ساتئ زما دمحبت له وجې نه.

## (٦) حضرت علی رضی اللہ عنہ اود خلافت غوښتنه

دحضرت عباس رضی اللہ عنہ ددې مشوره په ځواب کې چې ځه! لاړشو دنبي کریم صلی اللہ علیہ وسلم سره معلومات وکړو چې خلافت به زموږ سره وي او که دبل چاسره به وي؟ حضرت علی رضی اللہ عنہ وفرمایل:

**إنا والله لئن سالنا ها رسول الله صلی اللہ علیہ وسلم فمنعناها لايعطيناها الناس بعده، وإني والله لاأسالها رسول الله صلی اللہ علیہ وسلم.(العواصم صفحه١٨٦، صحیح بخاري جلد٢صفحه ٦٣٩)**

ترجمه: په الله قسم!که چیرې موږ درسول الله صلی اللہ علیہ وسلم نه په دې باره کې سوال وکړو او هغه یې موږ ته رانکړي نوخلک به یې دهغه صلی اللہ علیہ وسلم نه وروسته موږ ته هیڅکله رانکړي او په الله قسم! زه خودرسول الله صلی اللہ علیہ وسلم نه په دې باره کې پوښتنه نه کوم.
دکوم سړي په ذهن کې چې دحضرت علی رضی اللہ عنہ طرف ته دخیرمیلان نه وي هغه خوبه ددې فقرې مطلب هم داوګڼي چې دهغه مقصددحضرت عباس رضی اللہ عنہ مشوره نه قبلول و. اوپه دې باندې هغه داسې دلیل بیان کړ چې حضرت عباس رضی اللہ عنہ په هغه سره چپ پاتې شو. یعني کله چې تاسو پخپله هم تسلیموئ چې څنګه دااحتمال دی چې نبي کریم صلی اللہ علیہ وسلم به خلافت موږ ته راکړي همدارنګه دا هم احتمال دی چې دیوبل چا نوم تجویزکړیاوس که چیرې دا معامله مبهمه پاتې شي نوددې ګنجائش شته چې مسلمانان دخلافت له پاره موږ منتخب کړي،خو که چیرې سوال کولو نه وروسته نبي علیہ السلام منع وکړي نو زموږ د انتخاب به هیڅ ګنجائش پاتې نشي اوس ووایئ چې داد ابهام صورت ستاسو په خیال کې زموږ له پاره بهتردی که دتعیین صورت؟
ښکاره خبره ده چې په دې تقریرباندې دلیري نه هم چیرته د الزام شك په نظرنه راځي کوم چې تاسو په دې وینا سره په حضرت علي رضی اللہ عنہ باندې لګول وغوښتل چې:
"دهغه د ارادې نه دا ښکاري چې که چیرې رسول الله صلی اللہ علیہ وسلم انکار هم وکړي موږ ته خلافت پکاردی اودا هم چې دهغه همدا توقع وه، چې نبي علیہ السلام به منع کوي ځکه هغه وویل چې زه سوال نه کوم او دنبي علیہ السلام نه وروسته به دا خلافت حاصلوم".
ددې الزام د تردید له پاره دحضرت علي رضی اللہ عنہ طرزعمل کافي دی، که چیرې دهغه اراده داوي چې هغه به دنبي علیہ السلام دممانعت سره سره( نعوذبالله) خپل خلافت قائموي نوهغه به ضرور داسې کړي و،خو واقعات ګواه دي چې ددریوو خلفاوو په دورکې هغه یوه ورځ هم دخلافت دعوه نه ده کړې، حضرت علي رضی اللہ عنہ په دې پوهیده چې دنبوت دخلافت مدار یواځې په نسبي خپلولۍ باندې نه دی بلکې په فضل اوکمال او په اسلام کې په وړاندې والي باندې دی اوهغه په دې هم پوهیده چې په دې کارونو کې حضرت صدیق اکبر رضی اللہ عنہ دټولو نه اوچت

دی او دهغه په موجودیت کې بل څوک دخلافت حقدارنه دی. په صحیح بخاري کې دهغه دزوی حضرت محمدابن الحنفیه نه روایت دی:

**قلت لأبي: أي الناس خير بعد النبي ﷺ؟ قال: أبو بكر. قال: قلت: ثم من؟ قال: عمر. وخشيت أن يقول: عثمان قلت: ثم أنت؟ قال: ما أنا إلا رجل من المسلمين. (صحيح بخاري جلد۱ صفحه ۵۱۸)**

ترجمه: ماځیل پلار حضرت علي رضی الله عنه نه وویل: له نبي علیه السلام نه وروسته ټولونه افضل اوبهترسړی څوک دی؟ویې فرمایل: ابوبکر رضی الله عنه ، ماوویل: له هغه نه وروسته؟ویې فرمایل: عمر رضی الله عنه ، زه وویریدم چې که اوس ترې پوښتنه وکړم نودحضرت عثمان رضی الله عنه نوم به واخلي ځکه مې سوال بدل کړ او ومې ویل: له هغه نه وروسته ستاسو مرتبه ده؟ ویې فرمایل: زه خو دمسلمانانو دډلي نه یوکس یم.

هغوی به دخپل خلافت په زمانه کې په منبرباندې دا اعلان کاو:

**خير هذه الأمة بعد نبيها أبو بكر، وبعد أبي بكر عمر رضی الله عنهما، ولو شئت أخبرتكم بالثالث لفعلت.**

**(مسند احمد جلد۱ صفحه ۱۰۶)**

ترجمه: دنبي کریم ﷺ نه وروسته په دې امت کې له ټولونه افضل ابوبکردی او دابوبکرنه وروسته عمر رضی الله عنه اوکه زه وغواړم نوددریمې مرتبې سړی هم ښودلی شم.

ددې سلسلې ټول روایتونه حضرت شاه ولی الله محدث دهلوي رحمه الله په "ازالة الخفاء (ج۱ ص۲۲" کې جمع کړي دي، هلته یې وګورئ!

حضرت علي رضی الله عنه په دې هم پوهیده چې نبي کریم ﷺ په اخري ورځوکې ابوبکر رضی الله عنه ته چې کوم امامت صغری حواله کړی و دا په حقیقت کې دامامت کبری له پاره دهغه استخلاف دی،

**أخرج أبو عمرو في الاستيعاب عن الحسن البصري عن قيس بن عباد قال: قال لي علي بن ابي طالب: أن رسول الله ﷺ مرض ليالي وأياما ينادي بالصلوة فيقول: مروا أبا بكر يصلي بالناس فلما قبض رسول الله ﷺ نظرت، فإذا الصلوة علم الاسلام وقوام الدين فرضينا لدنيانا من رضي رسول الله ﷺ لديننا فبايعنا ابابكر رضی الله عنه. (ازالة الخفا جلد۱ صفحه ۶۸)**

ترجمه: حافظ ابوعمرو ابن عبدالبر رحمه الله په الاستیعاب کې له حضرت حسن بصري رحمه الله اوهغه له قیس بن عباد نه روایت کوي چې حضرت علي رضی الله عنه ماته وفرمایل: رسول الله ﷺ څو څو ورځې شپې ناروغ و دلمانځه له پاره به چې اذان وشونو هغه ﷺ به وفرمایل: ابوبکر رضی الله عنه ته ووایئ چې لمونځ ورکړي، چې کله رسول الله ﷺ وفات شو نوماولیدل چې مونځ داسلام د ټولونه لویه نښه او ددین مدار دی. نوموږ دخپلې دنیا (دانتظام) له پاره هغه سړی خوښ کړ چې رسول الله ﷺ زموږ ددین له پاره خوښ کړی و. ځکه موږ دحضرت ابوبکر رضی الله عنه سره بیعت وکړ.

له دې وجې حضرت علي ؓ ته دنبي کریم ﷺ نه ددې پوښتنې ضرورت نه و چې تاسونه وروسته به خلیفه څوک وي؟ له دې سره چې په حضرت علي ؓ کې هم دنبوت دخلافت قابلیت او اهلیت په کامله درجه موجود و او دنبي علیه السلام د ډېرو ارشاداتونه هغه ته دا هم معلومه وه چې په خلافت کې هم دده برخه شته او دا خلافت به پخپل مقرره وخت باندې دده ته خامخا ورکول کیږي، دنبي علیه السلام د دې ارشاداتو د تفصیل او تشریح ځای دا نه دی دلته یواځې یو حدیث نقل کوم:

عن أبي سعيد ن الخدری ؓ قال كنا ننتظر رسول الله ﷺ فخرج علينا من بعض بيوت نسائه, قال: فقمنا معه, فانقطعت نعله, فتخلف عليها عليٌّ بخصفها, فمضى رسول الله ﷺ, ومضينا معه ,ثم قام ينتظره وقمنا معه, فقال: إن منكم من يقاتل على تأويل هذا القران كما قاتلت على تنزيله فاستشرفنا وفينا أبوبكر وعمر ؓ فقال: لا! ولكنه خاصف النعل قال فجئنا نبشره قال: وكأنه قدسمعه.(مسند احمد:۸۲،۳ قال الهيثمي رواه احمد ورجاله رجال الصحيح غير فطر بن خليفه وهو ثقة مجمع الزوائد جلد۹ صفحه ۱۳۴)،

ترجمه: د حضرت ابوسعید خدري ؓ نه روایت دی چې موږه ناست وو دنبي کریم ﷺ انتظار مو کاوو ، هغه ﷺ د ازواج مطهراتو دیوکور نه را ووت ، موږ دنبي علیه السلام سره دتلو له پاره ودرېدو نو دنبي علیه السلام پته مبارکه وشلیده ، حضرت علي ؓ دهغې دجوړولو له پاره ایسار شو اونبي علیه السلام روان شو بیا دحضرت علي ؓ په انتظار کې ودریده او موږ هم ودریدو ، نبي علیه السلام وفرمایل: په تاسو کې به یوسړی دقران په تاویل باندې جګړه کوي، څنګه چې ما ددې په نزول باندې جګړه کړې وه. موږ ټول ددې په انتظارکې شو چې دابه څوک وي؟په موږ کې حضرت ابوبکر ؓ او عمر ؓ هم وو .نبي علیه السلام وفرمایل: نه! بلکې له دې نه دپڼو ګنډلو والا مراد دی، ابوسعید خدري ؓ فرمایي چې موږ دزیری ورکولو له پاره حضرت علي ؓ ته راغلو نو داسې محسوسه شوه چې هغه دنبي علیه السلام دا ارشاد دمخکې نه اوریدلی دی.

له دې تفصیل نه دحضرت علي ؓ دوینا مطلب واضحه کیږي چې زه دنبي کریم ﷺ نه په دې باره کې سوال نه کوم او دا چې که چېرې نبي علیه السلام انکار وکړ نوبیابه بې مسلمانان موږته کله هم رانکړي، ځکه چې که چېرې نبي علیه السلام په دې موقع باندې دا فرمایلې وای (اودا فرمایل یواځې ګمان نه و بلکې یقیني و) چې زمانه وروسته علي ؓ خلیفه مه جوړوئ! بلکې ابوبکر ؓ خلیفه جوړ کړئ! نو ددې زر په ذهن کې راتلونکی مفهوم خو دا و چې دنبي علیه السلام نه وروسته خلیفه بلافصل حضرت علي ؓ نه دی ،خو خلکوته دا غلط فهمي ضرور کیدای شوه چې په علي ؓ کې دخلافت صلاحیت او اهلیت نشته، یادا چې دنبوت په خلافت کې دهغه هیڅ برخه نشته او دهغه په دورخلافت کې به دنبي کریم ﷺ دهمدې ارشاد وړاندې

کولو سره خلک په دې غلط فهمي کې ولویږي چې نبي ﷺ فرمایلي و چې "زمانه وروسته علي رضي الله عنه خلیفه مه جوړوئ" دا هغه غلط فهمي ده چې په بناء یې حضرت علي رضي الله عنه وفرمایل: که چېرې په دې موقع باندې نبي علیه السلام مونږ منع کړو، نو داخطره ده چې مسلمانان به ددې نه همیشه له پاره یو قانون جوړ کړي او مونږ به دخلافت له پاره نااهله وګڼل شو. ښکاره خبره ده چې دا غلط فهمي دکومې چې خطره وه نه یواځې دنبي علیه السلام دمنشا خلاف به وي بلکې دنبي علیه السلام هغه ارشاداتو سره به یو بدترین ظلم هم وي چې هغه ﷺ دحضرت علي رضي الله عنه په باره کې فرمایلي دي.

﴿ رَبَّنَا ٱغْفِرْ لَنَا وَلِإِخْوَٰنِنَا ٱلَّذِينَ سَبَقُونَا بِٱلْإِيمَـٰنِ وَلَا تَجْعَلْ فِى قُلُوبِنَا غِلًّا لِّلَّذِينَ ءَامَنُوا۟ رَبَّنَآ إِنَّكَ رَءُوفٌ رَّحِيمٌ ﴿١٠﴾ ﴾

## د پوښتنه کونکي دویم لیک

محترم المقام جناب علامه محمد یوسف لدهیانوي صاحب!

السلام علیکم ورحمة الله وبرکاته، وبعد:

دجناب دمحبت نه ډك لیک راورسېد. دایو حقیقت دی چې په دې لیک ډېر وخت لګېدلی دی بیا ستاسو پشان مصروف سړي له پاره خو نور هم مشکل شي خو څنګه چې تاسو لیکلي دي چې "درفع الإلتباس" دیواځې خپرولو ارا ده لرئ له دې وجې نه دوضاحت له پاره دیو څو خبرو دلیکلو جرات کوم څکه چې داخبرې زمونږ داوچتې مرتبې په کتابونو کې ذکر دي، مترجمینو حضراتو دترجمه کولو په وخت عوام په دوه قسمه نقصان کې مبتلا کړل. یو خو خلک په شك کې مبتلا شي او ددې شك نه امامیه حضرات فائده اوچتوي، چې داهل سُنت په مذهب باندې بد وایي او دخپلو باطلو عقیدو اشاعت شروع کوي. یو عام سُني مسلمان چې دهغه مذهب د اوریدل شوو خبرو اوڅه معاشرتي رسمونو باندې (چې هغه ته په میراث کې ورکول کیږي) مبني وي که چېرې امامیه هم نشي خو دهغوی نه متاثره کیږي او په خپلو مشرانو بد ګمانه شي.

نورې تولې خبرې به زه انشاء الله په ملاقات کې وکړم، خو فی الحال څو هغه خبرې لیکم چې که چېرې دهغه صفایي وشي، نو ستاسو داتحریر به دیو مقدس تحقیق مرتبه پیدا کړي (ان شاء الله) تاسو لیکلي دي چې په هرحال دحضرت ابوبکر رضي الله عنه له تنبیه نه وروسته هغوی په دې حدیث کې نه څه جرح وکړه او نه یې بحث وکړ. بلکې دخپلې خبرې نه یې لاس واخست او دا دهغو مومنانو او قانتینو شان دی چې په هغوی کې دنفسانیت څه ګډون نه وي" ددې لیکلو نه وروسته که چېرې دا ومنل شي چې حضرت علي رضي الله عنه دحضرت ابوبکر رضي الله عنه فیصله په اخلاص سره ومنله او دخپلې خبرې نه یې لاس واخست نو بیا دګیلې او شکایت څه معنا ده؟

تاسوددې بيان نه وروسته د"باب فرض الخمس" کوم حديث حواله چې ورکړې ده "ثم جئتماني" نه مخکې برخه مونقل کړې ده پخپله دې حديث کې ددې نه وړاندې بيان و چې پخپله دحضرت عمر رضي الله عنه په دې فيصله باندې شکايت و ،حضرت عمر رضي الله عنه دوی مخاطب کړل او ورته وېې ويل: "تاسو دهغه وخت نه په دې مسئله کې شکايت کاوو".خو په حقيقت کې خبره يواځې شکايت پورې محدوده نه وه په دې کې ديحيی بن بُکير والا روايت په بخاري کې وګورئ نو معلوميږي چې حضرت فاطمه رضي الله عنها په دې مسئله کې دحضرت ابوبکر رضي الله عنه نه خفه شوه،بلکې ترخپل وفاته پورې يې له هغه سره خبرې ونکړې.په فتح الباري کې ابن حجر رحمه الله په نهم جلد کې ليکلي دي چې هغه ته لېږل شوي وه(لېږونکی حضرت علی رضي الله عنه و) "ان فاطمة ارسلت الى ابى بكر رضي الله عنه تساله ميراثها" غور وکړئ چې دداسې سړي نه خفګان .چې هغه خپل ذاتي مال ټول په رسول الله صلی الله علیه وسلم باندې لګولي و .څه معنا لري؟ ابن حجر رحمه الله د اووم جلد په حاشيه کې چې کوم بحث کړی دی هلته ليکي چې"دا ببلتون دميراث دنه ورکول کېدو دغوسې په نتيجه کې و" دا مضمون مې په تيسيرالباري کې هم وليده.علامه وحيد الزمان په صفحه ۲۸۰ ،۲۸۱ باندې ليکلي دي :" دفاطمې رضي الله عنها خفګان دلوروالی غوښتنه وه اوددې هيڅ علاج نه و"

په دې عبارت زه پوه نه شوم چې جناب څه ويل غواړي ددې نه وړاندې يې اوږد بحث کړی دی چې غيرمتعلق اوبې معنا دی،ابوبکر رضي الله عنه درسول صلی الله علیه وسلم دحکم مطابق فيصله کړی وه، دافيصله دهغه خپله نه وه،دالله درسول صلی الله علیه وسلم فيصله وه،بيا دابوبکر رضي الله عنه نه خفګان څه معنا لري؟ خبره په دې باندې نه ختميږي ،په دې حديث کې وړاندې وګورئ! دحضرت فاطمې رضي الله عنها په ژوندکې حضرت علي رضي الله عنه ته په خلکوکې عزت حاصل و، چې کله حضرت فاطمه رضي الله عنها وفات شوه حضرت علي رضي الله عنه دخلکو توجه بدله ومونده نو دحضرت ابوبکر رضي الله عنه سره يې دصلح او بيعت وړانديزوکړ"، ګويادا صُلح او بيعت دمجبوري په حالت کې واوچې کوم مقام حضرت علي رضي الله عنه ته دصحابه وو په مينځ کې حاصل و هغه دنوموړي خپل ذاتي عزت اوقابليت نه و .بلکې صحابه وو به دحضرت فاطمې رضي الله عنها لحاظ کاوو اوهغې ته به يې اهميت ورکاوو دهغې په وفات باندې حضرت علي رضي الله عنه هغه مقام له لاسه ورکړ،ترڅو چې ترې خلکو نظر نه و اړولی هغه نه خو صُلح ته اماده شو اونه بيعت ته(انالله واناالیه راجعون)بيا که راضي هم شو نو شرائط يې ولګول چې يواځې راشئ.ايا عمر رضي الله عنه څه مقام نه لاره؟ ايا عمر رضي الله عنه څه دکم حيثيت سړی و؟ دابوبکر رضي الله عنه افضليت منل،ايا دعمرخدمات ،دهغه ايمان، دهغه داسلام څه مثال تاسووړاندې کولی شئ؟ کوم څه چې عمر رضي الله عنه د اسلام له پاره وکړل، ايا تاسوبل نوم اخستی شئ؟ پخپله په همدې حديث کې حضرت علي رضي الله عنه د دې خبرې اقرار کړی دی،"چې دخپلولی د وجې نه هغه خلافت خپل حق ګاڼه".

ایا ددې مقصد دحاصلولو له پاره دصفین جنګ قائم نکړای شو؟ "عراقیان" او "عجمیان" کومو ته چې شیعان علي رضي الله عنه وویل شو.د شامیانو او عربو سره څه له پاره په جنګ کې شو،هغه هم په داسې وخت کې چې کله د امیرمعاویه رضي الله عنه د رومیانو سره جنګ و، ایاد حضرت علي رضي الله عنه دا عجمي اوعراقی شیعه ګان هم هغه خلک نه وو چې دعثمان رضي الله عنه دقتل په هیرو(سنبول) کیدو باندې یې فخرکولو؟ هم دې خلکو حضرت علي رضي الله عنه ته خلافت ورکړ او مجبوریې کړ چې د مسلمانانو صفونه ګډوډ کړي،په مسلمانانو کې دانتشار پیدا کولو لومړۍ کامیابه کارنامه هم دا انجام شوه،آخر د چنګیزخان، نپولیناو ددوی دقبیلې د نورو خلکو حالات خوهم شته حالانکه داخلک کافران وو بیاهم داسې غافله او بې وسه نه وو چې دیواهم شخصیت دقتل په سلسله کې دا معلومه نه شي چې قاتل څوک دی؟ پخپله چې دکومو سپاهیانو سره دجنګ په میدان کې مصروف وي دهغوی متعلق ورته هم پته نه وي چې داڅه قسمه خلک دي، د انګریزانو او فرانسیانو دپېړیو زړه دښمنې له چانه پټه نه ده ،دلائف آف نپولین مصنف یوانګریز دی، هغه اعتراف کړی دی چې هغه ته دیو یو عسکر (سپاهي) نوم به یادواویواځې یونپولین نه دی،بیشماره مشهورخلک داسې تیرشوي دي او تاسو ته هم ښه معلومه ده چې دخپل ملك دهرې برخې له حالاتو نه به خبر وو،وقتي هیریدل او اجتهادي غلطي به آخرترکومې پورې وي،دکوم سړي دتدبرچې دا حال وي چې هغه خپل حقیقی ورور هم خپل موافق جوړنه شي کړای اوکله چې حضرت عقیل رضي الله عنه دده نه خفه شواو معاویه رضي الله عنه ته ولاړ نوڅه وشو؟ او دا سلسله کله دصفین دجنګ نه وروسته ختمه شوې وه؟ د"بنوامیه" او "بنوعباس" په زمانوکې دعلوي اوعباسی جنګونه یو دوه خونه دي چې دچانه پټ وي په یولیک کې داټول بیان ناممکن دی.

په دې کې شك نشته چې شاه ولی الله رحمه الله په ازالة الخفا کې دحضرت علي بیشماره مناقب بیان کړي دي (سره له دې چې د ابوبکر رضي الله عنه عمر رضي الله عنه او دعثمان رضي الله عنه په دورخلافت کې چې اسلام ته کومه ترقی حاصله شوه، دحکومت طریقه، معاشرت، غرض دا چې دهرقسم تفصیل هغه لیکلی دی) دې نه پرته یې نور هم څه لیکلی شو؟ بیا شاه ولی الله رحمه الله اکثرد ریاض النضرة" لمحب الطبري نه نقل کړی دی، ډېرزیات موضوعي او ضعیف روایتونه پکې ذکر دي،څومره پورې چې زما حافظه کار کوي دې صاحب او دتاریخ اسلام مولف نجیب خیرآبادي هم دحضرت علي رضي الله عنه خلافت نه دی تسلیم کړی،بلکې ددرې واړو دخلافت حالت لیکلو نه وروسته یې باب په دې عنوان سره قائم کړی دی، "حضرت علي رضي الله عنه دکوفې دګورنر په حیثیت.

زماخیال و چې دعمر رضي الله عنه په تقریرباندې دعلامه عیني رحمه الله خیال هم وګورم خو دې ګنهګار تراوسه پورې داسې ونکړای شو،دفتح الباری داووم جلد په ۱۴،۱۵ صفحه باندې دا بحث شته ،هلته ددریو حدیثونو حواله موجود ده.

(۱) عمر بن شبة من طريق ابي البختري على سبيل الميراث (نسائي)
(۲) بلکې نسائی کې هم د ,,من طريق عكرمة على سبيل الولاية ،، حواله ده.
(۳) او د ابوداود په حديث کې په دوالي په توګه مطالبه کول هم ذکر دي .په هرحال څنګه چې تاسوته هم معلومه ده چې امام نسائي دحديث په معامله کې امام بخاري نه هم سخت و ،ددې درې حديثونوپه رڼا کې څنګه رايه درست کيدای شي په دې سلسله کې دا هم واضحه کړئ چې هغه څه خبره وه چې حضرت علي رضي الله عنه کسب معاش طرف ته څه توجه ورنکړه.
سره له دې چې رسول الله صلى الله عليه وسلم په امت ته ددې ترغيب ورکاو کله يې چې دنکاح مطالبه وکړه نودحضرت علي رضي الله عنه سره هيڅ نه و ،خپله زغره يې خرڅه کړه ،يواځې فاطمې رضي الله عنها ته نه بلکې دنبي عليه السلام له پاره هم تکليف و ،چې دنبي عليه السلام د دښمن د لور سره دنکاح اراده کوي.نکاح خوخيرڅلورو پورې کيدای شي خو داسې سړی چې ديوې بي بي دکفالت او پخپله خپل کفالت نشي کولی ،ايا ده ته هم اجازه ده چې دنکاح دپاسه نکاح وکړي؟ دحديثو په کتابونو کې په وقتي توګه باندې يواځې دوه کارونه يې په نظر راځي، ديهودي په باغ کې اوبه لګول يا يوځل واښه ريبل.

والسلام: محمد ظهور الاسلام

# الجواب حامدا ومصليا

الحمدلله وكفى وسلام على عباده الذين اصطفى
مخدوم ومكرم،زيدت عناياتهم.السلام عليكم ورحمة الله وبركاته!
زه تقريبًا دوه مياشتې وروسته دفترکې حاضرشوم.بيا دجمع شوي ډېرکار ډېروالی دخط کتلو مهلت هم رانکړ.نن لږ دساه اخستلو موقعه پيدا شوه، ستاسو خط مې راواخست اوکيناستم دتفصيل ليکلو اوس هم موقعه نشته بياهم مختصرېې ليکم،
دليک په بيان شويو خبروباندې غور کولو نه مخکې له تکليف پرته خوخيرخواهئ سره عرض کوم چې د روافضو سرکشه ردعمل په طورباندې زموږ ډېرځوانان دحضرت علي کرم الله وجهه نقص اوعيبونه تلاش کوي ، علمي اشکالات خوهرځای مخې ته راځي په دې وجه چې څنګه روافض دحضرات شيخينو رضي الله عنهما په باره کې څه نا څه تلاش کوي،داشان زموږ دا نوجوان طبقه دحضرت علي رضي الله عنه په باره کې هم څه نا څه تلاش کوي، په زړه کې يې دبُغض او نفرت غوټه ناسته وي له دې وجې نه هغوی ته ددې اشکالاتو په علمي ځواب سره هم تسلي نه کيږي.سره له دې چې حضرت علي رضي الله عنه په اتفاق داهل سنت خليفه سره راشددی اونبي کريم صلى الله عليه وسلم دهغه بيشماره فضائل بيان کړي دي،ددې نه پرته پخپله حضرات شيخينو رضي الله عنهما په

خپل عمرکې دده سره دمحبت او اکرام سلوک کړی دی .خو زموږ جذباتي ځوانان.دشیعه ګانو دردعمل په طورباندې دحضرت علي رضي الله عنه چې کوم عیبونه راجمع کوي هغه نه دنبي علیه السلام په نزد د توجه قابل وو اونه دحضرات شیخینو رضي الله عنهما په نظرکې اونه داهل سنت داکابرو په نظرکې.

اوس ددې اشکالاتو دحل دوه صورتونه دي.یودا چې ددې وهمي عیبونو دیو یو خواب ورکړل شي، دا طریقه اوږده هم ده او تسلي بخش هم نه ده.ځنګه چې فطرتي خبره ده چې کوم سړي سره دنفرت اودښمنۍ غوټه په زړه کې ناسته وي دهغه طرف نه که هرڅومره صفائي وړاندې شي خوخیرى نه وځی اودویم صورت دا دی چې په رسول الله صلی الله علیه وسلم.په حضرات شیخینو رضی ا لله عنهمااو اکابراهل سنت باندې اعتماد وکړل شي او حضرت علي رضي الله عنه خپل محبوب وګڼل شي اود هغه په باره کې چې کوم اشکالات راوړاندې شي هغه دخپلې پوهې قصور وګڼل شي،بلکې (ددې ناکاره) په نزد دا آخری طریقه خوښه اوډېره منل شوې ده .ددې دواړو صورتونو مثال داسې دی چې دکور په انګړ (غولي) کې ډېرګند پروت وي او سړی ددې نه دکورصفائي کول غواړي نویوصورت خو دا دی چې یو یو  ترې پورته کړې او بهرېې وغورځوې.ښکاره ده چې په دې کې به وخت هم زیات ولګیږي او پوره صفایي به بیاهم ونه شي او دویم صورت دا دی چې جارو واخلې او ټول انګړصفاکړئ.په دې کې به وخت هم زیات ونه لګیږي او صفایي به هم په ښه طریقه باندې وشي.

زماپه نزد آخری طریقه داسې جاروده چې په دې سره به دشکونو دټول ګند نه دمومن سینه پاکه شي،دا روایتونه دکومو په بنیاد باندې چې اشکالات کیږي.زموږد اکابروداهل سُنت دنظرنه پناه نه دي.خو دهغوی په بې حسده سینو کې دحضرت علي رضي الله عنه یادحضرت فاطمې رضي الله عنها طرف نه کله هم ښېرې نه دي راغلي او نه چاپه دې بزرګانو باندې بد ویلي دي.زړه مې غواړي چې موږ اوتاسو هم بس داطریقه خپله کړو.

په دې ضمن کې یوه بله خبره مې هم زړه غواړي.هغه دا چې حضرت علي رضي الله عنه ته چې کومه زمانه ورکړل شوه هغې ته دحدیثو په اصطلاح کې د"فتنې دور" ویل کیږي اود فتنې تعریف هم دا دی چې په دې کې صورت حال مشتبه شي او یو طرف ته فیصله کول مشکل شي.ځنګه چې صحابه کرامو رضي الله عنهم ته هم دغه اشکال راوړاندې شو.څه حضرات دحضرت علي رضي الله عنه سره شول.څه دده مقابلاوڅه پکې غیرجانبدار.دخپلې پوهې او اجتهاد مطابق کومې ډلې چې کوم اړخ غوره او حق ته نژدې وګڼه هغه یې اختیار کړاوهره ډله په خپل اجتها باندې دالله په نزد داجرلائق شوه.ځکه چې د دوی نه هرسړی دالله په نزد پخپل اجتهاد باندې د عمل کولو مکلف واوهریو دالله درضا کوشش کاو.چې کله دفتنې داګرداوغبار کیناست نو داهل سُنت اکابرو ددې فتنې په تفصیلاتوکې غور ، فکر اوتلاش کول خوښ نه کړل.بلکې یومختصرشان فیصله یې محفوظه کړه چې په دغه دورکې حضرت علي رضي الله عنه خلیفه راشد

واو په حق باندې و. باقي حضرات دخپل خپل اجتهاد په بناء باندې معذور او اجر مونذنکي دي اوس زموږ ځوانان دسرنه دهغې زمانې تفصيلات لټوي اوداکابروپه باره کې بې باکه فيصلې کوي، پخپله انصاف وکړئ چې دکومو اکابرو په سر دا ټول واقعات تيرشو چې کله هغوی پخپله دې کې پريشانه شوي وواو هغوی ته دصورت حال دتحليل نه وروسته فيصله کول مشکل و .نونن څوارلس سوه کاله وروسته زه اوته دکتابونو لوستلو نه وروسته فيصلې کوو ،نواياېوې صحيحې نتيجې ته درسيدلو توقع کيدای شي؟ کم نه کم زما په نظرکې خو دا بالکل ناممکن دي. دفکرې انتشار او د زړونو د کوږوالي نه پرته به يې هيڅ نتيجه راونه وځي،بيادا کاربې فائدې هم دی ،نه خوبه په قبرکې زموږ نه دا پوښتنه کيږي چې تادفتنې د ورځوپه واقعاتوکې غور او فکرولې نه و کړی؟ او نه به په حشرکې ددې پوښتنه کيږي چې ته ددې اکابرو په مينځ کې فيصله وکړه اودهريوفرد جرم (نعوذبالله) معلوم کړه. يو داسې بې فائدی شی چې په هغه کې دبحث کولو دنتيجې هيڅ اُميدنه وي. بلکې په هغه سره دايمان دلمنې دتارتار کيدو خطره وي په دې کې قيمتی وخت ضائع کول اوخپل طاقت مصرفول به ترکومه پورې صحيح وي؟ دی وجې نه زما ذوق دا دی او ددې تاسوته هم مشوره درکول غواړم چې په دې شيانوکې خپل وخت ضائع نه کړل شي.بلکې داهل سُنت دعقيدې مطابق دټولو صحابه کراموﷺ داحترام لحاظ وساتل شي.

حضرت علي رضي الله عنه دې دهغه په دورخلافت کې دټولو صحابه کراموﷺ دسرتاج وګڼل شي اوپه دې سلسله کې که چېرې څه اشکال مخې ته راشي نوهغه دې دخپلې پوهې قصور و ګڼل شي. ددې اکابرو په حق کې دې خُله نه پرانستل کيږي. خو که چېرې يو سړی د روافضو او خوارجو پشان داهل سُنتو تحقيق صحيح نه ګڼي اوپخپل ګمان کې هغه خپل ځان دټولواکابرونه زيات محقق ګڼي.دهغه له پاره دا تقرير کافی نه دی خو الله دی نکوي چې موږ اوتاسو دا لاره اختيارکړو دې بې تکلفه وړنديز نه وروسته اوس زه ستاسوچې ليکل شوو خبرو مختصرڅه ليکم:

(۱) دميراث دطلب په باره کې ما دوه ځوابونه درکړي وو. يودا چې داحضرات.دحضرت صديق رضي الله عنه دفيصلې نه مطمئن شوي وو. ځکه چې هغه پخپله هم حديث" لانورث ما ترکناه صدقة" روايت کوي، زماپه نزدهم داتوجيه راجح ده او درواياتو له کومو الفاظو چې ددې خلاف معلوميږي ،هغه دتاويل لايق(وړ)دي په دويم ځواب کې چې دبخاري دحاشې په حواله شوی ؤ چې که چېرې دا فرض شي چې دا حضرات.دحضرت ابوبکرصديق رضي الله عنه د رايې سره متفق نه شو. بيا هم دهغوی په موقف باندې څه علمي اشکال نشته. بلکې دا دحديث دتوجيه اود تاويل اختلاف دی او دا د بد رد ويلو ځای نه دی. دقران او دحديث په پوهيدو کې دمجتهدينو درايې اختلاف کله هم دبد ويلو ځای نه دی ګڼل شوی، دحديث په

مطلب کې که چېرې دې حضراتو ته دحضرت ابوبکر رضی الله عنه سره اختلاف وي او په دی سلسله کې دشکایت موقع هم راغلې وي. نو دا ددې حضراتو خپل مینځ کې معامله وه. ما او تاسو ته په دوی کې دیو فریق نه دشکایت کولو څه حق دی. سره له دې چې هغوی په خپل مینځ کې خوا ږه وو.

(٢) داهل سُنت دعلماوو په نزد دحضرت فاطمه رضی الله عنها دخفه کیدو روایت د راوي تعبیر دی.

حافظ رحمة الله علیه دعمربن شبه روایت نقل کړی دی. **فلم تكلمه في ذالك المال**" چې حضرت فاطمې رضی الله عنها له حضرت صدیق اکبر رضی الله عنه سره ددې مال په باره کې بیا خبرې ونکړې، دا خبرې نه کول خفګان وګنل شو او بیا امام بیهقي رحمة الله علیه دامام شعبي رحمة الله علیه نه په صحیح سند سره نقل کړي دي، چې حضرت صدیق اکبر رضی الله عنه دحضرت فاطمې رضی الله عنها عیادت(دناروغی پوښتنې) له پاره ورغی او هغه یې راضي کړه.

دا دواړه حضرات، خوپخپل مینځ کې راضي شول او الله تعالی هم د دواړو نه راضي شو، (رضي الله عنهما) اوس که چېرې شیعه ګان دا رضامندي نه مني او دحضرت صدیق اکبر رضی الله عنه نه راضي نه وي. ایا مور او تاسو درسول الله صلی الله علیه وسلم دزړه له تکړې(ټوټې) نه خفه شو. نو ددې نقصان به دچاوي؟ زموږه یاددې بزرګانو؟ اوکه چېرې دا فرض شي چې هغه ترې دمرګه پورې خفه وه. نو دهغې دا خفګان هم دالله له پاره و، هغې د حضرت ابوبکر رضی الله عنه دتاویل سره اختلاف و، اګرچې دهغې رایه دحضرت ابوبکر رضی الله عنه په مقابله کې مرجوحه وه. مګر دا دهغې اجتهادو اوهغې چې څه وکړل. یواځې دالله درضا له پاره یې کړي دي. بل خواحضرت ابوبکر رضی الله عنه هم چې کوم موقف اختیار کړی و. هغه هم یواځې دالله درضاله پاره و. ما وراندې ویلي و، چې د رایې اختلاف دمخلصینو په مینځ کې هم کیدای شي او شوي دي.

(٣) "إن فاطمة أرسلت" کې د(ارسلت) لفظ دې دمعروف په صیغه سره ولوستل شي. یعنې حضرت فاطمې رضی الله عنها حضرت علي رضی الله عنه حضرت ابوبکر رضی الله عنه ته ور ولیږه

(۴) حضرت علي رضی الله عنه ته خپل ذاتي وجاهت هم حاصل و، خودحضرت ابوبکرصدیق په رضی الله عنه مخکې هغه مغلوب و. لکه څنګه چې دسپوږمۍ په مخکې ستوري مغلوب وي، خو دحضرت فاطمې رضی الله عنها په ژوندکې یې دوه قسمه عزت حاصل و. دهغې له وفات نه وروسته دا دویم وجاهت پاتې نشو او په قدرتي طورسره دحضرات شیخینورضي الله عنهما په موجودګي کې ده طرف ته دخلکورجوع کمه وه. له دې نه داګنل چې دصحابه ورضی الله عنهم په نظرکې دهغه څه قدرپاتې نه شو. دا غیرمنطقي خبره ده. چې کله حضرت ابوبکر رضی الله عنه هغه ته دومره اهمیت ورکړ، چې پخپله دهغه کورته ورشي. نو دهغه دعظمت او وجاهت له پاره دبل دلیل ضرورت نشته. ایا دحضرت صدیق اکبر رضی الله عنه ددې کار نه وروسته هم ما او تاسو ته حق حاصلیږي، چې دحضرت ابوبکر رضی الله عنه په حمایت کې دحضرت علی رضی الله عنه بې عزتي وکړو؟

(۵) دحضرت ابوبکر رضی الله عنه سره دخلافت بيعت په ثقيفه بني ساعده کې سمدستي شوی و او په دې سلسله کې حضرت علي رضی الله عنه اود بنوهاشم د نورو مشرانو سره دمشورې موقع نه وه پيداشوې چې په دې سره هغوی ته طبعي خفګان و. دې مشرانوته په دې باندې اعتراض نه و. چې حضرت ابوبکر رضی الله عنه ولې خليفه شو؟ البته دهغوی دوستانه ګيله وه چې دنبي عليه السلام کورنۍ دومره بې اهميته ولې وګڼل شي. چې له دوی نه دې مشوره هم وانه خستل شي. يو خودنبي عليه السلام دوفات دپېښې له وجې نه. دويم دحضرت فاطمې رضی الله عنها دناروغۍ له وجې نه او دريم ددې غم له وجې نه به اکثر وخت حضرت علي رضی الله عنه په يواخې والي کې اوسيده اودحضرت ابوبکر رضی الله عنه نه به په ډېره کرځيده. دحضرت فاطمې رضی الله عنها په ژوندکې به هم خلکودا خفګان محسوساوو. خو دحضرت فاطمې رضی الله عنها دغم. دهغې دناروغي اودحضرت علي رضی الله عنه دمشغوليدو له وجې نه دخلکو همدردي له دوی سره وه. دحضرت فاطمې رضی الله عنها له وفات نه وروسته په دې حالت کې بدلون ضروري و. د نورو حضراتو هم دا غوښتنه وه. چې دا دخفګان حالت ختم شي او پخپله حضرت علي رضی الله عنه هم دا غوښتل. خو کېدای شي هغه په انتظارکې و. چې دخفګان د ليرې کولو پيل له بل طرف نه وشي. اخرحضرت علي رضی الله عنه فيصله وکړه. چې ددې خفګان په ختمولو کې پخپله زه بايد وړاندې والی وکړم. ددې له پاره هغه حضرت ابوبکر رضی الله عنه ته خبر وليږه. چې هغه طرف ته تاسو اشاره کړې ده. کم نه کم دې ناکاره ته په دې کې داسې څه خبره په نظر نه راځي چې هغه د اعتراض وړ وګرځول شي.
دانساني نفسياتو دمطالعې نه واضحه کيږي. چې په داسې کارونو کې خفګان اوشکايت يوفطرتي خبره ده اودحضرت علي رضی الله عنه ددې حالت په ختمولوکې وړاندې والی کول. ددې ناکاره په نزد خودهغه ډېرلوی فضيلت دی اوپخپله حضرت ابوبکر رضی الله عنه هم هغه ته دمجبوري پيغور نه دی ورکړی. کوم چې تاسو ورکوئ. بلکې څنګه چې په دې روايت کې دي چې دحضرت علي رضی الله عنه تقرير اوريدو سره حضرت ابوبکر رضی الله عنه په ژړا شو ګويادهغه طبعي شکايت او خفګان يې قبول کړ. له ددې نه وروسته. ايازما او ستاسو له پاره به دا جائزوي چې دا واقعه هم (نعوذبالله) ددې مشرانو د عيبونو په فهرست کې شامله کړو او د دوی متعلق خوله پرانيزو؟ نه! بلکې زموږ فرض. خو دابنودل شوي دي چې موږ دا ووايو:

رَبَّنَا اغْفِرْ لَنَا وَلِإِخْوَانِنَا الَّذِينَ سَبَقُونَا بِالْإِيمَانِ وَلَا تَجْعَلْ فِي قُلُوبِنَا غِلًّا لِلَّذِينَ آمَنُوا رَبَّنَا إِنَّكَ رَءُوفٌ رَحِيمٌ ○

(۶) او پاتې شود ستاسو داخبره چې حضرت عمر رضی الله عنه بې په دې موقعه باندې له ورتلونه ولې منع کړ؟ په دې باره کې ګذارش دی چې دحضرت عمر رضی الله عنه فضائل او مناقب حضرت علي رضی الله عنه زما اوستانه زيات پيژندل. دحديثو په کتابونو کې چې دحضرت عمر رضی الله عنه کوم فضائل او مناقب دحضرت علي رضی الله عنه نه نقل دي په دې سلسله کې دهغو مطالعه کافي ده.

په دې موقعه باندې حضرت علي رضی اللہ عنہ خپل خفګان او شکايت ښکاره کاو. هغه دحضرت ابوبکر رضی اللہ عنہ دصبراو زغم نه خبرو. خکه هغه ته يقين و. چې ابوبکر رضی اللہ عنہ به زما شکايت واوري اوله صبرسره به ځواب راکړي اواوښکې به تويې کړي اوکه بل څوک ورسره وي .نو دشکايتونو په ځواب کې به هغه هم دشکايتونو دفتر پرانيزي اوخبره به شخړې ته ورسيږي. ځکه هغه غوښتنه وکړه چې يواځې راشي.

ددې له پاره چې دکومو دوو کسانو معامله ده هغه به دننه په کورکې يواځې ختمه کړي. د دريم کس د مداخلې ضرورت به نه وي. حضرت عمر رضی اللہ عنہ هغه د راتلونه نه و منع کړی. بلکې حضرت ابوبکر رضی اللہ عنہ ته يې د بڼ حې ورتلو وړانديز کړی و اوپه دې دواړوتعبيرونوکې دځمکې اوداسمان فرق دی اوکه چېرې بالفرض هغه حضرت عمر رضی اللہ عنہ منع کړی هم وي. بياهم څه د اعتراض خبره نه ده. نه له دې نه دحضرت عمر رضی اللہ عنہ دفضيلت اومنقبت او اهميت انکار لازميږي.د حضرت عمر رضی اللہ عنہ فضيلت منل شوی دی. خو چې کله دهغه نه څه ګيله اوشکايت نشته .که چېرې دده مداخلت دمصلحت په اساس ښه ونه ګڼل شو. نو ما اوتاته به څه شکايت وي؟ بياد حضرت عمر رضی اللہ عنہ طبعي سختي خومثالي ده. په دې موقعه باندې که هغه وای،نو ممکنه وه چې دعلي رضی اللہ عنہ کوم شکايت يې غلط ګڼلی وای اوپه سختئ سره يې دهغه تر ديد کړی وای اوخبرو اترو به مصلحت په ځای دمناظرې صورت اختيار کړی و. نوله دې وجې نه دحضرت عمر رضی اللہ عنہ دانتهايي ټينګار سره سره حضرت ابوبکر رضی اللہ عنہ هغه له ځان سره بو ول مصلحت ونه ګڼل او ددې مثال د ثقيفه بني ساعده واقعه ده.چې هلته هم حضرت ابوبکر رضی اللہ عنہ پخپله تقرير کول غوره وګڼل. حضرت عمر رضی اللہ عنہ ته يې دتقرير اجازه ورنکړه. ځينې وخت کې يوه خبره بالکل حقه وي. خو دبيان په انداز کې دسختي کولو په وجه دهغې فائده کمه شي. دمصالحت په موقعو کې که سړی پوره تلل شروع کړي، نوکله هم صلح نه کيږي، ځينې وخت معمولي خبره باندې جوړه شوي خبره ورانه شي. په هرحال په داسې مصالحتي وختونوکې د دريم کس راتلل نه حضرت علي رضی اللہ عنہ ښه وګڼل او نه حضرت ابوبکر رضی اللہ عنہ. له دې نه که چېرې موږ دا نتيجه وا نه خلو. چې ددې اکابرو دحضرت عمر رضی اللہ عنہ نه نفرت و. يادهغوی په نظرکې دده هيڅ اهميت نه و.

(۷) تاسو دحضرت علي رضی اللہ عنہ دا قول نقل کړی دی چې"دخپلوي په وجه هغه خلافت خپل حق ګانه. دا فقره کېدای شي تاسو دحضرت علي رضی اللہ عنہ دهغه تقرير نه اخستی وي کوم چې هغه دابوبکر رضی اللہ عنہ په مخکې کړی و. چې دهغه پوره متن په لاندې ډول دی:

**فتشهد علیّ ابن ابی طالب ثم قال: إنا قد عرفنا یا أبا بکر فضیلتك وما أعطاك الله ولم ننفس علیك خیرًا ساقه الله إلیك ولکنك إستبددت علینا بالأمر وکنا نحن نری لنا حقا لقرابتنا من رسول الله ﷺ فلم یزل یکلم أبا بکر حتی فاضت عینا أبي بکر .(صحیح مسلم جلد۲صفحه۹۱)**

ترجمه: حضرت علي رضي الله عنه د حمد او صلاة نه وروسته وويل چې: اې ابوبكر! ستاسو د فضيلت او كوم څه چې الله تاسو ته دركړي دي موږ د هغه اعتراف كوو او په دې خبرباندې زموږ له تاسره څه حسد نشته كوم چې الله تعالى تاسو ته دركړي دي، خو زموږ ګيله ده چې تاسو زموږ نه پرته معامله فيصله كړه او زموږ خيال دا و چې د نبي عليه السلام د خپلوۍ په اساس باندې موږ هم په دې معامله كې څه حق لرو، حضرت علي رضي الله عنه د حضرت ابوبكر رضي الله عنه سره خبرې كولې تردې چې د حضرت ابوبكر رضي الله عنه د سترګو نه اوښكې وبهيدلې.

د حضرت علي رضي الله عنه په دې خطبه كې څه داسې خبره نشته چې د هغې مطلب دا وي. چې هغه خلافت يواځې خپل حق ګڼلو. بلكې د دې صحيح مطلب دا دی چې زموږ خيال دا و چې دا معامله به زموږ نه پرته نه فيصله كيږي. د نبي عليه السلام د خپلوۍ په وجه سره به په دې سلسله كې موږ سره هم ضرور مشوره وكړل شي. خو تاسو معامله زموږ نه پرته فيصله كړه او موږ ته مو د مشورې وركولو موقعه رانكړه، څنګه چې امام نووي رحمه الله د دې حديث په شرحه كې ليكي:

**وكان سبب العتب أنه مع وجاهته وفضيلته فى نفسه فى كل شيء وقربه من النبي صلى الله عليه وسلم وغيرذالك رأى انه لايستبدا بأمرإلابمشورته وحضوره وكان عذر أبي بكر و عمر و سائرالصحابة واضحا لأنهم راؤا المبادرة بالبيعة من أعظم مصالح المسلمين وخافوا من تأخيرها حصول خلاف و نزاع تترتب عليه مفاسد عظيمة الخ.** (شرح مسلم جلد ۲ صفحه ۹۱)

ترجمه: د حضرت علي د خفګان او شكايت سبب دا و چې د خپل ذاتي وجاهت او په هره معامله كې خپل فضيلت او د نبي كريم صلى الله عليه وسلم سره د خپلې خپلوۍ او د نورو كارونو په اساس باندې هغه دا ګڼل چې د خلافت كار به زموږ د مشورې او د حاضرۍ نه پرته نه فيصله كيږي. بل خوا د حضرت ابوبكر، حضرت عمر او د نورو صحابه كرامو رضي الله عنهم عذر واضحه دی، چې هغوی د بيعت په معامله كې بيړه كول د مسلمانانو د ټولو نه لوی مصلحت وګڼه او د دې په وروسته كيدو كې د خلاف او د جګړې د راپورته كيدو خطره وه. چې په هغه باندې ډيرو عظيم فساد مرتب كيدل و.

غرض دا چې حضرت علي رضي الله عنه په خپل تقرير كې چې كوم حق ذكر كوي د دې نه دا مراد نه دی چې هغه خپل ځان د خلافت په باره كې د ابوبكر رضي الله عنه نه زيات حقدار ګڼه. بلكې د دې حق نه مراد د رايې وركولو حق دی او په دې كې څه شك دی چې هغه د خپل حيثيت او مرتبې په وجه د خلافت په كاركې د رايې وركولو زيات حقدار و او د هغه دا شكايت په خپل ځای باندې صحيح و، چې د ده نه ولې مشوره وانه خستل شوه. هم دا وجه ده چې حضرت ابوبكر رضي الله عنه د هغه د دې شكايت ترديد ونكړ، بلكې خپل عذر يې وړاندې كړ، په هرحال د حضرت علي رضي الله عنه د دې فقرې نه د خلافت د حقدار كيدو دعوه يا خوشيعه ګانو وګڼله او د دې په بنياد يې حضرات شيخين او نور صحابه كرام رضي الله عنهم د ملامتيا نښه جوړ كړل، ايا بيا تاسو

هم دا نظریه سرچپه استعمال کړه او دا مو دحضرت علي رضي الله عنه په عیبونوکې شامل کړل. اهل سنت ددې فقرې هما غه مطلب ګڼي کوم چې پورته دامام نووي رحمه الله په عبارت کې تیرشو.

(۸) ستاسو دې فقره باندې زه پوه نه شوم چې:

ایاددې مقصد دحاصلولو له پاره دصفین جنګ قائم نکړل شو؟------ عراقیان او عجمیان کوموته چې شیعان علي رضي الله عنه وویل شو، د شامیانو اوعربوسره څه له پاره په جنګ شو. هغه هم په داسې وخت کې چې دامیرمعاویه رضي الله عنه د رومیانو سره جنګ و.

اهل حق حضرت علي رضي الله عنه دهغه په دور خلافت کې په حقه خلیفه اوخلیفه راشدمنلی دی اوداخبره دنبي کریم صلی الله علیه وسلم د ډېرو ویناوو په بناء باندې داهل سنتو په عقائدو کې داخله ده. په دې وجه همېشه اهل سنت حضراتو ددې صحابه کراموﷺ عذر واضح کړی دی. کوم چې دحضرت علي رضي الله عنه په مقابل کې په صف کې ولاړ وو. خو ستاسو دتحریرنه ظاهرېږي چې نعوذبالله حضرت علي رضي الله عنه ظالم خلیفه و، چې هغه د اقتدارپه وجه په زرګونو مسلمانان مړه کړل، ګویاتاسو هم دحضرت علي رضي الله عنه دخلافت نه انکار کوئ. له دې نه وړاندې هم تاسوپه دې ویلو سره تقریبًا تصریح کړې ده چې:

"څومره پورې چې زماحافظه کارکوي، دې صاحب او دتاریخ اسلام مولف نجیب خیرابادي هم دحضرت علي رضي الله عنه خلافت نه دی تسلیم کړی. بلکې ددرې واړو دخلافت دحالاتو لیکلو نه وروسته یې باب په دې عنوان سره قائم کړی دی. "حضرت علي رضي الله عنه دکوفې د ګورنر په حیث،

که چېرې تاسوداهل سنت دعقیدې په خلاف حضرت علي رضي الله عنه خلیفه راشده نه تسلیموئ، نوماته په جنګ صفین وغیره کې دحضرت علي رضي الله عنه د موقف په باره کې هیڅ ویل نه دي پکار، بلکې پخپله په دې مسئله باندې خبرې پکاردي چې داهل سنتو عقیده او نظریه صحیح ده، که (نعوذبالله) غلطه ده؟ خو که چېرې تاسوداهل سنتو عقائد اونظریات حق ګڼئ اودهغه مطابق حضرت علي رضي الله عنه خلیفه راشده منئ، نوتاسو پخپله انصاف وکړئ. چې خلیفه راشد ته دبغاوت ښکاره کیدو په صورت کې څه کول پکار و.

څوپورې چې دعراقیانو اوعجمیانو دشامیانو اوعربوسره دجنګونوخبره ده، دادعراقي اوشامي اوعربي فرق دحضرت علي رضي الله عنه په ذهن کې نه و. دهغه په وړاندې یواځې دمُنونکو اونه منونکو سوال و، هغه که هرڅوک و. دهغه نه دشامیانو دشامي کیدو اودعربو دعربي کیدو په وجه دهغوی نه څه نفرت و اونه یې دعراقیانو اوعجمیانو سره یواځې دهغوی په عراقي اوعجمي کیدو باندې څه محبت و. هم دا تفریق دجاهلیت عصبیت دی چې داخوزمااوستاسوپه ذهن کې راتلای شي، خو دحضرت علي رضي الله عنه لمن اوذهن په دې داغونو باندې ککړ نه و، هغه یقیني خلیفه راشد و. ددوی په حمایت کې صحابه هم وو او تابعین هم، عرب هم وو او عجم هم "دشیعان علي" اصطلاح دهغه دزمانې څخه نه ده. بلکې دا د

وروسته پیداوار دی حضرت علي رضي الله عنه چې کوفې ته لاړ هلته یې د کورنري منصب نه و سنبال کړی، بلکې د مدیني نه د خلیفه په حیث تللی و او مهاجرینو او انصارو د هغه سره د خلافت بیعت کړی و .بلکې حضرت عمر رضي الله عنه چې کوم شپږ اکابر د خلافت له پاره ټاکلي و په هغو کې یوائې د حضرت عثمان رضي الله عنه او د حضرت علي رضي الله عنه نومونه باقي پاتې شوي و او د حضرت عثمان رضي الله عنه له شهادت نه وروسته هغه پخپله د خلافت مستحق پاتې شو .څکه دا ویل به بې ځایه نه وي چې حضرت علي رضي الله عنه پخپله د حضرت عمر رضي الله عنه مقرر شوی خلیفه و .[1]

(۹) تاسو دا شک هم کړی و چې حضرت علي رضي الله عنه د حضرت عثمان رضي الله عنه د قاتلانو نه بدله ولې وانه خستله ؟ او تا د هغه د غافل ثابتولو له پاره د قلم ډېر زور استعمال کړی دی . نن سبا دا شک په ډېرو عنواناتو سره بیابیا ویل کیږي ماته په صفایي سره د دې اعتراف کول پکار دي چې څه موده زه پخپله د دې وسوسې تر یو حده پورې ناروغ وم. خو الحمدلله دا یوائې د وسوسې ترحده پاتې شوه .ماهیڅکله دا وسوسه په حضرت علي رضي الله عنه باندې د اعتراض ذریعه نه ده جوړه کړې او نه د دې په وجه د هغوی رضي الله عنه سره زما په محبت او عقیدت کې ذره برابر فرق راغی. بلکې چې کله هم یو داسې وسوسه راغلي ده ،نو فورا دا خیال هم راغلی دی چې حضرت علي رضي الله عنه د یرش کاله د نبي کریم صلی الله علیه وسلم په مجلس کې تیر کړي دي.چې هغه ته د پیغمبر په "ژبه" یحبّ الله ورسوله ویحبّه الله ورسوله.(صحیح بخاري و مسلم وترمذی

[1] وخلافتهم ای نیابتهم عن الرسول صلی الله علیه وسلم فی اقامة الدین بحیث یجب علی کافة الامم الاتباع علی هذا الترتیب ایضاًیعنی ان الخلافة بعد رسول الله علیه السلام لابی بکر ثم لعمر ثم لعثمان ثم لعلی،وذلک لان الصحابة قد اجتمعوا یوم توفی رسول الله صلی الله علیه وسلم فی سقیفة بنی ساعدة واستقر رأیهم بعد المشاورة والمنازعة علی الخلافة أبي بکر فأجمعوا علی ذلك وبایعه علي علی رؤس الأشهاد بعد توقف کان منه ولو لم تکن الخلافة حقا لما اتفق علیها الصحابة ولنازعه علي کما نازع معاویة ولاحتج علیهم لو کان في حقه نص کما زعمت الشیعة فکیف یتصور في حق أصحاب رسول الله صلی الله علیه وسلم الاتفاق علی الباطل أو ترك العمل بالنص الوارد ثم ان ابابکر لما ینس من حیاته دعا عثمان واملی علیه کتاب عهده لعمر فلما کتب ختم الصحیفة واخرجها الی الناس وامرهم ان یبایعوا لمن فی الصحیفة فبایعوا حتی مرت بعلی فقال: بایعنا لمن فیها وان کان عمر، وبالجملة وقع الاتفاق علی خلافته ثم استشهد عمروترک الخلافة شوری بین ستة عثمان وعلی وعبدالرحمن بن عوف وطلحة وزبیر وسعد ابن ابی وقاص رضی الله عنهم اجمعین ثم فوض الامر خمستهم الی عبدالرحمن بن عوف ......ورضوا بحکمه فاختار عثمان وبایعه بمحضر من الصحابة فبایعوه وانقادوا لاوامره وصلوا معه الجمع والاعیاد فکان اجماعاً ثم استشهد وترک الامر مهملاً فاجمع کبارالمهاجرین والانصار علی علی والتمسوا منه قبول الخلافة وبایعوه لما کان افضل اهل عصره واولاهم بالخلافة وما وقع من المخالفات والمحاربات لم یکن من نزاع فی خلافته بل عن خطا فی الاجتهاد وما وقع من الاختلاف بین الشیعة واهل السنة فی هذه المسئلة وادعاء کل من الفریقین النص فی باب الامامة وایراد الاسولة والاجوبة من الجانبین فمذکور فی المطولات (شرح عقائدص:۱۴۹، ۱۵۱)

مشکوة صفحه۵۶۲) یو ه اعلی درجه ورکړل شوې ده.چې هغه ته په سختو مسائلو کې دصحیح فیصله کولو سند په "أقضاهم عليّ" (ترمذي مشکوة صفحه۵۶۷) وینا سره ورکړل شو یاو اللّهم أدِرالحق معه حیث دَارَ ددعاء کولو سره حق له ده سره اودی یې له حق سره دائر او سائر کړ. هغه په علم او عقل ،دیانت او امانت. په طهارت او تقوا او دشریعت دمقاصدو په فهم او بصیرت کې خوزما نالائقه او بدکاره نه په هرحال بهتر دی.

واقعه دا ده چې دا ناکاره دا خیال هم گستاخي او بې ادبي گڼي او په هغه باندې سل ځله استغفار کوم چرته حضرت علي رضي الله عنه او چرته زما په شان کم علمه!

"چه نسبت خاك را با علم پاك"

هغوی چې په کامل علم او تقوا سره په پوره ویرې او رجوع سره اودالله او درسول دمحبت او محبوبیت دصفت سره چې څه کړي دي هغه به عین دشریعت او دتقوا دغوښتنې مطابق وي او که دهغه دا موقف زما نالائقه په پوهه کې رانشي. نو دا په هغه باندې د اعتراض موجب نه دی، بلکې خپله ناپوهي دماتم او افسوس لایقه ده.غرض دا چې دا وسوسه مې همېشه خپله نالایقي او ناپوهي گڼلې ده تردې چې دالله تعالی درحمت لایق شوم اوله دې وسوسې نه یې نجات راکړ.فله الحمدوله الشکر.

ددې اعتراض حل دادی چې کوموخلکودمظلوم خلیفه حضرت عثمان شهید رضي الله عنه خلاف حمله وکړه اودهغه ځای یې محاصره کړ. داسلامي فقې مطابق دهغوی حیثیت د باغیانو و. بیا دهغوی دوه قسمونه وو.یوهغه خلک وو چې حضرت عثمان رضي الله عنه یې شهید کړ اوخپله دنیا او آخرت یې برباد کړل او دویم هغه خلک وو چې دهغوی عمل دمحاصرې پورې محدود پاتې شو.

په اوله فرقه کې شپږنومونه ذکرکیږي.(۱) محمدبن ابی بکر رضي الله عنه(۲) عمروبن حمق رضي الله عنه.(۳) کنانه بن بشیر،(۴) غافقي، (۵) سودان بن حمران(۶) کلثوم بن تجیب.خو دعثمان رضي الله عنه په قاتلانوکې د لومړنیو دوو کسانو نومونه اخستل بیخي غلط دي. ځکه چې دمحمدبن ابی بکرپه باره کې. خوتصریح موجود ده چې کله هغه دحضرت عثمان رضي الله عنه کریوان ته لاس واچاو او حضرت عثمان رضي الله عنه ورته دا وفرمایل چې"ورازه" که چېرې ستاپلار ژوندی وای اوهغه داحرکت لیدلی وای. نوهغه به دا نه وخوښ کړې. نو دی شرمنده شو او وروسته شو.له دې نه وروسته نه یوازې دا چې پخپله په قتل کې شریك نه شوبلکې دنورو دمنع کولو کوشش

يې هم وکړ[۱] او حضرت عمرو بن حمق رضي الله عنه صحابي دی[۲] او علماي اهل سنت تصريح کړی ده چې صحابه کرامو رضي الله عنهم نه هيڅوک په دې ګناه کې نه وو شريک شوي.[۳]
له دې نه معلومه شوه چې محمد بن ابی بکر رضي الله عنه او عمرو بن حمق رضي الله عنه د قاتلانو په فهرست کې شاملول صحيح نه دي، پاتې شو څلور کسان په دې کې دا اخري ذکر شوي دوه کسان په عين موقع باندې د حضرت عثمان رضي الله عنه د غلامانو د لاسه قتل شول[۴]، اوس يو اځې دوه کسان پاتې شو، کنانه بن بشير او غافقي، دا دواړه په دې وخت باندې وتبنتيدل وروسته دوی هم قتل شو[۵] همدارنګه د حضرت عثمان رضي الله عنه په قاتلانو کې يو کس هم د هلاکت نه بچ نه شو. پاتې شو هغه خلک چې د هغوی عمل محاصرې پورې محدود و او هغوی لاسونه د عثمان رضي الله عنه په وينو نه و رنګ شوي، د هغوی حيثيت د باغيانو و او حضرت عثمان رضي الله عنه پخپله هم تر اخري وخته پورې د هغوی خلاف د توري پورته کولو اجازه ورنه کړه[۶] او د حضرت عثمان رضي الله عنه د شهادت نه وروسته چې کله حضرت علي رضي الله عنه خليفه شو، نو هغوی د نوي خليفه اطاعت وکړ، له تسليميدو او اطاعت نه وروسته يو اځې د بغاوت په جرم د چا د قتلولو څه شرعي جواز نشته.

---

[۱] والصحيح أن الذي فعل ذلك غيره، وأنه استحى ورجع حين قال له عثمان: لقد أخذت بلحية كان أبوك يكرمها. فتذمم من ذلك وغطى وجهه ورجع وحاجز دونه (البداية والنهاية ج:۷، ص:۱۸۵) وايضاً ودخل محمد ابن أبي بكر يأخذ بلحيته، فقال مهلا يا ابن أخي، فوالله لقد أخذت مأخذا ما كان أبوك ليأخذ به، فتركه وانصرف مستحييا نادما، فاستقبله القوم على باب الصفة فردهم طويلا حتى غلبوه.....الخ (البداية والنهاية ج:۷، ص:۱۸۴، صفة قتله رضي الله عنه، طبع دارالفكر، بيروت)

[۲] عمرو بن الحمق بفتح اوله وكسر الميم بعدها قاف ابن كاهل.... قال ابن السكن: له صحبة، وقال ابوعمر: هاجر بعد الحديبية وقيل بل اسلم بعد حجة الوداع، والاول اصح (الاصابة فى تمييز الصحابة ج:۲، ص:۵۳۲، ۵۳۳ القسم الاول، طبع دار صادر، بيروت

[۳] اعلم! ان قتل اميرالمؤمنين عثمان رضى الله عنه من اكبر الكبائر، فانه امام حق.....ولم يدخل احد من الصحابة رضوان الله عليهم اجمعين فى قتله ولم يرض به احد منهم ايضاً بل جماعة من الفساق اجتمعوا كاللصوص (فواتح الرحموت شرح مسلم الثبوت ص:۴۴۴، طبع نولكشور لكهنؤ) وايضاً وأما ما يذكره بعض الناس من أن بعض الصحابة أسلمه ورضي بقتله، فهذا لا يصح عن أحد من الصحابة أنه رضي بقتل عثمان رضي الله عنه، بل كلهم كرهه، ومقته، وسب من فعله. (البداية والنهاية ج:۷، ص:۱۹۸، طبع دارالفكر، بيروت)

[۴] ثم تقدم سودان بن حمران بالسيف، فجاء غلام عثمان فضرب سودان فقتله، (البداية والنهاية ج:۷، ص:۱۸۸) ..... حتى استلب رجل يقال له كلثوم التجيبي، ملاءة نائلة، فضربه غلام لعثمان فقتله، (البداية والنهاية ج:۷، ص:۱۸۹)

[۵] ...... وقد أقسم بعض السلف بالله إنه ما مات أحد من قتلة عثمان إلا مقتولا. رواه ابن جرير (البداية والنهاية ج:۷، ص:۱۸۹)

[۶] ازالة الخفاء ج:۱، ص: ۲۴۳

په (البحر الرائق جلد ۵ صفحه ۱۵۳) کې دي: وفي المحيط قال الباغي: تبت، والقى السلاح كف عنه، لأن توبة الباغي بمنزلة الإسلام من العربي في افادة العصمة والحرمة.
ترجمه: او په محيط کې دي چې کله باغي ووايي چې زه توبه کوم او وسله وغورځوي. نو هغه نه دې لاس بندکړل شي(هغه دې نه قتليږي)، ځکه چې څنګه حربي کافر د اسلام راوړلو نه وروسته د هغه وينه محفوظه شي. همدارنګه د باغي توبه کولو نه وروسته د هغه ځان او مال محفوظ شي.
د اطاعت او تسليميدو نه وروسته که چيرې حضرت علي رضي الله عنه د دې باغيانو سره څه مقابله ونکړه، نو دا د شرعي قواعدو سره عين مطابق و. ياد ساته چې دلته يوازې د حضرت علي رضي الله عنه د موقف وضاحت کوم چې کوموقاعدو سره عين وضاحت کوم چې کومو لويو صحابه وو د قصاص مطالبه کوله. هغوی هم د خپل علم، اجتهاد او فهم وبصيرت مطابق خپل موقف په حقه ګڼله . هغوی د الله په نزد پخپل اجتهاد باندې د عمل کولو مکلف وو ،د هغوی د موقف د وضاحت دا موقعه نه ده.
او په هغوی باندې نکته چيني په اصل کې د باغيانو د احکامو د نه پيژندلو وجه ده. او ستاسو دا فقره چې "وقتی هيريدل او اجتهادي غلطي به اخر تر کومې پورې وي".په دې موقع باندې قطعا بې ځايه ده .حضرت علي رضي الله عنه په دې سلسله کې نه څه غفلت وکړ او نه هغه څه اجتهادي غلطي وکړه، بلکې په پوره بيداري سره يې په دې سخته او پيچيده مسئله کې صحيح د شريعت د منشاء مطابق عمل وکړ.
(۱۰) تاسو د حضرت عقيل رضي الله عنه د حضرت معاويه رضي الله عنه سره يوځای کيدل د حضرت علی رضي الله عنه د تدبر د نشتوالي دليل ګرځولی دی او د دې خيال اظهار موکړی دی چې يو سړی خپل سکه ورور پخپل موقف باندې قايل نه کړای شي د هغه به څه تدبير وي. تاسو به دا لطيفه اوريدلي وي چې يو صاحب(ماته يې په نوم کې شك دی او کتاب مې دا وخت مخې ته نشته) به خوراك د حضرت معاويه رضي الله عنه په دسترخوان باندې کاو او لمونځ به يې حضرت علی رضي الله عنه پسې کاو ،د دې وجې پوښتنه ترې وشوه، نو ويې ويل:"خوراك د هغه مزيدار وي او لمونځ د ده".[1]
واقعه دا ده چې حضرت علي رضي الله عنه د بيت المال په معامله کې ډېر محتاط و او حضرت معاويه رضي الله عنه په دې سلسله کې ډېر د فراخه زړه والا و .حضرت علي رضي الله عنه په زهد او تقوی کې

[1] وعن أبي رافع قال: كان أبو هريرة رضي الله تعالى عنه يأكل على سماط معاوية ويصلي خلف علي ويجلس وحده. فسئل عن ذلك فقال: طعام معاوية أدسم، والصلاة خلف علي افضل، وهو أعلم والجلوس وحدي لي أسلم(المستطرف ج:۱،ص:۲۸۶طبع داراحياء التراث العربي،بيروت)

دحضور اکرم ﷺ او دشیخینو رضي الله عنهما په نقش قدم باندې و او دهغه په لوړ معیار باندې پوره راتلل دبل چادوس خبره نه وه، ځکه دحضرت عقیل رضي الله عنه خپل سکه ورور پرېښودل او حضرت معاویه رضي الله عنه ته ورتلل دحضرت علي رضي الله عنه په فضائلو کې شامل پکار دي چې دهغه دتقوا د لوړ معیار سره چلیدلو نه دهغه سکه ورور هم قاصرو [۱]. خو څنګه چې دکوم شخصیت سره د الفت او محبت رشته پاتې نشي دهغه ښه خوبونه هم عیبونه په نظر راځي. عربي شاعر صحیح ویلي دي : وعین الرضا عن کل عیب کلیلة ولکن عین السخط تبدی المساویا

(۱۱) اموي او عباسي دورکې وخت په وخت چې کومې علوي او عباسي جګړې کیدې، تاسو هغه هم دعلي رضي الله عنه په عیبونو کې ذکر کړي دي. پرته له دې چې ددې "جګړو" منشاء څه وه؟ په دوی کې څوک په حقه و او څوک په ناحقه؟ اودا چې دهغه وخت دامت مشرانو دې جنګونو په باره کې څه ویلي وو؟ زه تاسو نه په دې پوښتنه کولو کې ګستاخي کوم. چې تاسو داجنګونه دحضرت علي رضي الله عنه خلاف په فرد جرم کې څنګه شامل کړل؟ ایا دوروسته خلکو د قول اوفعل که چېرې هغه په ناحقه وي ذمه واري به هم په حضرت علي رضي الله عنه باندې وي؟ که چېرې دیوشخصیت زموږ په زړه کې خدای مه کړه څه خبره وي، نوهغه چې کوم ګناهونه نه وي کړي، ایاهغه دده په کاته (حساب) کې اچول پکار دي؟

(۱۲) تاسو لیکلي دي: "په دې کې شک نشته چې شاه ولي الله په ازالة الخفا کې دحضرت علي رضي الله عنه بې شماره مناقب بیان کړي دي، (سره له دې چې ابوبکر رضي الله عنه ، عمر رضي الله عنه اودعثمان رضي الله عنه په دورخلافت کې چې اسلام نه کومه ترقي حاصله شوه، دحکومت طریقه ، معاشرت ، غرض دا چې هرقسمه تفصیل کوم چې هغه لیکلي دي) له دې نه پرته یې نور هم څه لیکلي دي؟ بیاشاه ولي الله رحمه الله اکثرد" ریاض النضرة للمحب الطبری" نه اخستي دي چې هلته ډېرزیات موضوعي اوضعیف روایتونه پکې ذکردي".

دا ناکاره ګندذهن دجناب ددې فقرې دمقصد پوهیدونه قاصردی. شاید چې تاسو داسې ویل غواړئ چې حضرات خلفاء ثلاثه (رضی الله عنهم) دور داسلام دخدماتونه ډک دی، مګر د حضرت علي رضي الله عنه خانه دخدماتو نه بالکل خالي ده. دهغه تله کې پرته دفضائلو اومناقبونه بل څه نشته اودهغه دفضائلو اومناقبو روایتونه هم زیات ترمحب طبري نه نقل شوي دي. له دې وجې نه هغه موضوعي اوناقابل اعتبار حده پورې ضعیف دي، ګویادهغه دمناقبو موټرهم په موضوعي اومنکر روایتونوچلیږي که نه هغه په دې میدان کې هم تقریبا صفردی.

---

۱] عقیل ابن ابي طالب...... فقیل : إن معاویة قال له یوما : هذا أبو یزید لولا علمه بأني خیر له من أخیه لما أقدم عندنا . فقال عقیل : أخي خیر لي في دیني وأنت خیر لي في دنیاي وقد آثرت دنیاي وأسأل الله خاتمة خیر بمنه...الخ (اسدالغابة ج:۳،ص:۴۲۳)

پاتې شو دحضرت علي رضي الله عنه خدمات (دهغو خدماتو نه پرته کوم يې چې دنبي کريم ﷺ اودحضرات خلفاء ثلاثو رضی الله عنهم په مبارك دور کې کړې و) دهغه دخلافت دزمانې خدمات هم دامت له پاره د سلګونو نېک بختيو سرمايه ده. خو د زمانې درنګونو دمختلف کېدو په وجه سره دحضرت ابوبکر رضی الله عنه دخدماتو رنګ بېل دی دحضرت عمراو عثمان رضی الله عنهما دخدماتو رنګونه بېل او دحضرت علي رضی الله عنه دخدماتو رنګ بېل دی. ددې اُمورو دتفصيل له پاره حجة الإسلام مولانامحمد قسم نانوتوي رحمه الله رساله "انتباه المؤمنين" مطالعه ډېره ګټوره ده. چې په هغې کې په تفصيل سره ښودل شوي دي. چې الله تعالی د څلورو خلفاو رضی الله عنهم نه په هريو کې هغه خصوصيات اېښي و چې هغو ته د دوی په دورخلافت کې ضرورت و. ددې ناکاره احساس دا دی اوانشاء الله دا احساس به غلط نه وي. که چېرې دحضرت عمر رضی الله عنه زمانه حضرت علي رضی الله عنه ته ورکړل شوې وای. نودهغه نه به هم هغه څه ظاهرشوي و کوم چې دحضرت عمر رضی الله عنه په لاس باندې وشول اوکه چېرې دحضرت علي رضی الله عنه زمانه حضرت عمر رضی الله عنه ته ورکړل شوې وای. نوده به هم هغه کړي و کوم چې حضرت علي رضی الله عنه وکړل. دفتنو نه ډکه زمانه کې چې هغه دکوم استقامت مظاهره وکړه اوقدم په قدم باندې دمشکلاتو او ازغوو سره سره چې هغه دشريعت په لاره په کوم مضبوطي سره روان و ، دهغه نه وروسته هيڅوک ددې مثال نشي وړاندې کولی. دا دهغه کمال دی چې په زرګونو خوبيانو باندې دپاسه دی بيادفتنې والوسره څه معامله پکارده؟ داعلم يواځې دحضرت علي رضی الله عنه په ذريعه امت ته حاصل شو. بې شکه دهغه خدمات دفتنو په ګرداوغبار کې پټ پاتې شوي دي. ځکه ښکاره ليدونکوته هغه په نظر نه راځي. خو داهم دخپل بصيرت قصور دی نه چې دحضرت علي رضی الله عنه دقاضي ابوبکربن العربي هغه فقره دې بيا وکتل شي چې هغه مې په دې سلسله کې مخکې نقل کړې ده.

اوکه چېرې دا فرض شي چې دهغه سره يواځې بې شماره فضائل او مناقب دي او نور څه نشته . بياهم زه تاسونه پوښتنه کول غواړم چې دخدماتو نه مقصد دالله په نزد دقرب نه پرته څه وي؟ اوهرکله چې دهغه نزديکت دالله په دربارکې پخپله نبي عليه السلام فرمايلی دی.نوتاسو به بې خدماتوته ګورئ. يادهغه دقرب او رضا اوچتودرجوته. کومې چې دنبي عليه السلام دښکاره قول نه ثابتې دي؟ غرض دا چې هرکله دخدماتومقصداوغرض نوموړي ته حاصل دی. نوته دخدماتو دتلاش په فکر کې ولې پريوځې؟

پاتې شوه ستاسو داخبره چې دمناقبو روايات چې په "ازالة الخفاء کې ذکرشوي دي. موضوعي ياضعيف دي اول خو دا خبره پخپله دحضرت شاه ولي الله صاحب رحمه الله دتصريح خلاف ده هغه فرمايي:

ترجمه: موږ له موضوعي حديثونو اوله داسې ضعيفو حديثونو.کوم چې د متابعاتواو شواهدو په کارنه راځي، دهغه د ذکرکولونه پرهيزکوو اوکوم چې دصحت اوحسن په مرتبه

کې دي یا قابل قبول ضعف لري هغه به روایت کوو.
له دې نه وروسته حضرت شاه صاحب رحمة الله عليه "من المتواتر" ویلو سره د بر حدیثونه ذکر کړي دي اوله دې نه پرته، خود مناقب علي له پاره مونږ ته د محب طبري په الرياض النضرة باندې دانحصار کولو ضرورت نشته، صحاح سته او نور مسانید او معاجم کې چې کوم روایات نقل شوي دي په هغه کې صحیح، حسن او مقبول حدیثونه هم څه کم نه دي. په شرط د دې چې زمونږ زړه په دې باندې راضي هم وي او د حدیثونو نه پرته د صحابه کراموعوم او د حضرات مهاجرینو اوانصاروخصوصا چې کوم فضائل په قران کریم کې ذکر شوي دي. ایا تاسو حضرت علي رضي الله عنه د هغه نه مستثنی ګڼي؟ بیا د کوم سړي چې فضائل الله تعالی او رسول الله صلی الله علیه وسلم بیان کړي وي ،په هغه باندې نکته چینی څنګه روا کیدای شي؟
(۱۳) تاسو پوښتنه کړې ده چې حضرت علي رضي الله عنه کسب معاش باندې توجه ولې ورنکړه، حالانکه رسول الله صلی الله علیه وسلم امت ته د دې ترغیب ورکړی دی حضرت علي رضي الله عنه ته دغریبي او فقر پیغور ورکول هم نن سبا د څه خلکو خوندناکه مشغله ده. ستاسو دا سوال هم غالبا د دغو خلکو د تاثر نتیجه ده، په دې باندې تفصیل سره دلیکلو ضرورت و ،مګر وخت د دې بار د اوچتولو وس نه لري ، مختصر دا چې کسب معاش د هریو له پاره یوشان حکم نه لري. د چا له پاره ضروري وي او د چا له پاره غیرضروري وي د دې له پاره د مرتبو اودرجو تفصیل د امام غزالي رحمة الله عليه او د نورو اکابرو په تصنیفاتو کې پیداکیږي،کوم حضرات چې د دیني خدماتو له پاره وقف دي او په کسب معاش کې د مشغولیدو سره په دې خدماتو کې نقصان راځي دهغو په کسب معاش کې مشغولیدل صحیح نه دي،پخپله نبي کریم صلی الله علیه وسلم اسوه حسنه زمونږ مخې ته ده.

چې دوه دوه میاشتې یې په نغري کې اور نه دی بل شوی، د دې سره سره د نبوت منصب سنبالولو نه وروسته نبي علیه السلام د کسب معاش هیڅ کله مشغله نه دا ختیار کړې اوس که چیرې یو سړی ستاسو ټوله فقره نقل کړي او د حضرت علي رضي الله عنه په ځای په دې کې د نبي کریم صلی الله علیه وسلم نوم مبارك ولیکي او ستاسو نه دا پوښتنه وکړي چې تاسو د حضرت علی رضي الله عنه په باره کې کړې ده، نوووایئ چې ستاسو ځواب به څه وي؟ نبي کریم صلی الله علیه وسلم چې هرکله (ستاد وینا مطابق) امت ته د کسب معاش ترغیب ورکاو، نو پخپله یې کوم کسب کاو؟ او په دې سوال کې که چیرې ستاسو دا فقره هم نقل کړل شي چې "کوم سړی چې د یوې بي بي کفالت نشي کولی او پخپله خپل کفالت هم نشي کولی نوایا ده ته هم اجازه شته چې په نکاح باندې دې نکاح وکړي؟" نو سوچ وکړه چې معامله به څومره نازکه او سخته شي. خصوصا هرکله چې دا هم راپیښه وي

چې دامهات المؤمنين د نفقې دغوښتنې واقعه نه يواځې په صحيح حديثونوکې بلکې په قران کريم کې هم ذکر شوې ده.[۱]

کسب معاش خودخپل ځان له پاره يادبال بچ له پاره ذ ضرورت په بناء باندې يوه مجبوري ده او دا پخپله څه کمال نه دی حضرت علي رضي الله عنه که چېرې هيڅ نه ګټل.نوهغه پخپله يادهغه کور والا دچا دروازي ته دسوال کولو له پاره خونه و وتلې. چې هغوی ته دنه ګټلوپيغور ورکړل شي اوکه چېرې هغه دغريبۍ، لوږې،زهد ، قناعت اوددنيانه ديوطرف ته کيدلو سره سره ستاسو دقول مطابق،نکاح دپاسه يې نکاح کولې. نوخلکوبه ورته جينکودپاسه جينکۍ نه ورکولې؟ څومره عجيبه خبره ده چې دغريبۍ ، لوږې ، زهداو قناعت دا صفت کوم چې په مخکې زمانوکې دسلو فخرونوسرمايه ګڼل کېده اوهغه به څومره اوچت فضيلت شمارل کېده : نن هما غه عيب ګڼل کيږي!

ستادقول مطابق که چېرې حضرت علي رضي الله عنه ته ديهودي دباغ اوبه کولو نه يادوښو ريبلونه پرته بل هنر نه و زده، نودې له پاره زما اوستادپريشانه کيدو څه ضرورت دی، ددې فکرکه چېرې وی نوهغې پاکې هستۍ ته به و چاچې خپله نيازبينه لور"دجنت دښځو سرداره" هغه ته په نکاح ورکړه (صلى الله عليه وسلم ورضى الله عنها) څومره عجيبه خبره ده چې د حضرت علي رضي الله عنه دکسب معاش نه نه نبي عليه السلام ته شکايت دی اونه دحضرت علي رضي الله عنه کور والوته،خو نن په حضرت علي رضي الله عنه دا بدهم ويل کيږي چې هغه به څه ګټه نه کوله(انا لله وانا اليه راجعون)

(۱۴) تاسو د حضرت علي رضي الله عنه دابوجهل دلور سره دنکاح د ارادې دواقعې نه دانتيجه اخستې ده چې يواځې فاطمې رضي الله عنها ته يې تکليف نه ورکولو بلکې رسول الله صلى الله عليه وسلم ته يې هم

---

۱] يٰاَيُّهَا النَّبِيُّ قُلْ لِّاَزْوَاجِكَ اِنْ كُنْتُنَّ تُرِدْنَ الْحَيٰوةَ الدُّنْيَا وَزِيْنَتَهَا فَتَعَالَيْنَ اُمَتِّعْكُنَّ وَاُسَرِّحْكُنَّ سَرَاحًا جَمِيْلًا وَاِنْ كُنْتُنَّ تُرِدْنَ اللّٰهَ وَرَسُوْلَهٗ وَالدَّارَ الْاٰخِرَةَ فَاِنَّ اللّٰهَ اَعَدَّ لِلْمُحْسِنٰتِ مِنْكُنَّ اَجْرًا عَظِيْمًا(الاحزاب :۲۸) عن جابر قال: أقبل أبو بكر، رضي الله عنه، يستأذن على رسول الله صلى الله عليه وسلم والناس ببابه جلوس، والنبي صلى الله عليه وسلم جالس: فلم يؤذن له. ثم أقبل عمر فاستأذن فلم يؤذن له. ثم أذن لأبي بكر وعمر فدخلا والنبي صلى الله عليه وسلم جالس وحوله نساؤه، وهو ساكت، فقال عمر: لأكلمن النبي صلى الله عليه وسلم لعله يضحك، فقال عمر: يا رسول الله، لو رأيت ابنة زيد امرأة عمر سألتني النفقة آنفا، فوجأت عنقها. فضحك النبي صلى الله عليه وسلم حتى بدا نواجذه وقال: "هن حولي يسألنني النفقة". فقام أبو بكر، رضي الله عنه، إلى عائشة ليضربها، وقام عمر، رضي الله عنه، إلى حفصة، كلاهما يقولان: تسألان النبي صلى الله عليه وسلم ما ليس عنده. فنهاهما رسول الله صلى الله عليه وسلم فقلن نساؤه: والله لا نسأل رسول الله بعد هذا المجلس ما ليس عنده. قال: وأنزل الله، عز وجل، الخيار، فبدأ بعائشة فقال: "إني أذكر لك أمرًا ما أحب أن تعجلي فيه حتى تستأمري أبويك". قالت: وما هو؟ قال: فتلا عليها: { يَا أَيُّهَا النَّبِيُّ قُلْ لأزْوَاجِكَ } الآية(تفسير ابن كثيرج:۵،ص:۱۶۶)

تکلیف ورکاو، چې دنبي علیه السلام د دښمن د لور سره بې دنکاح اراده کوله." سره له دې چې حضرت علی رضی الله عنه نه حضرت فاطمې رضی الله عنها ته دتکلیف ورکولو اراده وه او نه رسول الله صلی الله علیه وسلم ته. هغه دابوجهل له لورسره دنکاح کولواراده کړې وه خو دا خبره دهغه په خیال کې هم نه وه چې دا خبره دنبي علیه السلام دناخوښۍ سبب کیدای شي. که نه ددې نکاح به هغه ته خیال هم نه وی راغلی، بیاچې کله نبي صلی الله علیه وسلم دناخوښۍ اظهار وکړ نو هغه دا اراده فوراً پریښودله[۱]. که چېرې هغه دا نکاح کړې وی نو حضرت فاطمې رضی الله عنها ته اودهغه په وجه به نبي کریم صلی الله علیه وسلم ته تکلیف وی. خو نه هغه نکاح وکړه اونه دې حضراتو ته تکلیف ورکړل شو، بلکې دهغه له ارادې تېرېدو سره به دا حضرات یقیناً خوشحال شوي وي. خو تاسو په هغه باندې دا الزام لګولی دی چې هغه نبي علیه السلام ته تکلیف رسولی دی اوالزام هم داسې سخت چې په هغه باندې په قران کریم کې لعنت راغلی دی. تاسوخولږ انصاف وکړئ چې که چېرې هغه نبي علیه السلام ته تکلیف ورکړی وای نوهغه ته به د"رجل یحب الله ورسوله ویحبه الله ورسوله"[۲] اود "رضی الله عنه" زیری ورکول کېده که د"ان الذین یوذون الله ورسوله لعنهم الله فی الدنیا والاخرة واعدلهم عذابامهینا.(الاحزاب:۵۷) په ډله کې به راته ؟

تاسو دخبرو په ختمیدو کې دنبي علیه السلام دتکلیف خبره ذکر کړې ده. نودا ناکاره هم تاسونه دیوې پوښتنې جرات کوي. هغه داچې دنبي علیه السلام سره چې دحضرت علي رضی الله عنه کوم تعلق و هغه هم تاسوته معلوم دی اونبي علیه السلام چې کوم دده بیشماره مناقب بیان کړي دي هغه هم ستاسو مخې ته دي. سوال دادی چې دنبي علیه السلام دمحبوب ترین شخصیت نقصانونه اوعیبونه پلټل، دهغه په باره کې ناخوښه الفاظ استعمالول، دهغه دسپکاوی کول، دهغه سره پخپله نفرت ساتل اودنورو خلکو دمتنفر کولوکوشش کول. ایا ددې ټولو خبرو سره به رسول الله صلی الله علیه وسلم ته تکلیف نه وي رسیدلی؟ اوس چې کوم خلک دحضرت علي رضی الله عنه عیبونه خپروي، ایادهغوی دا فعل دنبي علیه السلام په نظرکې دتعریف قابل دی؟ ایاهغوی به دنبي علیه السلام دمحبوب رشته دار دعیبونو راویستلو سره دنبي علیه السلام ته دتکلیف رسولو مجرم او په دنیااوآخرت کې دلوی تاوان حقدار نه وي؟ د روافضو نه زموږ همدغه شکایت دی چې

---

۱] (ولا تجتمع بنت رسول الله ) ای فاطمة،(وبنت عدوالله) ای بنت ابی جهل(مکانا واحدا ابداً) قال الحافظ،وقال اهل التین اصح ما تحمل علیه هذه القصة ان النبی صلی الله علیه وسلم حرم علی علی رضی الله عنه ان یجمع بین ابنته وابنة ابی جهل لانه علل بان ذلک یؤذیه واذیته حرام بالاتفاق.....لانه یبعد ان فی خصائص النبی صلی الله علیه وسلم ان لا تزوج علی بناته ویحتمل ان ذلک مختصا لفاطمة سلام الله علیها(بذل المجهود، کتاب النکاح،باب ما یکره ان یجمع بین النساء ج:٤،ص:١٥،طبع مکتبه امدادیه)

۲] مشکوة، باب مناقب علی بن ابی طالب ص:۵۶۳

هغوی د رسول الله ﷺ د محبوبو کسانو عیبونه راوباسي او نبي علیه السلام ته تکلیف ورکوي. که چېرې موږ هم دا کار شروع کړو نو په موږ او هغوی کې به څومره فرق پاتې شي. الله جل شانه دې موږ د دې مصیبت نه محفوظ وساتي؛ والسلام

## د حضرت بلال رضی الله عنه واده

**سوال:** ایا د حضرت بلال رضی الله عنه واده د هغه تر وفاته خوورځې وړاندې شوی و. هغه هم په غیبي اشارې باندې او ایا د حضرت بلال رضی الله عنه عمر د الله تعالی له لوري څلویښت کاله زیات شوی و؟

**جواب:** حضرت بلال رضی الله عنه په یمن کې واده کړی دی[۱] او دا معلومه نه ده چې د وفات نه څومره موده مخکې یې کړی و. نه د غیبي اشارې ماته علم شته او د څلویښتو کالو د عمر زیاتیدو خبره غلطه ده. د هغه عمر د شپیتو کالو نه څه زیات وا و په اتلسم یا نولسم یا په شلم هجري باندې وفات شوی دی.[۲]

## په حضرت ابوسفیان رضی الله عنه بدګماني

**سوال:** د حضرت ابوسفیان رضی الله عنه په اړه د برخلک بدګماني کوي او وایي چې صحابي نه و. د هغه په باره کې وضاحت وکړئ؛ بل دا چې د صحابه کرامو رضی الله عنهم له نومونو پرته د بل چا د نوم سره رضی الله عنه ویل کیدای شي او که نه؟

**جواب:** حضرت ابوسفیان رضی الله عنه صحابي و د هغه په حق کې دا بدګماني غلطه ده.[۳]

"رضی الله عنه" د صحابه وو له پاره دي. د نورو له پاره نه دي ویل پکار. اګرچې د لغوي معنا په لحاظ سره دعا ده او په دې وجه باندې د تابعینو او د دین د امامانو له پاره هم دا صیغه استعمال شوي ده.[۴]

---

۱] خطب بلال واخوه الی اهل بیت من الیمن......اخبرنا قتادة ان بلالاً تزوج امراة عربیة من بنی زهرة(طبقات ابن اسعد ج:۳،ص:۲۳۷، ۲۳۸ بلال بن رباح)

۲] توفی بلال بدمشق....... وهو ابن بضع وستین سنة(طبقات ابن اسعد ج:۳، ص:۲۳۸ طبع بیروت)

۳] وكان أبوه من سادات قريش. ثم لما أسلم حسن بعد ذلك إسلامه، وكان له مواقف شريفة. وآثار محمودة في يوم اليرموك وما قبله وما بعده(البدایةوالنهایة لابن کثیر ج:۸،ص:۱۱۷ترجمة معاویه بن ابی سفیان)

٤] وفی در المختار: وَيُسْتَحَبُّ التَّرَضِّي لِلصَّحَابَةِ وَالتَّرَحُّمُ لِلتَّابِعِينَ وَكَذَا يَجُوزُ عَكْسُهُ ) التَّرَحُّمُ وَلِلصَّحَابَةِ وَالتَّرَضِّي لِلتَّابِعِينَ وَمَنْ بَعْدَهُمْ وفی ردالمحتار: وَيُسْتَحَبُّ التَّرَضِّي لِلصَّحَابَةِ لِأَنَّهُمْ كَانُوا يُبَالِغُونَ فِي طَلَبِ الرِّضَا مِنْ اللَّهِ تَعَالَى وَيَجْتَهِدُونَ فِي فِعْلِ مَا يُرْضِيهِ ، وَيَرْضَوْنَ بِمَا يَلْحَقُهُمْ مِنْ الِابْتِلَاءِ مِنْ جِهَتِهِ أَشَدَّ الرِّضَا ، فَهَؤُلَاءِ أَحَقُّ بِالرِّضَا وَغَيْرُهُمْ لَا يَلْحَقُ أَدْنَاهُمْ وَلَوْ أَنْفَقَ مِلْءَ الْأَرْضِ ذَهَبًا(ردالمحتار ج:۶،ص:۷۵٤،طبع ایچ ایم سعید )

## د حضرت ابوسفيان نوم څنګه ليکل کيږي ؟

**سوال:** په کورس کې چې کوم دينيات لوستل کيږي په دې کتاب کې يوځاى دصحابه وو دهغه دور واقعه راځي چې په کوم وخت کې هغوى مسلمانان شوي نه وو .نوهلته يې ليکلي وي چې فلانى صحابي رضي الله عنه ( چې کله هغه ايمان نه و راوړى) خو چې کله د ابوسفيان خبره وي. نوهلته يې يواځې ابوسفيان ليکلى وي. حضرت او رضى الله عنه ورسره نه وي ليکل شوي (سره له دې چې هغه مسلمان شوى و) ددې څه وجه ده .ايادا دمصنفينو غلطي ده يابله څه وجه ده؟

**جواب:** دا غلطي ده ،دهغه دنوم هم ادب او تعظيم سره ليکل پکار دي[1].داسلام نه مخکې غلطيانې معاف دي.[2]

## عمر ، بکر ، زيد فرضي نومونو سره د صحابه وو بې ادبى نه کيږي

**سوال:** زيدديوسکول هيډماسټر دى.په دى سوال کې د "زيد" لفظ ديوفرضي نوم په طور ليکل شوى دى. له دې نه پرته هم په اُردو ژبه کې د زيد ،عمر ،بکر الفاظ د فرضي نومونو په ځاى استعماليږي ،جناب مولانا صاحب! تاسو زمانه ډېرښه پوهيږئ چې دا ډېر دجليل القدر صحابه کرامو رضي الله عنهم نومونه دي. ځکه موږ ته دمسلمان په حيث سره دعزت او احترام په خاطر دا نومونه د فرضي نومونو په طورباندې استعمالولو نه ځان ساتل پکار دي؟

**جواب:** ښه تجويز دى خو ددې فرضي نومونو داستعمالولو په وخت کې کله هم دچاذهن دغو اکابرو طرف ته نه ځي.له دې وجې نه دبې ادبي نظريه غلطه ده.

## د نبي کريم ﷺ لوراني

**سوال:** ځينې خلک وايي چې درسول الله ﷺ يوه لور(سيده فاطمه رضي الله عنها ) وه.سره له دې ما لوستلي و چې دهغه ﷺ څلور لوراني وې اوزوى يې ابراهيم و چې هغه په مدينه منوره کې وفات شوى و.،په لورانو کې دسيده فاطمه رضي الله عنها نکاح د شيرخدا حضرت علي رضي الله عنه سره وشوه او د سيده رقيه رضي الله عنها او سيده زينب رضي الله عنها نکاح حضرت عثمان غني رضي الله عنه سره وشوه،دڅلورمې لور علم راته نشته. تاسو دا وښايئ چې دا څلور واړه دکومې بى بى له خيټې نه پيدا شوې وې او نکاح يې چاسره وشوه او وفات يې چرته شوى و اوکه چېرې د دوى دخيټې نه

---

1] قال رسول الله صلى الله عليه وسلم اکرموا اصحابى فانهم خيارکم(مشکوة ص: ٥٥٤،باب مناقب الصحابة)
2] ان الاسلام يهدم ماکان قبله (صحيح مسلم ج:١،ص:٧٦،کتاب الايمان،طبع کتب خانه رحيميه ديوبند)

نور اولاد شوي وي. نوهغه هم وښايئ .ايا په دوی کې دچانکاح په عرش معلی کې تړل شوي وه. که نه؟

**جواب:** دنبي کريم ﷺ لوراني خوځلور وې[1] .له ټولو نه مشره حضرت زينب رضي الله عنها ددې نکاح حضرت ابو العاص رضي الله عنه سره وشوه[2] او ددې نه کشره سيده رقيه رضي الله عنها او د دې نه کشره سيده أُم کلثوم رضي الله عنها ددې دواړو نکاح ديوې دمرګ نه وروسته دحضرت عثمان رضي الله عنه سره و شوه په له دې وجې دده لقب ذوالنورين دی[3] دټولو نه کشره سيده فاطمه زهرا رضي الله عنها چې دجنت دښځو سرداره ده رضی الله عنها .د دې نکاح دحضرت علي رضي الله عنه سره وشوه [4]

دزامنو په تعداد کې يې اختلاف دی، ځينو پنځه ليکلي دي:

۱ :قاسم ۲ :طيب ۳ عبد الله ۴ :طاهر ۵ :ابراهيم (رضي الله عنهم) اولني ځلور دحضرت خديجه الکبری رضي الله عنها له خيټې نه وو[5] او حضرت ابراهيم رضي الله عنه دحضرت ماريه قبطيې رضي الله عنها له خېټې نه و[6] .ځينې حضرات فرمايي چې ضيب او طاهر دعبدالله لقبونه دي[7] .رضی الله عنهم.

## د حضرت خديجې رضي الله عنها د وفات پرمهال د نبي عليه السلام عمر

**سوال:** کله چې ام المؤمنين سيده خديجه رضي الله عنها له دې دنيا نه رخصت شوه. نودنبي کريم ﷺ عمر مبارك څومره و؟

**جواب:** پنځوس (۵۰) کاله[8]

---

۱] وفيها اسلمت بنات النبی صلی الله عليه وسلم الاربع كلهن (۱) زينب وهی اكبر بناته (۲) وفاطمة (۳) ورقية (٤) وام كلثوم (بذل القوة ص:٤ .فصل فی حوادث السنة الاولی من النبوة،القسم الاول)

۲] ابوالعاص بن الربيع زوج زينب بنت رسول الله صلی الله عليه وسلم (بذل القوة ص:۳۰۷،السنة الحادية عشرة من الهجرة)

۳] تزوج عثمان بن عفان رضی الله عنه رقية بنت رسول الله صلی الله عليه وسلم (بذل القوة ص:۱٤) وتزوج عثمان بن عفان رضی الله عنه بام كلثوم بنت رسول الله صلی الله عليه وسلم (بذل القوة ص:۱۳٦،فصل فی حوادث السنة الثالثة من الهجرة)

٤] تزوج علی بفاطمة رضی الله عنها فی صفر لليال بقين منه (بذل القوة ص:۱۳٤،السنة الثالثة من الهجرة)

٥] ان خديجة بنت خويلد ولدت لرسول الله صلی الله عليه وسلم القاسم والطاهر والطيب وعبدالله وزينب ورقية وام كلثوم وفاطمة (اسد الغابة ج:٥،ص:٤٣٦)

٦] واما ابنه صلی الله عليه وسلم ابراهيم وكان من سريته مارية (بذل القوة ص:٤،حوادث السنة الاولی من النبوة)

۷] وعبدالله الملقب بالطيب والطاهر ايضاً (بذل القوة ص:٤ .مرقاة شرح مشكوة ج:۱،ص:۱٥٥)

۸] وكان موتها قبل الهجرة بثلاث سنين (اسدالغابة فی معرفة الصحابة ج:۱،ص:۱۹ طبع داراحياء التراث العربی) وايضاً توفيت خديجة الكبری زوجة النبی صلی الله عليه وسلم ورضی عنها وهی بنت خمس وستين سنة وكانت مدة مقامها مع النبی صلی الله عليه وسلم خمساً وعشرين سنة (بذل القوة ص:۲۹ .فصل فی حوادث السنة التاسعة من النبوة)

## نبي علیہ السلام دعائشي رضی اللہ عنہا سره کله واده وکړ؟

**سوال:** ایاام المؤمنین حضرت خدیجه رضی اللہ عنہا ژوندۍ وه چې نبي علیہ السلام د ام المؤمنین مریم اسلام حبیبه حبیب خدا سیده عائشه رضی اللہ عنہا سره واده وکړ؟

**جواب:** دحضرت خدیجې رضی اللہ عنہا د وفات نه وروسته یې واده وکړ.[1]

## دواده په وخت کې د حضرت عائشه رضی اللہ عنہا عمر نهه کاله و

**سوال:** څه فرمایي ددین عالمان اومفتیان دې باره که چې دام المؤمنین حضرت عائشې رضی اللہ عنہا عمردهغې دواده په وخت کې څوکاله و؟ ایادې کې اختلاف شته چې دحضرت عائشې رضی اللہ عنہا عمرد نهه کالونه زیات تقریبا دولس کاله و؟ ایاچیرته دحدیث نه داسې قسمه ثبوت شته؟ که چېرې وي ،نودهغه حدیث څه حیثیت دی؟ اودې باره کې دعالمانو اجتماعي طورباندې څه نظر دی؟

**جواب:** دواده په وخت کې دحضرت عائشې رضی اللہ عنہا عمرنهه کاله و، ددې ثبوت له دې کتابونونه کیدای شي:

(۱) صحیح بخاري ج۲ ص ۷۷۵، (۲) صحیح مسلم ج۱ ص ۴۵۲، (۳) ابوداؤد ج۱ ص۲۸۹، (۴) ترمذی ج۱ ص۱۳۲ (۵) نسائي ج ۲ ص ۹۱ (۶) ابن ماجه ص ۱۳۵، (۷) دارمي ج۲ ص۸۲، (۸) مسنداحمدج۶ ۴۲، ۱۱۸، ۲۱۱، ۲۸۰، (۹) طبقات ابن سعدج۸ ص ۴۰، ۴۴، ۵۴، (۱۰) الاصابه ج ۴ ص ۳۵۹، (۱۱) الاستیعاب برحاشیه اصابه ج ۴ ص ۳۵۹

## ایا د نهوکالو په عمر کې انجلۍ بالغه کیدای شي؟

**سوال:** دښځې دبالغه کېدوعمرکم نه کم څومره دی؟ځینې حضرات دعائشې رضی اللہ عنہا دنهو کالو په عمرکې په واده باندې اعتراض کوي، ایادا روا دي؟مدلل اومفصل ځواب راکړئ.

**جواب:** دایواځې دملحدانواومنکرینوخپره شوې خبره ده، که نه انجلۍ دنهوکالوپه عمرکې بالغه کیدای شي[2]، په دې سلسله کې دروزنامه جنګ، خبروګورئ:

په برازیل کې نهه کلنې انجلۍ تیره میاشت یوه ماشومه وزیږوله اوددنیاترټولودکم عمر مورشوله.(ډیلي مرر)اخبار دچارشنبې په ورځ ددې خبر په ورکولوکې وویل چې: (ماریا

---

۱] ام المؤمنین عائشة بنت ابی بکر وزوجة رسول الله صلی الله علیه وسلم .....تزوجها بمکة بعد وفاة خدیجة (البدایة والنهایة ج:۸،ص:۹۱،طبع بیروت)

۲]وادنی المدة لذلک فی حق الغلام اثنا عشرة سنة وفی حق الجاریة تسع سنین (هدایة ج:۳،ص:۳۵۶)

ایلاني جیز)په ۲۵ مارچ د شمالي برازیل ژاکوئي کلي کې داپریشن په ذریعه یوه ماشومه وزیږوله. د زیږیدلې شوې ماشومې د پلار عمر ۱۲ کاله نبودل کیږي. د ماریا ایلایني موږ په خپله د هغې د زیږولو نه وروسته مړه شوې وه، چې د هغې نه وروسته یو ۲۲ کلن زمیدار د هغې پالنه کړې وه، مرر د کم عمرې مور او ماشومې تصویرونه هم خپاره کړي دي (روزنامه جنګ، کراچی ۱۰ اپریل ۱۹۸۲ ص: ۱۰)

د ۱۲ اپریل په اخبارونوکې د دې کم عمره مور او د زیږیدلې ماشومې تصویرونه هم خپاره شوي دي. فکر کیږي چې د برازیل اخبار ډیلي مرر په حوالې سره دا عجیبه خبر د دنیا په ټولو اخبارونوکې خپور شوی وي چې ماریا ایلاني د دنیا د ټولونه کم عمره مور شوه. بې شکه یوه عجیبه خبره ده، خو دا واقعه که هرڅو مره عجیبه وي، خو په وجود او مشاهدې کې راغلې ده د دې وجې نه هیڅ یو د عقل خاوند د اسې ویلو سره د دې نه انکار نه شي کولی چې دا څنګه کیدای شي؟

صحیح بخاري شریف او د سیرت او تاریخ په ټولو کتابونوکې د ام المومنین حضرت عائشه رضي الله عنها دواده واقعه په خپله د ام المومنین په ژبه د اسې نقل شوې ده:

**أن النبي صلى الله عليه وسلم تزوجها وهي بنت ست سنين، وأدخلت عليه وهي بنت تسع ومكثت عنده تسعا.** (صحیح بخاري ج ۲ ص: ۷۷۱)

ترجمه: نبي کریم صلی الله علیه وسلم چې کله له دې سره کوېژدن وکړ، نو هغه د شپږو کالو وه او کله چې هغه واده کېده. نو هغه د نهو کالو وه او هغه د حضور صلی الله علیه وسلم سره تر نهو کالو پورې وه.

دامت فقهاوو له دې حدیث نه ګڼ شمیر مسائل اخذ کړي دي. مثلاً یو دا چې یو پلار د خپل نابالغه اولاد انجلۍ او هلک نکاح کولی شي. امام بخاري رحمه الله په دې باندې باب قائم کړی دی (**باب النكاح الرجل ولده الصغار**) د خپل کم عمر د اولاد نکاح کول.

د دې نه لاندې حافظ ابن حجر رحمه الله لیکي:

**قال المهلب: اجمعوا أنه يجوز للأب تزويج ابنته الصغيرة البكر ولوكانت لايطأمثلها، إلاان الطحاوي حكى عن ابن شبرمة منعه فيمن لا توطأ، وحكى ابن حزم عن ابن شبرمة ملطقا ان لأب لايزوج بنته البكر الصغيرة حتى بلغ، وتأذن وزعم ان تزويج النبي صلى الله عليه وسلم وهي بنت ست سنين كان من خصائصه.** (حاشیه بخاري ص: ۷۷۱، فتح الباری ج: ۹ ص: ۱۹۰)

ترجمه: مهلب فرمایي چې د اهل علم په دې باندې اجماع ده چې د پلار له پاره جائز دي چې د خپلې وړې ناواده کړې لور واده وکړي اګرکه هغه د وظیفه زوجیت د اداکولو لائقه نه وي. خو امام طحاوي د ابن شبرمه نه نقل کړي دي چې کومه انجلۍ د زوجیت د وظیفې د اداکولو قابله نه وي پلار د هغې نکاح نه شي کولی او ابن حزم د ابن شبرمه نه نقل کړي دي چې پلار دوړې

لورنکاح نه شي کولی. تردې پورې چې هغه بالغه شي او اجازه ورته وکړي. دابن شبرمه په نظر دحضرت عائشې رضی اللہ عنہا شپږو کالو په عمرکې دحضور ﷺ سره واده کېدل، داد حضور ﷺ خصوصیت و.

گویا دامت ټول فقهاء او محدثین دحضرت عائشې رضی اللہ عنہا دا واقعه تسلیموي او په دې باندې داحکاموتفریع کوي. دځوارلسوسوو کالو راهیسې هیڅ یوعالم له دې څخه انکارنه دی کړی. خو منکرین حدیث او ملحدان له دې واقعې(چې په حدیث. سیرت. تاریخ. فقې او په بې شمېره کتابونوکې موجوده ده او دڅورلسوسووکالوراهیسې دپوره امت منل شوې واقعه ده) نه انکار کوي اودانکاردلیل یوازې دادی چې دنهوکالودعمرانجلۍ څنګه واده کېدای شي؟سره له دې چې دنهوکالوپه عمرکې انجلۍ بالغه کېدای شي .په هدایه کې دي:

**وأدنى المدة لذالک في حق الغلام اثنا عشرة سنة وفي حق الجارية تسع سنين.(ج:۲ ص:۳۵٦)**

ترجمه: دبالغ کېدوکم عمردهلک په حق کې دولس کاله او دانجلۍ په حق کې نهه کاله دي.

په هرحال دلته په دې باندې خبرې کول مقصدنه دي. بلکې یوازې دا ویل دي چې اوس کله څه عجیبه واقعه په اخبارونوکې چاپ شي. نوزموږ دتعلیم یافته حضراتوپکې هیڅ شک نه وي اونه ددې په تسلیمولوکې څه ویره محسوسوي اونه ترې د انکار جرات کوي اوکه څوک دداسې واقعې نه انکار وکړي. نوزموږ روشن خیاله طبقه هغه ته بې وقوف وایي. خو ددې په شان بلکې ددې نه هم دوړکې نوعیت څه واقعه که دحدیثو په کتابونوکې په نظرراشي .نودهغې نه فورا انکارکوي اوپه هغې پورې ټوکې کوي اوپه حدیثونواومحدثینوباندې دطعن اوتشنیع باران جوړکړي اوغریب ملا ته په مړه خېټه کنځل وکړي اوکله دهمدردې په طوردکتب حدیث داصلاح اعلان هم وکړل شي او دیوزیاتوسره دشپږو نه شپاړس اونهونه نولس جوړولوکوشش کیږي اود دومره تمیز نه هم کار نه اخستل کیږي چې څنګه په اردوکې دشپږو. .املا. .دشپاړسو سره اودنهو .دنورلس سره نه شي کیدای . نوهم همدارنګه په عربي کې هم ناممکن دي.

سوال دادی چې په اخباراتو کې چاپ شوې واقعات پرته له عذرنه منل اودهمدې نوعیت په حدیث کې ذکرشویو واقعاتوباندې په سوونو شکونه کول، ددې اصل مقصدڅه دی؟ددې منشاداده چې ددې خلکودرسول الله ﷺ په صفت رسالت اونبوت باندې ایمان نشته اوددوی په زړونوکې دحضور ﷺ د اقوالو او احوالواوافعالوعظمت نشته. ددې وجې نه دوی دحضور ﷺ پاک دژوند له خلاف عادت واقعاتو نه ؤ بر په جرات اودزړه له تله انکارکوي.

## ايا د حضرت زينب رضي الله عنها خاوند مسلمان و؟

**سوال:** د سيده زينب رضي الله عنها چې چاسره نكاح شوې وه ايا هغه مسلمان و؟

**جواب:** د حضرت زينب رضي الله عنها نكاح د حضرت ابو العاص بن ربيع رضي الله عنه سره شوې وه. د نكاح په وخت كې خو هغه مسلمان نه و. (هغه وخت كې د غيرمسلمو سره د نكاح ممانعت نه و راغلى) د جنګ بدر نه وروسته هغه مسلمان شو او مدينې منورې ته يې هجرت وكړ [1]

## حضرت أم هاني رضي الله عنها څوك وه؟

**سوال:** د حضرت أم هاني رضي الله عنها د نبي كريم صلى الله عليه وسلم سره څه خپلوي وه؟ أم هاني رضي الله عنها چې د هغه د كور نه نبي عليه السلام معراج ته تشريف وړى و. د أم هاني رضي الله عنها نسب نامه څه وه ځواب په تفصيل سره راكړئ!

**جواب:** أم هاني رضي الله عنها، د حضرت علي رضي الله عنه خور وه. [2]

## د (الصحابة كلهم عدول) تشريح

**سوال:** الصحابة كلهم عدول، اصحابي كالنجوم، ايا دا د حديثونو اقوال دي؟ خو په مستند حديث كې دي چې خلك به حوض كوثر ته راشي، فرښتې به هغه منع كوي. زه به ورته ووايم چې دا زما اصحاب دي، ځواب به راكړل شي چې تا ته پته نشته، دوى له تا سونه وروسته څه كړي دي؟ دې حديث شريف نه د ټولو صحابه وو عادلان كېدل په ښكاره باندې نه معلومېږي (دا يوائې يو اشكال دى) همدارنګه دا حديث مبارك چې د كوم صحابي اقتداء وكړئ، هدايت به درته وشي. كه چېرې څوك ووايي چې زه خو د عمرو بن العاص او مغيره بن شعبه رضي الله عنهم اقتداء كوم او معاملاتو كې انصاف نه كوي او د هغه د واقعاتو حواله وركوي. مثلاً عمرو بن العاص رضي الله عنه د ابو موسى اشعري رضي الله عنه سره چې څه كړي و. حالانكه دواړه په صفين كې حكم (ثالث) جوړ كړل شو. نو له دې نه معلومېږي چې هغه اقتداء له كومې نه چې هدايت فايده كيږي. هغه د صحابه كرامو رضي الله عنهم د عقيدې او د ايمان اقتداء ده. چې د هغې مثال ګران دى. او د هغوى د اعمالو، عاداتو او طريقو اقتداء مراد نه ده.

**جواب:** د اصحابي كالنجوم مضمون صحيح دى، خو د حديث الفاظ صحيح سند سره ثابت نه

---

[1] ابوالعاص القرشي العبشمي صهر رسول الله صلى الله عليه وسلم على ابنته زينب....... وقد هاجر بعد وقعة بدر ثم اسلم بعد ذلك ......الخ (اسد الغابة ج:٤،ص:٢٦٥، ٢٦٦)

[2] ام هانى بنت ابى طالب.....واخت على ابن ابى طالب...... الخ (اسد الغابة ج:٥،ص: ٦٢٤)

دي[۱]. دصحابه کرامو رضی الله عنهم کارونه دوه قسمه دي. خينې خودنصوصو دتابعداري په وجه باندې اوځينې داجتهادپه وجه باندې. بياداجتهادي کارونه هم په دوه قسمه دي. يوهغه کوم باندې چې ديو فريق ثواب ياخطاکيدل په غالب گمان متعين نه وي. داسې اجتهادي کارونوکې دمجتهدله پاره يوقول اختيارول صحيح دي. کوم چې دمجتهدپه نزدباندې صحيح وي او دويم قسم هغه دی چې ديوفريق په غالب گمان خطاکيدل ثابت شي. داسې قولونواوکارونوکې به د مخطي اتباع نه کيږي. البته هغوی به دخپل اجتهادپه وجه باندې معذور.بلکې ماجورگڼل کيږي. په له دې وجې باندې (بأيهم اقتديتم اهتديتم) به له دې شرط سره وي چې دهغوی خطابا کېدل په غالب گمان ثابت نه وي. خو داسې به وويل شي چې هغوی هم دهدايت داتباع قصدکړی و. هغوی باندې هيڅ ملامتيانشته. ترکومه حده چې الصحابة کلهم عدول تعلق دی. داهم حديث نه دی بلکې داهل سنت يوه قاعده ده اوهغه د اکابرينو(کلهم عدول )کېدوسره دانه لازميږي چې هغوی معصوم و. کوم هدايت چې موږ صحابه کرامو رضی الله عنهم ته منسوب کړ. هغه دوه شيان دي. يوداچې هغوی به دکبائرونه پرهيزکاوو اودهغوی په نفس کې دکبائرونه دځان ساتلوصلاحيت پيداشوی و. دويم داکه چېرې له چانه به دانسانيت په وجه باندې خطا څه کبيره گناه وشوه. نوهغوی به سمدستي له هغه نه توبه وکړه اودنبي کريم صلی الله عليه وسلم دصحبت دبرکت په وجه باندې دهغوی نفس دهغې گناه اثروانه خست او ،،التائب من الذنب کمن لاذنب له،، دنبي کريم صلی الله عليه وسلم وينادہ. له دې وجې د کبيره گناه کولونه وروسته دتوبې په وجه باندې هغوی عادلان دي. فاسقان نه دي. حضرت نانوتوي رحمه الله اونوروااکابرينودې باندې ډيرتفصيل سره بحث کړی دی. مابې خلاصه وليکله. چې ستاسودمشکل دحل له پاره به انشاء الله کافي وي.[۲]

---

۱]واما ما يروى عن النبى صلى الله عليه وسلم انه قال: اصحابى كالنجوم بايهم اقتديم اهتديتم فهو حديث ضعيف قال البزار،هذا حديث لا يصح عن رسول الله صلى الله عليه وسلم .وليس هو فى كتب الحديث المعتمدة (شرح عقيدة الطحاوية.ص: ۵۳۰.وايضاً مرقاة شرح مشكوة ج:۵،ص:۵۲۳)

۲] ولا نذكر الصحابة اى مجتمعين ومنفردين......الا بخير.يعنى وان صدر من بعضهم بعض ما فى صورة شر. فانه اما كان عن اجتهاد او لم يكن على وجه فساد من اصرار وعناد بل كان رجوعهم عنه الى خير معاد بناء على حسن الظن بهم، لقوله عليه السلام خيرالقرون قرنى! ولقوله عليه السلام اذا ذكر اصحابى فامسكوا! ولذلک ذهب جمهورالعلماء الى ان الصحابة كلهم عدول، قبل فتنة عثمان وعلى وكذا بعدها(شرح فقه الاكبر ص:۸۵، ۸۶)

## صحابه کرام دهدایت ستوري دي

**سوال:** ,,أصحابي كالنجوم اوالصحابة كلهم عدول.. تاسو وفرمايل چې دواړه دحديث اقوال نه دي، که چېرې داسې ده. نوهيڅ مشکل نشته. که چېرې حديث شريف وي. نو درايت باندې پوره نه راځي. ځکه چې ډېروصحابه کرامونه لوی لوی لغزشونه شوي دي. لکه حضرت امیر معاویه رضی الله عنه. عمر وبن العاص رضی الله عنه مغیره بن شعبه رضی الله عنه. عبیدالله بن عمر رضی الله عنه عبدالله بن ابی سرج رضی الله عنه وغیره.

**جواب:** الصحابة كلهم عدول حديث نه دی. خوداهل حق عقیده ده[1]. اوداکابرینوپه تقلید کې زماهم داعقیده ده چې صحابه کرام رضی الله عنهم له شک پرته د هدایت ستوري وو. اوټول عادلان وو. خو تاسو دعدل معنا عصمت ګڼلي ده. صحابه کرام رضی الله عنهم عادلان وو. معصوم نه وو اودعدل معنا ده. قصدا دکبائرونه ځان ساتل اوپه صغائرباندې داصرار کولونه ځان ساتل اوکه چېرې به په خطاکې ترې ګناه وشوه .نوسمدستي به يې توبه کوله[2]

دکوموصحابه کرامو رضی الله عنهم نوم اخستلوسره چې تاسوفرمايلي دي چې له دوی نه لوی لوی لغزشونه شوي دي. هغو کې کومه داسې غلطي ده دکومې له وجې چې دالله تعالی له طرف نه دمعافي اعلان نه وي شوی؟ اوهغوی د(كُلاًّ وعدالله الحسنى) دالله تعالی دوعدې نه مستثنی دي، ابن ابی سرج رضی الله عنه مرتدکیدونه وروسته مسلمان شوی و[3]. له دې وروسته دهغه نه کومه غلطي شوې وه؟ حضرت عمروبن العاص رضی الله عنه. مغیره بن شعبه رضی الله عنه او امیرمعاویه رضی الله عنه

---

[1] ولا نذكر الصحابة اى مجتمعين ومنفردين......الا بخير،يعنى وان صدر من بعضهم بعض ما فى صورة شر، فانه اما كان عن اجتهاد او لم يكن على وجه فساد من اصرار وعناد بل كان رجوعهم عنه الى خير معاد بناء على حسن الظن بهم، لقوله عليه السلام خيرالقرون قرنى! ولقوله عليه السلام اذا ذكر اصحابى فامسكوا! ولذلك ذهب جمهورالعلماء الى ان الصحابة كلهم عدول. قبل فتنة عثمان وعلى وكذا بعدها.ولقوله عليه السلام :اصحابى كالنجوم بايهم اقتديم اهتديتم! رواه الدارمى(شرح فقه الاكبر ص:٨٥، ٨٦)

[2] قوله العدل قال فى الذخيرة:واحسن ما قيل فى تفسير العدالة: ان يكون مجتنباً للكبائر،ولا يكون مصرا على الصغائر، ويكون صلاحه اكثر من خطئه (فتاوى شامى كتاب الشهادات ج:٥،ص:٤٦٥) وايضاً: ان هذه الآثار المروية فى مساويهم منها ما هو كذب. ومنها ما قد زيد فيه ونقص وغيره وجهه والصحيح منه هم فيه معذورون، اما مجتهدون مصيبون واما مجتهدون مخطئون. وهم مع ذلك لا يعتقدون ان كل واحد من الصحابة معصوم من كبائر الاثم وصغائره بل يجوز عليهم الذنوب فى الجملة. ولهم من الفضائل والسوابق ما يوجب مغفرته ما يصدر منهم ان صدر(الروضة الندية شرح العقيدة الواسطية ص:٤٤٩، طبع رياض، وايضا الصواعق المحرقة ص :١٢٩،طبع مصطفى البابى مصر)

[3] واسلم ذلك اليوم فحسن اسلامه ولم يظهر منه بعد ذلك ماينكر عليه وهو احد العقلاء الكرماء من قريش (اسدالغابة ج٣ ص١٧٣، الاصابة فى تمييز الصحابة ج٢ ص٣١٧ طبع بيروت)

چې څه کړي وو. هغه دهغوی اجتهادي غلطي وه او تاسو ته به پته وي چې اجتهادي غلطي خو دعصمت خلاف هم نه ده. نو دعدالت به څنګه خلاف شي؟ قران کریم کې دنبي معصوم باره کې فرمایل شوي دي" وعصی ادم ربه فغوی" دې کې حضرت ادم علیه السلام ته د عصیان او غوایت نسبت شوی دی، خو دا کار داجتهاد په وجه باندې و. داعصیان هم یواځې ظاهري و، حقیقي نه[1]. همدارنګه دصحابه کرامو رضي الله عنهم دکومو غټو غټو غلطیو ذکر چې تاسو کوئ، هغه هم اجتهادي وي، په هغو باندې هغوی نه ماجوردي او نه ما زور[2].

خلاصه داده چې دې حضراتو چې څه کړي دي دخپل اجتهاد مطابق یې دالله تعالی درضاله پاره کړي دي. که دچا اجتهاد خطا وکړه. نو بیاهم هغوی دملامتیا لائق نه دي او نه دهغوی اجتهادي غلطي ته حقیقي غلطي ویل صحیح دی او نه دهغوی اجتهادي غلطي دعدل خلاف ده، او نه ددې خلاف ده چې هغوی دهدایت ستوري دي.

## دبې ادبي بوی راځي

**سوال:** صحابه کرامو رضي الله عنهم محبت ساتل، عزت او عقیدت سره دهغوی ذکر کول هم دانسان دایمان برخه ده، بلکې اکثر دې کې هم مبالغه وي. زماسوال یواځې داو چې داکوم قول دی یعني چې دچا اقتداء کوئ هدایت به مومئ، نو دااقتداء ماعرض کړې وه چې دهغوی دعقیدو اود ایمان اقتداء معلومیږي، چې په هغوی کې دایمان څومره مظبوطي وه. ددې مثال مشکل دی، خو دهغوی په عملونو کې داقتداء حکم نه دی، زه په دې خوشحاله یم چې زماددې قول دامام مزني رحمه الله قول هم تائید کوي. د(اصحابي کالنجوم) په شرح کې فرمایي: که چیرې داحدیث صحیح وي، نو ددې معنا داده چې ددین په روایت کې ټول صحابه کرام معتبراو داعتبار قابل دي. دې نه پرته بله څه معنا زما په نزد باندې صحیح نه ده. ځکه که چیرې صحابه کرامو رضي الله عنهم په خپل خیال کې خپل ځان همیشه صحیح او دغلطیو نه پاک ګڼلی. نو په خپلو کې به یې چیرې هم تغلیط نه کاوو او نه به یې دخپل قول نه رجوع کوله. سره له دې چې بې شمیره موقعو باندې یې داسې کړي دي.

---

[1] البحث الثاني.... اولم نجد له عزماً على الاحتياط في كيفية الاجتهاد اذا قلنا انه عليه السلام انما اخطا بالاجتهاد (التفسير الكبير ج٢٢ ص١٢٤ طبع بيروت)

[2] عن عمرو بن العاص، انه سمع رسول الله صلى الله عليه وسلم يقول: اذا حكم الحاكم فاجتهد فاصاب فله اجران، واذاحكم فاجتهد ثم اخطا فله اجر، (صحيح بخاري ج٢ ص١٠٩٢، باب اجرالحاكم اذا اجتهد فاصاب اواخطا) وهذا هو مذهب اهل السنة والجماعة ان علياً هو المصيب وان كان معاوية مجتهدا وهو ماجور ان شاء الله. (البداية والنهاية ج٧ ص٢٧٩)

الحمدالله ثم الحمدالله بس هم دامراد ده اوزماددې قول مطلب هم دادی چې دصحابه کرامو رضی الله عنهم اقتداء دایمان اوعقیدو معلومیږي. دهغوی داعمالو. عادتونو او طریقو نه. تاسو دې سره ترکومه حده پورې اتفاق کوئ؟

**جواب:** تاسوچې دحضرت معاویه رضی الله عنه، حضرت عمروبن العاص رضی الله عنه اوحضرت مغیره بن شعبه رضی الله عنه باره کې څه لیکلي وو. دهغو نه د بې ادبي بوی راځي، عقیده اوایمان خودتپولویو و او ډیر عملونه هم اوځینو عملونوکې یې اجتهادی اختلاف وو اودچاچې اقتدا کوئ. هدایت به مومئ. ددې هم دامطلب دی، یعنې ټول په خپل خپل ځای باندې په حق اوهدایت باندې دي[1]. څنګه چې دڅلورو امامانو رحمهم الله په حق کې اهل سنت ددې قایل دي چې هغوی ټول حق دي اودهغوی دیوبل تردیداوتغلیط کول هم داجتهادپه وجه باندې دي، هر مجتهد خپل خیال دغلطي اوګناه نه پاک ګڼي، خوظناً.[2]

## دصحابه کرامو رضی الله عنهم باره کې تاریخي ګډې وډې خبرې نقلول بې ادبی ده

**سوال:** تاسوفرمایلي وچې دصحابه کرامو رضی الله عنهم باره کې چې کوم الفاظ مالیکلي و،له هغو نه د بې ادبي بوی راځي، الله تعالی دې ما د بې ادبي نه محفوظ وساتي. صحابه کرام رضی الله عنهم خود ډیرو لوړو مرتبوخاوندان دي. زه یوفاجراوفاسق مسلمان ته هم دعزت په نظر باندې ګورم. دې باندې زمایوڅوشعرونه ولولئ!

هر مسلمان کو محبت هے رسول الله سے
هر مسلمان کو رسول الله کی نسبت سے دیکھ
هر مسلمان تجھ کو محترم نظر آئے گا پھر
جب بھی دیکھے تومسلمان کواسی نسبت سے دیکھ

دې نه مخکې هم یوادب دی،کوم چې دخالق اومخلوق نسبت سره دی:

وه شرابی هو که زانی فعل مطلق هے بُرا
فعل کی تحقیر کر پر ذات کو عزت سے دیکھ

---

١] د تیرې صفحې حواله نمبر١ ، ٢ اوګورئ.

٢] وانما النزاع بين الناس فى احكام الفروع، واليک مجمل الآراء، الاول: ان الحق واحد،فان اصابه كان له اجران، وان اخطاه كان معذوراً ماجوراً، وهذا مذهب جمهورالفقهاء ومختار عامة المحققين(نظرية الاجتهاد فى الشريعة الاسلامية ص:٥٥، ص:الفصل الحادى عشر،المصيب فى الاجتهاد،طبع دارالشرق،وايضاً فواتح الرحموت شرح مسلم الثبوت ص:٦١٤،طبع لكهنؤ)

بیا زما په نظر کې ددې نه مخکې هم یو ادب دی:

کنبه سب خالق کا هے مخلوق هے جتنی یهان

کیا نصاری کیا مسلمان سب کو تو عزت سے دیکھ

زما دا شعرونه دالله تعالی دعامو بندګانو باره کې دي. نو ددې نه دصحابه کرامو رضي الله عنهم دادب اندازه تاسو خپله کولی شئ. یوه واقعه چې هغې باندې ټول متفق وي. د تاریخ یا حدیث نه نقل کول خو زما په خیال کې دادب خلاف نه دي. ځکه چې دا خو په سلګونو تاریخ لیکونکي. مفسرین. محدثین او عالمان هم کوي. بیا خو هغوی ټول بې ادبه شول

که چېرې تاسو د امام مزني رحمه الله قول سره اتفاق کوئ. نو هغه زما هم مطلب و. چې دصحابه کرامو رضي الله عنهم اقتداء دهغوی ددین د روایت او ددین داعتبار معلومیږي. دهغوی په کارونو. قولونو. عادتونو او ذاتي کارونو کې نه. خلاصه داده چې کله دشارع علیه السلام عادتونه اوناسته پاسته. څه ته چې سنن زوائد ویل کیږي. دهغو د اتباع کولو مسلمانان پابند نه دي. نو د رسول الله صلی الله علیه وسلم دصحابه کرامو رضي الله عنهم دعادتونو او طریقو او کارونو څنګه پابند کیدای شي؟ زه کم علمه یم. په دې وجه باندې ما خپله خبره صحیح طور باندې بیان نه کړای شوه. تاسو سره علم دی. په دې وجه باندې به تاسو ضرور پوه شوي یئ چې زما مقصد څه دی؟

**جواب:** تاریخ کې خو رطب ویابس (دروغ ورښتیا) هرڅه لیکل شوي دي، خو هغه واقعات د استدلال په طور باندې نقلول د بې ادبي نه خالي نه دي. دهغوی داحساناتو په مقابله کې داسې ویل چې دهغوی نه غټې غټې غلطي شوي دي. زموږ د حوصلې خبره نه ده.

دامام مزني رحمه الله قول زما د نظرنه نه دی تیر شوی. چې په دې پوه شوی وای. چې دهغه څه مطلب دی؟ ترکومه حده چې د صحابه کرامو رضي الله عنهم داقتداء مسئله ده. ځینې خو دهغوی قولونه او کارونه حجت نه ګڼي. ابن حزم ظاهري اکثر دا جمله وایي: **لاحجة فی قول صاحب ولاتابع.**[1] خو دعامو عالمانو په نزد باندې دصحابه کرامو رضي الله عنهم قولونه او کارونه داقتداء قابل دي. خو حالاتو او افعالو کې د تعارض په وجه باندې د ترجیح اصول دي. په څه باندې چې مجتهدین پوهیږي[2]. په هرحال زموږ له پاره دې مسئله باندې خبرې کول فضول دي. زموږ له پاره خبره یو اځې دومره ده چې صحابه کرام رضي الله عنهم داقتداء لائق دي.[3]

---

[1] فلا حجة فی احد دون رسول الله صلی الله علیه وسلم (ج:۱،ص: ۵۵ المحلی لابن حزم،طبع بیروت)

[2] اعلم ان الترجیح ......هو بیان الرجحان فی القوة لاحدالمتعارضین علی الآخر. وتقدیم الراجح علی المرجوح، وهو المعقول،وعلیه انعقد الاجماع(تسهیل الاصول الی علم الاصول.ص: ۲٤۰،بحث المرجحات)

[3] عن العرباض بن ساریة قال : قام رسول الله صلی الله علیه وسلم ......فقال: اوصیکم بتقوی الله والسمع والطاعة وان کان عبدا حبشیاً فانه من یعش منکم بعدی فسیری ...[بقیه حاشیه په راروانه صفحه...

## دا د صحابه کرامو رضی اللہ عنہم سره مینه نه بلکې دا جهالت دی

**سوال:** ستاسو هفته واره رساله "ختم نبوت".. شماره ۳۰. جلد ۲ صفحه ۹ باندې د حضرت مولانا احمد سعید صاحب په مضمون کې د حضور ﷺ یو جلیل القدر صحابي حضرت زبیر رضی اللہ عنہ ته (نعوذبالله) ظالم ویل شوي دي. ایا په غلطي سره شوي دي او که قصداً؟ له دې وجې موتاسو ته تکلیف درکړ. چې د ختم نبوت په جماعت کې هغه کوم خلک دي چې د حضور ﷺ د صحابه کرامو رضی اللہ عنہم دښمنان دي؟ چې د هغوی بندوبست وکړل شي.

**جواب:** د مکتوب الیهم په فهرست کې تاسو د مینې په وجه باندې زما نوم هم لیکلی دی. پرته د خه تواضع نه عرض کوم چې زه د دې قابل نه یم چې زما شمیر په (والله ثم والله) عالمانو کې وشي. زه یوازې د هغو عالمانو مهمل تابع او د پښو خاورې یم او نور هیڅ هم نه. زموږ حضرت عارف بالله ډاکټر عبدالحی عارفي قدس سره به اکثر دا شعر لوستلو:

گرچې ازنیکان نیم لیکن به نیکان بسته ام      در ریاض آفرنیش رشته گلدسته ام

په هرحال زه تاسو شکریه اداکوم او د دې لیک په سلسله کې یو خوخبرې وړاندې کوم:

۱: سحبان الهند حضرت مولانا احمد سعید دهلوي رحمة الله علیه زموږ به مشهورو اکابرینو کې و. د جمعیة العلماء هند جنرل سیکټري او د امام رباني شیخ الاسلام حضرت مولانا سید حسین احمد مدني قدس سره ملګری و. د هغوی د قران ترجمه. (جنت کی کنجی)، (دوزخ کا کهټکا) او (موت کا جهټکا) مشهور کتابونه دي. تاسو به هم لوستلي وي. هم د غه کتابونو کې یو ایمان تازه کونکی کتاب (معجزات رسول الله ﷺ) دی. کوم چې په هفته واره رساله کې د "سرور مخلوق معجزات یا وړاندوینې".. په نوم باندې سلسله وار چاپ کیږي. او ستاسو په لیک کې چې د کوم لیک حواله ده. هغه هم د دې کتاب یوه برخه ده او کوم الفاظ چې تاسو بیان کړي دي، هغه د حضور ﷺ الفاظ دي. کوم چې لیکونکي د حضرت امام بیهقي رحمة الله علیه د کتاب په حواله باندې نقل کړي دي. هغه حدیث دا دی:

بیهقي رحمة الله علیه په (دلائل النبوة) کې نقل کړي دي چې یوه ورځ نبي کریم ﷺ حضرت زبیر رضی اللہ عنہ او حضرت علي رضی اللہ عنہ خپلو کې په خندا باندې ولیدل. حضور ﷺ د حضرت علي رضی اللہ عنہ نه پوښتنه وکړه: اې علي رضی اللہ عنہ! ایا زبیر ستا دوست دی؟ علي رضی اللہ عنہ وویل هو! زه هغه خپل دوست ولې جوړ نه کړم چې دی زما د ترور زوی او زما د دین پابند دی؟ بیا حضور ﷺ د حضرت زبیر رضی اللہ عنہ نه

---

بقیه د تیر مخ].. اختلافاً کثیراً فعلیکم بسنتي وسنة الخلفاء الراشدین المهدیین، تمسکوا بها وعضوا علیها بالنواجذ .....الخ (مشکوة ص: ۳۰.ب لاعتصام بالکتاب والسنة،الفصل الثانی)

پوښتنه وکړه چې اې زبیر! ایا ته علي رضي الله عنه خپل دوست ګڼې؟ زبیر رضي الله عنه ووېل: چې زه علي رضي الله عنه خپل دوست ولې ونه ګڼم چې دی زما د ماما زوی او زما د دین منونکی دی. بیا حضور صلی الله علیه وسلم وفرمایل: اې زبیر رضي الله عنه یوه ورځ به ته حضرت علي رضي الله عنه سره قتال (جنګ) کوې او ته به ظالم یې، په جنګ جمل کې حضرت زبیر رضي الله عنه د حضرت علي رضي الله عنه مقابله وکړه او جنګ وکړ. کله چې حضرت علي رضي الله عنه هغه د حضور صلی الله علیه وسلم ارشاد وریاد کړ چې تا ته د حضور صلی الله علیه وسلم هغه فرمان یاد دی چې: ته به علي رضي الله عنه سره جنګ کوې او ته به ظالم یې؟ حضرت زبیر رضي الله عنه وفرمایل: چې هو! دا خبره حضور صلی الله علیه وسلم فرمایلې وه خو ما ته یاد نه وه. له دې نه وروسته حضرت زبیر رضي الله عنه وروسته شو. خو ابن جبرود په وادی السباع (چې یوه مشهوره علاقه وه) کې حضرت زبیر رضي الله عنه شهید کړ. حضور صلی الله علیه وسلم چې څنګه وړاندوینه کړې وه . هما غه شان وشو. حضرت زبیر رضي الله عنه د حضرت علي رضي الله عنه په مقابله کې راغی او کله یې چې په هغه علاقه کې خوب کاو. نو د خوب پر مهال کې ابن جبرود شهید کړ[1]. (دلائل النبوة للبیهقی ج۲ ص ۴۱۵، کنزالعمال، ج ۱۱ ص ۳۲۰ حدیث ۳۱۲۵۲)

زه پخپله باندې د انجمن سپاه صحابه د احساساتو قدر کوم. خو د پورته بیان شویو حالاتو په رڼا کې تاسو نه د انصاف کولو غوښتنه کوم چې ستاسو د لیک دا فقره مورد ختم نبوت د خدمتګارو له پاره ډېره د تکلیف ده چې:

"ختم نبوت کې هغه کوم خلک دي چې د صحابه کرامو رضي الله عنهم دښمنان دي. چې د هغوی بندوبست وکړل شي.

انصاف وکړئ که چېرې د نبوت خدمتګاران د دې کتاب د نقل کولو په وجه باندې د صحابه کرامو رضي الله عنهم دښمنان دي، نو مولانا احمد سعید دهلوي رحمة الله علیه او د هغه نه مخکې امام بیهقي رحمة الله علیه او هغه نور ټول اکابرین کوم چې دا حدیث نقل کړې دي. د کوم خطاب مستحق دي؟

---

[1] عن أبي حرب بن الاسود قال : لما دنا علي وأصحابه من طلحة والزبير ودنت الصفوف بعضها من بعض خرج علي وهو على بغلة رسول الله صلى الله عليه وسلم فنادى : ادعوا لي الزبير بن العوام ! فدعي له الزبير فأقبل ، فقال علي : يا زبير ! نشدتك بالله أتذكر يوم مر بك رسول الله صلى الله عليه وسلم ونحن في مكان كذا وكذا فقال : يا زبير تحب عليا ؟ فقلت : ألا أحب ابن خالي وابن عمي وعلى ديني، فقال يا عليّ! اتحبه؟ فقلت: يا رسول الله! الا احب ابن عمتي وعلى ديني؟ فقال : يا زبير! أما والله لتقاتلنه وأنت ظالم له ؟ قال : بلى والله ! لقد نسيته منذ سمعته من رسول الله صلى الله عليه وسلم ثم ذكرته الان ، والله لا أقاتلك ! فرجع الزبير على دابته يشق الصفوف فعرض له ابنه عبدالله بن الزبير، فقال له ابنه عبد الله : مالك ؟ فقال : ذكرني علي حديثا سمعته من رسول الله صلى الله عليه وسلم يقول: لتقاتلنه وأنت له ظالم فلا أُقاتله، قال : وللقتال جئت؟ إنما جئت تصلح بين الناس ويصلح الله هذا الامر ، قال : قد حلفت أن لا أقاتله ، قال : فأعتق غلامك وقف حتى تصلح بين الناس فأعتق غلامه ووقف ، فلما اختلف أمر الناس ذهب على فرسه (دلائل النبوة واللفظ له ج:٦،ص:٤١٥، طبع المتكبة الاثرية، كنز العمال ج:١١،ص:٣٣٠،حديث ٣١٦٥٢)

زه ګنم چې دا یو داسې زیاتی دی چې د انجمن سپاه صحابه د طرف نه د ختم نبوت د
خدمتګارو سره شوی دی او ددې شکایت به د حضور ﷺ په دربار کې کیږي. او زه تاسو نه دا
توقع لرم چې تاسو به ددې معذرت وغواړئ!

۲: تاسو چې کومو عالمانو ته خطونه لیکلي دي. تاسو له پاره به داسې ښه و. چې تاسو د هغه
حضراتو نه ددې پوښتنه کړې وای چې دا حدیث کوم چې په ختم نبوت کې د حضرت
مولانا سعید احمد دهلوي رحمه الله په کتاب کې د امام بیهقي رحمه الله په حواله باندې نقل شوی دی.
د جرح او تعدیل په لحاظ باندې ددې څه وزن دی؟ دا د حدیثو دفن په رڼاکې صحیح دی او که
ضعیف؟ او که له ځان نه جوړ شوی دی؟ او دا مقبول دی او که مردود؟ که چېرې صحیح
او مقبول وي نو ددې تاویل څه دی؟ چې د یو جلیل القدر صحابي، د حضور ﷺ د خدمتګار،
احد العشرة المبشرة د جلالت ګواهي ورکوي.

تاسو ددې سوال په ځواب کې چې عالمانو څه فرمایلي وو، تاسو به هغه "ختم نبوت،، کې
چاپ کولو له پاره لیږلي وي، دا به یو علمي خدمت هم و او ددې په وجه باندې به د صحابه
کرامو رضي الله عنهم عظمت او محبت هم په زړه کې پیدا شوی و.

ما ته ددې خبرې ویره ده چې په خط کې تاسو کوم قسمه جذبات ښودلي دي، چیرته مخکې
لاړ نه شئ او سبا داسې ونه وایئ چې قران کریم کې د جلیل القدر انبیاء کرام علیهم السلام ته،
نعوذ بالله. ظالم ویل شوي دي، مثلاً:

د حضرت ادم علیه السلام باره کې د وه ځایونو کې دي:

ولاتقربا هذه الشجرة فتکونا من الظلمین. (البقرة ۳۵ الاعراف ۱۹)

د حضرت موسی علیه السلام باره کې دي: رب انی ظلمت نفسي فاغفر لي. (القصص ۱۶)

د حضرت یونس علیه السلام باره کې دي: لااله الاانت سبحانک انی کنت من الظالمین. (الانبیاء ۸۷)

اوس به یو سپاه انبیاء جوړ کړل شي، او هغه به د بزرګانو په نوم باندې ددې مضمون خط
ولیکي: چې د قران په ترتیب کې هغه کوم خلک راننوتي وو کوم چې د انبیاء کرامو دښمنان
وو؟ چې د هغوی بندوبست وکړل شي.

ښکاره خبره ده چې د انبیاء کرامو مرتبه د حضرت زبیر رضي الله عنه نه پورته ده او د "ختم نبوت.. قران
کریم سره څه نسبت کیدای شي؟

اوس که چېرې د انبیاء کرام علیهم السلام په حق کې د قران کریم د مقدس الفاظو څه مناسبه
توجیه کیدای شي. نو همداسې توجیه د حضرت زبیر رضي الله عنه په حق کې د حضور ﷺ د الفاظو ولې
نه شي کیدای؟ "ختم نبوت،، کې د صحابه کرامو رضي الله عنهم د دښمنانو د تلاش کولو ضرورت نشته.

## حضرت امیرمعاویه رضي الله عنه کله اسلام راوړ؟

**سوال:** حضرت امیرمعاویه رضي الله عنه کله اسلام راوړی و او په کومه موقعه یې ایمان راوړی و؟ تفصیل سره یې ولیکئ!

**جواب:** مشهوره خو دا ده چې حضرت معاویه رضي الله عنه دفتح مکې په ورځ ایمان راوړی و. خو په الاصابه کې دریم جلد ۴۳۳ صفحه، کې د واقدي نه نقل شوي دي چې هغه دصلح حدیبیه نه وروسته اسلام راوړی و. خو هغه دخپل اسلام اظهار دفتح مکې په موقع باندې وکړ [۱]

## ❖ د حضرت حُسین رضي الله عنه او د یزید په باره کې د اهل سُنت والجماعت مسلک ❖

### د حضرت حُسین رضي الله عنه او یزید حیثیت

**سوال:** په مسلمانانوکې د کربلا د واقعې په حواله سره ډېرې غلط فهمې موندل کیږي. څه خلک د یزید خلافت صحیح مني اوحضرت حسین (رضی الله عنه) ته باغي اویزیدته امیرالمومنین وایي. مهربانی وکړئ! دا اوفرمایئ چې حضرت امام حسین رضي الله عنه ته دباغي ویلو څه حکم دی، یزید ته امیرالمومنین ویل ترکومه حده صحیح دي؟

**جواب:** د اهل سنت موقف دادی چې حضرت حسین رضي الله عنه په حقه و. دهغه په مقابله کې یزید په حق باندې نه و، ځکه یزید ته به امیرالمومنین نشي ویل کېدای. حضرت حسین رضي الله عنه ته دباغي ویلو والا د اهل سنت دعقیدې نه باغیان دي.[۲]

په صحیح حدیث کې دنبي کریم صلی الله علیه وسلم ارشاد دی چې "حسن او حسین رضي الله عنهما دجنت دځوانانو سرداران دي". (ترمذي)[۳]

کوم خلک چې حضرت حسین رضي الله عنه ته (نعوذبالله) "باغي" وایي هغوی په کومه خوله دا اُمید لري چې دوی به دحضرت امام حسین رضي الله عنه په مشرۍ او سردارۍ کې جنت ته لاړشي

---

[۱] أسلم هو وأبوه وأمه هند بنت عتبة بن ربيعة يوم الفتح. وقد روي عن معاوية أنه قال: أسلمت يوم عمرة القضاء ولكني كتمت إسلامي من أبي إلى يوم الفتح (البداية والنهاية ج:۸،ص:۲۱ طبع دارالفكر،بيروت)

[۲] قال اهل السنة والجماعة: ان الحسين رضي الله عنه كان الحق فى يده وقد قتل ظلماً(شرح عقائد ص: ۱۶۲،حاشيه نمبر:۷،طبع مكتبة خيركثير) وايضاً: واما ماتفوه بعض الجهلة من ان الحسين كان باغياً فباطل عنداهل السنة والجماعة،ولعل هذامن هذيانات الخوارج،الخوارج عنداجادة(شرح فقه الاكبرص:۸۷،طبع دهلى)

[۳] عن ابى سعيد قال: قال رسول الله صلى الله عليه وسلم :الحسن والحسين سيدا شباب اهل الجنة (ترمذى،ج:۲،ص:۲۱۸،مناقب ابى محمد الحسن بن على والحسين بن على)

# ایا یزید ته پلیت ویل جائز دي؟

**سوال:** د دې مسئلې پوښتنه کول دي چې د قسطنطنیه د فتح په سلسله کې یو مشهور حدیث دی چې لومړۍ دسته د فوج چې په قسطنطنیه باندې یې حمله وکړي. نو هغو خلکو ته به ښنه کیږي. یزید هم په دې برخه کې شریك و، نو ځکه به د هغه ښښنه کیږي. په داسې صورت کې یزید ته پلیت ویل مناسب دي؟ خلک په کتابونو کې اکثر یزید په دې نوم سره یادوي بل دا چې چاته پته شته چې که یزید له مرګ نه مخکې توبه کړې وي. الله تعالی ښه پوهیږي ترڅو پورې چې د دې یقین ونشي. چې د فلاني مرګ په کفر باندې شوی دی. هغه ته کافر ویل یا په هغه باندې لعنت ویل به صحیح وي او که نه؟

**جواب:** یزید ته د هغه د کارنامو په وجه پلیت ویل کیږي . د حضرت حسین رضي الله عنه شهادت. د مدینې والو قتل عام او په کعبه باندې کاڼي ورول د هغه د دریو کلنو توري کارنامې دي[1]. دا ویل چې ابن زیاد حضرت حسین رضي الله عنه شهید کړ. لهذا د دې څه ذمه واري په یزید باندې نه راځي.

دا بالکل غلطه ده. ابن زیاد خود حضرت حسین رضي الله عنه د مقابلې له پاره د کوفې ګورنر ټاکل شوی و[2]. ترڅو پورې چې په حدیث شریف کې د ښښنې د زیري تعلق دی هغه بالکل صحیح دی[3]. خو د دې نه دا نه ثابتیږي چې د یزید غلطو کارونو ته دې صحیح وویل شي. ښښنه

---

۱] ویزید امیرالمؤمنین،وکان قبیح الآثار فی الاسلام قتل اهل المدینة وافاضل الناس وبقیة الصحابة رضی الله عنهم یوم الحرة فی آخر دولته،وقتل الحسین رضی الله عنه واهل بیته فی اول دولته،وحاصر ابن الزبیر رضی الله عنه فی المسجد الحرام واستخف بحرمة الکعبة والاسلام فاماته الله فی تلک الایام.......الخ (جمهرة انساب العرب لابن حزم ظاهری ص:۱۱۲،طبع دارالمعارف مصر) تفصیل له پاره اوګورئ اسماء الخلفاء والولاة وذکر مددهم ص:۳۵۷، ۳۵۸ طبع مصر.

۲] کتب یزید الی ابن مرجانة ان اغز ابن الزبیر فقالا: لا اجمعهما للفاسق ابداً اقتل ابن بنت رسول الله صلی الله علیه وسلم واغزوالبیت ......الخ (تاریخ طبری ج:۵،ص:۴۸۳) وبعث اهل العراق الی الحسین الرسل والکتاب یدعونه الیهم فخرج من مکة الی العراق فی عشر ذی الحجة ومعه طائفة من آل بیته رجالاً ونساء وصبیاناً،فکتب یزید الی ولیه بالعراق عبیدالله بن زیاد بقتله فوجه الیه جیشاً اربعة آلاف......الخ (تاریخ الخلفاء ص:۱۶۹ طبع مؤسسة الکتب الثقافیة)

۳] قَالَ عُمَيْرٌ فَحَدَّثَتْنَا أُمُّ حَرَامٍ أَنَّهَا سَمِعَتِ النَّبِيَّ صلی الله علیه وسلم يَقُولُ « أَوَّلُ جَيْشٍ مِنْ أُمَّتِي يَغْزُونَ الْبَحْرَ قَدْ أَوْجَبُوا » . قَالَتْ أُمُّ حَرَامٍ قُلْتُ يَا رَسُولَ اللَّهِ أَنَا فِيهِمْ . قَالَ « أَنْتِ فِيهِمْ » . ثُمَّ قَالَ النَّبِيُّ صلی الله علیه وسلم « أَوَّلُ جَيْشٍ مِنْ أُمَّتِي يَغْزُونَ مَدِينَةَ قَيْصَرَ مَغْفُورٌ لَهُمْ » . فَقُلْتُ أَنَا فِيهِمْ يَا رَسُولَ اللَّهِ . قَالَ « لاَ »(صحیح البخاری، کتاب الجهاد،باب ما قیل فی قتال الروم ج:۱،ص:۴۰۹، ۴۱۰)

د ګناهګارو کبیرې له دې وجې نه په بښنه او ګناه کې څه تعارض نشته[۱].خو دیزید د کفرفتوا دهغه دخاتمې یقیني علم باندې مبني ده او هغه علم نشته ، ځکه د کفرفتوا په هغه باندې موږ هم نه ورکوو[۲] ، اګرچې د یزید د تورو کارنامو په وجه ډېرو حضراتو هغه دلعنت حقدار ګرځولی دی، مګردهغه دنوم اخستلو سره لعنت هم موږ نه کوو.خوپه چاباندې د لعنت نه کولو دامعنا نه ده چې دهغه حمایت دې هم وکړل شي[۳].والله اعلم

## په یزید باندې د لعنت ویلو څه حکم دی؟

**سوال:** ایایزید باندې لعنت ویل جائزدي؟

**جواب:** داهل سنتو په نزدباندې په یزیدباندې لعنت ویل جائز نه دي. دا دشیعه ګانو شعار دی.بدء الامالي) چې داهل سنتت والجماعت په عقائدو کې ده دهغه شعر دی:

ولم یلعن یزیدًا بعد موت سوی المکثار فی الاغراء غال[۴]

---

۱] قال الشاه ولی الله الدهلوی فی شرح تراجم ابواب البخاری (قوله مغفور لهم) تسمک بعض الناس بهذا الحدیث فی نجات یزید لانه کان من جملة هذا الجیش الثانی. بل کان راسهم ورئیسهم علی ما یشهد به التواریخ، والصحیح انه لا یثبت بهذاالحدیث الا کونه مغفوراً له ما تقدم من ذنبه، علی هذه الغزوة لان الجهاد من الکفارات، وشان الکفارات ازالة آثار الذنوب السابقة علیها لاالواقعة بعدها، نعم لو کان مع هذاالکلام انه مغفور له الی یوم القیامة یدل علی نجاته، واذ لیس فلیس بل امره مفوض الی الله تعالی فیما ارتکبه من القبائح بعد هذه الغزوة من قتل الحسین علیه السلام وتخریب المدینة والاصرار علی شرب الخمر ان شاء عفا عنه وان شاء عذبه کما هو مطرد فی حق سائر العصاة علی ان الاحادیث الواردة فی شان من استخف بالعترة الطاهرة، والملحد فی الحرم والمبدل للسنة، تبقی مخصصات لهذا العموم لو فرض شموله لجمیع الذنوب (شرح ترجمة ابواب البخاری ،ملحقه بخاری شریف ص:۳۱، ۳۲ طبع نورمحمد کتب خانه)

۲] ولا یخفی ان قوله : والحق بعد نقله الاتفاق لیس فی محله مع ان الرضی بقتل الحسین لیس بکفر لما سبق من ان قتله لا یوجب الخروج عن الایمان بل هو فسق وخروج عن الطاعة الی العصیان ثم دعواه انه مما تواتر معناه فقد سبق انه لا یثبت اصلاً فضلاً عن التواتر قطعاً......وحقیقة الامر التوقف فیه ومرجع امره الی الله تعالی ......الخ (شرح فقه الاکبر ص:۸۸ وایضاً اصول الدین لابی الیسر بزدوی ص:۹۸، طبع مصر)

۳] یزید بی دولت از زمره فسقه است،توقف درلعنت او بنابراصل مقرر اهل سنت است که شخص معین را اگرچه کافر باشد تجویز لعنت نکرده اند نگر آنکه بیقین معلوم کنند که ختم او برکفر بوده کابی لهب الجنهمی وامرته، نه آنکه او شایان لعنت نیست،ان الذین یؤذون الله ورسوله لعنهم الله فی الدنیا والآخرة (مکتوبات امام ربانی ،دفتر اول، مکتوب:۲۵۱، ص۴۱۷ طبع ایچ ایم سعید وایضاً دفتر اول،مکتوب :۲۶۶ ص:۴۸۷)

٤] لم یلعن احد من السلف یزید بن معاویة سوی الذین اکثروالقول فی التحریض علی لعنه وبالغوا فی امره وتجاوزوا عن حده کالرافضیة والخوارج وبعض المعتزلة........ فلا شک ان السکوت اسلم......(شرح الامانی لملا علی القاری ص:۲۷، ۲۸ طبع استنبول)

ددي په شرح کې علامه علي قاري رحمة الله عليه ليکي چې"په يزيد باندې په سلفوکې هيچالعنت نه دی کړی.بغيرله شيعه گانو. خوارجو او ځينو معتزله وونه چې هغوی په فضول ويناکې دمبالغې نه کار اخستي دی اوپه دې مسئله باندې د اوږد بحث نه وروسته ليکي:

''فلا شك ان السكوت أسلم..

له دې وجې نه داهل سنت والجماعت عقيده داده چې نه دې په يزيد باندې لعنت ويل کيږي اونه دې دحضرت حسين رضي الله عنه په مقابله کې دهغه تعريف او صفت کيږي"

## يزيد اواعتدال مسلک

يزيد په باره کې جې پورته کوم دوه سوالونه او ځوابونه ذکر شو.په دې باندې موږ ته دوه مخ... ميکونه ... اغلل . لاندې اول هغه دواړه خطونه ذکرکيږي. له دې نه وروسته به په هغه باندې ... کيږي . د تصحيح په صفحه نمبر ۲۱۵ وګورئ)

السلام عليکم ورحمة الله وبرکاته

اُميددی چې طبيعت به مو ښه وي . ځوورځې وشوې چې يو دوست ماته په ډېرافسوس سره تذکره وکړه چې مولانامحمديوسف لدهيانوي صاحب هم غيرارادي او غيرشعوري طور باندې دشيعه گانو دخوشحالولو له پاره دعام حقيقت نه خلاف خبرې شروع کړي. له پلټنې (تلاش) کولووروسته پته ولګيده چې تاسو په يوه هفته واره رساله کې"يزيدپليت" ليکلي دي، خوماورته عرض وکړ چې ته به غلط پوه شوی يې څه بل شان به وي، د مولانايوسف لدهيانوي پشان عالم او محقق سړی داسې خبره نشي کولی. هغه په ښه شان پوهيږي چې يزيدديوجليل القدرصحابي زوی دی اودزرګونوصحابه وو معتمددی او دهغه د ولي عهدکېدو تجويزددين اوملت دلويو اوفراخه مفادو په خاطر پخپله دبيعت رضوان اصحابو وړاندې کړ، هغه وخت کې موجود ټولو صحابه کرامو او تقريبا نيم درجن ازواج مطهرات دا تجويزخوښ کړ.څنګه چې شپږم خليفه راشد امام عادل حضرت اميرمعاويه رضي الله عنه دخليفه وخت په حيث ددې متفقه تجويزاعلان وکړ. بيعت وشو. لس کاله وروسته چې کله يزيد عملا خليفه جوړشو. نو ددغه فيصله شوې پاليسي مطابق په ټول ملک کې پخپله دخلافت بيعت په عمل کې راغی.په دغه وخت کې په سوونو جليل القدر صحابه رضی الله عنهم چې موجودوو هغوی بيعت وکړ. اعتماد يې وکړ .تعاون يې وکړ.د يواو دوو داختلاف اواز ښکاره خبره ده چې دڅه کم سلونه هم زياتو د اتفاق او اتحاد په مقابله کې څه حيثيت نه لري دعبدالله بن عمر رضي الله عنه اوعبدالله بن عباس رضي الله عنه په شان جيدو عالمانو اوفاضلانو صحابه وو نه هيڅ پليتي په نظر رانغله .کوم چې حقيقي بُزرګان او ليدونکي ګواهان دي،له دې نه روسته دې وړوکو بزرګانو ته پليتي دکوم ځای نه په نظر راغله.بيادحضرت حسين رضي الله عنه ځوان. متقي او نيک زوی کوم چې ددغه دور اودکوفې دمنافقانو له لوري دجوړې شوې کربلا ليدونکي

ګواه دی.هغه هم څه خبره نه کوي .نه ورنه قاتل وايي نه ورته پليت وايي. بلکې بيعت ترې کوي اوتر اخره پورې ورسره وفاداري اومکمل تعاون کوي. نوعرض يې وکړ چې وروره .داټول د صحابه وو دښمنان دشيعه ګانو پروپګنډه او دمسلمانانو سادګي ده. که نه دتابعينو د اول صف سخصيت.دحج اودجهاد قائد.متفقه خليفه پليت وغيره څنګه کيدای شي؟ داسې د اميانو خبره مولانا لدهيانوي صاحب نشي کولی". هغه زماوعظ ډېرپه تحمل سره واوريده اوبيايې څو ګينټې وروسته هفته روزه "ختم نبوت"رساله زما مخکې کيښوده ماچې دا وليدله حيران پاتې شوم چې دهغه خبره صحيح وه.واقعي ستاسونه سهوه وشوه.مابه کله ستاسو نوم ته کتل او کله ديزيد پليت عنوان ته اوحيران وم

حضرت بې پروايي پريږدئ. شيعيت دکُفرياتو مجموعه ده.خوپېږۍ تيرې شوې. نه د دوی تکفير وکړل شو.نه دوی دامت مسلمه نه کټ کړل شو.اسلامې فرقه ګڼل کيږي. دې خلکو پخپل مکر او فريب سره دسُنّي مسلمانانو په زړه او دماغو باندې هم قبضه کړې ده.دماتم نه پرته په خيالاتوکې هيڅ فرق په نظرنه راځي.مولانابنوري رحمه الله مرحوم څلوېښت کاله وروسته مودوديت وپيژنده.مولانا منظورنعماني اوس شيعيت وپيژنده؟ تاسو به څومره موده په دې کې ولګوئ؟

دخدای له پاره د سبائيت اثرات پريږدئ دصحابه وو.تابعينو اودتبع تابعينودعزت او شرافت حفاظت وکړئ اود دروغو بهتانونه وپيژنئ!

والسلام

ارشاداحمدعلوي ايم اے .هوايي اډه روډ نزد مسجداقصی.رحيم يارخان

## دويم خط:

محترم مولاناصاحب دامت برکاتهم!

درمضان اودشوال ۱۴۰۱هجري.مطابق داګست ۱۹۸۱شمارنمبر۳،۴.ج۳۹ مې مخکې ده .دمسائلو اواحکامو دعنوان دلاندې فضل القيوم نومې سائل ته ديواهم سوال په ځواب کې تاسو ليکلي چې:

"داهل سنت والجماعت په نزد يزيدباندې لعنت کول جائزنه دي.دا دشيعه ګانو شعاردی صفحه ۷۷،۲۲.تاسوته معلومه ده چې دمحمود احمد عباسي دتشدد والا تحقيق او د مودودي منافقانه تاليف"خلافت وملوکيت" نه وروسته دې قسمه مسائلو يو خاص اهميت حاصل کړی دی. له دې وجې نه زه ددې خط په ذريعه دزيات تحقيق او د رواياتو دتطبيق اُميد لرم.

ستاسو له دې ځوابه نه معلوميږي چې په اهل سنت والجماعت کې هيڅوک هم په يزيد باندې دلعنت ويلو دجواز قايل نه دي، قاضي ثناء الله پاني پتي رحمه الله په خپل مشهور

کتاب "السیف المسلول کې فرمايي: "دفقیرپه نزدباندې غوره خبره داده چې په یزیدباندې لعنت ویل جائزدي او داهل حدیثو دمحققینو هم دا مذهب دی چې په دې کې امام ابوالفرجاو ابن جوزي هم دي،د علم او شان په جلالت کې ډېرلوړ،هغه په دې مسئله باندې يوکتاب هم ليکلی دی چې دهغه نوم دی " الردعلی المتعصب العنیدالمانع من ذم یزید "صفحه ۴۸۸.

داهل دیوبند دمسلک ترجمان حکیم الاسلام حضرت مولانامحمدطیب مدظله العالي په "شهید کربلا او یزید" کې فرمايي:

"دا ټول شهادتونه موږ له دې وجې نه نه دي وړاندې کړي چې زموږ په یزید باندې دلعنت ویلو سره څه خاص دلچسپي شته ده، نه موږ ترننه پورې په هغه لعنت کړی دی او نه زموږ اینده اراده شته اونه دهغه لعنت ثابتونکو علماوو او امامانو منشاء د یزید لعنت په طور د وظیفې وړاندې کول دی، د هغوی منشاء یواځې یزید دهغه دغیرمعمولی نالائقه حرکتونو په وجه د لعنت حقدار ګرځول یازیات نه زیات د لعنت جواز ثابتول دي". صفحه ۱۴۵

علامه آلوسي رحمه الله د روح المعاني مصنف فرمايي:

ان الإمام أحمد لماسأله ولده عبدالله عن لعن يزيد, قال: كيف لايلعن من لعنه الله تعالى في كتابه فقال عبدالله: قدقرأت كتاب الله عزوجل فلم أجدفيه لعن يزيد! فقال الإمام: ان الله تعالى يقول: ﴿ فَهَلْ عَسَيْتُمْ إِن تَوَلَّيْتُمْ أَن تُفْسِدُوا فِي الْأَرْضِ وَتُقَطِّعُوا أَرْحَامَكُمْ ۝ أُولَٰئِكَ الَّذِينَ لَعَنَهُمُ اللَّهُ ﴾ .(محمد ۲۲:۲۳).

,,وأي فساد وقطيعة أشدمما فعله يزيد،،

دڅوکرښونه وروسته فرمايي: وقدجزم بكفره, وصرح بلعنه جماعة من العلماء, فمنهم الحافظ ناصر السنة ابن الجوزي, وسبقه القاضي أبويعلى, وقال العلامة التفتازاني:

"لانتوقف فى شانه بل فى ايمانه لعنة الله عليه وعلى أنصاره وأعوانه".

وممن صرح بلعنه الجلال السيوطي عليه الرحمة.(روح امعاني ص۷۲ ج۲۶).

وأنا أقول الذى يغلب على ظني ,أن الخبيث لم يكن مصدقًا برسالة النبي ﷺ, وان مجموع مافعل مع أهل حرم الله تعالى, وأهل حرم نبيه عليه الصلوة والسلام وعترته الطيبين الطاهرين فى الحياة وبعدالمماة, وماصدر منه من المغازي ليس بأضعف دلالة على عدم تصديقه من القاء ورقة من المصحف الشريف فى قذر ,ولاأظن ان أمره كان خافيا على أجلة المسلمين اذ ذاك, ولكن كانوا مغلوبين مقهورين لم يسعهم الا الصبر ليقضى الله أمرا كان مفعولاً, ولوسلم أن

الخبيث كان مسلمًا فهو مسلم جمع من الكبائر مالايحيط به نطاق البيان, وأنا أذهب إلى جواز لعن مثله على التعيين. (ج۲٦ص۷۳)

ستاسو پشان معتدل او دمضبوط علم والا باندې دا ضروري ده چې ددې مسئلې صفايي كولو سره ځواب راكړئ اود اهل سُنت د مشرانو ددې مختلفواقوالو تطبيق وكړئ اوذهني نا ارامي مې لیرې كړئ !احقر عبدالحق رحيم يارخان.

**جواب:** دا دواړه خطونه ديزيدپه باره كې دكمي اوزياتي ددوو انتهايي رازونو نمائندګي كوي. يو فريق "ديزيد په محبت"كې تردې حده پورې وړاندې تللي دي چې ديزيد صفت يې داهل سنت والجماعت شعار ثابت كړى دى. دهغه خواهش دادى چې ديزيد شمار كه چېرې په خلفاء راشدينو كې نه دى ، نو كم نه كم په خلفاء عادلينوكې ضرور كېدل پكاردي اود يزيد د دريو كالوپه درو كې چې كوم سخت واقعات ښكاره شو ، يعني دحضرت حسين رضي الله عنه اود نورو اهل بيتو شهادت ،دحره په واقعه كې دمدينې والو قتل عام او دحضرت عبدالله بن زبير رضي الله عنه په مقابله كې په حرم كعبه باندې حمله.په دې واقعاتوكې دې يزيد په حقه اود ده په مقابله كې د لويو صحابه وو او په حقه امامانو ته دې باغي وويل شي.

دويم فريق" په بغض يزيد" كې په اخري كرښه باندې دى. ددوى په نزد باندې د يزيد د بدو كارونو دمذمت حق نه ادا كيږي، ترڅوپورې چې يزيد ته ددين او ايمان نه خارج اوكافر او ملعون ونه ويل شي.

دا فريق يزيد دهغې عامې ښښنې او رحمت غوښتلو د دعا حقدرا هم نه ګڼي، كومه چې دامت محمديه (على صاحبها الصلوة والسلام) دګناهګارو له پاره كيږي.

خو داعتدال لاره شايد ددې دواړو په مېنځ كې تېره شوې وي اوهغه دا چې يزيد دصفت نه ځان وساتل شي، ددې په مقابل كې حضرت حسين رضي الله عنه حضرت عبدالله بن زبير رضي الله عنه او نور د لوړ شان والا صحابه وو او تابعينو (كوم چې ديزيدپه ظلم سره شهيدان شو) موقف په حقه وګڼل شي. خو دهغه دټولو بدو كارونو سره سره دهغه په كفرباندې خاتمه په قطعي دليل سره ثابته نه ده.ځكه دهغه په كفركې دې خاموشي وكړل شي اودهغه دنوم سره دلعنت ويلو نه دې هم ځان وساتل شي.دجمهور اهل سنتو او د ديوبند دمشرانو همدامسلك دى او هم دا د سلامتيا لار ده.

حضرت مولانا محمديوسف بنوري نورالله مرقده په"معارف السنن" كې ليكي:

ويزيدلاريب فى كونه فاسقًا ولعلماء السلف فى يزيد وقتله الإمام الحسين خلاف فى اللعن والتوقف قال ابن الصلاح: فى يزيد ثلاث فرق فرقة تحبه, و فرقة تسبه, وفرقة متوسطة لاتتولاه ولاتلعنه قال: وهذه الفرقة هي المصيبة الخ. (ص۸ج٦)

ترجمه:"د یزید په فاسق کېدو کې هیڅ شك نشته او د سلفو علماوو په دې کې اختلاف دی چې په یزید باندې او د امام حسین رضي الله عنه په قاتلانو باندې دې لعنت وویل شي او یا دې په کې خاموشي وکړل شي. ابن صلاح وايي چې دیزید په باره کې درې فرقې دي. یوه فرقه د هغه سره محبت کوي دویمه فرقه د هغه سره بُغض ساتي او هغه ته کنځل کوي او دریمه فرقه د دوی په مینځ کې ده نه هغه ته ښه وايي او نه په هغه باندې لعنت کوي. ابن صلاح وايي هم دا فرقه په صحیح لاره ده"

د حضرت بنوري رحمه الله نه دې تحریر نه معلومه شوه چې دیزید په فسق باندې تعریف د اهل سنت والجماعت اجماع ده، خو په دې کې اختلاف دی چې په یزید باندې لعنت وکړل شي که په دې معامله کې دې خاموشي وشي؟ په دویم خط کې د دې فرقې نمائندګي شوې ده. چې دیزید په ایمان کې هم شك کوي او پرته د شك شبهې په هغه باندې دلعنت د جواز قایل دې. اګرچې دا قول هم دسلفو یو جماعت اختیار کړی دی. خو څنګه چې ما عرض کړی و، د جمهور اهل سنت او د دیوبند د اکابرینو دا قول دی چې یزید ګناهګار مسلمان دی په ده باندې دلعنت په باره کې د توقف قایل دي.

د یزید صفت کول د اهل سُنت والجماعت شعار ګرځول څنګه چې زموږ دعلوي صاحب د لیکونو نه معلومیږي، دا یو نوی انکشاف دی چې زموږ دعقل او پوهې نه ډېر پورته دی.

زموږ دځینو اکابرو دقلم نه د" یزید پلیت" لفظ وځي. زما چې کوم مضمون دهفت روزه"ختم نبوت" کې دیوسوال په ځواب کې خپور شوی و، په هغه کې ددغه اکابرو ددې طرز عمل توجیه شوې وه، چې دا د یزید دبدو کارونو خلاف دناخاپې نفرت او غوسې اظهار دی، څنګه چې امام رباني مجدد الف ثاني رحمه الله په خطونو کې ډېر په اهتمام سره د یزید دنوم سره د"بې دولت" لفظ لیکي[1]، شاه عبدالحق محدث دهلوي رحمه الله[2]، مسندالهند شاه عبدالعزیز دهلوي رحمه الله[3] حجة الاسلام مولانا محمد قاسم نانوتوي رحمه الله. قطب العالم حضرت مولانا رشید احمد ګنګوهي رحمه الله او نور مشران د"یزید پلیت" لفظ لیکي، زموږ علوي صاحب انکشاف کړی چې دا ټول "واړه" بُزرګان وو، ماشاء الله! دبدنظرنه دې لیرې وي، همداسې دخپلو بزرګانو ادب او احترام وي (!). زماله پاره دا پوهیدل مشکل دي، چې که چیرې دا ټول مشران واړه بزرګان وو، نو د دوی په مقابله کې د محمدیوسف لدهیانوي یا دجناب ارشاد علوي صاحب څه اهمیت دی؟ که چیرې دا مشران په حدیث او تاریخ، دصحابه وو په حالاتو

---

[1] مکتوبات امام ربانی، مکتوب: ۲۵۱، دفتر اول: ص ۴۱۷ حصه چهارم، ایضاً مکتوب: ۲۶۶ دفتر اول ص: ۴۸۷.

[2] تکمیل الایمان ص: ۷۱ طبع مجتبائی

[3] فتاوی عزیزی ج: ۱، ص: ۱۰۰ طبع مجتبائی.

او د اهل سنت و الجماعت په عقائدو باندې نه وو پوه شوي. نوزما او ستاد "تحقيق" به څه وزن پاتې شي؟ شايد چې زمونږ دعلوي صاحب په نزد د "حضرت يزيد رحمه الله" په مقابل کې حضرت حسين رضي الله عنه. حضرت عبدالله بن زبير رضي الله عنه. حضرت عبدالله بن عباس رضي الله عنه. حضرت عبدالله بن عمر رضي الله عنه. حضرت ابوشريح رضي الله عنه او دحري د واقعې ټول صحابه او تابعين به هم واړه بزرګان وي. بلکې پخپله دمدينې حرم. دمکې حرم او دنبي ﷺ دکورونو حرمت هم ديزيد په مقابله کې به وړوکى شان وي. ځکه چې يزيد دنبي ﷺ د اولاد دحرمت هم لحاظ ونه ساته. د مدينې حرم يې هم تر پښو لاندې کړ او دکعبې په حرم باندې يې هم حمله وکړه. که چېرې دا ټول شيان ديزيد په مقابله کې واړه شان دي. نومونږ ته يقين ساتل پکار دي چې بس د "يزيد محبت" د اسلام داسې مقدسه عقيده ده چې دهغه په مقابله کې نه دمکې د حرم څه عظمت شته نه. دمدينې دحرم. نه دنبي عليه السلام دخاندان. نه دجليل القدر صحابه وو او وتابعينو او نه د وروسته ديارلس سوه کاله دامت دمشرانو. پاتې شوه دعلوي صاحب دا شبه چې ډېرو صحابه وو او تابعينو ديزيد نه بيعت کړې و. دهغوى له لوري ټاکل شوي خليفه ته "پليت" څنګه ويل کيداى شي؟ددې ناکاره په خيال کې دا شبه داسې نه ده چې څوک عقلمن سړى په دې کې ونښلي.

جناب علوي صاحب غور وکړئ چې دلته دوه بحثونه بېل بېل دي. يو دا چې د يزيد استخلاف صحيح وا و که نه؟ او دويم دا چې د خليفه ټاکل کېدو نه وروسته يې چې کومې کارنامې وکړې هغه د شاباسي لائق دي يا دنفرت لائق دي؟ او ددې کارنامو په بناء باندې هغه دايمان والو دمحبت او تعريف مستحق دي يا دنفرت. بيزاري. مذمت او قباحت حقدار دي؟

دجناب علوي صاحب استدلال که چېرې کتور کيداى شي. نو په لومړي بحث کې کيداى شي. ځکه چې ټولو صحابه وو او تابعينو دهغه نه بيعت کړې وو . ځکه دهغه استخلاف صحيح ګڼل پکار دي. بياهم په دې دليل باندې دجرح او قدح کافي ګنجائش شته. خو دلته ديزيد داستخلاف بيخي بحث نه دى . له دې وجې دعلوي صاحب دا شُبه بالکل بې ځايه ده. دلته خو بحث ديزيد د استخلاف نه وروسته دهغه کارنامې دي چې دخلافت سنبالولو نه وروسته چې هغه کوم څه وکړل هغه دخير او برکت اعمال وو. ياد فسق او فجور؟ په دې وجه سره هغه دطاهر او مطهر ويلو حقدار دى ياد "پليت او ملعون" ويلو؟ او ددې کارنامو نه وروسته دهغه په باره کې د امت داکابرو څه رايه ده؟ ما پورته عرض کړى و چې دده د دريوکالود دور درې واقعې مشهورې دي. دنبي عليه السلام محبوب لمسى حضرت حسين رضي الله عنه او دهغه د اهل بيتو شهادت. دمدينې حرم نړول او دمدينې دخلکو عام وژنه. دکعبې په حرم باندې دفوج راخېژول. ايا د يو داسې سړي چې دهغه په زړه کې دايمان اخري سلګۍ وي. ددې واقعاتو نه وروسته هم دهغه په زړه کې د يزيد محبت او دهغه عزت او عظمت باقي پاتې کيداى شي؟ ايا زمونږ علوي صاحب د يو صحابي يا ديو جليل القدر تابعي حواله وړاندې کولى شي چې هغه په دې واقعاتو باندې يزيد ته شاباسي ورکړې وي؟ او ايا دا

واقعات زمونږ دعلوي صاحب په نزد باندې نبي کريم ﷺ ته د تکليف ورکولو سبب به نه وي؟ دېزيد دحمايت او مخالفت نه ذهن فارغ کړه او لږ په يخ زړه سره سوچ وکړه. چې کله دنبي عليه السلام خاندان په خاورو او وينو کې ولړل شي او دنبي عليه السلام په ښار کې صحابه اودهغوی اولاد ختميږي اودکعبې په حرم باندې حملې کولو سره دهغه بې حرمتي کيږي او بيا دا واقعات پرله پسې وروسته کيږي، نودابه کوم مسلمان وي چې دېزيد په دې کردار به د افرين اوازپورته کړي.

او ددې ټولو ناکاره کارونو باوجود په ژبه يې د يزيد تعريف او صفت وي. الله تعالی دې مونږ ته دخپلې رضا توفيق راکړي. (آمين)

# ❖ اجتهاد او تقليد ❖

## د تقليد تعريف او حکمونه

**سوال:** دتقليد تعريف په دې الفاظو کې کيږي. چې دتقليد مطلب دادی چې دکوم کس قول په شريعت کې نه وي دهغه په قول باندې د تحقيق کولو نه پرته عمل کول. اهل حديث حضرات داډيره دغټې ګناه خبره ګڼي، خوزه دې قول باندې پوهيدل غواړم. مخکې چې زه ځنګه پوه شوې يم دهغې دښکاره کولو کوشش کوم. چې وروسته ستاسو په خبره باندې په اساني سره پوه شم.

دشريعت اخست ځای (مأخذ) شرعي دليلونه دي.ديومجتهدقول وي اوهغه قول دشريعت دځه نا څه دليل لاندې وي.داخبره اياتقليدکې داخل ده. زماپه خيال دکوم حدپورې چې زه پوه شوی يم.داسې قول صحيح ګڼل داهل حديث په نزدباندې تقليدنه دی. ځکه چې هغه قول خودشريعت ددليل نه ثابت دی.

۲: زماخپله تجربه داده چې اهل حديث دلته يوه غلطي کوي. هغه داچې که چيرې دمجتهدپه قول باندې دشريعت نه يودليل پخپله باندې په پوهه کې راشي، نوبياخو سمه ده، خوکه چيرې دهغوی علم ديومضبوط شرعي دليل پورې نه رسيږي. نوبيا هغه قول ته داسې څه وايي چې څه يې خوښه وي.

دويمه خبره کومې باندې چې زه پوهيږم هغه داچې دپورته بيان شوي دتقليد دتعريف مطابق مقلد.دامام قول خودشريعت مأخذ نه ګڼي. هغه خو شرعي آدله دي. خوبيوداسې قول (پته نشته چې داسې قول شته هم اوکه نه) چې هغه باندې دشريعي دليلونو ثبوت نه وي.يعنې د شريعت نه هغه مسئله معلومه نه شي. يوائې دمجتهد اجتهاد ياخيال وي. دې قول باندې د دليل له غوښتنې نه پرته عمل کول. ځکه چې دهغه مقام دادی چې دقران اوسنت په علوموباندې بصيرت لري، قول باندې ددليل نه غوښتلو دامعنا ده اوکه بل څه؟

ديوې بلې خبرې كولو همت كوم. كيداى شي چې زه نه يم پوه شوى. خو د اظهار له پاره يې كوم چې نن سبا خلک د شپيته او يا صفحو كتاب كې ددوه دوه نيم سوو حوالو په پيوندونو باندې دخه ثابتولو كوشش كوي.ماهنامه بينات.. محرم الحرام ١٤١٢هـ كې ستاسو مضمون كوم چې داصلاح مفاهيم باره كې و. دهغه اخري جملې كومې چې دتبليغ باره كې وې، يو چا ستاسو په نوم باندې غلطه حواله وركولو سره ليكلي يعنې: اهل تبليغ.د حضرت شيخ نورالله مرقده كتابونه او ستاسو تعليمات ډيرخوښ ګڼلو سره نقل وحركت كوي (دقران او حديث اوصحابه كرامو رضی اللہ عنہم طريقې نه. بلكې دحضرت شيخ رحمۃ اللہ علیہ تعليمات خپروي) لكه چې داعتراض په طورباندې ويل كيږي چې حضرت مولانامحمدالياس رحمۃ اللہ علیہ فرمايلي دي. زما زړه غواړي چې طريقه زماوي او تعليم دحضرت تهانوي رحمۃ اللہ علیہ وي.

**جواب:** ١: شرعي دليلونه څلور دي.

(١) دالله تعالى كتاب. (٢) درسول الله صلی اللہ علیہ وسلم سنت (٣) دامت اجماع او (۴) د مجتهدينو قياس، د لومړي دريو شيانو څخه خو اهل حديث هم منكرنه دي،خو دڅلورم شى منكر دي.

٢: كوم شيان چې ښكاره طورباندې دكتاب اوسنت يااجماع نه ثابت وي اودهغې په مقابله كې بل څه دليل نه وي. هلته خود مجتهدينو دقياس ضرورت نه وي. البته دكومو مسئلو ذكر چې په كتاب اوسنت اواجماع كې ښكاره طورباندې نه وي، هغو كې دشرعي حكم معلومولو له پاره دقياس او اجتهاد ضرورت وي.

٣: همدارنګه چې په كومو مسئلو كې ښكاره طورباندې اعتراض وي. هلته دتطبيق ياترجيح ضرورت وي اويا داچې منسوخ خونه دي؟ بيان خوپه جوازباندې محمول نه دى؟ په څه عذرباندې خومحمول نه دى؟ او داسې نور....

۴: دادوه مرحلې طى كول خودمجتهدكاردى،يعنې دغيرمنصوصي مسئلوحكم معلومول، اوپه كومومسئلوباندې چې دليلونوكې اعتراض وي، هغو كې تطبيق اوترجيح اودهغو مقام معلومول.

۵: اوخلک دوه قسمه دي. يوهغه كوم چې داجتهادصلاحيت لري. دويم عامي. كوم چې ددې صلاحيت نه لري،پورته ذكرشويو دوو مرحلوكې مجتهدباندې اجتهادلازم دى. چې هغه دانساني طاقت مطابق كوشش وكړي چې دې مسئلې كې دالله تعالى اودهغه د رسول صلی اللہ علیہ وسلم څه حكم دى؟ او عامي سره دې نه پرته بل څه اختيارنه وي چې هغه د مجتهد په خبره باندې عمل وكړي.

٦: دعامي له پاره هم داكافى ده چې هغه دكوم مجتهدخبره مني. هغه د عالمانوپه نزدباندې داعتبارقابل وي، په هره يوه مسئله كې ددليل مطالبه كول هغه له پاره ممكن نه وي، دا ددې خبرې مطلب شوچې دمجتهد خبره ددليل له مطالبې پرته منل تقليددى.

۷. اهل حدیث هم په حقیقت کې مقلدین دي. ځکه چې د کومو اکابرینو قول هغوی اخلي. د هغوی نه د دلیل مطالبه نه کوي او نه یې کولای شي. تقلید پرېښودل هم یو قسمه تقلید دی.
۸. د دې تحقیق نه معلومه شوه چې د مجتهد قول د شرعي دلیل نه پرته نه شي کیدای. خو دا ممکن دی چې کله ناکله هغه دلیل د یو عامي د ذهن او پوهې نه لوړ وي. خاص طور باندې چې کله شرعي دلیلونو کې په ظاهر د تعارض ښکاري. اهل حدیث حضرات دا سې وخت کې د اجتهاد د امامانو قول بې دلیله ګڼي. سره له دې چې د بې دلیله کیدو مطلب دا وي چې دلیل د هغوی د پوهې نه لوړ دی. په نورو الفاظو کې داسې ویل کیدای شي چې په دلیل د نه پوهېدو په وجه باندې هغوی ورته د دلیل نه کیدو نوم ورکوي. سره له دې چې د شی نه شتون بېله خبره ده او په هغه نه پوهېدل بېله خبره ده او بیا عدم علم ځانته شی دی او علم عدم بیل. دا هما غه خبره ده کومه چې تاسو په نمبر ۲ کې ذکر کړې ده.
۹. شرعي دلیلونه په حقیقت کې هم درې دي. خود مجتهد قول ته چې کوم شرعي دلیل ویل کیږي، د هغه وجه دا ده چې هغه همیشه په څه ناڅه دلیل شرعي دلیل (پټ یا ښکاره) باندې مشتمل وي. خو دغه شرعي دلیل باندې مجتهد ښه پوهیدای شي. په دې وجه باندې د عامي په حق کې د مجتهد قول شرعي دلیل ګرځول شوی دی.
۱۰. د شیخ د کتابونو باره کې چې ما څو مره څه لیکلي دي. د سیاق او سباق نه د هغو مفهوم ښکاره دی، له دې سره سره که څوک ترې غلط استدلال کوي، نو دې څه علاج کیدای شي؟ خلکو غلط استدلال له پاره د قران کریم لحاظ نه دی کړی، نو د دې ناپاک د لیکنې لحاظ یې ولې وکړي؟

## د څلورو امامانو مذهب حق دی

**سوال:** تاسو په خپل کتاب کې حنفي فقه د خلاصي معیار ګرځولې ده، سوال دا دی چې د نورو درېو امامانو باره کې ستاسو څه خیال دی؟ زه چې کوم ځای کې اوسیږم هلته د شافعي رحمه الله مذهب منونکي دي او زما ژوند هم د امام شافعي رحمه الله په تقلید کې تیر شوی دی. زه د خپل ټول عمر د عبادتونو باره کې پریشان یم. ایا زما له پاره مسلک بدلول ضروري دي؟ او مسلک بدلول ډېر ګران کار دی. ایا د امام شافعي رحمه الله مسلک د کتاب او سنت خلاف دی؟ زما پریشاني ختمه کړئ!

**جواب:** ستاسو په حق پرستي او ځان پوهولو باندې مې زړه خوشحاله شو. الله تعالی دې ما او تاته خپله رضا او مینه نصیب کړی امین!

حضرت امام شافعي رحمه الله په څلورو امامانو کې يو امام دی او څلور واړه امامان حق دي. ددوی په مينځ کې حق او باطل اختلاف نشته[1]، بلکې دراجح اومرجوح اختلاف دی. زه حنفي يم په دې وجه باندې دامام ابوحنيفه رحمه الله مسلک اقرب الی الکتاب والسنته گنم اود امام شافعي رحمه الله اودنوروامامانو مسلک هم حق گنم. دې اکابرينوکې چې له چاسره اعتقاد او اعتمادزيات وي په هغه مسلک باندې عمل کوئ. انشاء الله دخلاصی ذريعه به وي.

ستاسوډيرعمردحضرت امام شافعي رحمه الله په حق مسلک باندې تيرشوی دی او تاسو چې په کومه علاقه کې اوسيږئ هلته هم دشافعي رحمه الله مسائلو ښوونکي خلک ډيردي. له دې وجې باندې زما په فکر چې تاسوله پاره دامام شافعي رحمه الله په مسلک باندې ژوندتيرولوکې اساني ده. تاسوهم دغه مسلک اختيارساتئ!

دکتاب اوسنت دنصوصو په تطبيق کې داماماڼو حضراتو خيال مختلف وي. په دې باندې به دامام شافعي رحمه الله خيال هم يقيناً صحيح وي اوتاسوله پاره بس دومره عقيده ساتل کافي ده اوکه چيرې تاسودامام ابوحنيفه رحمه الله مسلک اختياروئ، نوشرعي طور باندې دې کې هم څه بده خبره نشته، خودې شرط سره چې دحنفي مسايلو ښوونکي څوک موجودوي.[2]

## څلورواړه امان حق دي

**سوال:** يوصاحب يوڅوپوښتنې کړې وې، دهغو ځوابونه تاسودقران او حديث مطابق نه و ورکړي بلکې دهرسوال په ځواب کې تاسو ليکلي و چې زموږپه نزدباندې داناجائزدي، يا زموږ په نزد باندې داجائزدي، څو ځايونوکې تاسوداسې هم ليکلي و چې د احنافو په نزد باندې ددې ځواب داسې دی، ددغو ځوابونونه مادااندازه ولگوله چې تاسونبي نه منئ، ځکه که چيرې تاسوالله تعالی اودهغه رسول ﷺ منلی، نوداسې به مو ويل چې قران اوحديث کې داسې دي: ياداسې به مو ويل چې نبي کريم صلی الله عليه وسلم داسې کړي، فلاني حديث نه داثابت دي او فلاني حديث په نزدباندې داکارمنع دی.

**جواب:** دلته عام طورباندې خلک حنفي مذهب باندې دي اوزه پخپله باندې مجتهدنه، بلکې دامام ابوحنيفه رحمه الله مقلديم، له دې وجې ضروري ده چې فتوا دهغه مطابق ورکړل شي

---

[1] فقد بان لک يا اخی مما نقلناه عن الائمة الاربعة ان جميع الائمة المجتهدين دائرون مع ادلة الشرع حيث دارت...... وان مذاهبهم کلها محررة علی الکتاب والسنة (ميزان الکبری ج:١،ص:٥٥)

[2] ...... فعليکم بسنی وسنة خلفاء الراشدين المهديين......الخ (رواه ابوداؤد واحمد والترمذی قال الشيخ عبدالغنی المجددی الدهلوی: ومن العلماء من عمم کل من کان علی سيرته عليه السلام من العلماء والخلفاء کالائمة الاربعة المتبوعين المجتهدين (انجاح الحاجة حاشيه ابن ماجة ص:٥، باب اتباع سنة الخلفاء الراشدين)

اوټول امامان د قران او سنت منونکي وو[۱]. له دې وجې مونږ چې کله د یو مجتهد امام حواله ورکوو، نو ګویا دا د قران او سنت حواله شوه. دې باره کې داویل چې مونږ نعوذبالله حضور ﷺ نه منو، داسې غلط تهمت دی څنګه چې د حدیث منکران یې د حدیث په حواله باندې لګوي چې داخلک د قران منکر دي.[۲]

**سوال:** ایا څلورواړه امامان. امام ابوحنیفه رحمه الله. امام شافعي رحمه الله. امام مالک رحمه الله او امام احمدبن حنبل رحمه الله (نعوذبالله) د الله تعالی او د هغه د رسول ﷺ منونکي نه وو؟ اوکه چېرې وو، نو بیا مونږ د هغوی طرف ته ولې نسبت کوو او هغوی ټول هم نبي کریم ﷺ مني. نو بیا مونږ هم داسې ولې نه وایو چې د نبي ﷺ په نزد باندې د دې مسئلې ځواب دادی؟ یا د فلاني حدیث نه دا ثابت دي؟

**جواب:** دا څلورواړه امامان د الله تعالی او د هغه د رسول ﷺ منونکي وو. د دې حضراتو د قران او حدیث نه استدلال کولو سره مسئلې بیان کړي دي او ځینې ځایونوکې د پوهې په وجه باندې په دوی کې اختلاف پیداشوی دی، پله دې وجې د دې حضراتو کې د یو حواله ورکول، حقیقت کې د هغه د پوهې مطابق د قران او حدیث حواله ده.[۳]

---

۱]فقد بان لک یا اخی مما نقلناه عن الائمة الاربعة ان جمیع الائمة المجتهدین دائرون مع ادلة الشرع حیث دارت...... وان مذاهبهم کلها محررة علی الکتاب والسنة (میزان الکبری ج:۱،ص:۵۵)

۲] بل یجب علیهم اتباع الذین سبروا ای تعمقوا وبوبوا ای اوردوا ابوابا لکل مسئلة علیحدة فهذبوا مسئلة کل باب، ونقحوا کل مسئلة عن غیرها وجمعوا بینها بجامع، وفرقوا بفارق وعللوا ای اوردوا لکل مسئلة علة وفصلوا تفصیلاً، یعنی یجب علی العوام تقلید من تصدق بعلم الفقة......وعلیه بنٰی ابن الصلاح منع تقلید غیرالائمة الاربعة الامام الهمام امام الائمةامامنا ابوحنیفة الکوفی،والامام مالک، والامام الشافعی، والامام احمد رحمهم الله تعالی وجزاهم عنا احسن الجزاء لان ذلک المذکور لم یدر فی غیرهم (فواتح الرحموت شرح مسلم الثبوت ص:۶۲۹ طبع لکهنؤ) وایضاً والانصاف ان انحصار المذاهب فی الاربعة واتباعهم فضل الهی وقبولیته عند الله تعالی لا مجال فیه للتوجیهات والادلة (تفسیر احمدی لملاجیون ص:۲۹۷)

۲،۳] بل یجب علیهم اتباع الذین سبروا ای تعمقوا وبوبوا ای اوردوا ابواباً لکل مسئلة علیحدة فهذبوا مسئلة علیحدة فهذبوا مسئلة کل باب، ونقحوا کل مسئلة عن غیرها وجمعوا بینها بجامع، وفرقوا بفارق وعللوا ای اوردوا لکل مسئلة علة وفصلوا تفصیلاً، یعنی یجب علی العوام تقلید من تصدق بعلم الفقة......وعلیه ابنی ابن الصلاح منع تقلید غیرالائمة الاربعة الامام الهمام امام الائمةامامنا ابوحنیفة الکوفی،والامام مالک، والامام الشافعی، والامام احمد رحمهم الله تعالی وجزاهم عنا احسن الجزاء لان ذلک المذکور لم یدر فی غیرهم (فواتح الرحموت شرح مسلم الثبوت ص:۶۲۹ طبع لکهنؤ) وایضاً والانصاف ان انحصار المذاهب فی الاربعة واتباعهم فضل الهی وقبولیته عند الله تعالی لا مجال فیه للتوجیهات والادلة (تفسیر احمدی لملاجیون ص:۲۹۷)

**سوال:** دې څلورواړو امامانوکې اختلاف ولې دی؟ يووايي چې لمونځ کې په نامه (ناف) باندې لاسونه تړئ. دويم وايي په سينه باندې لاسونه تړئ. دريم وايي چې د سينې نه لاندې لاسونه تړئ. څلورم وايي لاسونه ځوړند پريښودو سره لمونځ کوئ. که په څلور واړو طريقو باندې لمونځ کول صحيح وي. يعني نبي ﷺ په دې طريقو باندې لمونځ اداکړی و. نوبيامونږ دين کې اختلاف ولې پيداکوو. چې زمونږ په نزد باندې داسې دي. څلورواړه طريقې د حديثو نه ثابتې کړئ؟

**جواب:** دا اختلاف د صحابه کرامو رضي الله عنهم په مينځ کې هم و . له دې وجې چې ددغو اکابرينو په مينځ کې اختلاف و. زمونږ له پاره داضروري شو چې د يو قول واخلو او دبل قول وانخلو[۲]

**سوال:** ايا په څلورواړو امامانو کې د يو امام تقليدکول واجب دي؟ که چېرې واجب دي. نونبي کريم ﷺ کوم ځای فرمايلي دي چې د يو امام تقليدضروري دي؟

**جواب:** قران او حديث باندې عمل کول واجب دي، داختلاف اود هوا دغلبې اودناقصه پوهې په صورت کې قران او حديث باندې دعمل کولو ذريعه يوائې داده چې دکومو اکابرينو پوهه چې دقران او سنت مطابق وي. په هغوی کې د يو په فتوا باندې عمل وکړو. دې ته تقليد ويل کيږي[۱]

**سوال:** ايا امامانو هم داويلي دي چې زمونږتقليدپه تاسو باندې واجب دی؟ او ايا تقليدنه کونکي به جنت ته نه ځي؟ کله چې دهغه عمل دقران او حديث مطابق وي او هغه يوائې قران او حديث مني.

**جواب:** دې امامانو باندې داعتمادنه پرته په قران او حديث باندې عمل نه شي کيدای. او کله چې په قران او حديث باندې عمل نه وي ، نو انجام يې ټولوته معلوم دی.[۲]

**سوال:** ايا څلورواړه امامان غلط وو، چې هغوی دچاتقليدنه وو کړی، صحابه کرام رضي الله عنهم او څلورواړه خليفه ګان رضي الله عنهم چې هغوی دچاتقليدنه ووکړې. هغوی يوائې قران او حديث منلو. دفقې نوم اونښه قدرې هم نه وه. نوايا (نعوذبالله) دوی ټول په غلطه وو؟ هغوی دين باندې نه وو پوه شوي په کوم باندې چې داوروسته عالمان پوه شول؟

---

۱] وفى ذلک (اى التقليد) من المصالح مالا يخفى، لا سيما فى هذه الايام التى قصرت فيها الهمم جدا واشربت النفوس الهوى واعجب كل ذى راي برايه (حجة الله البالغة ج:۱،ص:۱۵٤ طبع مصر)

۲] اعلم ان فى الاخذ لهذه المذاهب الاربعة مصلحة عظيمة. وفى الاعراض عنها مفسدة كبيرة (عقدالجيد لشاه ولى الله رحمه الله ص:۳٦،طبع مصر)

**جواب:** د تقلید ضرورت مجتهد ته نه بلکې غیر مجتهد ته وي. څلورواړه خلیفه ګان رضي الله عنهم او څلور واړه امامان رحمهم الله پخپله باندې مجتهدین وو . هغوی ته د چا د تقلید کولو ضرورت نه و ، کوم کس چې د هغوی په شان مجتهد وي هغه ته هم ضرورت نشته. خو یو عام سړی چې مجتهد نه وي، هغه د تقلید نه پرته ګذاره نه شي کولی [1]

**سوال:** که چېرې د دین نوم تقلید وي او تقلید کول ضروري وي. نو موږ د څلورو خلیفه ګانو طرف ته نسبت ولې نه کوو .یو دې وایي چې زه صدیقي یم. دویم دې وایي چې زه فاروقي یم. دریم دې وایي چې زه عثماني یم او څلورم دې وایي چې زه علوي یم. که چېرې خلک داسې ویل شروع کړي. نو زما په خیال به ټول اختلافات ختم شي. ځکه چې د څلورواړو کې هیڅ اختلاف نشته. اختلاف خو بیا وروسته پیدا شوی دی.

**جواب:** د څلورو امامانو مذهب چې څنګه مدون دی. هغه شان د څلورو خلیفه ګانو رضي الله عنهم مذهب مدون نه دی، که نه ضرور به هم د دغه حضراتو تقلید وکیده او دا ګڼل چې د څلورو واړو کې څه اختلاف نه و. د بې علمې خبره ده. د حدیثو په کتابونو کې د دوی په مینځ کې اختلاف ذکر شوی دی. [2]

## د څلورو امامانو د حقانیت مطلب

**سوال:** عرض دادی چې د تقلید مسئلې زه په یو عجیبه مشکل کې ګرفتار کړی یم .الحمدلله.زه حنفي سني یم.څه موده مخکې مې د مولانا . .مودودي. .مسلم اعتدال. . ولوست. هغوی رایه داده چې هرکله څلورواړه امامان په حقه دي. نو بیا چې موږ کوم وخت کې د کوم امام مذهب باندې وغواړو عمل وکړو. نو څه نقصان به نه وي؟مثلاً کله رفع یدین وکړو او کله نه.کله له امام وروسته قرآءت وکړو او کله نه او داسې نور. . .دا خبره واقعي متاثرکونکې ده. چې له دې نه وروسته دا لاندې سوالونه زما په ذهن کې راغلل.

۱:د څلورواړو امامانو د حق کېدو څه مطلب دی؟د یو امام په نزد امام وروسته قرات ویل قطعي منع دي. هرکله چې دویم امام دا ضروري ګرځوي او نه ویلو سره لمونځ نه کیږي.،او هم همدا رنګه نور هم فرقونه شته چې تاسو ته معلوم دي

---

[1] وقد ذكروا ان المجتهد المطلق قد فقد. واما المقيد فعلى سبع مراتب مشهورة، واما نحن فعلينا اتباع ما رجحوه ........الخ (درمختار مع الشامي ج:۱،ص:۷۷ طبع ايچ ايم سعيد )

[2] اعلم ان رسول الله صلى الله عليه وسلم لم يكن الفقه فى زمانه الشريف مدوناً، ولم يكن البحث فى الاحكام يومئذ مثل البحث من هؤلاء الفقهاء .......وكذلك كان الشيخان ابوبكر وعمر.........الخ (حجة الله البالغة ج:۱،ص:۱٤۰، ۱٤۱)

۲: که یو کس کله نا کله د څلورو واړو امامانو په مسلک باندې عمل وکړي. نو په دې کې څه نقصان دی؟
۳: د څلورو امامانو په خبرو باندې عمل، ایا په قران او حدیث باندې عمل به نه وي؟
۴: یواځې د امام ابو حنیفه رحمه الله تقلید ضروري ګڼل او د نورو په مسلک باندې د عمل نه کولو څه دلائل دي؟
۵: د عقلي دلائلو نه پرته په څلورو واړو مذهبونو باندې عمل نه کولو څه شرعي دلائل هم شته؟
٦: د تقلید اهمیت د قران او حدیث په رڼاکې واضح کړئ! او اهل حدیث حضرات څوک چې د تقلید په وجه په مونږ پورې ټوکې کوي د هغوی خبره ترکومه حده صحیح ده؟ (ستاسو کتاب، اختلاف امت.. کې هم غالباً د دې سوالونو مکمل یا تفصیل سره ځواب نشته)
دویمه مسئله داده چې د سرې او ښځې په لمونځ کې کوم فرق دی. نو د قران او حدیث نه په دې باره کې څه دلائل شته؟ ځکه چې د اهل حدیثو حضراتو ښځې هم د سړیو په شان لمونځ کوي او زمونږ د ښځو نه دا خلک دلیل غواړي؟

**جواب:** د څلورو واړو امامانو په حق کېدو مطلب دادی چې په اجتهادي مسائلو کې هر مجتهد په خپل اجتهاد باندې د عمل کولو مکلف دی. په څلورو امامان کې د اجتهاد شرطونه پوره وو او هغوی د انساني طاقت مطابق د الهي مراد د موندلو کوشش کړی وو. له دې وجې نه د کوم مجتهد اجتهاد چې کومې درجې پورې ورسیده د هغه په حق کې هما غه شرعي حکم دی او هغوی د الله له لورې په هغو باندې د عمل کولو مکلف دیاوس یو مجتهد په شرعي دلائلو باندې غور کولو سره په دې پوه شو چې د امام په اقتداء کې قرات منع دی.

**لقوله تعالى:"فاستمعوا له وأنصتوا لعلكم ترحمون" ولقوله عليه السلام:"وإذ قرأ فانصتوا!" وقوله عليه السلام: "إذا أمّن القاري فأمّنوا!"** نو دا مجتهد به د دلیل شرعي په وړاندې مجبور وي چې د دې نه په سختۍ سره منع وکړي.
د دویم مجتهد نظر دې طرف ته لاړ چې په لمونځ کې سورت فاتحه ویل د هر لمونځ کونکي له پاره ضروري دي، که هغه امام وي او که مقتدي، یا منفرد. نو دی به د خپل اجتهاد مطابق د دې په ضروري کېدو باندې فتوا ورکوي.
غرض دا چې هر مجتهد د خپل اجتهاد مطابق د عمل کولو او فتوا ورکولو باندې مکلف دی. هم دغه مطلب د هر امام د حق کېدو دی.
۲: کوم کس چې د اجتهاد شرطونو جامع نه وي هغه دې په اختلافي مسائلو کې د یو مجتهد

لمن ونیسي او دهغه په فتوا باندې دعمل کولو مکلف دی. ددې نوم تقلید دی[1]. بیا د تقلید یو صورت خودادی چې کله دیوامام په فتوا باندې عمل وکړل شي او کله دبل امام په فتوا باندې، په یوه مسئله کې بې دیوامام فتوا واخستله او په بله مسئله کې دبل امام فتوا باندې، خو دبنده نفس حیله گردی، که ده ته اجازه ورکړل شي، نو دعامو خلکوپه باره کې دا عام احتمال دی چې دهغه نفس ته دکوم امام فتوا ښه معلومه شي یافتوا دهغه دنفس د خواهش مطابقه وي هماغه به اخلي. په داسې صورت کې به دشریعت پیروي ونه شي. له دې وجې نه عوامو ته دنفس دخواهشاتو له پیروي دبچ کېدواودهغوی ته په شریعت خداوندي دعمل کولو له پاره داضروري گرځول شوې ده چې دیو امام پابند شي.[2]

او په ځینوصورتونوکې ددې بې قیدې نه تلفیق لازمیږي، چې دهغه یو مثال دادی چې یو کس داودس په حالت کې ښځې سره لاس ولگیده. یاخپل اندام مخصوص سره یې لاس ولگیده. هغه وویل چې: زه په دې مسئله کې دامام ابوحنیفه رحمه الله قول اخلم. دهغوی په نزد په دې شیانو سره اودس نه ماتیږي. بیا دهغه دبدن نه وینه راووتله. نو ویې ویل چې: زه په دې مسئله کې دامام شافعي رحمه الله قول اخلم. چې وینې وتلو سره اودس نه ماتیږي. نو ددې کس اودس بالاجماع مات شو، خوده په خپل گمان په یوه مسئله کې دامام صاحب او په بله مسئله کې ددویم امام صاحب قول اختیارولو سره داوگڼل چې دده اودس نه دی مات شوی. ظاهره ده چې داسې تلفیق شرعاً باطل دی[3].

خو په ځینو صورتونو کې خپل امام مقتداء پرېښودل او ددویم امام قول اخستل جائز او ځینو وختونو کې بهتردي، مثلاً: ددویم امام په قول کې احتیاط زیات وي او داکس دکمال احتیاط په وجه ددویم امام په فتوا باندې عمل کوي. ددې یومثال اوس شو چې دحضرت امام ابوحنیفه رحمه الله په نزد (مس المرأة اومس ذکر) اودس نه ماتوي. دنوروامامانو په نزد یې ماتوي، که یو حنفي داحتیاط له غو ښتنې لاندې دخپل عمل له پاره دنوروامامانو قول اخلي

---

[1] التقلید فی اللغة........قال المحققون من الاصولیین: العامی وهو من لیس له اهلیة الاجتهاد وان کان محصلاً لبعض العلوم المعتبرة فی الاجتهاد یلزمه اتباع قول المجتهدین والاخذ بفتواهم لقوله تعالی فسئلوا اهل الذکر ان کنتم لا تعلمون (تیسیر الاصول الی علم الاصول ص:٣٢٣ بحث فی التقلید للشیخ عبدالرحمن محلاوی حنفی وایضاً فواتح الرحموت شرح مسلم الثبوت ص:٦٢٦ طبع لکهنؤ)

[2]..... وفی وقت یقلدون من یفسده وفی و قت یقلدون من یصححه بحسب الغرض والهوی، ومثل هذا لا یجوز باتفاق الامة (الفتاوی الکبری ج:٢،ص:٢٤٣، المسالة السابعة والاربعون،طبع دارالقلم بیروت)

[3] وَأَنَّ الْحُکْمَ الْمُلَفَّقَ باطل بالاجماع الْمُرَادُ بِالْحُکْمِ الْحُکْمُ الْوَضْعِيُّ کَالصِّحَّةِ وفی رد المحتار: مِثَالُهُ : مُتَوَضِّئٌ سَالَ مِنْ بَدَنِه دَمٌ وَلَمَسَ امْرَأَةً ثُمَّ صَلَّی فَإِنَّ صِحَّةَ هَذِهِ الصَّلَاةِ مُلَفَّقَةٌ مِنْ مَذْهَبِ الشَّافِعِيِّ وَالْحَنَفِيِّ وَالتَّلْفِیقُ بَاطِلٌ ، فَصِحَّتُهُ مُنْتَفِیَةٌ (ردالمحتار ج:١،ص:٧٥)

نو دا دتقوا خبره ده. یادامام شافعي رحمه الله په نزد وینه وتلو سره اودس نه ماتیږي که یوشافعي مذهبه په دې مسئله کې په حنفیه فتوا باندې عمل وکړي. نو دا دتقوا خبره ده. خو په کومه مسئله کې چې ددویم امام په قول باندې عمل کولو کې دخپل امام مخالفت لازمیږي هلته دبل امام په قول باندې عمل کول به خلاف احتیاط وي. مثلاً یوکس د (قرآءت خلف الإمام) په مسئله کې دامام شافعي رحمه الله په فتوا باندې عمل کوي، نو دامام ابوحنیفه رحمه الله په نزد هغه دمکروه تحریمي، بلکې دحرامو مرتکب کیږي. په داسې حالت کې دامام ابوحنیفه په مذهب باندې دعمل کولو والا له پاره دامام شافعي په فتوا باندې عمل کول احتیاط نه دی. بلکې دحرامو دارتکاب ویره ده، چې داپه ښکاره داحتیاط خلاف ده.[1]

او دهمدې احتیاط یوقسم دادی چې یوکس اګرچې په درجه اجتهاد باندې فائزنه وي، خو د قران اوحدیث په نصوصو کې ښه علم لري. دشریعت په اصولو او مقاصدو باندې نظرساتي، د احکامو علل اوداسبابو په معرفت کې هغه ته في الجمله حذاقت اومهارت حاصل دی، خو دهغه زړه دخپل امام په یوه مسئله باندې نه مطمئن کیږي، بلکې ددې په مقابله کې ددویم امام مجتهدفیصله اقرب الی الکتاب والسنة ورته ښکاري، دداسې کس له پاره په دې مسئله کې دبل امام تقلیدکول به رواوي، خوپه دې شرط چې ددې دویم امام مجتهد دفتوا دټولو شرطونو اوقیودو لحاظ وساتي، که نه هماغه تلفیق پرې لازمیږي دکوم حرام کیدل چې بالاجماع پورته ذکرشوي دي[2]. ربښتوني خبره خودادده چې تفقه او اجتهاد ډیرنازک او ګران شی دی، زمونږ په شان امیانوله پاره په دې باندې سم سم پوهیدل هم ګران دي، لهذا زمونږ له پاره ددین اوایمان سلامتیا اوله خپل نظري اوکج روي نه حفاظت هم په دې کې دی چې: ،،یک درګیر ومحکم ګیر،، باندې عمل وکړاوداتاسوچې څه فرمایلي دي چې کله یې رفع یدین وکړاوکله یې ونه کړاوکله یې په امام پسې شاته تلاوت وکړ اوکله یې ونه کړ، ظاهره ده چې داسې کس ته کله هم یوطرفي نه نصیب کیږي، بلکې همیشه به حیران او پریشانه وي ایاداصحیح ده اوکه هغه؟اوبیاد کله کولوا کله نه کولوڅه معیارخودهغه په ذهن کې کېدل پکاردي چې دکولوڅه وجه ده ؟اودنه کولوڅه وجه ده؟ که غورپرې وکړل شي، نوددې تردد اوتحیر سبب به هماغه راووځي چې کله مې زړه غواړي اوکله نه غواړي، بلکې داخبره ثبوت ته رسیدلي ده چې څلورواړه امامان دخپل اجتهادمطابق په حقه دي نوبیاولې نه ،،یک درګیرومحکم ګیر(یواونیسه اوښه محکم یې اونیسه)،، باندې عمل ونه کړل شي؟

[1] وَأَنَّ الْحُكْمَ الْمُلَفَّقَ باطل بالاجماع وان الرجوع عن التقليد بعد العمل باطل اتفاقاً (درمختار ج۱،ص:۷۵)

[2] وَأَنَّ الْحُكْمَ الْمُلَفَّقَ باطل بالاجماع(وفى الشامية) وانه يجوز له العمل بما يخالف ما عمله على مذهبه مقلداً فيه غيرامامه مستجمعاً شروطه ويعمل بامرين متضادين فى حادثتين لا تعلق لواحدة منهما بالاخرى(فتاوى شامى ج:۱،ص:۷۵،طبع ايچ ايم سعيد )

۳. اختلافي مسائلوکې په یووخت کې په ټولوباندې عمل کول په ځینوصورتونوکې ممکن نه وي، بلکې یوقول به اخیستل کیږي اوبل به خامخاپرېښودل کیږي اودځلوروامامانوپه قولونوباندې دعمل کولومطلب به داوي چې په کومه مسئله کې دچاپه قول باندې مې زړه وغواړي عمل به وکړم، نوددې په باره کې مې پورته عرض کړی دی چې بې شکه دځلوروامامانوعمل په قران اوحدیث باندې دی، خو داجتهادمدارک مختلف دي، لهذاپه دوی کې دیوې خبرې دعمل له پاره اختیارول هم په قران اوحدیث باندې عمل کول دي

۴. دیوامام اقتداء لازمول (که هغه امام ابوحنیفه رحمه الله، یاامام مالک رحمه الله، یاامام شافعي رحمه الله یا امام احمدبن حنبل رحمه الله وي) ددې ضرورت خومې پورته ذکرکړی دی، چې دشک او تلفیق اوددین حفاظت زموږ د امیانو په همدې کې دی، دادلیل خودټولوامامانو دتقلیدله پاره شخصي دی [1] اوپه دې کې دامام ابوحنیفه رحمه الله تخصیص نشته، خوداخبره بالکل ښکاره ده چې دکوم امام اومجتهد پیروي وکړل شي دهغه داصولواوفروعو، راجح ومرجوح، قوي وضعیف معلومول ضروري دي، پاک وهنداوافغانستان نه واخله ترمشرق بعیدپورې دامام ابوحنیفه رحمه الله مذهب عام طور باندې رواج دی اوپه دې ملکونوکې دفقه حنفي دکتابونو ذخیرې اوددې مذهب دماهرینو موجودیت ډیر دی، کوموته چې په مسائلو کې رجوع کول د هرکس له پاره اسان و، دنورو امامانو دمذهب رواج په دې علاقوکې نه و، له دې وجې نه په دې علاقوکې دامام ابوحنیفه رحمه الله تقلید رائج شو، څنګه چې په مغربي ملکونوکې دامام مالک مذهب عام دی اودنورو مذهبونورواج په دغو ملکونوکې ډیرکم دی، له دې وجې نه په دغه ملکونوکې دامام مالک دمذهب تقلیدمتعین شو، غرض داچې زموږ په علاقوکې د امام ابوحنیفه رحمه الله تقلیدپه دې وجه ضروري وګرځول شوچې دلته دحنفي فقهې ماهرین موجود دي اوپه مغربي ملکونوکې دامام مالک تقلیدضروري وګرځول شو، ځکه چې هلته دهغه دمذهب ماهران موجودوو، هلته چې دبلې فقهې ماهرین موجودنه وي هلته په دویمې فقهې باندې دعمل کولوڅنګه صورت کیدای شي؟په هغې باندې عمل کول څنګه ممکن دي؟

۵. په پورتنیونکاتوباندې دې ځان ښه پوه کول پکار دي،نوددې سوال ضرورت باقي نه پاتې کیږي، ځکه چې مطلق تقلید یاتقلیدشخصي محض عقلي شی نه دی،بلکې دشریعت مطهره عملي شکل دی اوکوم دلائل چې دشریعت دپیروي دي هماغه دیوعام انسان له پاره دیوامام مجتهدپه داقتداء ثابتونکي دي اودې ایت شریف:"فسئلو ا أهل الذكر ن كنتم لاتعلمون".(النحل :٤٣)اوحدیث نبوي صلی الله علیه وسلم:"قتلوه،قتلهم الله ،الاسئلوا إذا لم يعلموا؟ فإنما

---

[1] اما في زماننا فقال ائمتنا لايجوز تقليد غيرالائمة الاربعة،الشافعي ومالک وابي حنيفة واحمد بن حنبل(فتح المبين شرح الاربعين بحواله جواهر الفقه ج:١،ص:١٣٢)

شفاء العي السؤال"(مشکوة ص: ۵۵، بروایت ابي داودعن جابر رضي الله عنه.وابن ماجه عن ابن عباس رضي الله عنه،کې دداسې کولو ضروري کېدل ذکر شوي دي.

۲:: دتقلیداهمیت دقران اوحدیث په رڼاکې پورته واضح شوي دی اوربښتونې خبره خوداده چې کوم حضرات دتقلیدله وجې نه په موږ طعن کوي،دتقلیدنه پرته دهغوی ګوزاره هم سخته ده، ځکه چې یوعام کس چې دقران اوحدیث دفهم په مرتبه باندې فائزنه وي. نو خامخابه دچامني اوهغه پسې به ځي اوپه مختلف فیها مسائلوکې به دیو مجتهدپه تحقیق باندې اعتماد کول دهغه له پاره ضروري وي. خوپه موږ ضعیفانواودوی حضراتوکې په لاندې څو وجوسره فرق دی:

اول:داچې موږ دیوداسې مجتهدامام په تحقیق باندې عمل کوو،چې دهغه امامت اودرجه اجتهادباندې فائزکیدل دامت دټولو بزرګانوله لوري نه منل شوي دي،(ددې خلاصه ماپه اختلاف امت اوصراط مستقیم کې بیان کړې ده.)له دې سره سره موږ د نورو اکابرو امامانو او دهغوی داتباعوپه باره کې سپکه ژبه نه استعمالوو. بلکې دهغوی په حق کې ددوی اجتهادواجب العمل ګڼواوداحضرات دخپل ځان نه پرته باقي ټول باطل پرست ګڼي. په هغوی پسې سپکې خبرې کوي، ګویادې حضراتوپه نزد دعمل بالحدیث غوښتنه نه پوره کیږي ترڅوپورې چې دبزرګانوبې عزتې ونه کړل شي اوپه هغوی باندې دګمراهۍ اوباطل پرستۍ فتوا ونه لګول شي.

دویم: داچې موږ دامام ابو حنیفه رحمه الله په تحقیق باندې عمل کونکي یو،چاچې دصحابه کرامو زمانه بیاموندلې وه اودصحابه وو اوتابعینو په دین باندې عمل یې په خپلوسترګوسره لیدلی واوداحضرات اکثردامام بخاري رحمه الله،یاشیخ ابن تیمیه تحقیق اولی اوراجح ګڼي اوکله هغوی هم پریږدي اودحافظ ابن حزم رحمه الله تحقیقات دسترګورڼاګڼي اوس هم داحضرات که انصاف وکړي چې دصحابه وو اوتابعینوپه دورکې(کوم ته چې په حدیث شریف کې خیرالقرون ویل شوي دي) په دین باندې بهترعمل کیده یاددې وروستنیواکابرو رحمهم الله په زمانه کې؟

دریم: داچې موږ خلکوته دخپل آمي کېدو اعتراف دی،له دې وجې نه دچاامام مجتهد اقتداء ددین دپیروي له پاره ضروري ګڼو،ددې برعکس داحضرات سره له دې چې دیوایت یاحدیث دترجمې کولوله پاره داردو ددترجمې محتاج دي،خپلوځانونه ته آمي ویلوباندې شرم محسوسوي اوخپل ځانونه د امامانو اومجتهدینو برابر،بلکې دهغوی نه هم ځانونه لوړ ګڼي.

په هرحال اهل حدیث حضرات په موږ امیانوباندې ددې وجې نه طعن کوي چې موږ دخپل جهل اعتراف کړی دی اویوعالم رباني اوعالم حقاني په پیروي کې اتباع شریعت مودخپل ځان له پاره ضروري ګڼلې ده، نوموږ دهغوی دې سپکوخبروسره نه خفه کیږو، الله تعالی دې

ددوی په علم او اجتهاد کې برکت واچوي اومور به انشاء الله ددې اکابرو ائمه وو په اقتداء سره جنت ته رسیږو.

هلته چې ورسیږو، نوانشاء الله دې سپکې خبروکولووالوته به هم پته ولګیږي چې ددوی دطعن اوسپکو خبروڅومره قمیت و؟

۷:دښځې دلمانځه په باره کې په ،،اختلاف امت اوصراط مستقیم،، برخه دوم کې مسئله نمبر۴ کې مې ضروري تفصیل سره لیکلي دي هلته یې وګورئ.خودلته یوه بل نکته هم اضافه کوم:

ماهلته درې روایات ذکرکړي دي،دوه مرفوع اویو دخلیفه راشد حضرت علي رضي الله عنه قول. نور دا چې ماهلته هم ذکرکړي دي چې تقریباً دټول امت ائمه اوفقهاء دښځې اوسړي په لمانځه کې (په څینومسائلو)دفرق قایل دي.دکوموتفصیل چې دهغه فقهاوودکتابونونه معلومیدای شي.

اهل حدیث حضرات چې دلمونځ په مسائلوکې دسړي اوښځې دتفریق قایل نه دي هغوی عموماً دحدیثونوپه عموم باندې استدلال کوي.په کوموکې چې فرمایل شوي دي چې رکوع دې داسې وکړل شي اوسجده دې داسې وکړل شي اوقاعده دې داسې وکړل شي،دې حضراتو دا قاعده دسړیو اوښځوله پاره یوشان عام وګڼله اودکوموحدیثونوچې ماپورته حواله ورکړې ده هغه یې ضعیف وګرځول اومستردیې کړل، سره له دې که دې حضراتو غور کړی وای،نوپه دې باندې پوهیدل ګران نه و. چې څلوروواړو امامانودښځې اوسړي په لمونځ کې په څینومسائلوکې چې کوم تفریق کړی دی دهغو منشاسترده،دڅه په باره کې چې ما په اختلاف امت کې هم اشاره کړې ده اودامنشادصحیح حدیثونو نه ثابته ده، دسړیوله پاره جمعه اوجماعت کې حاضري لازم ګرځول شوې ده خو دښځوله پاره هم ددې سترله وجې نه واجب کیدل ساقط شوي دي اوددوی په حق کې:،، وبیوتهن خیر لهن،،،(**مشکوة ص:۹٦**) فرمایل شوي دي،له دې وجې نه په کوم حدیث کې چې ددواړوپه لمونځونوکې دتفریق مضمون راغلی دی که هغه ضعیف هم وي ،خوبیاهم دعموماتوپه مقابله کې دترجیح وړ دي،ځکه چې دښځې ښځه کیدل په خپله دهغې سترغواړي.بیا دائمه وو مجتهدینوپه اتفاق سره فیصله هم ددې تایید کوي.امام بخاري تعلیقاً دام الدرداء رضي الله عنها اثرنقل کړی دی چې هغه به دسړیوپه شان کیناستله اوهغه فقیه وه.[1]

---

[1] وكانت ام الدرداء رضى الله عنها تجلس فى صلاتها جلسة الرجل، وكانت فقيهة (بخارى ج:١، ص:١١٤باب سنة الجلوس فى التشهد)

دحافظ ابن حجرؒ تحقيق دادى چې: دام الدرداء صغرى وه. كومه چې تابعيه ده اود تابعي مجرد عمل كه دهغه مخالف هم نه وي موجود دليل نه دى.[۱]

ددې په مقابله کې په مسندابي حنيفهؒ کې روايت دى چې: دحضرت ابن عمرؓ نه پوښتنه وشوه چې: دحضور ﷺ په زمانه کې به ښځو څنګه لمونځ کاوو؟ وېې فرمايل چې اول به په پلتريو (چارزانو) کيناستې بياوروسته ورته حکم وشوچې ځانونه راغونډکړئ اوکېنئ. (لامع الدرارى ج: ۱ ص: ۳۳۱)

ظاهره ده چې دحضور ﷺ دزمانې دښځوچې کوم عمل و هغه دحضور ﷺ دحکم لاندې و او دا به دام الدرداء صغرى تابعيه دعمل نه اولى اودېر مناسب وي او ددې حکم اوعمل منشاهم ستر و. له دې وجې ددې علت نه دسړيو اوښځوپه لمونځ کې دفرق نورجزئيات به هم ثابت شي، کوم چې پورته ذکر شوي حديث کې ظاهردي اودائمه اربعه وو په مينځ کې متفق عليه هم دي. (وبالله التوفيق، والله اعلم وعلمه اتم واحکم)

## مجتهدين شارع اومقنن نه دي

**سوال:** ,, اِتَّخَذُوا اَحبَارَهُم وَرُهبَانَهُم اَربَابًا مِن دُونِ اللهِ،، په شان خومونږ ټول مقلدين يو، ځکه چې زمونږ مفتيان مونږ ته څه حرام اوحلال ښايي مونږ په هغه باندې عمل کوو. مونږ ته پخپله باندې داپته نه وي چې صحيح وايي اوکه غلط؟ خاص طورباندې ددې ايت مطابق هغه مريدان کوم چې دخپلوپيرانويوخبره هم غلطه نه مني اودهغوى غلطي خبرې دتاويلونوپه ذريعه درښتيا ثابتولو کوشش کوي.

**جواب:** که څوک کم عقل داجتهاد امامان په رښتيا شارع اومقنن (دشريعت اوقانون جوړونکي) ګڼي، نوهيڅ شک نشته چې هغه ددې ايت مصداق دي. خوداهل اصول متفقه فيصله ده چې: (**القياس مظهرلامثبت**) يعنې داجتهاد دامامانو قياس اواجتهادي حکمونه د شرعي حکمونوثابتونکي نه دي. بلکې (**مظهرمن الکتاب والسنة**) دي[۲]. کوم حکمونه چې واضح طورباندې قران اوسنت کې نه دي ذکرشوي او دکومو استخراج اواستنباط ته چې زمونږ اميانوعقل اوپوهه نه رسيږي. داجتهاد دامامانوقياس او استنباط دغه حکمونه دکتاب او سنت نه بهرراباسي. دتقليد ضرورت په دې وجه باندې دى چې زمونږ عقل اوپوهه

---

۱] وعرف من رواية مكحول ان المراد بام الدرداء رضى الله عنها الصغرى التابعية لا الكبرى الصحابية، لانه ادرک الصغرى ولم يدرک الكبرى، وعمل التابعى بمفرده ولم لم يخالف لايحتج به (فتح البارى ج:۲،ص:۳۰٦، کتاب الاذان، باب سنة الجلوس)

۲] نورالانوار ص:۵، طبع ميرمحمد

دکتاب اوسنت دغه حکمونه ته نه شي رسيدای. په اصل کې دکتاب اوسنت اتباع ده اود اجتهاد د امامانو دتقليد کولو ضرورت په دې وجه باندې دی چې موږچيرته د کتاب هدی داتباع په ځای داتباع هوا کندې ته ونه غورځيږو. اود اکابرينو اومشائخو دلغزشونو (خطاګانو) تاويل په دې وجه باندې دی چې په هغوی باندې بنه ګمان وکړل شي. دا نه چې دهغوی دلغزشونو اقتداء دې هم وشي.[1]

## ايا څلور امامان دپيغمبرانو درجه لري؟

**سوال:** ايادپيغمبرانودرجې سره دامام اعظم ابوحنيفه رحمه الله ، امام شافعي رحمه الله او داسې نورو برابر ول ضروري دي؟

**جواب:** امام اعظم ابوحنيفه رحمه الله اوامام شافعي رحمه الله خوامتيان دي اويو امتي ديونبي د پښو خاورو ته هم نشي رسيدلای.[2]

## ايا د اجتهاد دروازه بنده شوې ده؟

**سوال:** دعلماء کرامونه موږ اورو چې ددريمې پېړۍ نه وروسته داجتهاد دروازه بنده شوې ده، ددې څه وجه ده؟اوددې نه وروسته دراوړاند بدونکو مسئلو دحل کولو به څه صورت وي؟

**جواب:** د څلورمې پېړۍ نه وروسته داجتهاد دروازه بنده شوې ده يعنې ددې نه وروسته يو مطلق مجتهد نه دی پيدا شوی .ترکومه چې دنويو راتلونکو مسئلودحل کولو تعلق دی په هغه کې به د مجتهدينو اينبودل شويو اُصولو په رڼا کې غورکيږي او ددې ضرورت به هميشه وي،داجتهاد ددروازې بنديدلو مطلب دا نه دی چې ددريمې پېړۍ نه وروسته اجتهاد ممنوع وګرځول شو، بلکې ددې مطلب دا دی چې دمطلق اجتهادله پاره دکوم علم، پوهې، بصيرت، ادراک اوتقوا ضرورت دی، هغه معيارختم شوی دی، اوس ددغې درجې يو سړی هم داسې نشته چې هغه دې داجتهاد مطلق په مسندباندې دقدم اېښودلوصلاحيت ولري، کېدای شي ددې حکمت دا وي چې داجتهاد نه څه مقصود و يعنې دقران اوحديثو

---

[1] بل يجب عليهم اتباع الذين سبروا اى تعمقوا وبوبوا اى اوردوا ابواباً لكل مسئلة عليحدة فهذبوا مسئلة عليحدة فهذبوا مسئلة كل باب، ونقحوا كل مسئلة عن غيرها وجمعوا بينها بجامع، وفرقوا بفارق وعللوا اى اوردوا لكل مسئلة علته وفصلوا تفصيلاً......وعليه بنى ابن الصلاح منع تقليد غيرالائمة الاربعة الامام الهمام امام الائمةامامنا ابوحنيفة الكوفى،والامام مالک، والامام الشافعي، والامام احمد رحمهم الله تعالى وجزاهم عنا احسن الجزاء لان ذلک المذكور لم يدر فى غيرهم (فواتح الرحموت شرح مسلم الثبوت ص:۶۲۹)

[2] ) الولى لا يبلغ درجة النبى (شرح فقه اكبر ص:۱۴۸) علمنا انه صلى الله عليه وسلم افضل الانبياء وسيدالاصفياء وسندالاولياء ثم قال: ونبى واحد افضل من جميع الاولياء وقد ضل اقوام بتفضيل الولى على النبى .........الخ (شرح فقه الكبر ص:۱۴۳، ۱۴۴ طبع مجتبائى بمبئ)

نه شرعي مسائل راويستل هغه که اصولي مسائل دي اوکه فروعي هغه مکمل شوي وو ،ځکه اوس دهغه ضرورت باقي نه و .که چېرې دا دروازه دهميشه له پاره پرانستې پاتې وي، نود امت اجتماعيت ته خطره پيدا کيداى شوه. والله اعلم بالصواب.[۱]

## د يو امام تقليد ولې ضروري دي؟

**سوال:** هرکله چې څلور واړه امامان: امام ابوحنيفه رحمة الله عليه ،امام شافعي رحمة الله عليه ، امام مالک رحمة الله عليه اوامام احمدبن حنبل رحمة الله عليه ټول په حقه دي. نوبيا په موږباندې ديوامام تقليد ولې ضروري دي؟ له دې څلورو نه مخکې خلکو دچاتقليد کاوو؟

**جواب:** کله چې څلور واړه امامان په حق دي ، نوديوتقليدکول هم دحق تقليددى. خو په يووخت کې دټولوتقليد کيداى نه شي. نوضرور به ديو امام تقليد کيږي.[۲]

بل داچې دتقليدضرورت ځکه راغى چې دخواهشاتوپه دام کې ګيرنه شي اودامامانو نه مخکې دور دخيرالقرون و .په هغه وخت کې به خلکودخپلې خوښې په ځاى باندې دهرې خبرې پوښتنه د صحابه وو نه کوله.[۳]

## د يو بل په مسلک باندې عمل کول

**سوال:** که چېرې يو سړى دخپل مسلک نه پرته دبل چادمسلك تابعدراي په يوه ياديوې نه په زياتومسئلوکې وکړي. نواياددې اجازه شته؟ يعني که يوشافعي مذهبه دامام ابوحنيفه رحمة الله عليه په مسئله باندې عمل وکړي. نو اياددې اجازه شته ؟

**جواب:** دخپل امام مسلك پريښودل اوبل مسلك باندې عمل کول په دووشرطونو سره صحيح دي: يو داچې دده اراده دنفس دخواهش نه وي. بلکې ددويم مسلك دليل ورته زيات قوي اوزيات احتياط والا ښکاره شي.دويم داچې دوه مسلکونه ګډوډنه کړي چې هغه ته

---

۱] والتفصيل فى تسهيل الاصول الى علم الاصول (ص:۳۱۹ طبع المكتبة الصديقية ملتان) وايضاً فى الشامية ج:۱،ص:۷۷ وقد ذكروا ان المجتهد المطلق قد فقد،واما المقيد فعلى سبع مراتب مشهورة واما نحن فعلينا اتباع ما رجحوه ........الخ

۲] يجب على العامى وغيره ممن لم يبلغ مرتبة الاجتهاد التزام مذهب معين(الحاوى للفتاوى ج:۱،ص:۲۹۵) فقد صرح العلماء بان التقليد واجب على العامى لئلا يضل فى دينه(ميزان الكبرى ج:۱،ص:۸۸،طبع مصر،اليواقيت والجواهر ج:۲،ص:۹۶)

۳] خيرالقرون قرنى ثم الذين يلونهم ثم الذين يلونهم(مشكوة ص:۵۵۳،باب مناقبة الصحابة) وبعدالماتين ظهر فيهم التمذهب للمجتهدين باعيانهم وقل من كان لا يعتمد على مذهب مجتهد بعينه وكان هذا هوالواجب فى ذاک الزمان (الانصاف ص:۵۹،لشاه ولى الله)

دفقهاوو په اصطلاح کې"تلفيق" وايي. بلکې چې په کوم مسلك عمل کوي. نو دهغه مسلك دټولو شرطونو به خيال ساتي.[۱]

## د څلورو امامانو په يو وخت کښې تقليد کول

**سوال:** د موجوده زماني يو مشهور واعظ ... فرمايي چې زه ديوې فقهې مقلد نه يم. بلکې زه دپنځو امامانو(امام ابوحنيفه،امام مالك، امام شافعي، امام احمدبن حنبلواو امام بخاري رحمهم الله تعالى عنهم ) تابعداري کوم.پوښتنه داده چې ايا په يووخت کې ديونه دزياتو فقهو تابعداري کيداى شيّ؟ انسان پخپله خوښه دکومې فقهې فيصله خپلولی شي؟ ايا داعمل ښکاره دشريعت دمقصد سره منافي نه دي؟

**جواب:** دا مسائل په دوه قسمه دي: يوهغه مسائل دي چې هغه دټولو فقهاوو ترمينځه متفق عليه دي،دويم قسم هغه مسائل دي چې په هغو کي دفقهاوو اجتهادي اختلاف دی،په دې کې په يووخت دټولوتابعداري خونه شي کيداى .بلکې ديوتابعداري به کيږي اود کوم فقيه تابعداري چې کيږي، نودهغه دمسلك دټولوشرطونو لحاظ ساتل به ضروري وي. بيا ددې هم دوه قسمه دي: يوداچې په ټولومسائلوکې ديوې فقهې تابعداري وکړل شي، په دې کې سهولت هم دی او له يکسويي اودنفس د اازادي نه هم پکې امن دی،دويم صورت دادی چې په يومسئله کې ديوفقيه تابعداري وکړي اوپه بله کې دبل فقيه په دی کې څو خطرې دي:

يوه خطره دا چې په ځينې وختونوکې يوداسې صورت پيداشي چې دهغه عمل دټولوفقهاوو په نزد باندې غلط وي،مثلاً يوسړی دا خيال وکړي چې دامام شافعي رحمه الله په نزد په کلي کې دجمعې لمونځ جائزدی،له دې وجې نه زه دهغه په مسلك باندې دجمعې لمونځ کوم،سره له دې چې دامام شافعي رحمه الله په مذهب باندې دلمانځه دصحيح کيدو له پاره ځينې شرطونه داسې دي چې دهغو ده ته علم نه وي اونه ده دهغو شرطونوڅه لحاظ ساتلی وي،نو دده دا دجمعې لمونځ کول نه دامام ابوحنيفه رحمه الله په نزد وشواونه دامام شافعي رحمه الله په نزد باندې.

دويمه خطره دا ده چې په دې صورت کې نفس آزاد شي چې دکوم مسلك کومه مسئله دده خوښه وي او دده دخواهش موافقه وي، نو هغه به اختيار وي اودا دنفس او خواهش تابعداري ده.

دريمه خطره دا ده چې په ځينې وختونوکې ده ته ددوو مسئلو په مينځ کې ديوپه اختيارولو کې شک پيداشي او پخپله خوېې علم نه وي ، په دې وجه يومسلك ته ترجيح ورکول به ورته

---

۱] وان الحكم الملفق باطل بالاجماع، وفی الشامية: وانه يجوزالعمل بما يخالف ما عمله على مذهبه مقلداً فيه غيرامامه مستجمعاً شروطه.....الخ (فتاوى شامي ج:۱،ص:۷۵)

مشکل شي. نو د عامو خلکو سلامتیا په دې کې ده چې هغوی دې یو مسلك اختیار کړي او دا عقیده دې ساتي چې دا ټول فقهي مسلکونه د شریعت د دریاب نه راوتلي نهرونه دي.

## د شریعت په روا او ناروا کارونو کې د اماما نو اختلاف ولې دی؟

**سوال:** اکثر موږ اا وړو، چې دا فلاني کار د فلاني امام په نزد باندې جائز دی، خو د فلاني امام په نزد باندې جائز نه دی، د دین په اعتبار سره هر کار چې وي دوه خبرې پکې کیدای شي جائز او ناجائز. خو دا خبره مهمله ده. اصل خبره راته وکړئ! ما مخکې هم د څو کسانو نه پوښتنه کړې وه، خو زه هیڅ مطمئن نه کړم.

**جواب:** په ځینې امورو کې خو قران کریم او حدیث نبي ﷺ صفا صفا فیصله کړې ده (او هم دا زموږ د شریعت ډېره برخه ده) په داسې کارونو کې د جائز او ناجائز کیدو کې، خو دهیڅ اختلاف نه شته او په ځینې کارونو کې د قران او حدیث ښکاره حکم نه وي، نو په داسې کارونو کې مجتهدین حضرات د خپل اجتهاد نه کار اخلي او د هغه د جواز یا نه جواز فیصله کیږي، خو په علم، فهم او په اجتهادي قوت کې فرق دا یو فطري شی دی. په دی کې دوړو کي شان دوو مثالونو سره تاسو په ښه طریقه پوهیدای شئ:

۱: نبي کریم ﷺ صحابه رضی الله عنهم په یو کار پسې ولیږل او هدایت یې ورته وکړ چې: د مازدیګر لمونځ به په فلاني ځای کې کوئ، د مازدیګر د لمانځه وخت هلته رسیدو نه مخکې ختمیده، نو صحابه په خپل مینځ کې دوه ډلې شول، یوې ډلې وویل چې نبي علیه السلام هلته رسیدو نه وروسته د لمانځه حکم کړی دی، اګر که د امونځ قضا کیږي خو هلته به ځان رسوو. نو بیا به لمونځ کوو، دویمې ډلې وویل: چې د حضور اراده خو یوا ځې دا وه چې موږ دې د لمر غورځېدو نه مخکې هلته ځان ورسوو، نو کله چې نه شو رسیدلای، نو د لمونځ قضا کولو خوځه جواز نشته.[۱]

بیا دا قصه په دربار رسالت کې وړاندې شوه، نو هغه ﷺ دواړو ته په حقه وفرمایل او په هیڅ باندې یې د ناخوښۍ اظهار ونه کړ، دواړو ډلو د خپل اجتهاد مطابق د نبي ﷺ مقصد باندې عمل وکړ، اګر چې د دوی په مینځ کې د جواز او عدم جواز اختلاف هم راغی، همدا رنګه ټول مجتهدین د خپل اجتهادي صلاحیت مطابق د شریعت په منشاء باندې عمل کول غواړي، خو د دوی په مینځ کې هم اختلاف راځي او دغه اختلاف یوا ځې دا نه چې نبي علیه السلام زغملی دی،

۱] عَنِ ابْنِ عُمَرَ قَالَ قَالَ النَّبِيُّ صلى الله عليه وسلم « لاَ يُصَلِّيَنَّ أَحَدٌ الْعَصْرَ إِلاَّ فِي بَنِي قُرَيْظَةَ » . فَأَدْرَكَ بَعْضُهُمُ الْعَصْرَ فِي الطَّرِيقِ فَقَالَ بَعْضُهُمْ لاَ نُصَلِّي حَتَّى نَأْتِيَهَا ، وَقَالَ بَعْضُهُمْ بَلْ نُصَلِّي لَمْ يُرَدْ مِنَّا ذَلِكَ . فَذُكِرَ ذَلِكَ لِلنَّبِيِّ صلى الله عليه وسلم فَلَمْ يُعَنِّفْ وَاحِدًا مِنْهُمْ (بخاری شریف ج:۲، ص: ۵۹۱) باب مرجع النبی صلی الله علیه وسلم من الاحزاب.....الخ)

بلکې هغه ته يې رحمت هم فرمايلي دي[1] اودې ناکاره ته ددې اختلاف رحمت کيدل داسې په ښکاره باندې په نظرراځي لکه لمر.
دويم مثال: موږته روزانه مخې ته راځي چې ديومجرم نيول يوعدالت جائز وګرځوي او دويم عدالت يې ناجائز. دقانون کتاب دواړو ته يوشان وړاندې وي. خو په دې خاصه واقعه باندې د قانون په تطبيق کې اختلاف وي او ترننه پورې دغه اختلاف هيڅا مهمله خبره نه ده ګرځولې. څلور واړه داجتهاد امامان زموږ ددين محکمه (هايي کورټ) ده. هرکله چې اختلافي مقدمه دهغوی په وړاندې راشي. نوپه قران اوحديث باندې دغورکولونه وروسته هغوی ددې په باره کې فيصله کوي. ديو رايه دا وي چې جائزده. دبل رايه دا وي چې ناجائز ده او ددريم رايه دا وي چې دا مکروه ده. خو دټولو رايې په دې فيصله کې دقران او حديث په دلائلوباندې مبني وي، په دې وجې دټولوفيصله داحترام وړ (لائقه) ده. اګرکه دعمل کولو له پاره ديو اختيارول ضروري دي.[2] دا څوحرفونه مې وليکل دزياتې ليکنې ماسره وخت نشته، که نه دا ديوې مستقلې رسالې موضوع ده.

## ديوې فقهې پابندي د يوعام سړي له پاره ضروري ده دمجتهد له پاره نه

**سوال:** ايا په موږباندې ديوې فقهې پابندي واجب ده؟ ايا فقه حنفي. فقه شافعي. فقه مالکي اوفقه حنبلي. دا ټول اسلام دی حق. خو يواځې يووي. اياستاسو امامانوفقه واجب ګرځولې ده؟ امام شافعي رحمه الله دامام ابوحنيفه رحمه الله دفقهې پابندي ولې ونکړه؟ يوواجب يې پريښود اوګناهګار شو. يواځې دانه. بلکې يوه نوې فقه يې وړاندې کړه (نعوذ بالله)

**جواب:** ديومسلمان له پاره دالله او درسول ذحکمونوپابندي لازم ده کوم چې دقران او د حديث نبوي صلی الله عليه وسلم نه معلوميږي، داحکامودعلم له پاره داجتهاد ضرورت وي اود اجتهاد د صلاحيت په لحاظ سره دعلم خاوندان په دوه قسمه دي: يومجتهداوبل غيرمجتهد. مجتهد باندې دخپل اجتهاد مطابق عمل کول لازم وي اودمقلد له پاره يومجتهدته رجوع کول پکار دي. لقول تعالى: ﴿ فَسْـَٔلُوٓا۟ أَهْلَ ٱلذِّكْرِ إِن كُنتُمْ لَا تَعْلَمُونَ ﴿٤٣﴾ ﴾ (النحل، ۴۳)

ولقوله عليه السلام الا سألوا إذلم يعلموا فإنماشفاء العي السؤال. (ابوداؤدص۴۹ج۱)
دا څلور واړه امامان مجتهدين وو، عام خلک به په قران او حديث باندې دعمل کولوله پاره دغو مجتهدينوته رجوع کوي اوکوم خلک چې په خپله مجتهدين وي دهغوی له پاره بل

[1] اختلاف امتى رحمة.....اختلاف اصحاب محمد صلى الله عليه وسلم رحمة.....الخ (المقاصد الحسنة للسخاوى ص: ٤٩، حديث نمبر: ٣٩ طبع بيروت)
[2] ولما اندرست المذاهب الحقة الا هذه الاربعة كان اتباعها اتباعاً للسواد الاعظم(عقدالجيدص: ٣٨)

مجتهد ته رجوع کول يو اځې غيرضروري نه، بلکې جائزهم نه دي[1] او يو معين مجتهد ته رجوع کول ځکه ضروري دي چې په قران او حديث باندې دعمل کولو په ځاى چېرته دنفساني خواهشاتوتابعداري شروع نه شي چې کومه مسئله يې دخپل خواهش مطابق وه هغه به اخلي[2]. تاسو که پخپله داجتهاد صلاحيت لرئ. نوپه خپل اجتهاد باندې عمل کوئ ماچې څه وليکل، نو دا مې دغير مجتهدينو په باره کې ليکلي دي.

## د قران اوحديث په موجوديت کې په څلورو فقهو خصوصاپه فقه حنفي باندې ولې زورکيږي ؟

**سوال:** يوسړى دفقه حنفي سره تعلق لري.خو خپله مسئله په فقه مالکي سره حل کول غواړي، نوتاسوهغه منع کوئ چې دهغه يوه وجه خودا وي چې دفقه حنفي باوجود فقه مالکي ته ځکه رجوع کوي چې په هغه کې نرمي وي. نوپه داسې دائره (حنفي فقه) کې داوسيدو باوجود دې ته ناجائز وويل شو، خو ددې ټولوخبرو نه پرته زه تاسو نه دا پوښتنه کول غواړم چې آخر ددې څلورو امامانو فقهې ته دمذهب درجه ولې ورکول شوه.چې دې وخت کې دڅلورو امامانود منونکو ترمنځ دومره ډېرليرې والى دى،کله چې يوښه مسلمان له پاره هرهغه خبره چې دقران او دحديثوپه نزد باندې حقيقت وي هغه منل پکار دي اود فقهې اهميت ډېرزيات شو سره له دې چې دالله اودهغه درسول اطاعت ضروري دى. ددې واضحه حکم نه وروسته تاسو ښايئ چې ديوامام ، مجدد ، ظلي يابروزي. نبي ګنجائش چيرته پاتې کيږي؟

**جواب:** محترم اومکرم السلام عليکم ورحمه الله وبرکاته:

زه ستاسوپه ليک ډېرخوشحاله شوم چې تاسو خپل ټول شکونه دکمي زياتي نه پرته په پوره وضاحت سره بيان کړل،افسوس چې ماته په تفصيل سره دليکلو فرصت نشته.خو که مخامخ ملاقات شوى واى، نو زباني معروضات وړاندې کول به ز يات آسان وو.خوپه هرحال څه امور عرض کوم:

۱: داسلام ددين ډېرکارونه خو داسې دي چې په هغه کې نه دچااختلاف شته او نه دااختلاف ګنجائش شته.خو ډېرکارونه داسې دي چې دهغو حکم صفا په قران کريم ياپه حديث

---

[1] وهو محمول من له قدرة على استنباط الاحكام من الكتاب والسنة،والا فقد صرح العلماء بان التقليد واجب على العامى، لئلا يضل فى دينه (ميزان الكبرى ج:۱،ص:۸۸ طبة مصر،اليواقيت والجواهر ج:۲،ص:۹۶)

[2] وفى ذلک (اى التقليد) من المصالح مالا يخفى، لا سيما فى هذه الايام التى قصرت الهمم جدا واشربت النفوس الهوى واعجب كل ذى راي برايه (حجة الله البالغة ج:۱،ص:۱۲۳ طبع مصر)

نبوي ﷺ کې ذکرشوی نه وي،دداسې کارونودشرعي حکم دمعلومولو له پاره د ژورعلم،فراخه نظر، داعلی درجې دیانت او امانت پکار دی.دا څلور واړه بزرگان په دې صفتونوکې دټول امت په نزدباندې مشهور او منل شوي وو،ځکه ددوی فیصلې دقانون دشارح په حیث منل شوي دي لکه څنګه چې دلوی عدالت له لوري دقانون وضاحت مستند وي، نوله دې وجې نه دا تصور صحیح نه دی چې خلک د الله او درسول ﷺ دتابعداري په ځای ددې بزرگانوتابعداري کوي، صحیح تعبیر مستند ګڼل کیږي او دقانون تشریح یو عقلمن سړی له قانون نه انحراف نه ګڼي.په دې وجه دڅلور واړه امامانو فقه له قران او سنت نه اخیستل شوې ده او ددوی تابعداري دقران او حدیث تابعداري ده.

۲. پاتې شوه داخبره چې هرکله دا څلور واړه تشریحات مستند دي، نویواځې فقه حنفي ولې غوره کیږي؟ نوددې وجه دا ده چې د نورو فقهو پوره تفصیل زموږ په مخکې نه شته او نه یې ټول کتابونه موجود دي، په دې وجه دنورو د فقهې ماهرینو ته درجوع مشوره ورکول کیدای شي خو پخپله داسې کول داحتیاط نه خلاف دي.

دویم دا چې دلته اکثر خلک دفقه حنفي منونکي دي.نوکه چیرې یو سړی دویمې فقهې ته رجوع کوي، نوددې خبرې ویره ده چې هغه یواځې داسانتیا په وجه داسې کوي . دخدای او رسول دتابعداري په وجه داسې نه کوي.

## ایا یوه فقه منل ضروري دي؟

**سوال:** ایاپه اسلام کې یوه فقه منل اوپه هغه باندې عمل کول لازم دي ؟که په خپل عقل او پوهې سره دامعلومول چې دکوم امام خبره زیاته مناسبه وي په هغې باندې عمل کول جائزدي؟

**جواب:** دیوې فقهې پابندي واجب ده اوکه داسې ونه شي، نوانسان به دخپلې رایې او خود غرضي په دام کې ونښلي.[1]

## د حنفي فقهې د څو خبروصحیح تعبیر

**سوال:** ۱...که یوې ښځې ته اجرت ورکړل شي اوهغې سره زنا وشي، نوپه هغې باندې به حدجاري کیږي اوکه نه؟ځینې خلک وایي چې په حنفي فقه کې په دې باندې دزناحدنشته اوپه خپل تایید کې داحواله وړاندې کوي: "لواستأجر المرأة ليزني بها فزني لا يحد في قول ابي حنيفة." ددې قول څه ډول تعبیر کیږي؟

---

[1] وفي ذلک (اي التقليد) من المصالح مالا يخفى، لا سيما في هذه الايام التي قصرت الهمم جدا واشربت النفوس الهوى واعجب کل ذي راي برايه (حجة الله البالغة ج:۱،ص:۱۲۳ طبع مصر)

**سوال:** ۲.... ایا رښتیا هم د حنفي فقهې کې ځینې یا اکثر مسائل د قران او صحیحو حدیثونو خلاف دي؟

**سوال:** ۳.... ایا د امام اعظم رحمه الله د مقلدینو تقلید داسې دی چې که بالفرض د امام صاحب کومه مسئله د قران پاک د ایت یا د صحیح حدیث خلاف وي. نو حنفي حضرات. قران پاک او حدیث رسول ﷺ داسې ویلو سره پریږدي چې: دا ایت یا حدیث زموږ د امام د قول خلاف دي له دې وجې نه موږ دا نه منو. زموږ له پاره د امام تقلید او د هغه مسئله د تقلید وړ (لائقه) ده... د داسې خبرې کونکي څه حکم دی؟

**سوال:** ۴...په کوم کس چې د شهوت غلبه وي او د هغه ښځه یا وینزه نه وي، نو هغه د شهوت د تسکین له پاره استمنا بالید کولې شي، امید دی چې په دې باندې به څه ګناه نه وي او که د زنا ویره وي. نو استمنا بالید واجب ده. (د شامي په حواله ص: ۱۵۲)

امیدلرم چې محترم به د خپلو ضروري مصروفیاتو نه وخت وباسي او د مذکوره سوالونو ځوابونه به راکړي. والسلام علیکم!

**جواب:** ۱...کومې ښځې سره چې د اجرت په بدل کې زنا شوي وي د صاحبینو په نزد په هغې باندې حد شته، په درمختار کې له فتح القدیر نه نقل شوي دي چې:

"والحق وجوب الحد کالمستأجرة للخدمة" (شامي ج:٤ ص:٢٩)

ترجمه: او حق دا دی چې حد واجب دی، څنګه چې د خدمت له پاره نیول شوې ښځې سره زنا کولو باندې حد واجب دی.

حضرت امام ابو حنیفه رحمه الله د شک له وجې حد ساقطوي (او د تعزیز حکم ورکوي) او د هغه استدلال د حضرت عمر رضی الله عنه د اثر له وجې نه دی، کوم چې امام عبدالرزاق رحمه الله په خپل منصف کې په دې الفاظو سره نقل کړی دی:

**الف:..."أخبرنا ابن جریج قال ثنی محمد بن الحارث بن سفیان عن ابی سلمة بن سفیان: أن المراة جاءت عمر بن خطاب رضی الله عنه فقالت: یاامیرالمومنین :اقبلت اسوق غنما، فلقینی رجل ،فحفن لی حنفة من تمر، ثم حفن لی حفنة من تمر، ثم حفن لی حفنة من تمر، ثم اصابني قال عمر رضی الله عنه: قلت: ماذا؟ فأعادت، فقال عمر بن الخطاب رضی الله عنه ویشیر بیده: مهر! مهر! مهرا....الخ.**

ترجمه: موږ ته جریج بیان وکړ. هغه فرمایي چې ماته محمد بن حارث بن سفیان بیان وکړ، هغه روایت کوي د ابو سلمه بن سفیان نه چې: یوه ښځه حضرت عمر رضی الله عنه ته راغله او وې ویل چې: اې امیرالمومنین! ما خپلې بزې راوستلې. ماسره یو کس ملاقات وشو. هغه ماته یو موټی کجورې راکړلې. بیا یې یو موټی نورې کجورې راکړلې او بیا یې یو موټی نورې کجورې راکړلې. بیا هغه ماسره صحبت (کوروالی) وکړ. حضرت عمر رضی الله عنه ورته وفرمایل تا څه

وویل؟هغې بیان دوباره وکړ،حضرت عمر رضي الله عنه دخپل لاس اشارې سره وفرمایل مهردی،مهردی ،مهردی!

ټ: "وعن سفیان بن عیینة عن الولید بن عبدالله عن ابی الطفیل ان امرأة أصابها الجوع.فاتت راعیا،فسالته الطعام ،فأبی علیها حتی تعطیه نفسها ،قالت:فحثی لي ثلاث حثیات من تمر ،وذکرت انها کانت جهدت من الجوع،فأخبرت عمر،فکبر،وقال:مهر امهر امهر اکل حفنة مهر،ودرأعنها الحد".(مصنف عبدالرزاق ج:۷ ص:۴۰۶)

ترجمه: عبدالرزاق له سفیان بن عیینه نه روایت کوي. هغه دولید عبدالله بن جمیع نه او هغه دابوالطفیل (واثله بن اسقع صحابي رضي الله عنه) نه چې یوه ښځه لوږې تنګه کړله.هغه یو شپونکي ته ورغله اودهغه نه یې ډوډۍ وغوښتله،هغه ورته وویل چې ترڅو پورې خپل نفس ماته ونه سپارې ډوډۍ به درنکړم، دښځې بیان دی چې هغه ماته درې موټې کجورې راکړلې اوهغې زیاته کړه چې: دلوږې له لاسه بې تابه وه،هغې داکیسه حضرت عمر رضي الله عنه ته وکړه، هغه تکبیرووایه او ویې وفرمایل: مهردی. مهردی، مهردی اودهغې نه یې حد ساقط کړ.

ددې دواړو روایتونو راویان ثقه دي.حافظ ابن حزم اندلسي رحمه الله دادواړه په (المحلی) کې ذکرکړي دي اوپه دوی یې جرح نه ده کړې.بلکې دمالکیانو او شوافعو خلاف یې بطوردلیل وړاندې کړي ده، هغه لیکي:

"وأما المالکیون والشافعیون فعهدنا بهم یسنعون خلاف الصاحب الذی لایعرف له مخالف إذا وافق تقلیدهم وهم قدخالفوا عمر،ولایعرف له مخالف من الصحابة....بل هم یعدون مثل هذا اجماعا،ویستدلون علی ذالک بسکوت من الحضرة من الصاحبة عن النکیر لذالک."(محلی ابن حزم ج:۱۱ ص:۲۵۰)

ترجمه:پاتې شول مالکیان اوشوافع موږ لیدلي دي چې هغوی دداسې صحابي په مخالفت باندې تشنیع کوي دچاپه وړاندې چې له صحابه وو نه مخالف معلوم نه وي،بلکې دی اجماع شمیري اوپه دې اجماع باندې استدلال کوي،ددې صحابه ووپه سکوت سره څوک چې په دې موقعه باندې موجودوو ،خوهغوی په دې باندې څه انکار ونه کړ.

کله چې ددې حضراتودا اصول دي، نو دحضرت عمر رضي الله عنه داپورتنۍ واقعه ولې دلیل نه ګڼې سره له دې چې په صحابه کراموکې چاپه حضرت عمر رضي الله عنه باندې انکار ونه کړ؟کیدای شي چې دچادا خیال وي چې حضرت عمر رضي الله عنه دلوږې دمجبورۍ له وجې نه هغه مجبوره وګڼله اوحد یې ترې ساقط کړ.

حافظ ابن حزم رحمه الله دا احتمال غلط ګرځولو سره لیکي:

"فإن قالوا: أن اباالطفیل ذکر فی خبره أنها قدکان جهدها الجوع،قلنا لهم....أن خبر ابی الطفیل

ليس فيه أن عمر عذرها بالضرورة بل فيه أنه درا الحد من أجل التمر الذى اعطاها وجعله عمر مهرا" (محلى ج:۱۱ ص:۲۵۰)

ترجمه: كه مالكي او شافعي حضرات دا وو ايي چې ابو الفضل په خپل روايت كې ذكر كړي دي چې لوړې دا ښځه بې تابه كړې وه، (كبداى شي چې له دې وجې نه حضرت عمر رضي الله عنه دهغې نه حد ساقط كړى وي) مونږ هغوى ته وايو چې: دابو الفضل په روايت كې دا نشته چې حضرت عمر رضي الله عنه هغه دمجبوري له وجې نه معذوره ګرځولې وه بلكې په دې روايت كې خودا دى چې هغه دهغو كجورو له وجې نه حد ساقط كړ. كومې چې هغه وركړې وې او هغه رضي الله عنه دا كجورې مهر وګرځاو.

ددې تفصيل نه دوه خبرې واضحې شولې يوه دا چې په سوال كې كوم ويل شوي دي چې په فقه حنفي كې په دې باندې حد نشته، دا تعبير غلط دى. تاسو اوريدلي دي چې په دې مسئله كې دفقه حنفى فتوا دصاحبينو په قول باندې ده، چې په دې باندې حد لازم دې.

دويم دا چې په دې مسئله كې كوم خلک دحضرت امام ابو حنيفه رحمه الله باندې زبان درازي كوي هغه په مسئله باندې په صحيح طورسره نه پوهيدو له وجې نه كوي اودهغوى دطعن په حضرت امام باندې نه دې. بلكې دهغوى وړاندې روحضرت اميرالمومنين عمربن الخطاب رضي الله عنه باندې دي، څه مسئلې سره اتفاق نه كول. بله خبره ده، خو داسې مسئلې راخستل او په امامانو باندې زبان درازى كول بله خبره ده.

دلته به دا خبره ذكر كول هم بې ځايه نه وي چې په زيربحث صورت كې دحضرت امام (اوله هغه مخكې دحضرت عمر رضي الله عنه) په نزدهم زناده. حلاله نه ده. خوله مهرسره دتشبيه له وجې حد ساقط شو، له دې وجې داګڼل به بدفهمي وي چې دادواړه بزرګان زنا بالاستيجار حلال ګڼي، څنګه چې ځينو خلكو داسې ګڼلې ده. وللبسط محل آخر!

**جواب:** ۲...دا ويل چې: دحنفي فقهې ځينې يا اكثر مسائل دقران او صحيح حديثونو خلاف دي، دنا پوهي نتيجه ده، په حنفي فقه كې دمسائلو استناد له قران كريم، احاديث نبويه (على صاحبها الصلوة والتسليمات)، اجماع امت او قياس صحيح باندې ده. البته دائمه مجتهدينو مدارک اجتهاد مختلف دي، حضرت امام ابو حنيفه رحمه الله چې د اجتهاد په كومه لوړه درجه باندې فائزو، ددې اعتراف دامت سترو امامانو كړى دى.

**جواب:** ۳...په سوال كې چې دكوم څه پوښتنه شوي ده هغه يواځې تهمت دى، همدا اوس اوس تاسو دمستاجرې په مسئله كې وليدل كې چې احنافو دحضرت امام رحمه الله قول پرېښې دى او دصاحبينو قول يې اختيار كړى دى او دا يې وويل: والحق وجوب الحد... داسې ډير مثالونه وړاندې كولى شم، چې خلكو ته په ظاهره په نظر راځي چې حنفيه دصحيح حديث

خلاف کوي،هلته يواځې دحضرت امام دقول له وجې څخه نه.دقران وسنت او اجماع امت دقوي د لائلوله وجې څخه.ددې هم ډېرمثالونه وړاندې کولی شم. خونه راسره فرصت شته اونه يې ضرورت غوښتنه کوي

**جواب:** ۴...درمختارکې دی "في الجوهرة:الإستمناء حرام وفيه التعزيز."

ترجمه: په جوهره کې دي چې:استمنابالید حرام ده اوپه دې باندې تعزيزلازم دی.

علامه شامي ددې په حاشيه کې ليکلي دي:

**قوله:(الإستمناء حرام) اى: بالكف إذا كان لإستجلاب الشهوة.أما إذا غلبته الشهوة وليس له زوجة ولاامة ففعل ذالك لتسكينها فالرجاأنه لاوبال عليه.كما قال ابوالليث.ويحب لوخاف الزنا.(ردالمختار:ج:٤ ص:٢٧ كتاب الحدود)**

ترجمه:په خپل لاس سره دمني خارجول حرام دي .کله چې داکار دشهوت په اساس وي . خو په داسې صورت کې کله چې پرې دشهوت غلبه وي اوښځه يا وينزه يې هم نه وي.که هغه د شهوت دتسکين له پاره داسې وکړي. نواميددی چې په دې باندې به وبال نه وي. څنګه چې ابوالليث رحمه الله فرمايلي دي چې که په زناکې داخته کېدو وېره وي. نو داسې کول واجب دی.

ددې عبارت نه څوخبرې معلومې شولې:

اول: په عام حالاتو کې داسې کول حرام دي او د وبال سبب دی اوپه دې باندې تعزيزلازم دی.

دويم:که په يوځوان باندې شهوت دومره غالب شي چې دشدت شهوت له وجې نه دهغه ذهن دومره متوحش شي چې هغه ته هيڅ قسمه سکون اوارام نه محسوسيږی اودهغه سره د تسکين شهوت له پاره څه حلاله ذريعه هم نه وي.په داسې دمجبوري په حالت کې که هغه د علاج په طور ددې عمل په ذريعه دشهوت تسکين وکړي، نودالله تعالی درحم اوکرم نه توقع کيدای شي چې په ده باندې به وبال نه وي،ددې مثال داسې دی چې رشوت اخيستل او ورکول دواړه حرام دي.خو که يومظلوم دظلم ددفع له پاره رشوت ورکولوباندې مجبورشي. نوتوقع کيدای شي چې په دې مظلوم باندې به مواخذه نه وي دادابوالليث رحمه الله قول دی.

دريم:که دشهوت دغلبې له وجې نه په زناکې داخته کيدو وېره وي، نودزنانه دبچ کيدوله پاره ددې بدکارکول ضروري دي.داداسې صورت دی چې ديوکس په دوو حرامو کارونو کې په يوحرام کې لوېدل يقيني شي، نوچې کوم په حرمت کې کم وي دهغه اختيارول لازم وي فقهاء رحمهم الله تعالی دا اصل په دې الفاظوسره تعبيرکړی دی:

**"من أبتلى ببليتين فليختر أهونهما."**

ترجمه: کوم کس چې په دوه مصيبتونوکې راګيروي هغه ته پکاردي چې کوم په هغو کې اسان وي هغه دې اختيارکړي.

شیخ ابن نجیم په (الاشباه والنظائر) داول فن دپنځمې قاعدې لاندې داصل ذکرکړی دی اوددې یې ګڼ شمیرمثالونه ذکرکړي دي .ددې په تمهید کې فرمايي

څلورمه قاعده داده چې کله دوه مفاسدراجمع شي. نودلوی مفسدنه دبچ کیدوله پاره دې وړکی مفسد وشي. امام زیلعي رحمة الله عليه په (باب شروط الصلوة) کې فرمايي چې ددې قسمه مسائلو اصول دادي چې کوم کس په دوو بلاګانوکې راګیرشي اودواړه په ضررکې یوشان وي، نوپه هغه دواړوکې چې کومه یې خوښه وي هغه دې اختیارکړي اوکه دواړه مختلف وي، نوپه بدي کې چې کومه کمه وي هغه دې اختیارکړي.ځکه چې دحرامو ارتکاب یواځې په اضطراري حالت کې جائزدی اودکوم شي ضرر چې زیات وي دهغه په اختیارولوکې هیڅ اضطرارنشته...(الاشباه والنظائرمع شرح حموي ج ۱ ص ۱۲۳ مطبوعه ادارة القران .کراچی)

داستمناء بالیدکوم صورت چې شامي نیکلی دی په هغه کې هم دغه اصل چلېدلی دی یعنې دلوی حرام (زنا)نه دبچ کیدوله پاره دوړوکي حرام(استمناء) اختیارول اوداداسې ګڼل چې د استمنا اجازه ورکړل شوې ده یا واجب ګرځول شوی دی قطعاً غلط دي.ددې داسې تعبیر کول به صحیح وي چې لوی حرام نه ځان ساتل واجب ګرځول شوي دي.اګر که دوړوکي حرام دارتکاب په ذریعه وي.

پاتې شوه داچې انسان ته له ضبط نفس(دنفس له کنټرول) څخه کاراخستل پکاردي. نه دې د زنا خوا ته ورځي اونه دې استمناء کوي، داخبره بالکل صحیح ده.ضرورهم همداسې کول پکاردي. خو سوال دادی چې کوم کس دنفس اوشیطان په پنجه کې داسې راګیرشوی وي چې دهغه په خپل ځان هیڅ اختیارنه وي اوهغه ته له داسې کولو پرته هیڅ چاره نه وي ،نو آیا هغه دې ستره ګناه وکړي اوهمیشه له پاره دې مخ تور شي ،یاخپل لاس سره دې داشهوت ختم کړي؟په داسې صورت کې ده ته څه کول پکاردي ؟لږ دسوچ سره له خپل ځان نه ددې فتوا پوښتنه وکړئ! والله اعلم.

## دامام ابوحنیفه رحمة الله عليه د راتګ اشاره

**سوال:** ایاحضور صلی الله علیه وسلم دحضرت امام ابوحنیفه رحمة الله عليه د راتګ اشاره کړې وه،چې یو کس به داسې راځي چې دثریا(ستوري) نه به هم علم راوړي؟

**جواب:** دصحیح بخاري دروایت ,,لوکان الدین بالثریا،، نه ځینو علماوو دحضرت امام ابوحنیفه رحمة الله عليه طرف ته اشاره ګڼلې ده.

# ❖ سنت او بدعت ❖

## د بدعت تعریف

**سوال:** بدعت څه ته وايي؟ او د بدعت نه څه مراد دي؟

**جواب:** د بدعت تعریف په درمختار (مع حاشیه شامي جلد ۱ صفحه ۵۶۰ طبع جدید) کې داسې شوی دی: "**هي إعتقاد خلاف المعروف عن الرسول (صلى الله عليه وسلم) لا بمعاندة بل بنوع شبهة**".

ترجمه: کوم شيان چې د رسول الله ﷺ نه نقل دي د هغو خلاف عقیده ساتل د ضد او عناد سره نه، بلکې د څه شك په بناء باندې. "او علامه شامي رحمه الله د علامه شمسي نه د دې تعریف په دې الفاظو کې نقل کړی دی: "**ما أحدث على خلاف الحق المتلقى عن رسول الله صلى الله عليه وسلم من علم أو عمل او حال بنوع شبهة" أو استحسان وجعل دينًا قويمًا وصراطًا مستقيمًا**"

ترجمه: هرهغه علم، عمل یا حال چې رسول الله ﷺ نه نقل کړی شوي وي. له هغو څخه د شک یا استحسان په بناء باندې خلاف جوړول او بیا د غه قوي دین او صراط مستقیم ګڼل دا بدعت دی خلاصه دا چې په دین کې څه داسې نظریه یا طریقه جوړول بدعت دي چې:

الف: د نبي د طریقې نه خلاف وي ، له نبي کریم ﷺ څخه نه قولاً، نه فعلاً، نه صراحتًا، نه دلالة، نه اشارة ثابت وي.

ب: چې د دې د اختیار ونکي د نبي علیه السلام مخالفت د ضد او عناد په وجه باندې نه وي کړی. بلکې په خپل ګمان کې دا یو ښه کار او ښه خبره وګڼي او ختیاریې کړي.

ج: هغه شی چې دیو دیني مقصد له پاره ذریعه او وسیله نه وي هغه پخپله د دین خبره وګڼي.

## د بدعت قسمونه

**سوال:** د بدعت څو مره قسمونه دي او حسنه بدعت په کوم قسم کې داخل دی؟ او د حسنه بدعت مکمل تعریف هم بیان کړئ! جناب زه الله تعالی حاضر او ناظر ګڼلو سره دا خبره کول غواړم چې د دې فتوا په ذریعه باندې زه یواځې خپله او د خپلو دوستانو اصلاح کول غواړم. مهرباني وکړئ او د سوال ځواب ضرور را کړئ!

**جواب:** د بدعت دوه قسمونه دي: یو شرعي بدعت، دویم لغوي بدعت. شرعي بدعت دا دی چې داسې شی دین کې داخل کړل شي. چې هغه د کتاب، سنت، د امت د اجماع او د مجتهد د قیاس نه هیڅ ثبوت نه لري، دا بدعت همیشه سیئه بدعت وي او دا د شریعت په مقابله کې بل شریعت جوړول دي.

دبدعت دويم قسم هغه شيان دي دکومو وجود چې دحضور ﷺ په زمانه کې نه وو[1]. لکه دهر زماني ايجادات، دي کې ځينې شيان مباح دي. لکه دهوايي جهازسفرکول او داسې نور... اوهغه کې چې کوم شيان دنورومستحبوذريعه وي هغه مستحب دي. کوم چې دواجب كارذريعه وي هغه به واجب وي. مثلاً: دصرف اونحو دعلم نه پرته کتاب اوسنت باندې پوهيدل ممکن نه دي. نو ددې علمونه زده کول به هم واجب وي.
همدارنګه دکتابونوليکل اوديني مدرسو جوړول ددين دزده کولواوښودلوذريعه ده او ددين تعليم فرض عين يافرض کفايي ده. نوداشيان پخپله باندې مباح دي اوددين دتعليم د حاصلولو ذريعه ده. نودابه دضرورت مطابق ضروري وي. دې ته بدعت ويل دلغت اعتبار سره دي. که نه داسنت کې داخل دي. ددې تفصيل نه معلومه شوه چې د مدرسو جوړولو باندې دصلوة اوسلام بدعت قياس کول غلط دي.[2]

## دا بدعت نه دي

**سوال:** له کلونورا په دېخوا تبليغيان شب جمعه ته ځي اوکله هم رخصتي نه کوي. الله تعالی دې نه کړي داعمل خوبه دې حديث کې داخل نه وي چې "**لاتختصواالليلة الجمعة ... الخ**" اودې باندې دوام خوبه بدعت نه وي؟

**جواب:** دتعليم اوتبليغ له پاره شپه ياورځ خاص کول بدعت نه دی اونه ددې التزام بدعت دی، ديني مدرسوکې دسبق له پاره وخت ټاکل شوی وي. دهغه پابندي التزام سره کيږي او

---

[1] وفي ردالمحتار: قَوْلُهُ أَيْ صَاحِبُ بِدْعَة ) أَيْ مُحَرَّمَة ، وَإِلَّا فَقَدْ تَكُونُ وَاجِبَةً، كَنَصْبِ الْأَدِلَّة لِلرَّدِّ عَلَى أَهْلِ الْفِرَقِ الضَّالَّة ، وَتَعَلُّمِ النَّحْوِ الْمُفْهِمِ لِلْكِتَابِ وَالسُّنَّةِ وَمَنْدُوبَةً كَإِحْدَاثِ نَحْوِ رِبَاط وَمَدْرَسَة وَكُلِّ إحْسَانٍ لَمْ يَكُنْ فِي الصَّدْرِ الْأَوَّلِ ، وَمَكْرُوهَةً كَزَخْرَفَةِ الْمَسَاجِد.وَمُبَاحَةً كَالتَّوَسُّعِ بِلَذِيذِ الْمَآكِلِ وَالْمَشَارِبِ وَالثِّيَابِ كَمَا فِي شَرْحِ الْجَامِعِ الصَّغِيرِ لِلْمُنَاوِيِّ عَنْ تَهْذِيبِ النَّوَوِيِّ ، وَبِمِثْلِهِ فِي الطَّرِيقَةِ الْمُحَمَّدِيَّةِ لِلْبِرْكِلِيِّ (ردالمحتار، مطلب البدعة خمسة اقسام ج:١،ص:٥٦٠)

[2] فكل من احدث شيئاً ونسبه الى الدين ولم يكن له اصل من الدين يرجع اليه،فهو ضلالة والدين برئ منه،وسواء فى ذلک مسائل الاعتقادات اوالاعمال اوالاقوال الظاهرة والباطنة، وأما ما وقع في كلام السَّلف مِن استحسان بعض البدع ، فإنّما ذلك في البدع اللّغوية . لا الشرعية(جامع العلوم والحکم لابن رجب الحنبلی ص:٢٣٣) البدعة كل شئ عمل على غيرمثال سبق وفى الشرع: احداث مالم يكن فى عهد رسول الله صلى الله عليه وسلم وتحصل العبدالضعيف من كلمات شيوخنا وافاداتهم ان الاصل فى البدعة الشرعية انما هو قول الرسول صلى الله عليه وسلم من احدث فى امرنا هذا ماليس منه فهو رد والمراد بالامر الدين كما صرحوا به فلا الا على الامور المحدثة فى الدين لا على كل امر محدث ولهذا يخرج امثال التوسع فى المطاعم وغيرها من الامور المباحة بل بعض الرسوم التى يفعل فاعلوها لا على وجه التقرب والاحتساب ايضاً عن حدالبدعة الشرعية وان كانت داخلة فى حد البدعة اللغوية(فتح الملهم ج:٢،ص:٤٠٧ شبيراحمدعثمانى)

دي باندې كله هم چا بدعت شک نه دی کړی.[1]

**سوال:** مايو د کتاب (تحذير المسلمين عن الابتداع والبدع في الدين) اردو ترجمه "بدعات اوران کاشرعی پورسټ مارټم.، (دعلامه شيخ احمدبن حجرقاضي. دوحه قطر.ليکنه، وکتله، ډيرګټور کتاب دی. دبدعاتو باره کې يې ډيرې ښې خبرې کړي دي. خو دکفن او جنازې سره دتګ دبدعتونو ترعنوان لاندې يې دخپل کتاب په صفحه نمبر ۵۰۲ باندې ليکلي دي چې قبر باندې ددرې موټې خاورو اچولو خت کې هرموټې سره "منهاخلقناکم" همدارنګه دويم سره **وفيهانعيدکم**" اودريم سره "**ومنهانخرجکم تارة اخرى**" ويل بدعت دي. تاسو نه غوښتنه ده چې دې باره کې وضاحت وکړئ:

هم دې صفحې باندې ليکي: چې دمړي سرطرف ته سورت فاتحه او دپښو طرف ته سورت بقرة لوستل بدعت دي. ددې وضاحت هم وکړئ! دغه راز په صفحه نمبر ۵۲۱ باندې ليکي: چې ځينې خلک دصدقې په نيت باندې دقرباني ټوله غوښه پخه کړي ياټاکل شوې اندازه غوښه پخه کړي اوفقيران را وغواړي اوهغوی باندې پخ شوې غوښه تقسيم کړي. دې ته يې هم بدعت ويلي دي اوويلي يې دي چې داطريقه جائزنه ده.مهرباني وکړئ! ددې وضاحت هم وکړئ!

**جواب:** ددې دريو واړو شيانو بدعت کيدل زما په عقل کې نه راځي:

۱: حافظ ابن کثير رحمه الله په خپل تفسير کې ددغه ايت شريف نه لاندې داحديث نقل کړې دی:

**وفي الحديث الذي في السنن: أن رسول الله ﷺ حضر جنازة، فلمادفن الميت أخذ قبضة من التراب، فالقاها في القبر وقال: منهاخلقناكم، ثم أخذ أخرى وقال: وفيهانعيدكم، ثم أخرى وقال: ومنهانخرجكم تارة اخرى.(تفسير ابن كثير ج۳ص۱۵۶)**

ترجمه: اوهغه حديث چې په سننو کې دي هغه کې دي چې رسول الله ﷺ جنازې ته حاضر شو، کله چې مړی ښخ کړل شو، نوحضور ﷺ دخاورې نه موټی ډک کړ اوهغه يې قبرته وغورځاو اوويې فرمايل: ،،**منهاخلقناكم**،، (هم دې خاورې نه موږتاسوپيدا کړئ) بيايې دويم ځل باندې موټی ډک کړ اوقبرکې اچولو سره يې وفرمايل: ،،**وفيهانعيدكم**،، (اوهم دې ته به تاسو واپس کوو) اوبيايې دريم ځل باندې موټی ډک کړاوقبرته داچولو وخت کې وفرمايل: ،،**ومنهانخرجكم تارة أخرى**،، (اوله هم دې نه به موږ تاسو بيا راوباسو)

---

۱] وعن شقيق قال: كان عبدالله بن مسعود يذكرالناس في كل خميس.فقال له رجل: يا اباعبدالرحمن! لوددت انک ذکر تنالی کل يوم قال:اما انه يمنعني من ذلک انی اکره ان املکم وانی اتخولکم بالموعظة کما کان رسول الله ص يتخولنا بها مخافة السآمة علينامتفق عليه(مشکوة ص:۳۳ کتاب العلم،الفصل الاول

اوزموږ فقهاء هم ددې داستحباب تصريح کړې ده. په ''الدرر والمنتقى شرح ملتقى الابحر''
کې ددې تصريح موجود ده. (ج۱ ص۱۸۷)

۲: اود قبر سرته د سورت د بقرې پېل او پښو طرف ته د سورت بقرې د پای لوستلو تصريح دحضرت عبد الله بن عمر رضي الله عنه په حديث کې موجود ده. چې د هغه باره کې بيهقي رحمه الله ويلي دي:
**والصحيح أنه موقوف عليه.** (مشكوة ص۱٤۹)

او اثار السنن کې (۲: ۱۲۵) کې حضرت لجاج صحابي رضي الله عنه قول نقل شوی دی چې هغه خپل زوی ته وصيت کړی و:

**"ثم سنّ عليّ التراب سنًّا، ثم اقرأ عند راسي بفاتحة البقرة وخاتمتها، فإني سمعت رسول الله ﷺ يقول ذالک، رواه الطبراني في المعجم الكبير، وإسناده صحيح، وقال الحافظ اليثمي في مجمع الزوائد: رجالة موثقون.** (اعلاء السنن ج۸ ص۳٤۲ حديث ۲۳۱۷)

ترجمه: بيا ما باندې خاوره واچوئ، بيا زما د سر طرف ته (په ولاړه باندې) د سورة بقره لومړي او اخري ايتونه ولولئ، ځکه چې ما د حضور ﷺ نه داسې ويل اوريدلی دي.

۳: د قرباني د غوښې تقسيمول خو حکم دی، که پخه شي او فقيرانو باندې وخوړل شي ،نو دا بدعت ولې شو. دا خبره زما په پوهه کې نه راځي. والله اعلم

## پيري او مريدي په خپله مقصود نه دي

**سوال:** يو څو مياشتې مخکې زما د سوال په ځواب کې تاسو ما ته د "اختلاف امت او صراط مستقيم"، د مطالعه کولو فرمايلي و. ماذا کتاب ډير غور سره ولوستاو ډير کټور مې ومونده. الحمدالله ددې لوستلو سره زما ډير مشکلات حل شول. خاص طور باندې يوې اصولي خبرې باندې پوه شوم او زړه ته مې پريوتله. چې کله د يو کار د بدعت او سنت کېدو باره کې شک پيدا شي، يعنې ځينې عالمان ورته سنت وايي او ځينې ورته بدعت. نو سنت پريښودل د بدعت نه بهتر دي، (صفحه ۱۲۵، ۱۲۲) دا خبره بالکل صحيح اصولي او د احتياط مطابق ده. ځکه چې بد کار پريښودل په هر حالت کې ضروري دي. اوس يو اځې دا خيال پيدا کيږي چې داسې خبرې خو ډيرزياتې دي په کوموکې چې د عالمانو اختلاف دي. ترد چې مروجه کومه پيري او مريدي ده. کومه چې د نفس د اصلاح له پاره ډيره ضروري ګڼل کيږي، دې ته هم ډير عالمان خاص طور باندې د عربو عالمان بدعت وايي. بلکې دې ته پيرپرستي او شرک پورې هم ويل کيږي . نو ددې اصل په بنياد باندې دا هر څه پريښودل پکار دي. اميدلرم چې دې باره کې به تاسو څه واضح خبره بيان وکړئ. ايا ددې پيري او مريدي باره کې قران کريم يا د حضور ﷺ په حديثونو کې څه خاص ارشاد موجود دی؟ يا څلورو واړو امامانو کې يو امام دا طريقه د دين په فرائضو او واجباتو کې شامله کړې ده؟

دويمه خبره خوښکاره ده چې دين کې څه نوې خبره کول کومه چې دقران اوسنت اودصحابه کرامو رضي الله عنهم اوتابعينو دعمل نه ثابته نه وي، هغه بدعت ده. خوداهم ويل کيږي که چيرې يوه نوې خبره ياطريقه ددينې مقصدد حاصلولوله پاره دتدبيرپه طور باندې اختيارکړل شي. نوهغه بدعت نه ده،يعني احداث في الدين خوبدعت دي اواحداث للدين بدعت نه دي. خوغورکولو نه وروسته معلوميږي چې زياتر بدعتونه د (للدين) په وجه باندې شروع شوي دي اوبيا عواموهغو نه ددين برخه جوړه کړه. اوعالماء کرامو ورته بدعت ويل شروع کړل. عام طورباندې چې کومه قران خواني کيږي. يا ... حواني .دريمه او داسې نور . داڅومره بدعتونه چې دي، ټولوته دڅه ناڅه ګټې نسبت کيداي شي. نورکه هيڅ نه وي. نوداخوويل کيږي چې نن سبا دغفلت په دې دورکې خلکوته کله ناکله دقران کريم د لوستلو موقع په لاس ورځي. په دې ډول خودټولو بدعتونو له پاره څه ناڅه جوازپيداکيږي. اميدلرم چې تاسوبه په واضحه توګه زما مشکل حل کړئ، دخپلو ټولودنياوي اودينې کارونوله پاره ددعا غوښتنه هم کوم.

**جواب:** ډيرښه پوښتنه ده، زړه مې پرې خوشحاله شو. ددې مختصر ځواب ستاسودسوال په دويمه برخه کې موجوددی. لږشان تفصيل به يې درته بيان کړم:

پيري اومريدي پخپله مقصودنه دي، اصل مقصد دادی چې ډيرمرضونه انسان پخپله باندې نه شي معلومولی اوکه چيرې معلوم يې هم کړي. نوبيادهغو علاج نه شي کولي، مثلاً: ما کې کبر،ياعجب شته اوکه نه؟ اوکه چيرې شته. نوددې علاج څنګه وکړم؟ نوددې له پاره ديومحقق اوپه سنتوعمل کونکي شخص سره اصلاحي تعلق قائمول دهمدې له پاره دي اوبيعت چې په عامه اصطلاح پيري اومريدي بلل کيږي يواځې داصلاح معاهده ده. دمريدله لوري د اصلاح غوښتنې اودشيخ له لوري داصلاح کولو نوم دی.که يوکس دټول عمر له پاره بيعت ونه کړي، خوخپله اصلاح وکړي، نوسمه ده اوکه چيرې بيعت وکړي اواصلاح ونه شي، نو ګټه يې نشته، غرض داچې دبيعت نه مراد اصلاح ده اوداصلاح شرعي طورباندې واجب کيدل ښکاره دي او دواجب مقدمه هم واجب وي.

له دې پرته دنفس مثال دماشوم په شان وي،څنګه چې سکول کې دماشومانوپه سر استاذ ولاړ وي، نوهغوی کارکوي اوکه چيرې استاذهغوی ازادپريږدي. نوکارنه کوي.که انسان يو محقق عالم سړی خپل شيخ جوړکړي، نودهغه نفس به هم کارکوي اوکه چيرې هغه ازادپريږدي، نودکارپه ځای باندې لهولعب کې مبتلاشي.

له دې نه پرته دالله تعالی عادت دادی چې انسان صحبت سره لوړې درجې ته رسوي، صحابه کرامو رضي الله عنهم ته چې کله دحضور صلی الله عليه وسلم د صحبت شرف حاصل شو.نوهغوی له کوم مرتبې نه کومې ته ورسيدل؛که چيرې په سنتو عمل کونکي شيخ سره تعلق وي. نو دهغه

دصحبت به خپل اثروي. له دې وجې دصوفياء کرامو په اصطلاح کې بيعت ته سلسله صحبت،، هم ويل کيږي. دعلم اوعمل سره دصحبت سلسله هم دحضور ﷺ له زماني نه راروانه ده، غرض داچې بيعت اوارشادبدعت ګڼل صحيح نه دي، بلکې په دين باندې دپابند اوسيدو يوه ذريعه ده، والله اعلم.[۱]

# مروج ميلاد

**سوال:** زموږ علاقه کې دې خبرې باندې بحث دی چې رواج شوی ميلاد ولې ناجائز دی؟ سره له دې چې دې کې دحضور ﷺ مبارک ذکر کيږي. بيا حضرت حاجي امدادالله مهاجر مکي رحمه الله په خپلې هفت روزه رساله کې دې ته جائزويلي دي اوډيوبندنوراکابرين دې ته د بدعاتو او مفاسدو په وجه باندې بدعت وايي. دې باره کې ما دحضرت مولانا محمد سرفرازخان صفدرصاحب طرف ته هم رجوع وکړه، خودهغه په ځواب باندې مې تسلی ونه شوه، تاسو نه مې ددې مسئلې باره کې غوښتنه ده چې صحيح صورت حال څه دی؟

**جواب:** محترم اومکرم!

السلام عليکم ورحمة الله وبرکاته.

ستاسو ليک راورسيد، دابنده ډيرزيات مصروف دی اوکومه موضوع باندې چې تاسو د ليکلو خواهش ښکاره کړی دی، دې باندې له ډيروخت را په دې خوا خبرې کيږي اوسنی فتنو پرېښودوسره داسې پخوانيو مسئلوباندې خپل صلاحيتونه ختمولو نه ځان ساتل پکار دي. په دې وجه باندې ليکلوته مې طبيعت نه کيده. خاص طور باندې کله چې داوينم چې حضرت مخدوم مولانامحمد سرفرازخان صاحب مدظله العالی (چې دهغوی دعلم اوفضل او تقوا زکوة هم که چېرې ماخطاکارته راکړل شي. نوډيرغټ غني به شم) دهغه په ليک باندې ستاسوتسلی نه ده شوې، نوددې خطاکارپه الفاظوبه ستاسو څه تسلي وشي؟

---

۱] عن عَوْفُ بْنُ مَالِكٍ الأَشْجَعِيُّ قَالَ كُنَّا عِنْدَ رَسُولِ اللَّهِ صلى الله عليه وسلم تِسْعَةً أَوْ ثَمَانِيَةً أَوْ سَبْعَةً فَقَالَ « أَلاَ تُبَايِعُونَ رَسُولَ اللَّهِ » وَكُنَّا حَدِيثَ عَهْدٍ بِبَيْعَةٍ فَقُلْنَا قَدْ بَايَعْنَاكَ يَا رَسُولَ اللَّهِ. ثُمَّ قَالَ « أَلاَ تُبَايِعُونَ رَسُولَ اللَّهِ ». فَقُلْنَا قَدْ بَايَعْنَاكَ يَا رَسُولَ اللَّهِ. ثُمَّ قَالَ « أَلاَ تُبَايِعُونَ رَسُولَ اللَّهِ ». قَالَ فَبَسَطْنَا أَيْدِيَنَا وَقُلْنَا قَدْ بَايَعْنَاكَ يَا رَسُولَ اللَّهِ فَعَلاَمَ نُبَايِعُكَ قَالَ « عَلَى أَنْ تَعْبُدُوا اللَّهَ وَلاَ تُشْرِكُوا بِهِ شَيْئًا وَالصَّلَوَاتِ الْخَمْسِ وَتُطِيعُوا اللَّهَ وَأَسَرَّ كَلِمَةً خَفِيَّةً وَلاَ تَسْأَلُوا النَّاسَ شَيْئًا ». فَلَقَدْ رَأَيْتُ بَعْضَ أُولَئِكَ النَّفَرِ يَسْقُطُ سَوْطُ أَحَدِهِمْ فَمَا يَسْأَلُ أَحَدًا يُنَاوِلُهُ إِيَّاهُ (صحيح مسلم ج:۱،ص:۳۳٤،جامع الاصول ج:۱،ص:۲٥٤، ۲٥٥) حضرت تهانوی رحمة الله عليه د دې حديث مبارک د نقل کولو نه وروسته فرمائی چې په حديث کښې د بيعت نه مراد نۀ خو د جهاد بيعت مراد دې او نه د اسلام بيعت بلکې د التزام او د اهتمام اعمال بيعت د دې نه مراد دې ورنه تحصيل د حاصل به لازم راشی (التکشف عن مهمات التصوف ص:۲٦۰. ۲٦۱)

خوستاسو خواهش نه پوره کول ډیر مشکل و. د مجبوري له وجې مې یو څو الفاظ ولیکل. که ګټه درکړي، نو شکر دی. ورنه کالائے بد بریش خاوند.

د مسئلې د وضاحت له پاره یو خبرې یاد ساتئ:

اول: دې کې خو هیڅ شک نشته او نه یکې د اختلاف ګنجائش شته چې د حضور ﷺ مبارک یاد په اعلی کارونو کې یو کار دی او دې کې هم هیڅ شک نشته چې د میلاد په نوم باندې کوم محفلونه جوړیږي. هغه کې ډیرې داسې خبرې ایجاد شوې دي کومې چې د شریعت له حدودو نه بهر دي. یعنې دا میلادونه د دوو شیانو مجموعه ده. یو مستحب او مندوب. یعنې د نبي کریم ﷺ یاد او بل د شریعت خلاف کارونه کوم چې دې سره یوځای شوي دي. چې له هغو پرته میلاد، میلاد نه ګڼل کیږي. هغه د میلاد له پاره لازم ګڼل شوي دي.

دویم: کوم شی چې د خپل اصل په اعتبار باندې مباح یا مندوب وي. خو عام طور باندې هغه سره قبیح کارونه یوځای شوي وي. د هغه باره کې څه طریقه اختیارول پکار دي؟ دې کې د ذوق اختلاف یو فطري شی دی، د چا نظر چې په نفس مندوب وي، د هغه ذوق به دا فیصله کوي چې دې کارونو نه خوبې شکه ځان ساتل پکار دي. خو نفس مندوب ولې پریښودل شي. ددې په مقابله کې چې د چا نظر د عوامو په جذباتو باندې وي، د هغه فتوا به دا وي چې خاص خلک خو به له دې نه ځان وساتي. خو عوام به ددې کارونو نه منع کول ممکن نه وي. په دې وجه باندې عوام ددې سیلاب نه بچ کولو له پاره هم دا صورت دی چې د دوی مخکې بند وتړل شي. دا دواړه ذوقونه په خپل خپل ځای باندې صحیح دي او د دوی په مینځ کې حقیقي اختلاف نشته. ځکه چې کوم خلک د جواز قایل دي هغه د نفس مندوب قایل دي، د شریعت خلاف کارونو هغوی هم قایل نه دي او کوم خلک چې د عدم جواز قایل دي. هغوی هم نفس مندوب ته ناجائز نه وايي، خو د شریعت خلاف کارونو په وجه باندې ورته ناجائز وايي.

دریم: ددې ذوقي اختلاف پیدا کیدو په وجه باندې د خلکو درې فرقې جوړې شوې:

یوه فرقه خو د بزرګانو د قول او فعل سند د خپلو بدعتونو له پاره د جواز په طور باندې استعمالوي دویمه فرقه هغه بزرګان مبتدع ګڼلو سره هغوی ته بد رد وايي او هغه ملامته کوي. او دریمه فرقه د کتاب او سنت او د امامانو او مجتهدینو ارشادات د سند په طور باندې حجت ګڼي او د هغو بزرګانو د قول او فعل داسې توجیه وړاندې کوي، چې هغوی ته د بد رد ویلو څه ګنجائش پاتې نه شي او که یوه توجیه په یوه کې نه راځي. نو بیا هم دا ګڼل چې بزرګان معصوم نه دي هغوی ته بد رد ویل جائز نه ګڼي. لومړي دوه مسلکونه د افراط او تفریط دي او دریم مسلک د اعتدلال و الا و ودی.

له دې امورو نه وروسته د حضرت حاجی صاحب نور الله مرقده له کار نه د اهل بدعت استدلال غلط دی. ځکه چې زمونږ خبرې د "میلاد، په هغو دریو طریقو باندې دي کومې چې شپه ورځ په خپلو سترګو باندې وینو. داسې میلاد ته خو حضرت حاجی صاحب رحمه الله هم جائز نه وايي.

اوکوم میلاد ته چې حضرت حاجی صاحب رحمه الله جائزوایي.هغه اهل بدعت نه کوي. ددې مثال بالکل داسې دی چې مرزاغلام احمدقادیانی وایي چې "مسیح موعود.. راتلل مسلمانان له مخکې نه مني اوزه مسیح موعودیم. دقران اوحدیث ټولې وړاندوینې (پشنهادونه) ټول زماپه حق کې دي،که چېرې مرزاقادیاني، دقران اوحدیث والا مسیح موعود نه دی اودهغه له لوري دقران اوحدیث په خپل ځان باندې تطبیقول غلط وي. نو بالکل همداسې داهل بدعت والاوو میلادهم دحضرت حاجی صاحب رحمه الله میلادنه دی. په دې وجه باندې دحضرت قول اوفعل دخپل "میلاد . له پاره دلیل جوړول یواځې مغالطه ده.
په هرحال صحیح اواستدلال والا مسلک هغه دی،کوم چې د دیوبند اکابرینو خپل کړی دی. چې موږ نه دې میلادته صحیح وایو اونه هغو اکابرینوته بدعتیان وایو.داخودمسئلې مختصر شان وضاحت و.ستاسوباره کې زماداخلاص نصیحت دادی چې خپل صلاحیتونه ددین په لوړ والي اوخپلې اصلاح کې استعمال کړئ.چې موږ اخرت کې دالله تعالی په دربار کې کامیاب شو اوپښې دورکې. دحق جذبه ډیره کمه پاتې شوې ده، کوم کس چې په ذهن کې څه غلطه خبره کینوله، که په زرګونو دلیلونو سره هغه پوه کړل شي هغه به یې پرېښودوته تیار نه شي، بس انسان ته د الله تعالی شکر ادا کول پکاردي چې یوځل دحق وضاحت کولونه وروسته خپل کارکوي،که څوک یې مني اوکه نه؟ ددې فکرکول نه دي پکار.

حافظ وظیفه تو دعاګفتن است وبس    دربند آن مباش که نه شنید یا شنید

## د پیدائش یا وفات جشن

**سوال:** عام طورباندې دحضور ﷺ دپیدائش ورځ ډیرالتزام او انتظام سره لمانځل کیږي. ددې شرعي حیثیت څه دی؟ اودا دپیدائش جشن دې که دوفات ؟

**جواب:** عام طورباندې په ۱۲ ربیع الاول باندې دسیرت النبي ﷺ د جلوسونولمانځنه کیږی اوجشن عیدمیلادالنبي ﷺ هم ډیراهتمام سره لمانځل کیږي،چراغونه رڼاکیږي اوجنډې لګول کیږي، جلسې وي،جلوسونه راوځي،داټول کارونه حضور ﷺ سره دمحبت حق ګڼلوپه وجه باندې کیږي. دې باره کې فکر لرونکو ته دې خبرې باندې غورکول پکاردي چې دحضور ﷺ په پیدائش کې مشهورقول ۱۲ ربیع الاول دی[1].خود محققینوپه نزد

[1] والمشهور انه صلى الله عليه وسلم ولد يوم الاثنين ثانى عشر ربيع الاول وهو القول الثالث فى الكلام المصنف وهو قول محمد بن اسحاق بن يسار وامام المغازى وقول غيره قال ابن كثير وهو المشهور عندالجمهور وبالغ ابن الجوزى وابن الجزار فنقلا فيه الاجماع وهوالذى عليه العمل(المواهب اللدنية ج:١،ص:١٣٢ طبع دارالمعرفة ،بيروت)

باندې صحيح قول دادى چې حضور ﷺ په ۸ ربيع الاول باندې پيداشوى دى[۱] اود حضور ﷺ وفات دصحيح اومشهورقول مطابق په ۱۲ ربيع الاول باندې شوى دى[۲]. دربيع الاول مياشت اودولسم تاريخ نه يواځې دحضور ﷺ دپيدائش ورځ ده. بلکې دحضور ﷺ دوفات ورځ هم ده. کوم خلک چې دې تاريخ باندې جشن لمانځي. هغوى نه سل ځله سوچ کول پکاردي چې اياهغوى خو به دخپل محبوب ﷺ په وفات باندې جشن نه لمانځي؟ مسلمانان ډيرساده قوم دى.ددين د دشمنانوپه ښائسته عنواناتوباندې ع ستان شي.دصفرپه اخري چارشنبه باندې دحضور ﷺ دوفات مرض شروع شو[۳].دښمنان دې باندې خوشحاله شول اودې خوشحالۍ کې يې متيايانې تقسيمول شروع کړل. دلته يې دمسلمانانوپه غوږونوکې داخبره واچوله چې دې ورځ باندې سرور کون ومکان ﷺ دصحت غسل کړى و اوحضور ﷺ دسيل اوتفريح له پاره وتلى و.ناخبره مسلمانانو دډښمن داخبره دقران حرف وګڼه اوقبوله يې کړه اوپه هغه ورځ باندې يې کورپه کور باندې متيايانې تقسيم کړې. همدارنګه يې دمرض ورځ دصحت په ورځې باندې مشهوره کړه اوپه همدې ورځ درسول الله ﷺ دښمنانودرسول الله ﷺ دامتيانو په مټ متيايانې تقسيم کړې.همدارنګه يې د حضور ﷺ دوفات ورځ د:يوم ميلاد: په نوم باندې مشهورکړه اودې ورځ باندې يې مسلمانان په جشن لمانځلوباندې وګمارل ،شيطان به دې قوم نه څومره خوشحاله وي کوم چې دحضور ﷺ دمرض په ورځ باندې متيايانې تقسيموي اودحضور ﷺ دوفات په ورځ باندې جشن لمانځي،ايا ددنيايوغيرتي قوم به داسې وي چې دخپل مقتدا او مشر دوفات

---

[۱] وقيل لثمان خلت منه قال الشيخ قطب الدين القسطلانى وهو اختيار اكثر اهل الحديث ونقل عن ابن وجبير بن مطعم وهو اختيار اكثر من له معرفة بهذا الشان يعنى التاريخ واختاره الحميدى وشيخه بن حزم وحكى القضاعى فى عيون المعارف اجماع اهل الزيج عليه ورواه الزهرى عن محمد بن جبيربن مطعم وكان محمد عارفاً بالنسب وايام العرب اخذ ذلک عن ابيه جبير(المواهب اللدنية مع شرحه ج:۱،ص:۱۳۱، ۱۳۲ طبع دارالمعرفة بيروت)

[۲] وكانت وفاته يوم الاثنين بلاخلاف من ربيع الاول وكاد يكون اجماعاً...... ثم عنداسحاق والجمهور انها فى الثانى عشرمنه (فتح البارى،باب مرض النبى صلى الله عليه وسلم ووفاته ج:۸،ص:۱۲۹) فتوفى عليه السلام حين زاغت الشمس وذلک عندالزوال.......ثم الذى عندابن اسحاق والجمهور........انه مات لاثنتى عشرة ليلة خلت من شهر ربيع الاول.....ثم انه وفاته عليه السلام فى اليوم الاثنين(المواهب اللدنية مع شرحه ج:۳،ص: ۱۱۰، ۱۱۱ طبع دارالمعرفة،بيروت)

[۳] فصل فى حوادث السنة الحادية عشرة من الهجرة ..... وفيها مرض رسول الله صلى الله عليه وسلم فى آخر الاربعاء من صفر، وكان ذلک اليوم ثلثين من شهر صفر المذكور ..... (بذل القوة فى حوادث سنى النبوة ص:۲۹۶ طبع جامعة السند حيدرآباد پاكستان،ايضاً البداية والنهاية ج:۳،ص:۱۹۷،تاريخ طبرى ج:۳،ص:۱۸٤، تاريخ ابن كثير ج:۲ص:۱۲۱)

په ورځ باندې جشن کوي؟ نو سوال دادی چې مسلمانان (۱۲ وفات) باندې دا جشن د چاپه اشاره باندې لمانځي؟ ایا الله تعالی هغوی ته ددې حکم کړی دی؟ ایا رسول الله ﷺ دنیا نه رخصت کیدو وخت کې فرمایلي و چې زما د وفات په ورځ باندې به جشن کوئ؟ ایا خلفاء راشدینو، صحابه کرامو رضی الله عنهم، تابیعنو رحمهم الله، امامانو او مجتهدینو کې چادې ورځ باندې جشن لمانځلی دی؟ ایا د حدیث او فقهې په یو کتاب کې ذکر شوي دي چې د (۱۲ وفات) ورځ په اسلام کې د اختر حیثیت لري؟ او دا چې دې ورځ باندې مسلمانانو ته سرکاري رخصتي کول پکار دیا او د اختر جشن کول پکار دي؟

د (جشن عید) لمانځل د رافضیانو په نزد باندې د محرم د ماتم تقلید دی او د چا کلیزه (که هغه د پیدائش وي که د وفات) لمانځل د عقل خلاف دي. حضرت شاه عبدالعزیز صاحب رحمه الله په تحفه اثناعشریه کې لیکي: (د فارسي عبارت پښتو ترجمه دا ده:)

ترجمه: پنځلسمه نوع نوي نوي مثالونه یو شی پیژندل او د اوهم کول په ضعیف العقول باندې غالب وي، تر دې پورې چې د دریاب او به او شعله او ډیوه او د فوارې او به اکثر خلک یو اور او او به ګڼي، اکثر شیعه ګان دې خیالونو په عادتونو کې ډوب کړي دي. مثلاً: هر کال لسم محرم وي، هر کال د امام حسین رضی الله عنه د شهادت ګمان کوي او د ماتم حکمونه ژړا فریاد او داسې نور... کوي، د بنځو په شان هر کال په خپلو مړو باندې دا عمل کوي، سره له دې چې عقل لرونکو ته پته ده چې د هر کال زمانه غیر قرارده، یعنې په خپل ځای باندې دریدونکې نه ده، یو جز هم د دې ثابت او قائم نه دی او د هغې زمان بېرته راتلل هم ممکن نه دي او د حضرت امام رضی الله عنه شهادت چې په کومه ورځ باندې شوی دی، د هغې ورځې د نن ورځې سره فاصله یو ولس نیم سوه کاله ده، دا او هغه ورځ څنګه یو کیدای شي او څه مناسبت یې دی؟

وړوکی او لوی اختر دې باندې قیاس کول نه دي پکار، ځکه چې دې کې خوشحالي هر کال نوې ده، یعنې د رمضان روژې نیول او د کعبې حج اداکول چې **شكر النعمة المتجددة** (یعنې د نوي نوي نعمت شکر دی) هر کال نوی سرور پیدا کیږي، په دې وجه باندې اخترونه د شریعت په دې فاسد وهم باندې مقرر نه دي، بلکې اکثر عاقلانو نوروز او مهرجان او داسې نور... د نوو خبرو او اسماني تغیر ګڼلو سره اختر اختیار کړی دی چې هر کال یو نوی شی پیدا کیږي. هغه باندې نوي نوي حکمونه جاري کیږي او علی هذالقیاس د بابا شجاع الدین او د غدیر د جشن لمانځل او داسې نورو... ټولو بنیاد په فاسد وهم باندې دی او ددې موقعې نه معلومه شوه چې په کومه ورځ باندې دا ایت نازل شو ((**الیوم اکملت لکم دینکم**)) او په کومه ورځ چې وحې نازله شوه او د معراج شپه، د غه ورځې په شریعت کې د اختر شپې ولې ونه ګڼل شوې او وړوکی او غټ اختر ورته ولې ونه ویل شو. هغه ورځې خو هم د خوشحالۍ وې. همدارنګه بې دیو نبي د پیدائش او وفات ورځ اختر ونه ګرځوله او د عاشورا دورځې

لومړی کال د یهودیانو سره د یوشان والي په وجه باندې حضور ﷺ ولې منسوخ کړ؟ دې ټولو خبرو کې هم داراز دی چې دوهم دخل نه دی پکار او له یو نوي نعمت پرته د فرحت او سرور کول یاغم او ماتم کول د هغه عقل خلاف دي کوم چې دوهم نه صفاوي،ترجمه تحفه اثناعشریه ص ۷۲۲)

له دې پرته په داسې جشنونو کې وخت خرابیږي.په زرګونو روپۍ ضائع کیږي.لمونځ قضاء کیږي.ځان ښوونه پکې وي.سرې او ښځې یوبل ته مخامخ کیږي.بې پردګۍ پکې وي.لږ غور وکړئ:ایا ددې ټولو خبرو د حضور ﷺ ژوند یا کردار سره څه تعلق شته؟ او د حضور ﷺ په مقدس نوم باندې دا ټول شیان کول څومره غټ ظلم دی؟

د حضور ﷺ پیدائش او د حضور ﷺ ټول وجود رحمت دی. (د الله تعالی نور رحمتونه چې موږ ته یې د حضور ﷺ په امت کې د پیدا کیدو عزت را نصیب کړی،اللهم فلک الحمد ولک الشکر) خودې نعمت نه ګټه اخستونکي هما غه خوش قسمته دي.کوموته چې د حضور ﷺ په سنت او سیرت او د حضور ﷺ د مقدسو اخلاقو خپلولو توفیق ورکړل شي.چې هم دا د حضور ﷺ د نیا ته د راتګ مقصد دی.

د حضور ﷺ اخلاق د هر امتي له پاره د نور مینار دی او د دین او دنیا کامیابي. د حضور ﷺ د تعلیماتو،د حضور ﷺ اخلاقو او عادتونو او د حضور ﷺ د حکمونو او ارشاداتو په منلو کې ده او د هغو ضرورت یواځې د لمونځونو،روژو او نورو عباداتو پورې محدود نه دی.بلکې په عقیدو ،عبادتونو،معاملو ، معاشرت،اخلاقو،عادتونو ،شکل ، صورت او لنډه دا چې د ژوند په هره شعبه کې موجود دی.

د مسلمان امت له پاره د حضور ﷺ د ژوند د طریقو خپلول د ډیرو وجو باندې ضروري دي.

اول: الله تعالی باربار د حضور ﷺ د اطاعت ،فرمانبرداري او د حضور ﷺ په طریقو باندې د عمل کولو حکم کړی دی. بلکې خپل اطاعت او بندګي یې د حضور ﷺ اطاعت او اتباع سره تړلي ده. د الله تعالی ارشاد دی: ,,ومن یطع الرسول فقد اطاع الله.(النساء ۸۰)

دویم: موږ د لااله الاالله محمد رسول الله وعدې کولو سره په حضور ﷺ باندې ایمان راوړی دی او زموږ ددې ایماني عهد دا غوښتنه ده چې موږ د حضور ﷺ په یو یو فیصله باندې د زړه له تله راضي شو.د حضور ﷺ د هر یو حکم تعمیل وکړو او د حضور ﷺ یو یو سنت خپل کړو.د الله تعالی ارشاد دی:

﴿ فَلَا وَرَبِّكَ لَا يُؤْمِنُونَ حَتَّىٰ يُحَكِّمُوكَ فِيمَا شَجَرَ بَيْنَهُمْ ثُمَّ لَا يَجِدُوا فِي أَنفُسِهِمْ حَرَجًا مِّمَّا قَضَيْتَ وَيُسَلِّمُوا تَسْلِيمًا ﴿٦٥﴾ ﴾(سورة النساء: ۶۵)

دریم: حضور ﷺ دهر یو امتي له پاره محبوب دی او دا محبت دایمان شرط دی.دحضور ﷺ ارشاددی: 'والذی نفسي بیده، لایؤمن أحدکم حتی أکون أحب إلیه من والده وولده والناس اجمعین.(صحیح بخاري،کتاب الایمان،باب حب الرسول ﷺ من الایمان)

او دمحبت داخاصیت دی چي یو رښتونی محبت کونکي دخپل محبوب په هر یوه ادا باندي ځان وژني او هغه ته دمحبوب ټولي اداګاني خوښي وي.که چېرې داسي نه وي. نو دمحبت دعوه به یواځي دخولې خبره وي. زموږ دایماني محبت هم داغوښتنه ده چي موږ دحضور ﷺ داخلاقو په قالب کي ځان واچوو.دحضور ﷺ په یوې یوې ادا باندي ځان قربان کړو او دحضور ﷺ یو یو سنت ژوندی وساتو او دي نه پرته موږ ته دالله تعالی ددربارنه دحضور ﷺ سره دمحبت سند نه راکول کیږي.

څلورم: دحضور ﷺ ذات دانسان دکمال معراج دی او دحضور ﷺ ټولي اداګاني،ټول سنتونه او دحضور ﷺ ژوند دکمال ترحده پورې پاک او ښائسته دی. کوم یو کس چي دحضور ﷺ څومره پیروي کوي،هغومره به ورته دحضور ﷺ اقتدااو اتباع نصیب شي او هغومره به د انسانیت معراج ته رسیږي او څومره چي هغه دنبي کریم ﷺ له ژوند سره بغض کوي هغومره به هغه دانسانیت دمعراج نه ښکته وي.دحضور ﷺ ذات دکامل انسان له پاره دنموني او معیار حیثیت لري. نه یواځي ایمان لرونکو ته بلکي ټول انسانیت ته دانسانیت معراج ته رسیدو له پاره دهغه پوره انسان یعني حضور ﷺ په نقش قدم باندي تلل ضروري دي.والله اعلم

داپه دې امت باندي دالله تعالی ډیر لوی احسان دی چي دالله تعالی دمحبوب حضرت محمد ﷺ دژوند ټول ریکارډ دامت مخکي داسي موجوددی. لکه چي حضور ﷺ پخپله باندي ګرځي .کیسي. پورته کیږي اوویده کیږي زموږ په وړاندي.دحضور ﷺ د پاکیزه شمائلو او مستندو حدیثونو ذخیره موجودده او په هردورکي دامت اکابرین او محدثین (رحمهم الله) داپه خپل خپل انداز کي چاپ کوي.چي دا امت دژوند په هره شعبه کي دحضور ﷺ دارشاداتو او هدایاتو نه خبر شي،دحضور ﷺ قولونه او کارونه دخپل ژوند مقصدوګرځوي او دحضور ﷺ داخلاقو په قالب کي دخپل ژوند ټولي شعبي واچوي.

اوسني دورکي دحضور ﷺ دسنتونه بې پروایي کول ډیر زیات شوي دي او مسلمانانو دخپل دین دتعلیماتو او خپل مقدس نبي حضرت محمد ﷺ داخلاقو او کردار پرېښودو سره دنورو خلکو طریقي خپلول شروع کړي دي.ددې خبرې ډیرزیات ضرورت دی چي مسلمانان دیوڅوورځود جشن لمانځلو په ځای دهغه ورک شوي مال او دولت طرف ته رابلل پکاردي او هغوی ته باید داسلامي تعلیماتو او دحضور ﷺ دسنتودعوت ورکړل شي،ځکه چي دمسلمان دنیاوي او دیني هرقسمه کټه یواځي دسنتو په اتباع کي ده.

## ماتمي جلوس

**سوال:** د ماتمي جلوس په شريعت کې څه حيثيت دی؟ کله او څنګه ايجاد شو؟ او او سنيو واقعاتو کې د اهل سنت عالمانو څنګه تجويز وړاندې کړی دی؟

**جواب:** د محرم د ماتمي جلوسونو بدعت په څلورمه پېړۍ کې د معزالدولة ديلمي له لوري ايجاد شوی دی، د شيعه ګانو مستند کتاب (منتهی الآمال ج ۱ ص ۴۵۳) کې دي:

د فارسي عبارت ترجمه: ټولو تاريخ دانانو نقل کړي دي چې په ۳۵۲ هـ کې د عاشورا په ورځ معزالدولة ديلمي د بغداد او سيدونکو ته په حضرت امام حسين رضي الله عنه باندې د ژړا کولو، د مخ وهلو او ماتم کولو حکم وکړاو داچې ښځې د سرونو ويښته خلاص کړي، مخونه تور کړي او بهرته راووځي. بازارونه بند شي. په دوکانونو باندې ټاټونه ولګول شي او اشپز دې ډوډۍ نه پخوي. شيعه ګانو ښخو دا سې جلوس وويسته چې د دېګونو په تورو الي باندې يې مخونه تور کړي وو او ځانونه يې وهل. د ډېر وخت پورې دا رواج وا و اهل سنت دا بدعت نه شو منع کولی، ځکه چې باد شاه د شيعه ګانو له طرف نه و.

حافظ ابن کثير رحمه الله په البدايه والنهايه کې د ۳۵۲ هـ لاندې هم دا واقعه داسې نقل کړې ده:

في عاشر المحرم من هذه السنة أمر معز الدولة بن بويه، قبحه الله، أن تغلق الأسواق، وأن يلبس النساء المسوح من الشعر، وأن يخرجن في الأسواق حاسرات عن وجوههن ناشرات شعورهن يلطمن وجوههن ينحن على الحسين علي بن ابي طالب، ولم يكن أهل السنة منع ذلك لكثرة الشيعة وظهورهم وكون السلطان معهم. (البدايه والنهايه ج ۱۱ ص ۲۴۳)

ترجمه: د دې کال (۳۵۲ هـ) د محرم په لسم تاريخ باندې معزالدوله بن بويه ديلمي حکم وکړ چې بازار بند وساتئ، ښځې دې د وړېښتونه جوړ شوي کالي واغوندي او بربنډ سرونه. ښکاره مخونه، خلاص ويښته او مخونو وهلو سره دې حضرت حسين رضي الله عنه باندې ژړا وکړي او بازارونو ته راووځي، د اهل سنت له پاره د دې منع کول ممکن نه و. د شيعه ګانو د غلبې او زيات والي په وجه باندې او په دې وجه باندې چې باد شاه له هغوی سره و.

د دې نه معلوميږي چې د څلورمې پېړۍ ترمينځ پورې امت د دې جلوسونو نه بالکل خبر نه وو، د دې وخت کې يو سني امام خو پرېږده يو شيعه مقتدي هم دا بدعت نه شو زغملی. ښکاره خبره ده که چېرې دې ماتمي جلوسونو کې که معمولي خير هم وی، نو د خير القرون حضرات به له دې نه محروم نه وای، د حافظ ابن کثير رحمه الله د قول مطابق:

وهذا تكلف لا حاجة اليه في الإسلام، ولو كان هذا أمراً محموداً لفعله خير القرون وصدر هذه الأمة وخيرتها، وهم أولى به ولو كان خيراً ماسبقونا إليه وأهل السنة يقتدون ولا يبتدعون.

(البدايه والنهايه ج ۱۱ ص ۲۵۴)

ترجمه: او دا يو داسې تکليف دی چې په اسلام کې هيڅ حاجت ورته نشته. که چېرې دا کار د تعريف قابل وای. نو د خيرالقرون او اولې زمانې حضرات چې دوروستي امت نه بهتر او افضل وو. هغوی به دا ضرور کولو. ځکه چې هغوی د خير او صلاح زيات مستحق وو. که چېرې دا د خير خبره وای. نو هغوی به ضرور مخکې وو او اهل سنت به د سلف صالحينو اقتدا کوله. د هغوی د طريقې خلاف نوې بدعتونه نه جوړول.

غرض دا چې کله يو خودغرضه بادشاه دا بدعت د حکومت او اقتدار د زور په وجه باندې شروع کړ او شيعه ګانو دا د ايمان يوه برخه وګرځوله. نو ددې څه نتيجه شوه؟ راتلونکې کال دا ماتمي جلوسونه د شيعه ګانو او سنيانو د فسادونو ځای جوړ شو او د حسين رضي الله عنه قاتلانو هر کال د ماتمي جلوسونو په شکل کې د کربلا معرکې شروع کړې. حافظ ابن کثير رحمه الله د ۳۵۳هـ په حالاتو کې ليکي:

**ثم دخلت سنة ثلاث وخمسين وثلاث مائة. في عاشر المحرم ,منها: عملت الرافضة عزا الحسين كماتقدم فى السنة الماضية. فاقتتل الروافض وأهل السنة فى هذا اليوم قتالاشديداً وانتهبت الأموال.** (البدايه والنهايه ج ۱۱ ص ۲۵۳)

ترجمه: بيا ۳۵۳ هـ کال شروع شو. رافضيانو په لسم محرم باندې د تېر کال په څېر ماتمي جلوس وکړ. دې کال د رافضيانو او اهل سنت په مينځ کې سخت جنګ وشو او مالونه لوټ کړای شول.

فتنه او فساد د جلوسونو سره لازم دي. په دې وجه باندې زياتره اسلامي ملکونو کې ددې بدعت هيڅ وجود نشته. تردې چې پخپله شيعه ايران کې هم ددې بدعت دارنګ نه دی کوم چې زموږ ملک کې دې جلوسونو اختيار کړی دی اوس اوس دا ايران د صدر بيان په اخبارونو کې چاپ شوی دی، هغه کې ويل شوي دي:

علم او تعزيه غيراسلامي دي. د عاشورا رواجونه غلط دي. دا ايران د صدر خامنيي تنقيد (تهران خصوصي رپورټ)

دا ايران صدر خامنه ای ويلي دي چې د عاشورا په ورځ باندې دا امام حسين رضي الله عنه دياد تازه کولو له پاره رائجې طريقې بالکل غلطې او غيراسلامي دي. دا اسلام اباد دانګريزي اخبار د (مسلم) د رپورټ مطابق دا ايران صدر د جمعې د لمونځ اجتماع ته په خطاب کولو کې وويل: چې دا طريقه يو اځې د ځان ښودنې مطابق ده او د اسلامي اصولو خلاف ده. فضول خرچې او اسراف موږ د حضرت امام حسين رضي الله عنه له لارې ليرې کوي. هغوی د علم او تعزيې مخالفت کې وويل چې دا د محراب او ګنبد په شکل کې هم وي. د ياد تازه کولو اسلامي شکل نه دی. په دې ټولو نمائشي شيانو باندې پيسې خرچ کول حرام دي او د عاشورا د مقصد خلاف دي. ځکه چې د عاشورا ورځ د تفريح ورځ نه ده. دا امام خميني د فتوا په حوالې ورکولو سره صدر خامنه ای

وويل چې دمذهبي مجلسونو په دوران کې لاؤډسپيکر ډېر لوړ اوازسره استعمالول نه دي پکاراودعزاداري په ځای کې هم ګاونډيانوته تکليف رسول نه دي پکار.خلک په ماتم کولوباندي مجبورول نه دي پکار اونه داړواج دخلکوله پاره دتکليف ذريعه جوړول پکاردي.(روزنامه جنګ کراچي پير۹محرم ۱۴۰۵ء۱۵اکتوبر۱۹۸۴ء)

په هندوستان اوپاکستان کې داجلوسونه دانګريزانوپه زمانه کې هم وتل اواسلامي جمهوريه پاکستان کې هم ددې سلسله شروع ده.اهل سنت اکثردلوی زړه نه کاراخستل شوی دی او ماحول دښه ساتلوکوشش شوی دی.خوددې ټولو کوششونو سره سره دابدعت دفتنې اوفسادنه خالي نه دی. دانګريزانوپه دور کې خوددې جلوسونواجازه ورکول خوعقل مني،ځکه چې (جنګ جوړ کړئ اوحکومت وکړئ) دانګريزانودسياست اهمه خبره وه،خوداخبره په عقل کې نه راځي چې دپاکستان جوړيدو نه وروسته دافتنې او فساد بنيادولې جاري وساتل شوچې ددې په وجه باندې هرکال قيمتي خلک مړه کيږي اودملک په دوه طبقوکې داختلاف او نفرت ذريعه جوړيږي؟ په ښکاره باندې ددې بدعت دجاري ساتلو يوڅو وجوهات کيدای شي:

يوداچې زموږمشرانودې ماتمي جلوسونو ښايست او قباحت ته په اسلامي نظرنه دي کتلي اونه يې هغو معاشرتي نقصانونو اوخطرونو ته کتلي دي چې ددې ماتمي جلوسونوپه وجه باندې رامنځ ته شوي دي.هغه نظام چې دانګريزانو له زمانې نه شروع و،دوی هماغه شان جاري وساته اودې کې تبديلي راوستل يې دحکومت دشان خلاف وګڼل.دمحرم په عاشورا کې چې کوم قتلونه ،فتنې اوفسادونه کيږي.هغه دهغوی په خيال کې څه معمولی خبره نه ده،چې دهغو په وجه باندې پريشانه شي.ياهغه دغورکولوقابل وګڼل شي.

دويمه وجه يې داده چې داهل سنت دطرف نه هميشه دحوصلې او بردباري مظاهره شوې ده اوپه دې شر پيدا کونکو ماتمي جلوسونوباندې دپابندي مطالبه نه ده شوې او زموږ دمشرانومزاج داسې دی چې ترڅوپورې دمطالبې تحريک ونه شي. هغوی يوې مسئلې باندې غورنه کوي.

دکراچي محترم صدر راغی اومختلفوطبقو سره يې ملاقات وکړ.له ټولونه مخکې شيعه ګانوته دملاقات شرف حاصل شو.اخرکې مولانابنوري.مولانامفتي ولی حسن اومفتي محمد رفيع عثماني صاحب نمبرراغی. مولانامفتي محمدرفيع عثماني په ډيره سنجيدګۍ اواوښايسته اندازکې صورت حال وړاندې کړ.خو د اهل سنت ويروته هيڅ ارزښت ورنه کړل شو،اهل سنت دحق لپاره دامطالبه وکړه چې:

۱ ، ماتمي جلوسونو باندې پابندي لګول پکاردي.

۲ . کومو شرخوښونکو چې قومي اوانفرادي مالونوته نقصان ورساوو. هغوی ته دغلااوډاکې سزاورکول پکاردي.

۳، د اهل سنت کوم مال ته چې نقصان رسول شوی وي.دهغو دې ورته پوره معاوضه ورکړل شي. ۴، داهل سنت کوم عالمان چې دبې ګناهی په جرم کې نظربند شوي دي.هغوی دې ازاد کړل شي.

## د مرګ خبر ورکول

**سوال:** یوڅو احادیث ستاسو په خدمت کې وړاندې کوم.چې په لاندې ډول دي. ددې مفهوم ولیکئ! ستاسو به ډیره مهرباني وي.

۱: عن عبدالله عن النبي ﷺ قال: إيا کم والنعي فإن النعی من عمل جاهلية. (ترمذی)

۲: عن حذيفة قال: إذا مت فلا تؤذنوا بي أحدا فإني أخاف أن يكون نعياً وإني سمعت رسول الله ﷺ ينهى عن النعي. (ترمذي)

جناب مولاناصاحب! داڅواحادیث دي اوزموږپه علاقه کې دا رسم اورواج دی چې کله څوک(که غریب وي اوکه مالدار) مړشي، نو دجومات په لاؤډسپیکرباندې اعلان وکړل شي چې فلانی دفلاني زوی وفات شوی دی،دجنازې لمونځ به یې درې بجې وي، چې جنازه واخیستل شي، جنازګاه ته لاړشئ. نوایاداسې اعلان کول جائزدي اوکه دحدیثونوخلاف دي؟ که چیرې خلاف اوناجائزوي، نوانشاء الله داسې اعلانونه به بیانه کوو، دلیل سره ځواب راکړئ، اوداموهم اوریدلي دي چې دجومات په منځ کې اذان کول مکروه دي؟

**جواب:** دعامو عالمانو په نزدباندې دمړي اطلاع کول جائز،بلکې سنت دي،په حدیثونوکې دهغې **نعي** منع شوې ده، کوم به چې دجاهلیت په زمانه کې وو،چې دمړي مفاخر بیانولو سره به دهغه دمرګ اعلان کیده.

## د مرګ اعلان څنګه سنت دی؟

**سوال:** ستاسو فتوا لوستلوسره مې تسلي ونه شوه، نن سبازموږ محله کې دې مسئلې باندې ډیر زیات بحث دی، په دې وجه باندې فوټوسټیټ کولوسره یې تاسوته بیادرلیږم، چې تفصیلي اودلیل سره ځواب راکړئ، دمرګ اطلاع کول موسنت لیکلي دي. نومهرباني وکړئ، ددې دلیل هم ولیکئ!

**سوال:** ۱: دجاهلیت په زمانه کې چې داعلان کولوکوم رواج و،نو هغوی به په کومو الفاظو کې اعلان کاوو؟

**سوال:** ۲: جومات کې دننه اذان کول څنګه دي؟ ددې ځواب کیدای شي تاسونه هیرشوی و مهرباني وکړئ ددې ځواب زرترزره راکړئ،چې پریشاني موختمه شي، ډیره ډیره مهرباني.

**جواب:** ۱: فی الحديث أن النبي ﷺ نعى للناس النجاشي، أخرجه الجماعة.

ترجمه: حديث کې ديچې حضور ﷺ د نجاشي باد شاه د مرګ اعلان کړی و.

۲: وفي فتح الباری(۳، ۱۱۷): فإن ابن العربي، يؤخذ من مجموع الأحاديث ثلاث حالات: الأولى أعلام الاهل ,والاصحاب, وأهل الصلاح فهذا سنة. الثانية دعوة الحفل للمفاخرة فهذه تكره. الثالثة: الإعلام بنوع آخر کالنياعة ونحوذالک فهذا حرام، وقد نقله الشيخ فى الأوجز.(۱، ۴۴۳) عن الفتح) ترجمه: فتح الباری کې دي چې ابن عربی رحمه الله فرمايي چې د مرګ د اعلان کولو درې حالتونه دي:

۱: خپلو خپلوانو ،دوستانو او نيکو خلکو ته خبر ورکول، دا سنت دي.

۲: فخر او ستاينې له پاره د ډيرو خلکو راجمع کولو له پاره اعلان کول، دا مکروه دي.

۳: د خلکو د ژړا کولو له پاره اطلاع ورکول او را غونډول، دا حرام دي.

۳: وفى العلائية: ولا بأس بنقله قبل دفنه وبالإعلام بموته...الخ.

وفى الشامية: قوله وبالإعلام بموته أى :إعلام بعضهم بعضاً، ليقضوا حقه، هداية: وکره بعضهم أن ينادي عليه فى الأزقة والأسواق, لأنه يشبه نعى الجاهلية، والأصح أنه لايکره إذا لم يکن معه تنويه بذکره وتفخيم... فإن نعى الجاهلية ماکان فيه قصد الدوران مع الضجيج والنياحة وهو المراد بدعوى الجاهلية فى قوله ﷺ: ليس منا من ضرب الخدود وشق الجيوب ودعا بدعوى الجاهلية...شرح المينة.(شامي ۲_۲۳۹) وکذا فى الفتح:(۱_۴۶۳)

ترجمه: او علائيه کې دي چې د مړي له خښولو نه مخکې يو ځای نه بل ځای ته وړل او د مرګ اعلان کولو کې هيڅ بده خبره نشته...الخ او فتاوي شامي کې دي: او د هغه د مرګ اطلاع ورکول، يعنې يو بل ته اطلاع ورکول، چې د هغه حق اداشي،(جائز دي) او بعضې حضراتو په بازارونو او کلو کې د مرګ اعلان مکروه ګڼلی دی،ځکه چې دا د جاهليت د زمانې د مرګ د اطلاع کولو په شان دی، صحيح دا دي چې دا مکروه نه دی.کله چې اعلان کې د جاهليت د زمانې په شان د مړی د لويي بيان نه وي، بې شکه د جاهليت په شان د مرګ اطلاع هغه ده کومې کې چې د ژړه د تنګۍ او د بين ذکروي،او هم د غه مقصد د حضور ﷺ د دې ارشاد هم دی چې: هغه زموږ څخه نه دی، چا چې خپل ځان وواهه،ګريوان يې وشلاوه او د جاهليت دعوى يې وکړه.

۲: جومات کې اذان کول مکروه تنزيهي دي[۱]، خو د جمعې دويم اذان د منبر مخې ته کول

---

[۱] وينبغي ان يؤذن على المأذنة او خارج المسجد ولا يؤذن فى المسجد کذا فى فتاوى قاضيخان (عالمګيرى ج:۱،ص:۵۵، الفصل الثانى فى کلمات الاذان والاقامة وکيفيتهما)

معمول دي.[1]

## قبرباندې اذان کول

**سوال:** جناب زمامسئله داده چې زموږ کلي ته يومولوي صاحب راغلی دی اودهغه له راتلوسره موږ په يوه نوې کشاله کې اچولي يواوهغه داده چې دمړي ددفن کولونه وروسته په لوړ اوازسره اذان کوي.

**جواب:** علامه شامي په حاشيه درمختارکې په دوه ځايونو کې(ج ١ ص ٣٥٨)[2] اوپه حاشيه بحرکې (ج ١ ص: ٢٦٩)[3] ددې بدعت کيدل نقل کړي دي.

**سوال:** زموږ په ځای کې دمړي لاسونه په نوم(ناف) باندې کيښودل کيږي. داطريقه صحيح ده که غلطه؟زموږ رهنمائي وکړئ چې زموږ شک ليرې شي.

**جواب:** دمړي دواړه لاسونه دې اړخونو کې کيښودل شي په سينه يانوم باندې نه.[4]

## په قبرونوباندې د گلونواچولوباره کې د شاه تراب الحق موقف

په تيره شوې جمعه ١٢ دسمبر په روزنامه جنگ کې د سوالونو او ځوابونو په کالم کې ديوسوال په ځواب کې جناب يوسف لُدهيانوي صاحب په قبرونوباندې گلونه اچول خلاف سُنت گرځولي دي ،ديوسُنی په حيث دخيالاتو په وړاندې نظر زموږ فرض دي چې موږ ته صحيح مسئلې وضاحت وشي. واضحه دې وي چې په قبر باندې گلونه اچول بالکل د سنتو نه خلاف نه دي، ځنگه چې د رسول اللهﷺ دحديث نه ثابت دي چې يوځل نبي کريمﷺ صحابه کراموسره په دوو قبرونوباندې تيرشو او ويې فرمائيل چې: دې دواړو ته قبرونو کې عذاب ورکول کيږي. نو بيا نبيعليه السلام يوه شنه ځانگه واخسته .هغه يې ماته کړه او په دواړو قبرونو باندې يې يوه يوه ښخه کړه. دصحابو د پوښتنې په ځواب کې نبيعليه السلام وفرمايل چې: ترڅو

---

١] واذا جلس على المنبر اذن بين يديه فاقيم بعد تمام الخطبة بذلک جرى التوارث، كذا فى البحرالرائق(عالمگيرى ج:١،ص:١٤٩ الباب السادس عشرفى صلاة الجمعة)

٢] (تنبيه) فى الاقتصار على ما ذكر من الوارد واشارة الى انه لا يسن الاذان عندادخال الميت فى قبره كما هو المعتاد الآن، وقد صرح ابن حجر فى فتاويه بانه بدعة ........الخ (فتاوى شامى، باب صلاة الجنائز ج:٢،ص:٢٣٥ وايضاً فتاوى شامى ج:١،ص:٣٨٥)

٣] ورايت فى كتب الشافعية ان قد يسن الاذان لغير الصلاة كما ........قيل وعند ادخال الميت القبر قيا ساً علي اول خروجه للدنيا لكن رده ابن حجر في شر العباب (منحة الخالق على البحر الرائق ج : ١ ص :٢٦٩)

٤] ويلينُ مفاصله ويرد ذراعيه الى عضد يه ثم يمد ها ويرد اصابع يديه الى كفيه ثم يمد ها ويرد فخذيه الى بطنه وساقيه الى فخذيه ثم يمد ها كذا فى الجوهرة النيرة (عالمگيرى ج: ١ ص : ١٥٧ ، الفصل الاول فى المحتضر)

پورې دا شنه وي،په دوی باندې به په عذاب کې کمی وي. (مشکوة المصابيح.باب آداب الخلاء فصل اول)
ددې حديث په شرح کې شاه عبدالحق محدث دهلوي رحمه الله په (اشعة اللمعات شرح مشکوة) کې فرمايي چې دې حديث نه يوې ډلې دليل نيولی دی چې په قبرونو باندې د شنو ګلونو او د خوشبو اچول روا دي.
مُلاعلي قاري په (مرقات) کې د همدې حديث په شرح کې فرمايي چې په زيارتونو باندې شنه ګلونه اچول سُنت دي.دا غه راز علامه عبدالغني نابلسي رحمه الله هم په "کشف النور" کې ددې تصريح کړې ده .په طحطاوي على مراقي الفلاح صفحه ۳۶۴ کې دي چې زموږ ځينې متاخرينو حضراتو ددې حديث په رڼاکې فتوا ورکړه.چې دخوشبو اوګلونو په قبرباندې د اچولو چې کوم عادت دی هغه سُنت دی.دفقه حنفي مشهورکتاب (فتاوی عالمګيري .کتاب الکراهية، پنځم جلد . باب زيارت القبور) کې په قبرونوباندې دګلونو اچول ښه فعل ليکل ياد شوي دي،دغه راز علامه شامي هم دفقهې حنفي په مشهورکتاب (درالمحتار) اول جلد ، زيارة القبور په بحث کې يې دې ته مستحب ويلې دي.
نو ثابته شوه چې قبرونوباندې ګلونو اچولو ته خلاف سنت ويل سخت جهالت اودعلم حديث اود فقهې دکتابونو نه دبې خبره کيدو دليل دی.زموږ په خيال کې روزنامه جنګ ته دداسې زړه ازاره بحث نه ځان ساتل پکار دي اوځواب ورکونکو ته هم تنبيه پکارده.
شاه تراب الحق قادري

## په قبرونو ګلونه اچول بدعت دي

**سوال:** د روزنامه جنګ (۱۲ )دسمبر په اِشاعت کې چې تاسو ديو سوال په ځواب کې ليکلي و چې په قبرونو باندې ګلونه اچول خلاف سنت دی.د (۱۹)دسمبر په اشاعت کې يو صاحب شاه تراب الحق قادري تاسو جاهل او له کتاب او سنت نه بې خبره ګرځولي يې او دې ته يې سنت ويلي دي. چې دې سره ډېر خلک په شك کې مُبتلا شول.مهرباني وکړئ دا ترددليرې کړئ!

**جواب:** ددې مسئلې د تحقيق له پاره دځو خبرو په يادساتل ضروري دي:
۱:سنت: دنبي کريم صلى الله عليه وسلم معمول ته وايي[1] دخلفاء راشدينو صحابه وو اوتابعينو عمل هم د

---

۱] السنة لغةً : العادة،وشريعة: مشترک بين ما صدر عن النبى صلى الله عليه وسلم من قول او فعل او تقرير. وبين ما واظب النبى صلى الله عليه وسلم بلاوجوب (التعريفات للجرجانى ص:۱۰۸،طبع المکتبة الحمادية،اصول الفقة الاسلامى ج:۱،ص:۴۴۹)

سنت په درجه کې شمېرل کيږي[۱] کوم عمل چې د خير القرون نه وروسته ايجاد شوی وي هغه ته سنت نه ويل کيږي ،په قبرونو باندې ګلونه اچول که چېرې سنت وي .نو نبي کريم ﷺ او تابعين به په دې عمل کونکي وو ،خو د حديثو پوره ذخيره کې يو حديث هم نه شته چې نبي کريم ﷺ ياکوم خليفه راشد . يوصحابي ياکوم تابعي په قبرونو باندې ګلونه اچولي وي په دې وجه دانه دنبي عليه السلام سُنت دي،نه دخلفاء راشدينو ،نه دصحابه وو او نه د تابعينو".

۲: زمونږ په دين کې د قران او حديث او د اجماع امت نه وروسته مجتهدينو اجتهاد هم شرعي حجت دی، چې کوم عمل يو مجتهد امام روا يامستحسن ګڼلی وي هغه به هم د سنتو نه ثابت شوي شی ګڼل کيږي، په قبرونو باندې ګلونه اچول يو مجتهد امام هم مستحب نه دي ګرځولي ،دحنفي فقهې تدوين (ترتيب) زمونږ د امام اعظم رحمة الله عليه اودهغه د لوړې درجې شاګردانو له زمانې نه شروع شو او زمونږ فقهاوو ټولو سنتو او آدابو ته يو يو ترتيب ورکړ، خو زمونږ يوه فقهي ذخيره کې ديو امام هم دا قول نه دی ذکرشوی چې په قبرونو باندې ګلونه اچول سنت يامستحب دي اونه له يو امام او فقيه نه دا منقول دي چې هغوی په يو قبر باندې ګلونه اچولي وي.

۳: ځنګه چې علامه شامي ليکلي دي ،ددريمې پېړۍ نه وروسته د متاخرينو دور شروع کيږي،دا حضرات پخپله مجتهدين نه وو[۲] بلکې دمجتهدينو امامانو مقلدين وو.

ددوی په استحسان سره د يو فعل سُنت يا مستحب کيدل نه ثابتيږي،ځنګه چې امام رباني مجدد الف ثاني رحمة الله عليه په مکتوبات شريف کې د فتاوی غياثيې نه نقل کوي چې:[۳]

---

۱] السنة معناها فی اللغة: الطريقةُ والعادة......واعلم ان لفظ السنة عندالاطلاق مثل قول الراوی السنة كذا لا يفيد الاختصاص بسنة رسول الله صلی الله عليه وسلم بل يحتمل سنته وسنة الصحابة ولا يتعين الا بدليل عندنا لان تقليد الصحابي لما كان واجباً كانت طريقته متبعة كطريقة الرسول عليه السلام (تيسيرالاصول الی علم الاصول ص:۱۳۷، ۱۳۸)

۲] قال الذهبی :الحد الفاصل بين العلماء المتقدمين والمتاخرين راس القرن الثالث وهو الثالث ماة، فالمتقدمون من قبله والمتاخرون من بعده(شفاء العليل،ملحق رسائل ابن عابدين ج:۱،ص:۱٦۱طبع سهيل اكيڈمی لاهور)

۳] كما ذكر فی الفتاوی الغياثية قال الشيخ الامام الشهيد رحمه الله سبحانه: لا ناخذ باستحسان مشائخ بلخ وانما ناخذ بقول اصحابنا المتقدمين رحمهم الله سبحانه، لان التعامل فی بلدة لا يدل علی الجواز وانما يدل علی الجواز ما يكون علی الاستمرار من الصدر الاول ليكون ذلک دليلاً علی تقرير النبی عليه السلام اياهم علی ذلک فيكون شرعاً عنه عليه وعلی آله الصلوة والسلام واما اذا لم يكن كذلک لا يكون فعلهم حجة الا اذا كان ذلک من الناس كافةً فی البلدان كلها ليكون اجماعاً، والاجماع حجةٌ الا تری انهم لو تعاملوا علی بيع الخمر وعلی الربوا لا يفتی بالحل(مكتوبات امام ربانی ص:۱٤۸، مكتوب: ٥٤ دفتردوم طبع ايچ ايم سعيد )

. شیخ امام شهید رحمة الله علیه وفرمایل چې موږ د بلخ دمشائخو استحسان نه اخلو.بلکې موږ یواځې دخپلو متقدمینو اصحابو قول اخلو ځکه چې په یوه علاقه کې دیو شي رواج دهغه د جواز دلیل نه دی.دجواز دلیل هغه تعامل دی چې په صدر اول( خیرالقرون) له زمانې نه راروان وي،چې دا ددې خبرې دلیل شي چې پخپله نبي کریم صلی الله علیه وسلم صحابه په دې عمل باندې برقرار ساتلي وو. ځکه چې دا به دنبي علیه السلام له طرفه تشریح وي.خو چې کوم تعامل چې دصدر اول نه متواتر نه وي راغلی، نو د وروسته خلکو فعل حجت نه دی .مګر هغه چې په هغه دټولو ملکونو دټولو انسانانو تعامل وي،تردې چې اجماع شي او اجماع حجت دی.ګورئ که چېرې دخلکو تعامل شراب فروشي یاسود خوري باندې جوړشي .نودهغه دحلال کیدو فتوا به نه ورکول کیږي"( مکتوب( ۵۴)دویم دفتر )

د امام شهید رحمة الله علیه له دې ارشاد نه معلومه شوه چې که چېرې متاخرینو مشائخو په قبرونو باندې دګلونو اچولود استحسان فتوا ورکړې وي بیاهم دې فعل ته موږ" سنت " نشو ویلی. خو زموږ متاخرینو مشائخو نه هم چا هېڅکله په قبرونو باندې د ګلونو اچولو د جواز یا د استحسان فتوا نه ده ورکړې.همدا وجه ده چې ملاعلي قاري رحمة الله علیه او علامه شامي رحمة الله علیه د متاخرینو شوافعوقول نقل کړی ده( چې وړاندې به معلوم شي) خو هغوی له متاخرینو دیو حنفي فقیه نه هیڅ یوقول نه دی موندلی.

اوس انصاف کولای شئ چې کوم عمل نه د صاحب شریعت صلی الله علیه وسلم نه ثابت وي نه دصحابه وو او تابعینو نه،نه موږ د ائمه مجتهدینو نه .نه زموږ دمتقدمینو او متاخرینو نه،ایا دې ته سنت ویل کیدای شي؟

۴: شاه صاحب د(مشکوةاداب الخلاء)[1] نه چې کوم حدیث نقل کړی دی چې نبي کریم صلی الله علیه وسلم په دوو قبرونوباندې ځانګې ښخې کړې دي دې نه په عامو قبرونوباندې دګلونو اچولو جواز نه ثابتیږي،ځکه چې په حدیث کې صراحت دی چې دا ځانګې یې دکافرانو یادګناهګارو مسلمانانو په داسې قبرونوباندې ښخې کړې وې چې دالله تعالی دقهر او عذاب دنازلیدو ځای و .په عامو قبرونوباندې ځانګې ښنول دنبي کریم صلی الله علیه وسلم اوصحابه کرامو معمول نه و .نبي کریم صلی الله علیه وسلم چې کومه معامله چې دفاسقانو او معذبو خلکو له قبرونو سره وکړه هم هغه سلوک داولیاء الله له قبرونو سره کول ددغو اکابرو سخت سپکاوی دی اوبیا هغه ته سنت ویل دظلم په سر ظلم دی،سنت خوبه هلته وی چې نبي کریم صلی الله علیه وسلم دګنهګارانو دقبرونو په ځای ( دکومو

---

1] د حدیث الفاظ دا دی عن ابن عباس رضی الله عنهما قال: مر النبی صلی الله علیه وسلم بقبرین،فقال: انهما لیعذبان،وما یعذبان فی کبیر،اما احدهما فکان لا یستتر من البول.........واماالآخر فکان یمشی بالنمیمة ،ثم اخذ جریدة رطبة فشقها بنصفین ثم غرز فی کل قبرواحدة، قالوا: یا رسول الله ! لم صنعت هذا؟فقال: لعله ان یخفف عنهما ما ییبسا(مشکوة ج: ۱ ،ص: ٤٢ ،باب آداب الخلاء)

عذاب چې نبي عليه السلام ته د وحي په ذريعه معلوم شوي و، دخپل خواره تره سيد الشهداء حضرت حمزه رضي الله عنه يا دخپل خواره او محبوب رور حضرت عثمان بن مظعون رضي الله عنه يا دبل مقدس صحابي له قبر سره دا سلوك كړى و

۵: بيا نبي كريم صلى الله عليه وسلم ته خو ددې قبرونو عذاب په وحې سره معلوم شوى و او څنګه چې به صحيح مسلم، صفحه۴۱۸ج۲، كې دحضرت جابر رضي الله عنه په حديث كې تصريح شوې ده. نبي عليه السلام دهغوى له پاره شفاعت كړى واو دشفاعت دقبوليت تصريح ده. نبي عليه السلام دهغوى له پاره شفاعت كړى واودشفاعت دقبوليت دمودې له پاره د علامې په ډول څانګې خښې كړې وې[۱]. په دې وجه اول خو دا واقعه دنبي كريم صلى الله عليه وسلم خصوصيت دى او ددې شمار په معجزات نبوي صلى الله عليه وسلم كې كيږي.[۲]

بالفرض كه څېرې يو سړى دا دنبي عليه السلام خصوصيت او معجزه تسليم نه كړي. نوبيا هم له دې حديث نه زيات نه زيات دا ثابتيږي چې كوم سړي ته په قطعي ډول د يو قبرعذاب معلوم شي اوهغه د شفاعت اهليت هم لري، هغه دعلاې په ډول په قبرباندې څانګې ښخولى شي. خو ددې حديث نه په عامو قبرونوباندې دڅانګو ښخول او دګولونو اچول سنت كيدل په هيڅ شان نه ثابتيږي اونه ددې مضمون دې حديث سره څه تعلق شته. حافظ بدرالدين عيني رحمه الله په عمدة القاري شرح بخاري كې ليكي:

"همدارنګه چې كوم فعل ډېرى خلك كوي يعني ګلونه، شنې څانګې اوداسې نور... لانده شيانو په قبرونوباندې اچول هيڅ شى نه دي (ليس بشئ)، سنت كه دي نويواځې څانګه ښخول دي.[۳]

۶: شاه عبدالحق محدث دهلوي رحمه الله داشعة اللمعات په حوالې سره ليكلي دي چې يوې ډلې له دې حديث نه دليل نيولى دى چې په قبرونوباندې شنې څانګې، ګلونه او خوشبويي اچول جائز دي"

---

[۱] قَالَ « يَا جَابِرُ هَلْ رَأَيْتَ مَقَامِى ». قُلْتُ نَعَمْ يَا رَسُولَ اللَّهِ. قَالَ « فَانْطَلِقْ إِلَى الشَّجَرَتَيْنِ فَاقْطَعْ مِنْ كُلِّ وَاحِدَةٍ مِنْهُمَا غُصْنًا فَأَقْبِلْ بِهِمَا حَتَّى إِذَا قُمْتَ مَقَامِى ... فَقُلْتُ قَدْ فَعَلْتُ يَا رَسُولَ اللَّهِ فَعَمَّ ذَاكَ قَالَ « إِنِّى مَرَرْتُ بِقَبْرَيْنِ يُعَذَّبَانِ فَأَحْبَبْتُ بِشَفَاعَتِى أَنْ يُرَفَّهَ ذَاكَ عَنْهُمَا مَا دَامَ الْغُصْنَانِ رَطْبَيْنِ »......الخ (صحيح مسلم ج:۲،ص:۴۱۸ باب حديث جابر الطويل)

[۲] وفي هذا الحديث معجزات ظاهرات لرسول الله صلى الله عليه وسلم والله اعلم (شرح النووى على مسلم ج:۲،:۴۱۸)

[۳] وكذلك ما يفعله اكثر الناس من وضع مافيه رطوبة من الرياحين والبقول ونحوهما على القبور ليس بشئ وانما السنة الغرز (عمدة القارى شرح بخارى ج:۳،ص:۱۲۱ طبع دارالفكر،بيروت)

کاش: جناب شاه صاحب دا هم لیکلي وای چې حضرت شیخ محدث دهلوي رحمه الله ددې قول نقل کولو سره دامام خطابي په قول سره ددې رد هم کړی دی حضرت شیخ لیکي
"امام خطابي رحمه الله چې د علم له امامانو او د حدیث د شارحینو له مشرانو څخه دی .دا قول رد کړی دی او دې حدیث سره یې دلیل نیولو سره یې قبرونوباني د شنوڅانګو او ګلانو اچولو نه انکار کړی دی او فرمایلي یې دي چې دا خبره هیڅ اصل نه لري او په لومړنی زمانه کې نه وه"[1] (اشعة اللمعات صفحه: ۲۱۵ ۱)
شیخ رحمه الله چې د څو نامعلومه خلکو نه کوم جواز نقل کړی دی .هغه نقلول او "د اهل علم او د حدیثو د شارحینو د مقتدا" په حوالې سره "این سخن اصل ندارد و درصدر اول نبود" ویلو سره یې چې ددې د بدعت کیدو تصریح کړې ده له هغه نه ستر ګې پټول د اهل علم له شان نه ډېره لیرې خبره ده.
او بیا حضرت شیخ محدث دهلوي په (لمعات التنقیح) کې د حنفیانو له امام حافظ فضل الله تورپُشتي نه هم ددې قول په باره کې دا نقل کړي دي:
"**قول لاطائل تحته ،ولا بحبرة به عند اهل العلم**". (صفحه ۲/۴۴)
" دا یو بې مغزه او بې مقصده قول دی او د عالمانو په نزد ددې هیڅ اعتبار نشته".
کاش: شاه صاحب په دې باندې هم کله نظر کولای .نو هغه ته به معلوه شوې وه چې حضرت محدث دهلوي رحمه الله په قبرونو باندې د ګلونو داچولو جواز نه نقل کوي،بلکې دا بې اصله او ناقابل اعتبار خبره ګڼي.
۷: شاه صاحب د ملاعلي قاري رحمه الله د (مرقات) په حوالې سره نقل کړي دي چې: " په زیارتونو باندې ګلونه اچول سنت دي" دلته هم شاه صاحب د شیخ ملاعلي قاري د مخکې او وروسته عبارت کتلو زحمت نه دی کړی،ملاعلي قاري رحمه الله په زیارتونو باندې د ګلونو اچولو ته سنت نه دي ویلي[2] بلکې د امام خطابي شافعي رحمه الله په مقابله کې د ابن حجر شافعي رحمه الله قول یې نقل کړی دی،چې" زمونږ ( شافعیانو) ځینو متاخرینو ددې فتوا ورکړې ده . دامام خطابي رحمه الله او امام نووي رحمه الله په مقابله کې هغه متاخرین شوافع چې د کوموحواله ابن حجر شافعي رحمه الله نقل کوي چې د هغوی قیمت د علم له خاوندانو نه پټ نه دی .نو دادشافعي

---

۱] خطابی که از ائمه اهل علم وقدوه شراح حدیث ست این قول رارد کرده است وانداختن سبزه وگل رابرقبور به تمسک باین حدیث انکار نموده وگفته که این سخن اصلی ندارد ودرصدر اول نبوده(اشعة اللمعات ج:۱،ص:۲۱۵ طبع رشیدیه)
۲] ثم رأيت ابن حجر صرح به وقال قوله لا أصل له ممنوع بل هذا الحديث أصل أصيل له ومن ثم أفتى بعض الأئمة من متاخري أصحابنا بأن ما اعتيد من وضع الريحان والجريد سنة لهذا الحديث (مرقاة،باب آداب الخلاء ج:۱،ص:۲۸۶)

متاخرينو قول دی، په حنفي علماوو کې يوه هم ددې په جوا فتوا نه ده ورکړې، نه متقدمينوعلماوو او نه ملاعلي قاري رحمه الله د کوم حنفي فتوا نقل کړې ده. داحنافو له متاخرينو نه د امام حافظ فضل الله توريشتي رحمه الله قول پورته تيرشوی دی چې: دا بې مغزه خبره ده او دا چې د اهل علم په نزد ددې هيڅ اعتبار نشته، دارنګه دعلامه عيني قول هم تيرشوی دی چې په قبرونو باندې ګلونه اچول سنت نه دي.

۸: شاه صاحب يوه حواله د طحطاوي له حاشيې مراقي الفلاح نه نقل کړې ده، علامه طحطاوي چې کوم څه ليکلي دي هغه يې "فی شرح المشکاة" ويلو سره دملاعلي قاري رحمه الله په حوالې سره ليکلي دي،[۱] دې ته مستقل حواله ويل غلط دي، خو په دې کې دا تصرف ضرور شوی دی چې دمشکوة په شرحه کې يې د ابن حجر رحمه الله نه دځينې متاخرينو شافعيانو قول نقل کړی و، چې دشاه صاحب په حواله کې هغه " زموږ ځينې متاخرينو ددې حديث په رڼا کې فتوا ورکړه، دا خبره متاخرينو حنفيانو ته منسوب کړای شوه، ګويا دمشکوة دشرحې له حوالې نه يې څه بل شی جوړ کړي دي.

۹: شاه صاحب يوه حواله دعلامه شامي ردالمحتار نه نقل کړې ده چې هغه دا مستحب ليکلي دي، دلته هم شاه صاحب په نقل کې له افسوسناکې سستۍ نه کار اخستی دی.

علامه شامي رحمه الله د يوې مسئلې په ضمن کې (حديث جريد) نقل کړی دی او ليکلي يې د چې "ددې مسئلې او ددې حديث نه په قبرباندې دڅانګو کېښودلو استحباب داتباع په طور اخيستل کيږي او دې باندې دکشمالو اوداسې نورو... څانګو کېښودل قياس شوي دي، چې زموږ په زمانه کې عادت شوي دي او د شافعيانو يوې ډلې ددې تصريح هم کړې ده اوداأولی ده په نسبت د ځينې مالکيانو دقول چې ددغو قبرونو نه دعذاب کم والی دنبي کريم صلی الله علیه وسلم دلاس په برکت سره و ي د هغه صلی الله علیه وسلم د دعا په برکت سره و، نو په دې باندې قياس نه شي کيدلای."[۲]

د علامه شامي رحمه الله په دې عبارت کې په قبرونو باندې د ګلونو اچولو داستحباب ذکر نه دی شوی، بلکې د اتباع په طور د کجورې د ښاخ ښخولو استحباب اخيستل شوی دی او د کشمالو وغيره څانګو ښخول په دې قياس شوي دي اوددې علت يې هم هغه ذکرکړی دی

---

۱] وفی شرح المشکوة وقد أفتى بعض الأئمة من متأخري أصحابنا بأن ما اعتيد من وضع الريحان والجريد سنة لهذا الحديث(حاشيه طحطاوی ص:۳۴۳ قبيل باب احکام الشهيد،طبع ميرمحمد کتب خانه)

۲] فتاوی شامی ج:۲،ص:۲۴۵،باب زيارت القبور ويوخذ من ذلک ومن الحديث ندب وضع ذلک للاتباع، ويقاس عليه مااعتيد فی زماننا من وضع اغصان الآس ونحوه وصرح بذلک ايضاً جماعة من الشافعية، وهذا اولى مما قاله بعض المالکية من ان التخفيف عن القبرين انما حصل ببرکة يده الشريفة صلى الله عليه وسلم او دعائه لهما فلا يقاس عليه غيره.

کوم چې د امام تورپشتی رحمه الله په قول" لاطائل اوداهل علم په نزد غیرمعتبردی" هرکله چې زموږ امامانو دا علت ردکړی دی، نو په دې باندې قیاس کول به هم مردود وي.
علامه شامي هم دځینو شوافعو فتوا ذکرکړې ده. له دې نه معلومیږي چې زموږ دعلماوو نه دیو فتوا علامه شامي ته په لا نه ده ورغلې .له دې نه اندازه کیږي چې زموږ دعلماوو دفتوا خلاف یو غیر معتبراوبې اثره تعلیل باندې قیاس کول به ترڅومره حده معتبروي.
شاه صاحب یوه حواله د شیخ عبدالغني نابلسي رحمه الله هم نقل کړې ده .دهغه رساله "کشف النور" ددې ناکاره په مخکې نشته چې دهغه په مخکې او وروسته عبارت باندې غور شوی وای ،خو دومره خبره واضحه ده چې علامه شامي رحمه الله وي یا شیخ عبدالغني نابلسي رحمه الله یا ددولسمې ،دیارلسمې پیړۍ بل بزرګ ،دا ټول بس زموږ پشان مقلدین دیاودمقلد کار دخپل متبوع امام تقلیدکول دي، که چیرې علامه شامي رحمه الله .شیخ عبدالغني رحمه الله نابلسي رحمه الله اویابل کوم بزرګ زموږ دامامانو فتوا نقل کوي نوپه سر سترګو باندې. که نه د حضرت امام رباني مجدد الف ثاني" په الفاظو کې یواځې دا عرض کیدای شي:
" دلته د امام ابو حنیفه رحمه الله ،امام ابویوسف رحمه الله او دامام محمد رحمه الله قول معتبر دی ،نه د(ابو بکرشبلي او ابوالحسن نوري) عمل". (دفتر اول مکتوب ۲۶۶)
۱۰: جناب شاه صاحب چې ددې ناکاره طرف ته کوم الفاظ منسوب کړي دي . هغه پرې خفه نه دی، د عارف قول دی:
بدم گفتی وخر سندم عفاك الله نکو گفتی جواب تلخ مي زیبد لب لعل شکر خارا
غالبًا د سنت نبوي صلی الله علیه وسلم د عشق داکمه سزا ده چې شاه صاحب دې ناکار ته ورکړې ده، ددې لوی جرم سزا کم نه کم دومره خوپکار وه چې دا ناکاره دالله پاك په لوی دربارکې پیش شوی وای:
بجرم عشق توام مي کشند وغوغا رایست نیز بر سر بام آکه خوش تماشا ئیست
په هرحال دا ناکاره خو دخپل جهل اقرار او اعتراف کوي او " بترزانم که گوئی" باندې یې پوره اعتماد دی،په دې وجه دا ناکاره به دشاه صاحب دقند اوشکرو نه ولې خفه کیږي؟خو په ادب سره هغه ته دا عرض کولی شم چې دی ناکاره خو ډېر داحتیاط په الفاظو سره دې ته " خلاف سنت" ویلي و( چې په هغه کې دسنت نبوي صلی الله علیه وسلم نه د نه ثابتیدلو باوجود د جواز یااستحسان ګنجائش بیاهم باقي پاتې کیده ) په دې باندې خو دشاه صاحب د دربار نه دجهالت او ناپوهي بدله دې کم علمه ته ورکړل شوه، خو امام خطابي رحمه الله ،امام نووي رحمه الله ،امام تورپشتي، امام عیني رحمه الله چې هغوی دې ته بې اصل،منکر،لاطائل غیر معتبر عند اهل العلم،او لیس بشيءٍ ویلي دي،دهغوی الفاظ خوددې ناکاره دالفاظو په نسبت ډېر زیات سخت دي،سوال دادی چې د شاه صاحب د دربار نه به دې حضراتو ته کوم انعام

ورکول کیږي؟ اوبيا شاه عبدالحق محدث دهلوي رحمه الله چې هغه دې بزرګانو ته ..د عالمانو امامان اود حدیث د شارحینو مشران..ویلو سره عقیدت او پیرزوینې وړاندې کوي او ددوی تصدیق اوتایید کوي هغه ته به کوم خطاب ورکوي؟ څه خیال مودی. دې حضراتو ته د علم دین ،حدیثو. اود فقهې له کتابونو څخه خبرووا وکه دوی هم د شاه صاحب په قول په سخت جهالت کې مبتلاوو"؟

۱۱: دې بحث ختمولو سره مې زړه غواړي چې دجناب شاه صاحب په خدمت کې د دوو بزرګانو عبارت وړاندې کړم چې دهغو.ئولو خلاف سنت کارونوحال واضحه شي.کوم کې چې موږ مُبتلا یو.

اول عبارت دشاه عبدالحق محدث دهلوي رحمه الله دی هغه په( شرح سفرالسعادة) کې لیکي:

" ډېراعمال .افعال او طریقې چې دسلف صالحینو په زمانه کې مکروه اوناخوښه وې هغه په آخری زمانه کې مستحسن ګرځول شوي دي اوکه چېرې جاهلان او عوام څه کار کوي. نویقین ساتل پکار دي چې د بزرګانو روحونه به له هغوی نه خوشحاله نه وي اودهغوی دکمال ، دیانت او نورانیت دربار له هغو نه پاك او منزه دی"[1] .( صفحه ۲۷۲)

او حضرت امام رباني مجدد الف ثاني رحمه الله لیکي:

" ترڅوچې انسان دبدعت حسنه نه هم د بدعت سیئه پشان ځان ونه ساتي،ترڅودې دولت(اتباع سنت) بوی هم دهغه دروح پورې ته نشي رسیدلای او دا خبره نن ډېره ګرانه ده ،ځکه چې پوره دنیا دبدعت په دریاب کې ډوبه شوې ده اود بدعت په تیارو کې پرته ده. دچامجال دی چې دیوبدعت خلاف اواز پورته کړي اودسنتو په ژوندي کول باندې خوله پرانیزي،ددې وخت اکثرعلماء بدعت ته رواج ورکونکي او دسنتو ختمونکي دي،کوم بدعات چې خپاره شي. نو د خلکو تعامل قصداً دهغو د جواز بلکې د استحسان فتوا ورکوي اوبدعت طرف ته د خلکو لاربنو ونه کوي"[2] ( دویم دفتر مکتوب ۵۴)

دُعاکوم چې الله تعالی موږ ټولو ته د اتباع سُنتِ نبوي صلی الله علیه وسلم توفیق راکوی.

---

[1] بسا اعمال وافعال واوضاع که درزمان سلف از مکروهات بوده' درآخر زمان از مستحبات گشته واگر جهال وعوام چیزے کنند یقین که ارواح بزرگان ازان راضی نخواهد بود' وساحت کمال ودیانت ونورانیت ایشان منزه است ازان (شرح سفر السعادة ص: ۲۷۲)

[2] تا از بدعت حسنه در رنگ بدعت سیئة احتراز ننماید بوئے ازین دولت بمشام جان اونرسد' واین معنی امروز متعسر است که عالم دردریائے بدعت غرق گشته است وبظلمات بدعت آرام گرفته'. کرامجال است که دم از رفع بدعت زند' وبه احیائے سنت لب کشاید' اکثر علماء این وقت رواج دهندهائے بدعت اند' ومحو کنندهائے سنت' بدعتهائے پهن شده راتعامل خلق دانسته بجواز بلک باستحسان آن فتوی مے دهند ومردم رابدعت دلالت مینمایند (مکتوبات امام ربانی' دفتردوم' مکتوب: ۵۴' ج: ۲' ص: ۱۴۸' طبع ایچ ایم سعید)

# په قبرونو ګلونه اچول بدعت دي (د مسئلې تحقيق)

د روزنامه جنګ د ۱۲ دسمبر ۱۹۸۰ء په اسلامي صفحه کې راقم الحروف د يو سوال په ځواب کې په قبرونو باندې ګلونه اچول خلاف سنت ليکلي و. دا ترقع نه وه چې يو څوک چې د سنتو دمفهوم نه خبر وي.ددې دترديد تکليف به وکړي. مګرافسوس چې شاه تراب الحق صاحب د خپلو معتقداتو خلاف وګڼل او د ۱۹ دسمبرد جمعې په ايډيشن کې يې دهغه له جوشه ډک ترديد وکړ. په دې وجه ضرورت و چې ددې مسئلې ددلائلو په رڼا کې وضاحت وشي. راقم الحروف د ۲ جنوري ۱۹۸۱ء په جمعه ايډيشن کې ..دمسئلې تحقيق.. تر عنوان لاندې په دې مسئله باندې دفريقينو د دلائلو جائزه وړاندې کړه.جناب شاه تراب الحق صاحب د ۱۲ جنوري په اشاعت کې " دمسئلې دتحقيق ځواب بياليکلی دی.خو پورې چې د مسئلې دتحقيق تعلق دی الحمد لله زما تېره شوې ليکنه بس هغه له پاره کافي شافي ده.خو صاحب چې کومې نوې نکتې پورته کړې دي لاندې دهغو تجزيه(تحليل) وړاندې کيږي:

۱ "سُنت" د لفظ وضاحت مې مخکې هم کړی دی خو شاه صاحب دهغه اصطلاح په اهميت باندې هيڅ توجه نه ده ورکړې. په دې وجه دومره خبره زياتول مناسب دي چې کله موږ يو شی ته سُنت وايو. نودهغه معنا دا ده چې: موږ هغه دنبي کريم ﷺ ذات طرف ته منسوبوو. د يو داسې شي نسبت نبي عليه السلام ته جائز نه دی چې نه نبي عليه السلام کړی وي او نه نبي عليه السلام دهغه ترغيب ورکړی وي نه صحابه وو او تابعينو چې د سنتو دتبعداري ترټولو لوی عاشقان وو په دی باندې عمل کړي وي .زموږ تربحث لاندې مسئله کې شاه صاحب دا هم ثابت نکړای شو چې نبي عليه السلام به پخپله په قبرونوباندې ګلونه اچول. يانبي عليه السلام امت ته ددې ترغيب ورکړی دی .ياصحابه وو اوتابعينو په دی باندې عمل کړی دی .يا مجتهدينو نه چاپه قياس او اجتهادسره ددې د استحسان فتوا ورکړې ده.دا مسئله خو دمتاخرينو تربحث لاندې راغلې ده او ځينې متاخرينو شوافعو دحديث جريد نه ددې د استحسان ثابتولو کوشش کړی دی .خودشافعيانو .حنفيانو او مالکيانو. محققينو ډېر په زور سره ددې استدلال ترديد کړی دی او دا يې بې اصله بدعت اوغير معتبر عنداهل العلم ګڼلی دی .که چېرې شاه صاحب دانصاف په نظر غوز کړی وای .نوشاه صاحب به داسې شی کوم چې محققينو امامانو بدعت ګرځولی دی هغه ته به يې په سُنت ويلو باندې ټينګار نه کاو . ځکه چې دا دځان نه دجوړې شوې خبرې دنبي کريم ﷺ ذات طرف ته د منسوبولو يو سخت جرم دی.

۲:زموږ شاه صاحب نه يواځې دا چې دې ته سُنت وايي او نبي کريم ﷺ ته يوغلطه خبره منسوبوي، بلکې ددې نه زيات دتعجب وړ خبره دا ده چې هغه په قبرونوباندې ګلونه اچول په عقائدو کې شامل کړي دي ځنګه چې دهغه له يو ې فقرې نه معلوميږي:

"حقیقت دا دی چې په اخباراتو او رسالو کې د داسې پوښتنو او مسائلو ځوابونه ور کړل شي چې هغو سره د نورو خلکو جذبات مجروح نشي او د هغوی معتقداتو ته نقصان ونه رسیږي".
د شاه صاحب مشوره په ځای ده خو ماته دا معلومه نه وه چې د چا په نزدباندې به په قبرونو ګلونه اچول هم د دین حنیفي په معتقداتو کې شامل وي . یا به دیته خلاف سنت ویلو سره د اسلامي عقائدو نفي کیږي،راقم الحروف د اسلامي عقائدو . ملل او نحل کومو کتابونو مطالعه چې کړې ده ،په هغو کې چیرته یې هم دا له نظره نه دي تیرشوي چې په قبرونوباندې ګلونه اچول هم د اهل سنت والجماعت د معتقداتو یوه برخه ده،دا خوماد شاه عبدالحق محدث دهلوي رحمه الله نه نقل کړي دي چې " این سخن اصل ندارد و در صدر اول نبود" یعنې ددې هیڅ اصل نشته او په لومړني دور کې ددې هیڅ وجود نه و". ایا زه د شاه تراب الحق صاحب نه په ادب سره دا پوښتنه کولې شم چې په قبرونو باندې ګلونه اچول ددین اسلام په معتقداتو کې دکوم وخت نه داخل شول؟ اودا چې ایا دشاه صاحب معتقدات د لومړني دور نه خلاف دي؟چې دکوم شي په صدر اول کې هیڅ وجود نه و ماشاء الله نن هغه دشاه صاحب دعقیدې جزء ګرځېدلی دی؟ په قبرونوباندې ګلونه اچول په معتقداتو کې داخلول افسوسناکه غلو پسندي ده او دا افراط پسندي دبدعت خاصه ده.
داسې کیږي چې بدعت په ارام ارام دسنتوځای ونیسي او بیا مخکې تلوسره دخلکو دایمان جزء جوړشي اوخلک دا بدعت ډېرپه عقیدت سره داسلام لوی شعار ګڼي او عمل پرې کوي، اوچې کله دالله تعالی یوبنده ددې بدعت خلاف خوله پرانیزي،نودا خلک خیال کوي چې دا سړی داسلام د سنت اویو عظیم الشان شعار مخالفت کوي، امام دارمي دحضرت عبدالله بن مسعود رضي الله عنه نه یوارشاد نقل کړی دی کوم چې دبدعت ددې نفسیاتو تشریح کوي هغه فرمایي:
"هغه وخت به ستاسو څه حال وي چې کله د بدعت فتنه تاسوپټ کړي مشران به په هغه کې بوډاګان شي او ماشومان به هم په دې کې ځوانان شي ،خلک به دافتنه سُنت جوړ کړي، که چیرې دا پرېښودل کیږي ،نو خلک به وایي چې سنت پرېښودل شو( او په یو روایت کې دی چې که چیرې دهغه د اصلاح کوشش وکړل شي، نو خلک به وایي چې سنت بدلولیږي ) پوښتنه وشوه چې دا به کله وي؟ ویې فرمایل : چې کله ستاسو علماء لاړشي ،جاهلان به ډېر شي،حرف لوستونکي به زیات وي خو فقیه به کم وي ،امیران به ډېر وي ،امانتدار به کم وي، د اخرت عمل سره به ددنیاطلب کیږي او دفقهې علم به دغیر دین له پاره حاصلیږي." [1] (مسند دارمي ص، ٣٢ ،باب تغیرالزمان،مطبوعه نظامي کانپور١٢٩٣ه)

---

[1] عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ قَالَ : قَالَ كَيْفَ أَنْتُمْ إِذَا لَبِسَتْكُمْ فِتْنَةٌ يَهْرَمُ فِيهَا الْكَبِيرُ وَيَرْبُو فِيهَا الصَّغِيرُ ، إِذَا تُرِكَ مِنْهَا شَيْءٌ قِيلَ تُرِكَتِ السُّنَّةُ؟ (وفيه رواية متقدمة: فاذا غيرت قالوا: ....[بقيه حاشيه په راروانه صفحه...

په دې وجه که چېرې شاه صاحب د قبرونو ګلونه په معتقداتو کې شاملوي. نو دا به هما غه افراط پسندي وي چې د بدعت خاصیت دی او د دې په اصلاح باندې د شاه صاحب ناراضه کیدل هماغه خبره ده، چې د هغې ښکارندوي حضرت عبدالله بن مسعود رضي الله عنه کړې ده. حسبنا الله ونعم الوکیل.

۳: د مسئلې د تحقیق په آخر کې ما د شاه صاحب توجه راګرځولې ده چې د قبرونو ګلونو ته د خلاف سنت ویلو جرم په لومړي ځل زما نه نه دی شوی. زما نه مخکې لویو امامانو علماوو په دې باره کې زما نه زیات سخت الفاظ فرمایلي دی، په دې وجه شاه صاحب یوائې ماته جاهل او ناپوهه نه دي ویلي، بلکې د هغو اکابرو په حق کې یې هم ګستاخي کړې ده.

د حق خوښولو غوښتنه دا وه چې زما په دې توجه باندې شاه صاحب د دې ګستاخي نه توبه کړې وای او د اعذر یې وړاندې کړی وای چې ماته پته نه وه چې مخکې اکابرو هم دا بدعت ردکړی دی ،خو افسوس چې شاه صاحب ته د دې توفیق ورنه کړل شو ، خوماچې په خپلو الفاظو کې د نرمي سره کومه تشریح بین القوسین کړې وه هغې ته یې غلطه معنا ورواغوستوله او په ما باندې سوال کوي:

(الف) چې کله ستاسو په نظر د ګلونو اچول جائز یامستحسن دي ،یا د دې د مستحسن کیدلو ګنجائش وي، نو په دې موضوع باندې د طوفان قائمولو څه ضرورت و؟"

زما محترمه! په دې تشریح کې زه د ګلونو اچولو د جواز یا استحسان فتوا نه ورکوم. بلکې د خپلو لومړیو الفاظو "خلاف سنت" کوموکې چې نرمي اودل چسپي وه د هغو تشریح کولو سره ستاسو پوهول مقصود و چې تاسو به هم دا عین سنت نبوي ﷺ نه ګڼئ. زیات نه زیات د استحسان او جواز قایل به یئ، دا عقیده به ستاسو هم نه وي چې پخپله به نبي کریم ﷺ په قبرونو باندې ګلونه اچول، په دې وجه تاسوزما په الفاظو "خلاف سنت" کې دا تاویل کولای شو چې د اعمل اګر چې له سنتو څخه ثابت نه دی، خو مور دا مستحسن ګڼلی دی او کوو یې، عین سنت مونه دی ګڼلی. خو افسوس چې تاسو زما د محتاط تعبیر هیڅ قدر ونکړ ،بلکې فوراً د دې د تردید له پاره تاسو ملا وتړله او د علمي دلائلو په ځای د ناپوهۍ او کم عقلۍ طریقه مو خپله کړه اوس انصاف وکړئ چې طوفان چا قائم کړ ،ما اوکه تاسو پخپله؟ اوچې کوم عمل نبي علیه السلام ، صحابه وو او تابعینو نه ثابت نه وي د هغه خلاف سنت لیکلو ته ستاسو د (فساد د خبرې خپرولو) سره تعبیر کول هم بازاري ژبه ده چې عالمانو سره نه ښایي.

---

...بقیه د تیر مخ].. غیرت السنة) قَالُوا : وَمَتَى ذَاكَ؟ قَالَ : إِذَا ذَهَبَتْ عُلَمَاؤُكُمْ وَكَثُرَتْ جُهَلاَؤُكُمْ ، وَكَثُرَتْ قُرَّاؤُكُمْ وَقَلَّتْ فُقَهَاؤُكُمْ ، وَكَثُرَتْ أُمَرَاؤُكُمْ وَقَلَّتْ أُمَنَاؤُكُمْ ، وَالْتُمِسَتِ الدُّنْيَا بِعَمَلِ الآخِرَةِ وَتُفُقِّهَ لِغَيْرِ الدِّينِ(مسند دارمی ج: ١ ،ص: ٥٨ ،باب تغیرالزمان وما یحدث فیه،طبع نشرالسنة ملتان،پاکستان)

(ب) دهمدې په ضمن کې شاه صاحب فرمايي
"د حيرانتيا خبره ده چې يو طرف ته تاسو دا کار خلاف سنت ګرځوئ او بل طرف ته تاسو نه په دې کې دجائز بلکې د مستحب کيدو ګنجانش په نظر درځي. مهرباني وکړئ داسې يو مثال وړاندې کړئ چې په هغه کې يو عمل دخلاف سنت کيدلو سره سره مستحب هم وي"
ګويا چې شاه صاحب دا ويل غواړي چې کوم کار نبي کريم ﷺ نه ثابت نه وي هغه مستحب خوځه چې جائز هم نه دی. په دې وجه هغه زمانه ددې مثال غوښتنه کوي. دجناب شاه صاحب په خدمت کې عرض دی چې په زرګونه شيان داسې دي چې دخلاف سنت کيدلو سره سره جائز دي. مثلاً: ترکي خولی، يا جناح کيپ (قراقولي) سنت نه دي خو جائز دي او د لمونځ نيت په ژبه کول خلاف سنت دی[1]. خو فقهاوو ورته مستحسن ويلي دي. که چېرې څوک دې ته سنت ووايي نوغلط به يې ويلي وي.
۴: د سنت د لمر مخکې د بدعت ډيوه بې رڼا پاتې کيږي. شاه صاحب په قبرونو باندې دګلونو اچولو هيڅ ثبوت دنبي عليه السلام او دتابعينو له عمل نه وړاندې نکړل شواو نه يې زما دهغو دلائلو ځواب راکړای شو. کوم چې ما د ستروامامانو نه ددې په بدعت کيدلو باندې نقل کړي وو، په دې وجه شاه صاحب ددې ناکاره د(کتاب فهمي) بحث شروع کړ. علامه عيني رحمه الله ديوې کرښې عبارت ترجمه چې مانقل کړې وه. شاه صاحب هغه نقل کړې ده او ليکلي يې دي:
" راقم الحروف( شاه صاحب) داهل علم په مخکې اصل عربي عبارت وړاندې کوي اودانصاف غوښتونکی دی چې لُدهيانوي صاحب ددې عبارت مفهوم صحيح وړاندې کړی دی بلکې ترجمه يې هم صحيح کړې ده او که نه؟
شاه صاحب پخپلو لوستونکو ته باور کول غواړي چې داسې ناپوهه سړی چې دعربي دمعمولی عبارت مفهوم هم نه پيژني. بلکې د يوې کرښې عبارت صحيح ترجمه هم نشي کولای. هغه د لويو لويو علماوو کوم عبارتونه چې په قبرونوباندې د ګلونو اچولو خلاف سنت کيدلو باندې نقل کړي دي دهغو څه اعتبار دی.
راقم الحروف نه دعلم دعوه کوي نه په کتاب دپوهيدو. معمولي طالب دی او د طالب علمانو د پڼو په صف کې ځای پيداکول فخر او سعادت ګڼي.
ګرچې از نيکان نيم خو به نيکان بسته ام در رياض آفرينش رشته ګلدسته ام
شاه صاحب اصل موضوع پريښودله او بې له څه وجې يې دکتاب فهمي بحث شروع کړی دی په دې وجه څو امور وړاندې کول مناسب دي.

---

1] النية بالاجماع وهى الارادة والتلفظ عندالارادة بها مستحب هوالمختار(الدرالمختار مع شرحه ج:١،ص:٤١٥)

اول-- شاه صاحب ته شکایت دی چې زه دعلامه عیني دعبارت په مفهوم باندې نه یم پوه شوی اونه مې صحیح ترجمه کړې وه، زه خپله او د شاه صاحب ترجمه دواړه نقلوم لوستونکې دې د دواړو موازنه وکړي او ودې ګوري چې زما په ترجمه کې څه عیب دی؟

د شاه صاحب ترجمه:

"او همدارنګه (ددې یې هم انکار کړی دی) کوم چې د بر خلک کوي. یعنې لانده شیان مثلاً: ګلونه ، شنې څانګې وغیره په قبرونوباندې اچوي دا هیڅ نه دي. بیشکه سنت خښول دي"

د راقم الحروف ترجمه:

"همدارنګه کوم فعل چې اکثرخلک یې کوي یعنې ګلونه ، شنې څانګې وغیره لوانده ------

------ شیان په قبرونوباندې اچول دا هیڅ شی نه دی (لیس بشیٔ) سنت که چېرې وي نو یوائې د څانګو خښول دي"

له دې نه پرته چې دې دواړو ترجمو کې کومه اسانه ده او په کومه کې سختوالی دی؟ کومه اصلي عربي عبارت ته نژدې ده او کومه نه؟ اخر د دواړو په مفهوم کې بنیادی فرق څه دی؟ د دواړو نه دا معلومیږي چې د څانګو خښول خو سنت دي ،خو ګلونه او شنې څانګې وغیره اچول هیڅ سنت نه دي" ددې کم علمه په ترجمه کې شاه صاحب ته څه نقص په نظر راغلی چې دی یې له عالمانو نه د انصاف غوښتنه کوي.

دویم:...ددې عبارت آخري جمله "وإنما السنة الغرز" ددې ترجمه موصوف دا کړ ده:

" اوبیشکه سنت ښخول دي" سره له دې چې دعربي طالب العلم پوهیږي چې د (انما) لفظ د حصر له پاره دی ،چې په یو وخت د یو شي دنفې او د بل شي د اثبات فائده ورکوي. د دی حصر د اظهار له پاره راقم الحروف دا ترجمه کړی ده چې " سنت که چېرې وي. نو یوائې دڅانګو ښخول دي" چې دهغه مطلب دا دی چې ګلونه او شنې څانګې وغیره،لانده شیان اچول هیڅ سنت نه دي،یوائې دڅانګو ښخول سنت دي خو شاه صاحب د( انما) ترجمه" بیشکه" کوي. سبحان الله وبحمده! اومهرباني یې دا ده چې تا ترجمه غلطه کړې ده.

دریم :... د کوم عبارت چې ماترجمه نقل کړې ده ،شاه صاحب له هغه نه مخکې او وروسته عبارت هم نقل کړ ،حالانکه دهغه" قبرونوباندې د ګلونو اچولو " زیربحث مسئلې سره هیڅ تعلق نه و، خو دهغه نه افسوسناك تسامح( سترګې پټول) دا شوي دي چې هغه د" وكذالك مايفعله اكثرالناس" نه واخله تراخري عبارت فافهم پوري د امام خطابي رحمه الله عبارت ګڼلی دی،سره له دې چې دا دامام خطابي رحمه الله عبارت نه دی،بلکې دعلامه عیني عبارت دی. دامام خطابي حواله هغه یوائې د "وضع اليابس الجريد" له پاره ورکړې ده، دحدیث دیوطالبعلم مخکې دا عبارت کیږدئ دهغه فیصله به هم دا وي څکه چې اول خودهرمصنف

دبیان طریقه بېله وي.امام خطابي دځلورمي پېړۍ سړی دی. دهغه د لیکلو طریقه دا نه ده بلکې صفا طورباندې دا دعلامه عیني لیکل شوی انداز دی. ددې نه پرته د خطابي رحمه الله معالم السنن موجود دی .کومو حضراتو چې دامام خطابي رحمه الله حواله ورکړې ده هغه یې د "معالم" نه ورکړې ده .شاه صاحب که لږ دهغه دکتلو تکلیف کړی وی. نوهغه ته به معلومه شوې وی چې امام خطابي رحمه الله څه لیکلي دي او حافظ عیني رحمه الله دهغه حواله ترکومه حده پورې ورکړې ده.ددې ټولو امورو نه پرته که چېرې "وکذالك مایفعله اکثرالناس" عبارت د"انکرالخطابي" لاندې داخل شي (څنګه چې شاه صاحب ته خوش فهمي شوې وه) نوعبارت قطعي بې جوړې کیږي شاه صاحب دی لږ دمبتدا او خبر رعایت و ساتي اوپه عبارت باندې بې بیا غور وکړي او دحدیث دیو طالب علم نه دې هم رایه واخلي.

څلورم: دا خو دشاه صاحب د کتاب فهمي دبحث جائزه وه اوس دې لږ دهغوی په صحیح ترجمه باندې هم غور وکړل شي. دحافظ عیني رحمه الله عبارت دی:

**ومنها:أنه قبل هل للجريد معنا يخصه فى الغرز على القبرلتخفيف العذاب،والجواب أنه لامعنا يخصه بل المقصود ان يكون مافيه رطوبة من أى شجر كان ولهذا أنكر الخطابي ومن تبعه وضع الجريداليابس"**

شاه صاحب ددې ترجمه داسې کوي:

"ددې حدیث متعلق مسائلو نه دا هم ده چې ځینې حضرات دا پوښتنه کوي چې دعذاب دکم والي له پاره په قبرباندې خصوصي طورباندې دخانګې خښول دي؟

نوځواب دادی چې دخانګې هیڅ خصوصیت نشته بلکې هرهغه شی چې په هغه کې رطوبت وي هغه مقصوددی.خطابي رحمه الله او دهغه متبعینو په قبرباندې د وچې خانګې دکېښودلو انکارکړی دی------- الخ".

د شاه صاحب دا ترجمه څومره له خونده ډکه ده ددې اصل ذائقه خوپه عربي پوهیدونکی کس پورته کولی شي، بیاهم څولطیفوطرفته اشاره کوم:

الف:علامه عیني رحمه الله ددې حدیث متعلقه احکام او مسائل ص۴ نه ۷پورې" بیان استنباط الاحکام" په عنوان سره بیان کړي دي او د ص۷ ص ۹پورې "دالاسئلة والاجوبة" عنوان یې قائم کړی دی او ددې حدیث متعلق یې څوسوالونه او ځوابونه ذکرکړي دي،دهغه نه یوسوال او ځواب هغه دی کوم چې شاه صاحب نقل کړی دی ،هغه د "منها" ترجمه کوي" ددې حدیث د متعلقه مسئلو نه دا هم ده".شاه صاحب دې غور وکړي چې دلته ایا دحدیثو مسائل ذکرکیږي؟

ب: نبي کريم ﷺ د عذاب والا قبرونو باندې "جريد" خښ کړې و او "جريد" د کجورې څانګې ته ويل کيږي، علامه عيني چې کوم سوال پورته کړی دی هغه دا دی چې ايا د کجورې په څانګه کې څه داسې خصوصيت شته چې د عذاب دليرې کولو له پاره ګټور وي چې د هغه له وجې نبي عليه السلام هغه خښه کړه؟ ايا دا مقصد د هرې ونې د څانګې نه حاصليدای شي؟ علامه عيني رحمه الله ځواب ورکوي چې نه؛ د کجورې د ونې هيڅ خصوصيت نشته. بلکې مقصود دا دی چې شنه څانګه وي که د هرې ونې وي. دا خو د علامه عيني رحمه الله د سوال ځواب. زمونږ شاه صاحب د سوال او ځواب په مقصد پوه نه شو. ځکه شاه صاحب د سوال او ځواب ترجمه داسې کوي:

"ځيني حضرات دا پوښتنه کوي چې د عذاب د کم والي له پاره په قبرباندې خصوصي طور باندې څانګه خښول دي؟

نو ځواب دا دی چې د څانګې څه خصوصيت نشته بلکې هر هغه شی چې په هغه کې لوند والی وي، هغه مقصود دی".

که چيرې شاه صاحب په مجمع البحار يا د لغت حديث بل کوم کتاب کې د "جريد" ترجمه کتلې وای يا د شاه عبدالحق محدث دهلوي رحمه الله د مشکوة شرحه کې يې د دې حديث ترجمه کتلې وای، نو هغه ته به د علامه عيني د سوال او ځواب په پوهيدلو کې مشکل نه وای او هغه به داسې ترجمه نه کوله او که چيرې د ډېر مصروفيت په وجه هغه ته د کتابونو د کتلو موقعه نه پيدا کېده نو کم نه کم دومره خبره باندې به يې غور کړی و چې که چيرې د علامه عيني رحمه الله مقصد دا وی چې د څانګې څه خصوصيت نشته بلکې د هر لوند شی نه دا مقصد حاصليږي.

نو په وړاندې ساه کې به هغه ګلونو وغيره اچولو ته **ليس بشئ** ويلو سره د دې نفی ولې کوله؟ ترجمه کولو کې خو دا سوچ کول پکار و چې د علامه دا دواړه جملې څپل مينځ کې ولې نه سره لګيږي".

ج: د شاه صاحب په خيال کې علامه عيني رحمه الله د څانګې د خصوصيت نفی وکړه او هر لوند شی يې مقصود وګرځاو، په دې وجه هغه د علامه د عبارت نه "من ای شجر کان" ترجمه بالکل ورکه کړه.

د: بيا علامه عيني رحمه الله "**ولهذا انكر الخطابي**" وويل او پخپل سوال او ځواب باندې يې تفريع وړاندې کړه شاه صاحب د "لهذا" ترجمه هم حذف کړه چې هغه سره د دې جملې ربط بالکل ختم شو.

ه: **وكذالك مايفعله اكثرالناس**" سره علامه عيني رحمه الله د دې سوال او ځواب دويمه تفريع ذکر کړې ده، زمونږ شاه صاحب هغه د امام خطابي د انکار لاندې ذکر کړه او ترجمه يې داسې

وکړه: او دارنګه ددې نه یې هم انکار کړی دی کوم چې اکثر خلک کوي". په دي ترجمه کې ددې نه یې هم انکار کړی دی " دا داشاه صاحب له لوري زیات شوي الفاظ دي.

و: علامه عیني رحمه الله په قبرونو باندې ګلونه وغیره اچولو ته "لیس بشئ" (دا هیڅ شی نه دی) وویل، ویې فرمایل :(انما السنة الغرز) یعنې" سُنت یواځې څانګه خښول دي" په دی باندې یو اعتراض کیدای شو دهغه ځواب یې ورکړ او دهغه په اخرکې فرمایي:" **فافهم**" چې په هغه کې اشاره ده چې په دی ځواب باندې د زیات سوال او ځواب ګنجائش شته. خو زموږ شاه صاحب خو دا ټول هرڅه دامام خطابی رحمه الله نوم ته منسوبوي. په دې وجه هغه ډېر په جوش سره فرمایي:

" بیا خطابی بیچاره دبحث په اختتام باندې د" **فافهم** " لفظ هم اضافه کړ.خو افسوس چې مولانا صاحب دې طرف ته توجه ونکړه".

دا ناکاره دجناب شاه صاحب په دتوجه په وړاندیز باندې ګزار دی.کاش! شاه صاحب پخپله هم دتوجه زحمت کړی وای چې هغه دڅه څخه څه ګڼي اولیکي:

شاید چې دعلامه عیني رحمه الله دا **فافهم**" هم الهامي و،الله تعالی ته معلومه وه چې دعلامه عیني رحمه الله نه به **۵۴۵** کاله وروسته زموږ شاه صاحب دعلامه عیني دعبارت دا ترجمه کوي په دی وجه یې دهغه سره یې د **فافهم** لفظ ولیکه چې شاه صاحب دعلامه ددې وصیت خیال وساتي او دهغه دعبارت ترجمه لږ سوچ اوفکر سره وکړي.

پنځم:" دکتاب فهمي" او د " صحیح ترجمي" نه وروسته اوس دشاه صاحب په طریقه استدلال باندې دې هم نظر واچول شي موصوف دعلامه عیني دپورته بیان شوي عبارت نه څو قوائد تمهید سره اخستي دي:

" د پورته ذکرشوې ترجمې نه به د لُدهیانوي صاحب دکتاب فهمئ او د طریق استدلال اندازه وشي.خو کتونکو له پاره څو اُمور لاندې بیانول مناسب دي:

۱: شاه صاحب دنمبر ۱ لاندې لیکي:

" یواځې څانګې خښول مسنون نه دي،دا شی لوندهم پکار دی،لهذا وچې څانګې لګول مسنون نه دي،خو څانګې او ګلونه دلوند والي په وجه مسنون دي".

دګلونو اچولو مسنون کیدل دعلامه عیني له عبارت نه اخستل شوي دي ،حالانکه دهغه دعبارت ترجمه پخپله شاه صاحب داسې کړې ده:

" او دا رانګه ددې یې هم انکار کړی دی کوم چې اکثرخلک یې کوي یعنې لانده شیان مثلاً: ګلونه ، شینکي وغیره په قبرونو باندې اچوي دا هیڅ نه دی او بیشکه سنت خښول دي".

ګلونه ، شینکي وغیره لانده شیان قبرباندې اچولو ته علامه عیني رحمه الله خلاف سنت او لیس بشئ فرمایي ،خو د شاه صاحب د استدلال عجیبه طریقه ددې عبارت نه دګولونو اچول سنت ثابتوي ،کیدای شي چې دشاه صاحب په اصطلاح کې به د لیس بشئ ( هیڅ شی نه دی) معنا (مسنون شي) وي.

۲:د شاه صاحب فائده نمبر۲ له دې نه هم زیاته دلچسپه ده چې

"وضع یعنې اچول مسنون نه دي بلکې غرس یعنې خښول مسنون دي او خطابي رحمه الله دګلونو او شنو له اچولو انکار کړی دی له خښولو ځخه نه. څنګه چې دمخکې عبارتونو نه ظاهره دہ. دارنګه :وه بنیادي شیان مسنون دي:یو غرز یعنې: خښول ،دویم لانده شیان"

د شاه صاحب پریشاني دا ده چې علامه عیني( او د شاه صاحب په قول امام خطابي رحمه الله) خو ګلونو اچولو ته لیس بشئ او غیرمسنون وایي او شاه صاحب په هرحال د ګلونو اچول مسنون ثابتوي،په دې وجه دخپل استدلال مخصوص انداز سره د دوی د قول څنګه ښائسته تاویل کوي چې دخطابي په قول ګلونو اچول خو مسنون نه دي ،خو خښول د دوی په نزد هم مسنون دي،الله الصمد!

شاه صاحب تاویل وکړ،خو اول بې دا سوچ ونکړ چې زموږ بحث هم دګلونو اچولو سره متعلق دی اوددې غیرمسنون کیدل خوجناب پخپله ولیکل، نو که چېرې دې ناکاره په قبرباندې ګلونو اچولوته خلاف سنت وویل، نو څه جرم بې وکړ. بیایې دی باندې هم غور ونکړ،چې کوم حضرات د اولیاء الله په مزارونو باندې ګلونو اچولو له پاره راځي ،نوهغوی هم ستاسو د ارشاد مطابق خلاف سنت کار کوي. ځکه چې د سنت کیدلو له پاره تاسو دوه بنیادي شرطونه تجویزکړي دي:یودهغه شی لوند والی او دویم دهغه خښول

بیایې په دی باندې هم غور ونکړ چې په قبرباندې خوځانګه خښیږي نه اونه ګلونه او شینکي څوک په قبرباندې خښوي،بلکې دا خو یواځې خلکپرې اچوي،نوچې کله د ګلونو خښول عادتا ممکن نه دي او نه یې څوک خښوي او پخپله شاه صاحب هم لیکي چې دیوشی په قبرباندې خښول سُنت دي ،اچول یې سنت نه دي ،نو دجناب ددې فقرې به اخر څه مطلب وي چې: "خطابي دګلونو او شینکو له اچولو انکار کړی دی له خښولو یې نه".

ایا کوم یوملك کې شاه صاحب په قبرونوباندې دګلونو خښولو رواج لیدلی او یا اوریدلی هم دی؟ اوایا دا ممکن هم دي ؟ که چېرې نه وي، نوبیابیا غوروکړئ چې آخرستاسو دا فقره څه حاصل او مفهوم لري؟

بیا څنګه چې عرض وشو شاه صاحب دا ټولې خبرې امام خطابي رحمه الله ته منسوب کړې. که نه د امام خطابي رحمه الله په عبارت کې د ګلونو اچولو او خښولو د (باریك منطبق) چیرته دلیرې هم

پته نه لګیږي. مناسبه ده چې دلته د امام خطابي رحمه الله اصل عبارت وړاندې کړم. شاه صاحب دې په دې باندې غور وکړي.
دحدیث "جرید" په شرح کې امام خطابي رحمه الله لیکي:

**وأما غرسه شق العسيب على القبر وقوله لعله يخفف عنهما مالم ييبسا فإنه من ناحية التبرك بأثر النبي ﷺ ودعائه بالتخفيف عنهما وكأنه ﷺ جعل مدة بقاء النداوة فيهما حدا لما وقعت به المسئلة من تخفيف العذاب عنهما وليس ذالك من أجل ان فى الجريد الرطب معنا ليس فى اليابس والعامة فى كثير من االبلدان تفرش لخوص فى قبور موتاهم واراهم ذهبوا إلى هذا وليس لما تعاطوه من ذالك وجه. والله اعلم. (معالم السنن ص١٩، ٢٠ ج١)**

ترجمه: باقي دنبي کریم ﷺ دکجورې ماتول او په قبرباندې خښول او دا فرمایل چې " شاید ددوی په عذاب کې کمی وشي ترڅو چېدا څانګې وچې نه شي". نودا کمی دنبي کریم ﷺ د اثر اودهغوی د دُعاء تخفیف په برکت سره وشو.
او داسې معلومیږي چې نبي علیه السلام ددې قبرونو په حق کې دعذاب دکم والي دعاکړې وه ددې څنګود لوندوالي باقی پاتې کیدو موده یې ددې کمي له پاره حد مقرر کړې و.
او ددې تخفیف وجه دا نه وه چې دکجورو لوندو څانګوکې څه داسې خصوصیت شته چې په اوچوکې نه موندل کیږي او د ډېرو علاقو عوام د خپلو مړو په. قبرونوکې د کجورې پاڼې خوروي او زما خیال دی چې هغوی هم دې طرف ته تللي دي. ( چې په لوندشي کې څه داسې خصوصیت شته چې دتخفیف عذاب له پاره ګټور وي) حالانکه کوم عمل چې دا خلک کوي ددې هیڅ اصل نشته. والله اعلم".
۳: شاه صاحب دریمه افاده دعیني رحمه الله دعبارت نه دا اخستې ده چې: "په قبرونوباندې **دګلونو اچولو سلسله څه نوې نه ده ، بلکې دخطابي رحمه الله له زماني نه راروانه ده او داسې هم نه ده چې ځینې خلک داسې کوي ، بلکې دخطابي رحمه الله بیان دی چې دا فعل دډېرو خلکو دی".**
شاه صاحب ددې نکتې نه دا ثابتول غواړي چې دخطابي دزمانې نه په قبرونوباندې ګلونو اچولو باندې دډېرو خلکو اجماع ده او ددې اجماع خلاف خُوله پرانستل ګویا الحاد او زندیقیت دی . چې د ډېرو خلکو معتقداتو ته رسیدلی دی . خو محترم شاه صاحب ددې نکتې نه مخکې که لاندې بیان شویو اُمورو باندې غور کړی وای. نوشاید چې هغه ته به پخپل طرزِاستدلال باندې افسوس وو.
اول:---------- هغه چې کوم عبارت باندې دخپلې دې نکتې بُنیاد مضبوطوي، هغه د امام خطابي رحمه الله نه ده. بلکې دعلامه عیني رحمه الله ده. په دې وجه قبرونوباندې ګلونه اچول دامام خطابي رحمه الله د زمانې د "اکثرالناس" فعل ثابتول . بناء د فاسد په فاسد . . ده. خو داسې ووایئ چې دامام خطابي رحمه الله دزمانې "عوامو" به دمړي په قبرکې دکجورو لندې پاڼې

خورولي دعلامه عینی رحمه الله زماني پورې دا سلسله دکجورو د پاڼو نه تیره شوه اوګلونو اچولو ته ورسیده.
ثانیًا.... چې کله دا سلسله په عواموکې شروع شوه دهغه وخت نه دامت علماوو په دې باندې دانکار سلسله هم شروع کړه. خطابي رحمه الله "ددې هیڅ اصل نشته" وویل اوددې دبدعت کیدو اعلان یې وکړاو علامه عینې "لیس بشئ" وویل اودا یې خلاف سنت وګرځاو. ارمان چې جناب شاه صاحب هم دعلماء امت په نقش قدم باندې تللی وای او دعوامو دی فعل ته یې بې بېیدد او خلاف سنت ویلي وای.
په هرحال که چېرې جناب شاه صاحب دخطابي رحمه الله یا د عیني رحمه الله دزمانې د عوامو تقلید کوي نو دي ناکاره ته (بحول الله وقوته) د اکابرعلماوو او ددین دامامانو په نقش قدم باندې دتلو سعادت حاصل دی اوهغه دعلامه عیني او دامام خطابی پشان ددې عامیانه فعل خلاف سنت کیدلو اعلان کوي. جناب شاه صاحب ته که چېرې دعوامو په تقلید باندې فخر وي، نو دا کم علمه ددین دامامانو په اتباع باندې ناز کونکی دی اوپه دی باندې شکر ادا کوي. دا خپل خپل نصیب دی دهرچا په برخه کې چې هرڅه راشي:
هرکسی رابهر کار ساختند
ثالثًا.... جناب شاه صاحب دعلامه عیني عبارت خطابي رحمه الله طرف ته منسوب کړ او دامقصدیې ترې واخست چې دګلونو اچول دخطابي له زمانې نه راروان دي ارمان! چې هغه چیرته دا لټون هم کړی وای چې د څلورمې پیړۍ (دخطابي رحمه الله دزمانې) عوامو چې کوم بدعتونه ایجاد کړي وو. هغه په څوارلسمه پیړۍ کې نه یواځې سنت ګرځېدلي بلکې داهل سنت والجماعت په عقائدو او شعار کې هغه ته ځای ورکړل شوی دی(اناالله وانا الیه راجعون!)
جناب شاه صاحب که چېرې زمامخکنی مضمون لوستلي وي، نو د امام شهید ارشاد به هم دهغه له نظرنه تیرشوي وي کوم چې امام رباني مجدد الف ثاني رحمه الله له فتاوی غیاثیه نه نقل کړی دی چې د متاخرینودور ( له څلورمې پیړۍ نه شروع کیږي) دهغواستحسان موږ نه اخلو. غور وکړئ چې د کوم دور د اکابر علماوو د استحسان نه هم یو سنت نه ثابتیږي. شاه صاحب دهغې زمانې د عوامو ایجاد کړي بدعات سنت ګرځوي اوټینګار کوي چې ددې بدعاتو په باره کې دهغه زمانې سترو علماوو چې که هرڅه فرمایلي وي زموږ له پاره دهغه دکتلو ضرورت نشته. له پېړیو نه عوام په دی بدعت کې اخته دي. لهذا دي ته خلاف سنت ویل جائز نه دي. زه نه پوهېږم چې دې "لاجوابه منطق" سره شاه صاحب خپل ضمیر څنګه مطمئن کړ.

رابعاً... زموږ شاه صاحب خو د امام خطابي د زمانې عوام دحجت اودليل په طور وړاندې كوي او دامت دعلماوو د انكار سره سره د هغوى له فعل نه دليل نيسي. راشئ! زه تاسو ته ددې نه هم دوه پېړۍ وړاندې د عوامو په باره كې د علماوو رايه وښايم:
د درمختار صاحب دباب الاعتكاف نه لږ مخكې دا مسئله ذكر كړې ده چې اكثر عوام چې دمړو په نوم نذر او نياز كوي او د اولياء الله په قبرنوباندې روپۍ، شمع، تيل او داسې نور... اچوي دوى به يې د تقرب (ثواب) په نيت اچوي. دا بالكل بالاجماع باطل او حرام دي. مگر دا چې په فقراوو باندې دخرچ كولو په قصد سره يې وكړي[1]. په دې ضمن كې هغه زموږ دامام محمدبن الحسن الشيباني د مذهب نعماني رحمه الله مدون (المتوفى ۱۸۹هـ) قول نقل كړى دى: "**ولقد قال الامام محمد: لوكانت العوام عبيدي, لأعتقتهم وأسقطت ولائي ,و ذلك لأنهم لايهتدون فالكل بهم يتعيرون**"
ترجمه: او امام محمد رحمه الله وفرمايل: كه چېرې عوام زما غلامان واى، نو مابه دوى ازاد كړي وو او د دوى د ازادولو نسبت به مې هم ځان ته نه كاو. ځكه چې هغوى هدايت نه مومي. په دې وجه هرسړى له دوى نه شرم كوي".
علامه شامي ددې په حاشيه كې ليكي:
" د پوهې خاوندانو نه پټه نه ده چې د امام مراد ددې كلام نه د عوامو مذمت كول او خپل ځان طرف ته ددوى دڅه قسمه نسبت نه ليرېوالي اختيارول دي كه د ولاء (دآزادي نسبت) ساقطولو نه وي چې قطعي طورباندې ثابت دي او ددې اظهار برات سبب د عوامو عام جهل دى اودهغوى ډېر احكام بدلول او د حرامو اوناجائزو شيانوپه ذريعه د تقريب (ثواب) حاصلولو كوشش كول دي، نو د دوى مثال د ځناورو پشان دى چې علماء او اكابر له دوى نه شرم كوي او ددوى له عظيموقباحتونو نه د برات اظهار كوي"(فتاوي شامي ج:۲ ص: ۴۴۰)[2]
دا د امام محمد رحمه الله د زمانې عوام دي چې دهغوى له افعالو اوبدعاتو نه امام محمد رحمه الله او نور اعلام او اكابر د برات اظهار كوي، خو دهغوى نه دوه پېړۍ وروسته دعوامو بدعات زموږ داشاه صاحب له پاره عين دين جوړېږي او ډېر په اطمينان سره وايي چې دګلونو اچولو

---

[1] واعلم أن النذر الذي يقع للاموات من أكثر العوام وما يؤخذ من الدراهم والشمع فهو بالاجماع باطل وحرام ...(درمختار ج:۲،ص:٤٣٩،قبيل باب الاعتكاف)

[2] ولا يخفى على ذوى الافهام ان مرادالامام بهذالكلام انما هو ذم العوام والتباعد عن نسبتهم اليه باى وجه يرام ولو باسقاط الولاء الثابت الانبرام وذلک بسبب جهلهم العام وتغييرهم لكثيرمن الاحكام، وتقربهم بما هو باطل وحرام ،فهم كالانعام يتعيربهم الاعلام، ويتبرؤن من شنائعهم العظام(فتاوى شامى ج:۲،ص:٤٤٠،مطلب فى النذر الذى يقع للاموات ........الخ )

سلسله خو د امام خطابي رحمه الله د دور نه راروانه ده او دا سوچ نه کوي چې دا هم هغه عوام دي چې د هغوی د جهل عام او د تغیراحکام شکایت زمونږ د اعلامو او اکابرو نه راروانه ده.
دا د دې ناکاره مضمون باندې د شاه صاحب د تنقیداتو څو نمونې دلوستونکو په خدمت کې وړاندې شوې دي، چې د هغو نه اندازه کیږي چې شاه صاحب او د هغه هم فکره دبدعاتو د ترویج او اشاعت له پاره کوم ډول تاویلات جوړوي. الله پاك دې زمونږ زړه ، دماغ او روح د سنتو په رڼا سره روښانه کړي او دبدعاتو د ظلمت ( تیاریو ) او نحوست نه دې مونږ په خپله پناه کې وساتي.

## د بُزرګانو په قبرونو باندې عُرس کول ، څادرونه پرې اچول او هغوی نه آرزوګانې غوښتل څنګه دي؟

**سوال:** ډېروځایونو کې د څه بُزرګانو زیارتونه جوړیږي( نن سبا خوځینې نقلي هم جوړیږي) او په هغه باندې هرکال عُرس کیږي، څادرونه پرې اچول کیږي، د هغوی نه آرزوګانې غوښتل کیږي، دا څومره پورې صحیح دي؟

**جواب:** دا بالکل ناجائز او حرام دي[1]، دبزرګانو دعُرسونو د رواج بنیاد غالبًا چې دا وي چې دیو شیخ (پیر) دمرګ نه وروسته به دهغه مُریدان یوځای جمع کیدل او څه وعظ او نصیحت به یې کاوو خو په مزه مزه دا مقصد خوغائب شو او دبزرګانو ځای ناستو خلکو ب قاعده د اِستخوان ( د پیرصاحب د هډوکو) خرڅولو کاروبار شروع کړ او د" عُرس شریف" په نوم دبزرګانو په قبرونوباندې په سوونو بدعاتو ، محرماتو او دبې هوده کارونو یوسیلاب راغی، چې خلکو کله دقبر فروشي کاروبار مخ په ترقي ولیده نوهغوی جعلی قبرونه جوړول شروع کړل(انا لله وانا الیه راجعون)!

## په قبرونو باندې ګلونه اچول د سُنت خلاف دي

**سوال:** د خپلوخپلوانو په قبرونوباندې اُوبه اچول ،ګلونه اچول، اوړه اچول. اوګربتې بلول صحیح دي اوکه غلط؟

**جواب:** د خښولو نه وروسته اوبه اچول جائز دي ،ګلونه اچول د سُنتو نه خلاف دي اوړه

[1] کره بعض الفقهاء وضع الستور والعمائم والثیاب علی قبور الصالحین والاولیاء .قال في فتاوی الحجة وتکره الستور علی القبور (شامي ج:٦ص :٣٦٣ ،تتمة ،فصل ف اللبس)

اچول بې فائدې خبره ده او کربتي۔ سوځول مکروه او منع دي.[۱]

## د نذر (منبنتې) منل ولې منع دي؟

**سوال:** دځينې خلکو نه مو اوريدلي دي چې د نذر په شريعت کې منع راغلې ده. د دې څه وجه ده؟

**جواب:** حديث کې چې د نذر نه کومه منع راغلې ده. عالمانو د دې ډير وجوهات ښودلي دي. يو دا چې ځينې جاهل دا ګڼي چې نذر منلو سره هغه کار ضرور وشي. حديث کې د دې خيال د ترديد له پاره فرمايل شوی دی چې د نذر په وجه باندې دالله تعالی تقدير نه بدليږي. دوېمه دا چې د بنده دا ويل که چېرې زما مريض ته شفاء ورکړل شوه. نوزه به دومره روژې نيسم. يا دومره مال به صدقه کوم. دا په ښکاره باندې الله تعالی سره سودا بازي کول دي او دا د بندګۍ شان نه دی.

## د کعبې نياز

**سوال:** والبدن جعلنها لکم من شعائر الله، د کعبې د نياز. هر تفسير او ترجمه کې نياز يا کعبې باندې قرباني کولو له پاره اوښ ليکل شوې ده. کومه چې دوالهدی والقلائد، ترجمه ده، سوال دا دی چې کعبه شريفه خو هم غيرالله ده. بيا د دې نياز څه کيدای شي؟

**جواب:** کعبه بيت الله ده، په دې وجه باندې د کعبې نياز په حقيقت کې د کعبې درب نياز دی.

## ايا د نبي کريم ﷺ نياز به دالله تعالی نيازوي؟

**سوال:** حضرت محمد ﷺ دالله تعالی رسول دی. دهغه نياز هم د کعبې درب نياز دی، همدارنګه بيا د نورو ټولو اولياء د نذر نه ولې منع شوې ده؟

**جواب:** ډير ښائسته سوال ده. دا وښ دخاروي نياز د کعبې درب نياز دی. دهغې د نياز ځای دحج مقام يعنې حرم شريف دی. په دې وجه باندې هغې ته د کعبې نياز هم ويل کيږي. د دې خلاف دحضور ﷺ او دا اولياء کرام نياز دالله تعالی له پاره مشروع نه دی. په دې وجه باندې

---

۱] قوله ولا باس برش الماء عليه بل ان يندب، لانه صلى الله عليه وسلم فعله بقبر سعد كما رواه ابن ماجة، وبقبر ولده ابراهيم كما رواه ابوداؤد فى مراسيله، وامر به فى قبر عثمان بن مظعون رضى الله عنه كما رواه البزار (شامى ج:۲، ص:۲۳۷) واعلم أن النذر الذي يقع للاموات من أكثر العوام وما يؤخذ من الدراهم والشمع والزيت ونحوها إلى ضرائح الاولياء الكرام تقربا إليهم فهو بالاجماع باطل وحرام (درمختار ج:۲، ص:۴۳۹، قبيل باب الاعتكاف)

درمختار[1] کې لیکل شوي دي چې داولیاء الله مزارونو ته چې کوم نذرونه راوړل شي. که چېرې دهغه مقصدهلته په موجودو فقیرانوباندې صدقه کول وي. نوداندرداالله تعالی له پاره دی اوپه دې وجه باندې جائزدی. اوکه چېرې پخپله داولیاء الله نذرمقصدوی نودا حرام دی،ځکه چې داندرعبادت دی اوداالله تعالی نه پرته دچا عبادت جائزنه دی. ددې مثال دبیت الله طرف ته سجده ده. چې سجده خوالله تعالی ته کیږی. اودسجدې طرف بیت الله دی. خورسول الله ﷺ ته سجده جائزنه ده.

## داولیاء الله په مزارونوباندې نذر

**سوال:** دکعبې دنیاز داونې باره کې تاسو وفرمایل چې داولیاء الله مزارونوته چې کومې نذرانې هلته موجودو فقیرانو باندې صدقه کولوله پاره راوړل کیږي اوثواب یې مزارته ښښل کیږي نوبیاجائزده.

بې شکه دربط شیخ اوفیضان شیخ دحاصلولوله پاره داډیره غټه ذریعه ده، او ټولو مشائخوکې ددې معمول دی، خوافسوس چې زموږسلسله کې ددې کمی ده. بلکې دې نه منع کیږي، ما دانه لیدلي اونه اوریدلي چې چادخپل شیخ له پاره صدقه کړي وي. نقدي. خوراک،کپړې. هیڅ قسمه نه کورکې اونه مزارباندې. اونه دنوروااولیاء الله په مزارونو باندې ددې التزام کیږي او حدیث شریف کې دعامو مومنانودقبرونودزیارت کولو تاکید شوی دی، همدارنګه نورې ډیرې طریقې چې دهغو په وجه باندې دنفس تزکیه اودزړه په سکون کې مدد کیږي اودعلاج په سلسله کې رواج دي(بدعتونونه پرته) زموږپه سلسله کې رواج نه دي،حلقه جوړولوسره دذکرکولونه ځان ساتل کیږي،لمونځ، روژه. اونوروفرائض اوواجب په سالک اوغیرسالک دواړوکې یوشان دي.ټول مشائخ دې خبرې باندې اتفاق کوي، یواځې په لمونځ اوروژه وغیره باندې دنفس تزکیه نه شي حاصلیدای، ترڅوپورې چې دې سره باطني عملونه، دنیت اصلاح،غنی،توکل ماسوانه ځان ساتل اونور ریاضتونه او مجاهدې چې متقدمینو کې رواج وې،خاص طور باندې طعام،کلام،منام. دخلکوسره په اختلاط کې تقلیل وغیره نه وي. مختصر داچې مشائخ دي. دخلیفه ګانوغټ غټ فهرستونه دي، دمریدانویوفوج دی،خوهغه روح نشته اونه هغه اثرات په چاکې ښکاري،کوم چې د مجاهدوپه ذریعه باندې راځي،الاماشاء الله، اونوروسلسلوکې مثلاً سلسله عالیه نقشبندیه

---

[1] وفي الدرالمختار: اعلم أن النذر الذي يقع للاموات من أكثر العوام وما يؤخذ من الدراهم والشمع والزيت ونحوها إلى ضرائح الاولياء الكرام تقربا إليهم فهو بالاجماع باطل وحرام وفي الشامية:قوله باطل وحرام،لوجوه: منها انه نذر لمخلوق والنذر للمخلوق لا يجوز لانه عبادة،والعبادة لا تكون لمخلوق (ردالمحتار ج:٢،ص:٤٣٩ مطلب في النذر الذى يقع للاموات)

کې هغه صفات لیدل شوي دي کوم چې د دې طریقې لازمي شیان دي. د وفات نه وروسته هم خپل مریدانو او عقیدت مندو ته د خوب یا مراقبې یا واقعې په ذریعه باندې فیض ورکوي او د هغوی نګهداشت کوي، داسې لکه څنګه چې یو شپونکی د خپلو چیلو یو کوي.

دویمه خبره دا چې شیخ او پیر طریقت جوړیدو له پاره د کومو شرطونو او صفتونو او باطني کمالاتو ضرورت دی، څنګه چې د تصوف په مستند کتابونو کې لیکل شوي دي او خاص طور باندې امداد السلوک کې خودې حد پورې لیکل شوي دي که چیرې دا صفتونه په شیخ کې نه وي نو د هغه شیخ طریقت جوړیدل حرام دي، نو جناب دا خبرې نن سبا په اکثر مشائخو کې نشته (ستاسو په شان یو څو بزرګانو کې به یقیناً دا صفتونه موجود وي، خوزه د اکثریت خبره کوم)

**جواب:** شیخ سره تعلق د ثواب بښلو په ذریعه باندې او د زیارت له پاره قبرونو ته حاضریدل پکار دي. دې کې ډیرې فائدې دي. الحمد لله دا خطاکار پخپله باندې د دې اهتمام کوي د امدادالسلوک په شرط باندې خو څوک هم نن سبا پوره نه شي کیدای. که زه پخپله باندې دا عرض وکړم چې زه هم دې شرط باندې پوره نه یم. نو دروغژن به نه یم. په دې وجه باندې دا خطاکار د حق مشائخو طرف ته محول کول ضروري ګڼي، مخکې خوبه مې بالکل انکار کاو چې زه اهل نه یم، خوزما څینې بزرګانو ما ته خبرې وکړې چې ته د حضرت شیخ رحمة الله علیه دا جازې توهین کوې. د هغه وخت نه وروسته ما د خپلې نااهلي باوجود بیعت اخستل شروع کړلاو اوس خوبې شکه نورهم مضبوط شوی یم. الله تعالی دې هغه خلکو باندې رحم وکړې په کوموکې چې پیراوشیخ زما په شان خلک وي، بس هم هغه قصه ده کومه چې تذکرة الرشید کې حضرت ګنګوهي (قدس سره) دیو ډاکو د پیر کیدو باره کې لیکلې ده.

## یوائې زړه کې خیال راتلو سره نذر نه کیږي

**سوال:** محترم مولاناصاحب! ستاسو په څواب باندې مې تسلي ونه شوه. ځکه چې قران کریم کې ارشاد دی، "چې څه تاسو غواړئ، الله تعالی ته ستاسو د نیت علم کیږي (سورة بقرة ٢٧٠) د نیت باره کې رسول الله ﷺ فرمایي: بې شکه د ټولو عملونو دارمدار په نیت باندې دی، هرکس ته به هغه څه ورکول کیږي د څه چې هغه نیت کړی وي. (حواله صحیح بخاري کتاب الایمان باب النیة) یو بل ځای کې ارشاد دی: ستاسو مخونو او ستاسو مالونو ته نه کتل کیږي ، ستاسو زړونو او عملونو ته کتل کیږي او یو روایت کې دی چې حضور ﷺ د سینې طرف ته اشاره وکړه او وې فرمایل: تقوا دلته وي.

له دې حدیثونو نه معلومه شوه چې د نیت د خلوص مقام زړه دی او چونکه سوال کونکي د زړه اخلاص سره د هغه منت منلی و. او د هغه پوره کول هغه او سه پورې خپله ذمه داري ګڼي، خود خپلو حالاتو په وجه باندې هغه معذوره ده او پخپله باندې هغه نه شي اداکولی، تاسو نه

بې دهغه معلومول غوښتي دي. خو ستاسوځواب دادی چې زړه کې خیال کولو سره نیت نه کیږي، ترڅو پورې چې ژبه باندې هغه الفاظ ادانه کړل شي
دقران ایت اوپورته بیان شویو حدیثونوپه رڼاکې ستاسوپه ځواب باندې تسلي نه کیږي، دسوال کونکي نیت سرسري نه بلکې حقیقي و.چې دهغه داداکولویادمتبادل له پاره هغه بې قراره ده.ځکه چې نذرپه ځان باندې څه شی واجبولوته ویل کیږي کوم چې دالله تعالی دطرف نه مخکې واجب نه وي او سوال کونکي نذرمنلی دی.که هغه زړه کې خیال کولوسره ولې نه وي،دهغه اداکول هغه باندې واجب شو،که نه گناهګاره به وي.
دویمه یوه اهمه خبره داده چې رسول اللهﷺ فرمایلي دي، چې نذر مه منئ.ځکه چې نذردتقدیرپه کارونوکې هیڅ فائده نه ورکوي. بس ددې نه دومره ثابته شوه چې دبخیل مال ختمیدل دي. (حواله صحیح مسلم کتاب النذراوصحیح بخاري کتاب الایمان والنذر) ددې حدیثونونه معلومه شوه چې داسې قسمه نذرمنل فضول دي اوکه چېرې زماپه پوهیدوکې څه غلطي شوې وي نوزمااصلاح وکړئ!
**جواب:** د نذرمعنا ده: دداسې عبادت په ځان باندې لازمول چې دهغه په ذمه باندې لازم نه وي اوپه خپله ذمه کول، دخولې کار دی. یواځې زړه کې خیال کولوسره هغه شی دهغه په ذمه باندې نه لازمیږي،ترڅوپورې چې په ژبه باندې الفاظ ادانه شي[۱]. هم دا وجه ده چې دلمونځ نیت کولوسره لمونځ نه شروع کیږي،ترڅوپورې چې تکبیرتحریمه ونه ویل شي،دحج اوعمرې نیت کولوسره حج او عمره نه شروع کیږي،ترڅوپورې چې دتلبیې الفاظ ونه ویل شي، د طلاق خیال زړه کې راتلوسره طلاق نه واقع کیږي.ترڅوپورې چې دطلاق الفاظ په خوله باندې ونه ویل شي اودنکاح نیت کولوسره نکاح نه کیږي، ترڅوپورې چې دایجاب اوقبول الفاظ په ژبه باندې ادا نه شي،همدارنګه دنذرخیال زړه کې راتلوسره نذرنه کیږی،ترڅو پورې چې دنذرالفاظ په ژبه باندې ادانه کړل شي، علامه شاميؒ کتاب الصوم کې شرح ملتقی نه نقل کړي دي چې "نذردژبې عمل دی".[۲]
تاسوچې دقران پاک کوم ایت نقل کړی دی هغه کې فرمایل شوي دي "تاسوچې کوم نذر ومنئ، ماویلي دي چې نذر منل په خوله باندې کیږي.په دې وجه باندې دا ایت ددې مسئلې خلاف نه دی.
تاسوچې کوم حدیث نقل کړی دی چې داعمالوحقیقت په نیت باندی دی، دې کې عمل

۱]حقیقة النذر التزام الفعل بالقول مما یکون طاعة الله عزوجل ومن الاعمال قربة........الخ (احکام القرآن لابن العربی ج:۲،ص:۱۸)
۲]وفی ردالمحتار :وفی شرح الملتقی والنذر عمل اللسان(شامی ج:۲،ص:۴۳۳ طبع جدید)

اونیت بېل بېل ذکر شوي دي. ددې نه معلومېږي چې یواځې نیت کولو سره عمل نه کیږي. بلکې عمل کې دنیت کولو شرط قبولیت دی. ددې حدیث په نزدباندې یواځې نیت او خیال سره نذرنه کیږي، ترڅو پورې چې دخولې عمل پکې نه وي.

دویم حدیث کې هم دعملونو اوزړونو بېل بېل ذکرشوی دی. ددې نه معلومېږي چې یواځې دزړه دخیال نوم عمل نه دی، خو دعمل له پاره دزړه دنیت صحیح کیدل ضروري دي او تاسو چې کوم حدیث نقل کړی دی چې "نذرمه منئ. داحدیث صحیح دی. خوتاسو چې ترې کومه نتیجه اخستې ده چې داسې قسمه نذربې مقصده او منع دی. دانتیجه غلطه ده.ځکه که چېرې دحدیث شریف هم دا مطلب وي چې نذربې مقصده اومنع دی، نوشریعت کې به دنذر د پوره کولو حکم نه واى. حالانکه دامت ټول اکابرین دې باندې متفق دي چې دعبادت مقصد باندې نذرمنل صحیح دي اودهغه پوره کول لازم دي.

حدیث کې چې دنذرنه کومه منع شوې ده. عالمانودهغې ډېروجوهات بیان کړي دي[1]: یو داچې ځینې جاهل داګڼي چې نذر منلوسره هغه کارضرور وشي. حدیث کې ددې خیال تردید له پاره فرمایل شوي دي چې دنذرپه وجه باندې دالله تعالی تقدیرنه بدلیږي.دویمه داچې د بنده داویل که چېرې زمامریض ته شفاء ورکړل شوه نوزه به دومره روژې نیسم. یادومره مال به صدقه کوم،داپه ښکاره باندې الله تعالی سره سودابازي کول دي اودادبندګۍ شان نه دی.

## د یوعالم نه پوښتنه کولوسره سړی نه خلاصیږي

**سوال:** حضرت! ماته یومشکل پیداشوی دی. ددې حل ستاسونه غواړم. هغه داچې موږ دخپلو عالمانونه کوم چې مستندګڼو اودخپل حیثیت مطابق په هغوی باندې اعتمادهم کوو، هغوی نه ددیني مسئلوپوښتنه کوواو هغو باندې عمل کوو، څنګه چې حکم دی: ,,فاسئلوا اهل الذکران کنتم لاتعلمون،، اوددې نه وروسته موږخپل ځان بري ګڼو، که چېرې مسئله یې راته غلطه هم ښودلې وي اودهغې په وجه باندې موږګناه کار وکړ ،نو موږ به دالله تعالی په دربارکې د مواخذې نه بچ یو. کوم خلک چې بدعت کې مبتلادي، هغوی هم دخپل طرف نه دمستند وعالمانو نه پوښتنه کوي اوپه هغوی باندې اعتماد کولو سره هغو باندې عمل کوي. نوایاهغوی هم دالله تعالی په دربارکې دمواخذې نه بچ دي؟ همدارنګه خوبه ټولې باطلې فرقې هم خلاصې شي.ځکه چې هرکس دخپل حیثیت مطابق په مستندعالم باندې اعتمادکولوسره دهغوی په ښودل شویو طریقو باندې عمل کوي اودهریوې فرقې عالمان دادعوه کوي چې موږ صحیح یواونورټول غلط دي.

---

[1] یحتمل ان یکون سبب النهی عن النذر کون الناذر یصیر ملتزماً له فیاتی به تکلفاً بغیرنشاط......الخ (شرح النووی علی صحیح مسلم ج:٢،ص:٤٤،کتاب النذر)

دویمه خبره داده چې ایا قران مجید یا حدیثونو کې داسې څه ایت یا حدیث شته چې دهغه ښکاره طور باندې د اوضاحت کیږي چې دیو عالم نه پوښتنه کولو نه وروسته عمل کونکي باندې به هیڅ ګناه نه وي، که هغه غلطه مسئله هم وي اودهغه په وجه باندې دګناه کارونه هم وکړي.

حضرت: ددې وضاحت کولو سره زما مشکل ختم کړئ. الله تعالی دې تاسو ته ددې بدله درکړي، امین. دخپل ټول دیني او دنیاوي کارونو له پاره ددعا خواست هم کوم.

**جواب:** ډیر ښائسته سوال دی، ددې ځواب دمستقل کتاب موضوع ده. زما رساله (اختلاف امت او صراط مستقیم) هم دداسې قسمه سوال په ځواب کې لیکل شوې ده. دغه رساله ضرور ډ ولئ. یو څو خبرې نورې هم لیکم.

لومړی: دهرعقل لرونکي اوبالغ په ذمه لازم دي چې حق تلاش کړي اودا وګوري چې مختلفو فرقو اومذهبونو کې په حقه څوک دي؟ که چادې فرض کې سستي وکړه ونوهغه به معذورنه وي، تاسو چې کوم ایت شریف نقل کړی دی، دې کې هم داهل ذکرنه دپوښتنه کولو حکم راغلی دی، که چیرې دحق داطلب کول لازم ونه ګرځول شي ،نولازم به وي چې دټولې دنیاباطل دین منونکي معذور وګڼل شي اوددې باطل کیدل دعقل اونقل ددواړوپه نزدباندې واضح دي.

دویمه : کومې فرقې چې خپل ځان اسلام ته منسوب معرفي کوي هغوی ته پکاردي چې دا وګوري چې زموږدفرقې دعالمانو اصول او نظریات دحضور ﷺ اودحضور ﷺ دصحابه کرامو رضی الله عنهم په سنت او طریقه باندې دي او که نه؟ دحضور ﷺ دتوحیداوسنت دعوت ورکول. دبدعاتو او خواهشاتو نه ویرول، دحضور ﷺ دپاک ژوند نه واضح دي.

دریمه: که چیرې دحق دطالب په دې باندې تسلی ونه شي اودهغه مخکې حق ښکاره نه شي نودڅه وخت پورې دې دهریوې فرقې د اکابرینوپه خدمت کې پاتې شي. که چیرې دحق دطلب له پاره داسې وکړي، نو الله تعالی به هغه باندې حقیقت ضرورښکاره کړي. ځکه چې وعده ده. والذین جاهدو فینا لنهدینهم سبلنا.

څلورمه: که چیرې په هغه طلب اوتحقیق باندې هم هغه ته حق ښکاره نه شو ،نو داسې کس به معذوروي، هغه به دخپل کوشش اوطاقت مطابق عمل کوي. خو که چیرې دحق تلاش ونه کړي یا یې بستي نه کاروا خست ،نو معذوربه نه وي والله اعلم.

# ❖ یوځه د اصلاح مفاهیم باره کې ❖

**سوال:** د علوي مالکی نومي یومکي عالم دکتاب اردوترجمه "اصلاح مفاهیم،، باندې نن سبا بحث شروع دی، ځینې حضرات داکتاب دبریلیانو او دیوبندیانو په اختلاف ختمولوکې ډیر مدد کونکی ګڼي اوځینې حضرات دې ته دیوبندیانو دعقیدې دتغلیط او د بریلیانو د عقیدې د تایید ولو تصدیق وایي، صحیح صورتحال بیان کړئ، چې زموږ رهنمایي وشي!

**جواب:** بالکل! دمکې مکرمې دیوعالم شیخ محمدعلوي مکي کتاب **(مفاهیم یجب ان تصحیح)** دډیرو ورځونه دبحث موضوع ده، پاکستان کې ددې اردوترجمه د"اصلاح مفاهیم،، په نوم باندې چاپ شوې ده اوزموږخلکوکې دې باره کې ښې کافي خبرې شروع دي، انوار مدینه، لاهور، الخیر، ملتان، اوحق چاریار، چکوال کې دې باره کې کافي لیکل شوي دي، دکتاب ناشرجناب پروفسیرالحاج احمدعبدالرحمن زیدلطفه، په دې سلسله کې زمادنظر پوښتنه وکړه، مادهغه لیک په ځواب کې په کتاب باندې تفصیلي تبصره وکړه، اویوڅوصفحې لیکل مې وکړل، بیامې سوچ وکړچې دې له پاره به ډیرزیات وخت پکاروي، په دې وجه باندې مې یومختصرشان لیک دهغه په خدمت کې ولیکه، دې باره کې ډیراستفسارکیږي، په دې وجه باندې اوس اوس دیو صاحب لیک راغی، اودې باره کې یې زما مشوره غوښتې ده، په دې وجه باندې مې مناسب وګڼل، چې دې باره کې خپل خیال ښکاره کړم:

مخکې هغه مختصرشان لیک وړاندې کیږي کوم چې دجناب پروفیسر احمدعبدالرحمن په خدمت کې لیکل شوی و، له هغه نه وروسته هغه تفصیلي تبصره وړاندې کیږي دکومې چې دهغه په نوم باندې لیکل شروع شوي و، خوهغه مونیمایي کې پریښودو اومختصرلیک مې ولیکه. اوله هغه نه وروسته دهغې پوره کول اواخرکې دیوڅو حضراتو لیکونه اوزمادطرف نه دهغو ځوابونه وړاندې کیږي. **والله الموفق لکل خیروسعادة!**

...

## لومړی لیک

مخدوم ومکرم جناب پروفیسراحمدعبدالرحمن صاحب !

السّلام علیکم ورحمة الله وبرکاته!

ستاسو لیک اوهدیه "اصلاحِ مفاهیم،، له ډیرو ورځونه راغلی پروت دی، د زیاتو مصروفیاتو له وجې دکتاب دلوستلو موقع پیدانه شوه، اوطبیعت مې هم دهغه طرف ته مائل نه و اوکتاب مې په الماری کې حفاظت سره ایښی و،بیامې یو ناڅاپه فکرشو چې تاسو به دځواب انتظارکوئ، کتاب مې ولوست،خواهش مې پیداشوچې په هغه تفصیلي طور باندې څه ولیکم، خومشغلوراته ددې کاراجازه رانه کړه، په دې وجه باندې مختصر طور باندې لیکم، چې دکتاب ځینې بحثونه خوایمان تازه کونکي دي، خوجناب مصنف صاحب ځای په ځای باندې بخمل کې دټاټ پیوندونه لګولي دي، اوچینې (بوره)کې یې دخپل ببل فکر زهرهم ګډکړي دي، دې کتاب باره کې زماخیال دجناب محترم مولاناالحاج الحافظ مفتي عبدالستاردام مجده(صدرمفتی جامعه خیرالمدارس،ملتان) سره یوشان دی، داکتاب زموږ ددیوبند د اکابرینو دمسلک ترجماني بالکل نه کوي، اودې سره چې دامت په مینځ کې داتحاداواتفاق کوم امیدونه قائم شوي دي، هغه نه یواځې کم، بلکې ختم دي، ددې په مقابله کې زماخیال دادی چې امت خوامت، داکتاب به زموږ د دوستانوپه مینځ کې هم دنفرت اوبیلوالي اودجنګ جګړې ذریعه جوړیږي، که چیرې دکتاب د ترجمې اوددې دچاپ کیدونه مخکې زمادخیال پوښتنه شوې وای، نومابه دترجمې اوچاپ مشوره نه درکوله، کومو حضراتوچې په دې باندې تقریظات لیکلي دي، زماپه خیال هغوی دلوستلو نه پرته یواځې دلیکونکي سره دمحبت اوعقیدت په وجه باندې لیکل کړي دي اوکه چا لوستې وي نوهغه باندې صحیح طورباندې پوه شوي نه دي اونه زموږ داکابرینوپه مسلک باندې صحیح طورباندې پوه شوي، بلکې زماخودې حدپورې فکر دی چې ډیر حضرات دکتاب دنوم په مفهوم باندې هم نه دي پوه شوي، که چیرې دهغوی نه پوښتنه و شي چې (**مفاهیم یجب ان تصحح**) څه مطلب دی؟ نوکیدای شي چې غشی یې په نښه باندې ونه لګیږي، ددې اردونوم "اصلاح مفاهیم،، ددې خبرې ګواهي کوي، چې ترجمه کونکی ددې په مطلب باندې نه دی پوه شوی، امیدلرم چې د مختصرې تبصرې نه وروسته به دتفصیلی تبصرې ضرورت نه وي، ددعا محتاج اوغوښتونکی. والسلام.

**محمدیوسف عفاالله عنه، ۱۴۱۵/۷/۲۰ھ**

## دویم لیک

جناب مخدوم ومکرم زیدت الطافهم!

السلام علیکم ورحمة الله وبرکاته!

ستاسو لیک راته څوورځې مخکې راورسېد، چې هغه کې د"اصلاحِ مفاهیم،، باره کې زما خیال معلومول غوښتل شوي و، خو ما ستاسو حکم دیوځو وجو له امله پوره نه شو کړای:

۱: زه په خپلو مشغلوکې دومره مصروف وم، چې دډاکه مې ځواب هم نه شوورکولای او بعضې سوالونه داسې وو چې دیوې مقالې موضوع وه، داخیال مې ووچې ددې مشغلونه راته فرصت په لاس راشي ، نوکتاب به وګورم، له هغه وروسته به خپل خیال ښکاره کړم، داسې کم وخت کې یوغټ کتاب لوستل هم مشکل و، اوچونکه ستاسو غوښتنه هم ډیره ضروري ده، په دې وجه باندې نورې مشغلې مې پرېښودلې، اوکتاب مې مطالعه کړ اودځواب لیکلوحالت راغی،

۲: زه داکابرینوپه کتابونوباندې نه ستړی کېږم، اونه دهغو په لوستلوباندې مړېږم، خو زموږ داوسنی محققینوداوسني انداز نه مې داسې ویره کیږي، چې ددې کتابونو یو څو صفحې کتل هم زمالـه پاره مجاهده وي، په دې وجه باندې مې کتاب لوستلوته زړه نه کیده.

۳: زما ټول عمرد ملحدینو اومارقینو سره په معرکوکې تیرشو، اوددې مې همیشه داسې ذوق وچې:

تیغ بران بهر هر زندیق باش     اے مسلمان! پیر وصدیق باش

خو دخپلو په جنګ کې له داخلیدو نه زه همیشه ځان ساتم، د"اصلاحِ مفاهیم،، باره کې هم دخپلې رایې ښکاره کولو نه په ویره کې وم،ځکه چې دې کتاب پخپله زموږدشیخ نورالله مرقده په حلقه کې تنازع جوړه کړې ده، زمامحترم بزرګ مولاناصوفي محمداقبال مهاجر مدني ددې تاید کونکی اوحامي دی، دهغه په حکم باندې داکتاب له عربي نه اردوته ترجمه شوی دی او دهغه په حکم باندې پاکستان کې چاپ شوی دی، بل طرف ته دحضرت شیخ نورالله مرقده دعقیدت مندوی‌وه غټه ډله دې کتاب په "چیني (بوره)کې زهر،، ګڼي، زما خـیال دادی چې زماحیثیت دې کې هیڅ هم نه دی، په دې وجه باندې دې معرکې نه ځان وساتم نوښه به وي، دشاعرمطابق

فقلت لمحرزلما التقینا     تجنب لایقطرک الزدحام

ددې نه مخکې دصوفي صاحب زيدمجده ددوستانو دطرف نه يوه رساله "اکابرکامسلک ومشرب،، چاپ شوې وه، اوبيا هماغه مضمونونه د"اسلامي ذوق،، نومې رسالې په شکل کې چاپ کړل شو، اومانه دهغو رسالوباره کې زمادخيال پوښتنه وشوه، خود "اياز! بقدر خويش به شناس، په شان زه چپ پاتې شوم، اودهغو دواړورسالوباره کې مې دڅه ليکلونه ځان وساته.

۴: دخاموشي اصل وجه داوه چې دې زمانه کې څوک دچا هم نه اوري، هرکس خپله رايه داسې پخه اومضبوطه وړاندې کوي، چې بس هم اوس اوس جبرائيل عليه السلام دالله تعالى حکم نازل کړ، کله چې په خپله رايه باندې دمضبوط اعتماد داحالت وي نودبل رايې ته څوک اهميت ورکوي؟ اختلاف کونکی که هرڅومره عالم وي، اوډيرپه خلوص باندې داختلاف وجه بيان کړي، هغه ته (الاماشاء الله) دنفس هوا اوکبرويل کيږي،داسې ماحول کې تنقيد اوداصلاح خيال ګټه نه کوي، البته زړونوکې دنفرت اوفتنې دزياتولوذريعه جوړيږي، په دې وجه باندې ماپه داسې کارونوکې دحضور صلى الله عليه وسلم نصيحت خپل کړی دی:

**بل ائتمروا بالمعروف وتناهوا عن المنكر، حتى اذارايت شحامطاعاوهوى متبعاذنياً موثرة، واعجاب كل ذى راى برايه، ورايت امرا لابدلک منه فعليک نفسک، ودع امرالعوام.**

(مشکوة ص۴۳۷)

ترجمه: دښو حکم کوئ اوډ بدو نه ځان ساتئ، تردې پورې کله چې ووينئ چې دحرص اونفس اطاعت اودخواهشاتو منل کيږياودنياوي ګټو ته ترجيح ورکول کيږي اوهريوکس خپل خيال باندې نازکوي، اوتاسوووينئ چې داسې کاردی، چې ددې نه پرته ګذاره نه کيږي، نوخپل فکرکوئ، اودعوامو قيصې پريږدئ!

بزرګانوکې داخبره مشهوروه چې خپل خيال هميشه صحيح ګڼئ، دې حضراتوبه خپل خيال به ناقص ګانه، اوهميشه به يې ددې انتظارکاو چې څوک دهغوی په خبره کې غلطي راوباسي اوهغوی ددې نه رجوع وکړ، حضرت مولاناسيدمحمد يوسف بنوري رحمه الله به فرمايل چې: حضرت مولاناسيدسليمان ندوی رحمه الله به دخپل جلالت اولوړې مرتبې سره سره فرمايل چې : ابتدايي دورکې د(حضرت حکيم الامت سره تعلق نه مخکې) مانه څه غلطی وشوې، زما زړه غوښتل چې ستاسو(حضرت بنوری رحمه الله) په شان حضرات زماکتابونه ولولي او زما غلطی ماته وښايي، نوزه به په خپل ژوند کې دهغو نه درجوع اعلان وکړم.

عارف بالله حضرت اقدس ډاکټرعبدالحی عارفي قدس سره به فرمایل چې: یوځل مولانا بنوري رحمه الله په "بینات"، کې یو مضمون ولیکه، بیاماسره ملاقات ته راغی، نوماهغه ته وویل چې: داکومه خبره چې تاسولیکلې ده، داستاسودشان خلاف ده، سمدستي یې وویل چې: غلطي وشوه، معاف مې کړئ، بیابه داسې نه کیږي، حضرت ډاکټرصاحب رحمه الله به ددې خبرې نقل کولوسره فرمایل چې: مولانابنوري رحمه الله لوړ سړی و، حضرت به دافقره بارباره اداکوله:

دا زموږ دهغو اکابرینو واقعات دي چې موږ په دې ګناهګارو سترګو باندې لیدلي دي، زموږ شیخ برکة العصر، قطب العالم مولانا محمد ذکریا مهاجرمدني قدس سره خوخاص اصول وو، چې ترڅوپورې به دهغه دلیکنې دوو محققو حضراتو تصدیق اوتصویب ونه کړ، هغه کتاب به نه چاپ کیده، له همدې نه قیاس کیدای شي چې زموږ دبزرګانوبې نفسي، اخلاص اود الله تعالی اودفنائیت به څه حدوو؟

خواوس دځپل خیال ښکاره کولو دومره غلبه ده چې څوک دچا اوریدوته بالکل تیارنه دي، اونه څوک دچامنې(الاماشاء الله) په دې وجه زه دځپلودوستانوپه مینځ کې متنازعه مسئلوباندې دځپلې رایې ښکاره کولونه ویریږم، چې لومړی خوزما دخیال هیڅ اهمیت نشته، او بیا زما دخیال په وجه باندې داصلاح امیدهم کم دی، بلکې که چیرې خیال دیوصاحب خلاف شي، نوپه زړونوکې دبغض اوکینې پیداکیدو ویره هم ده.

حیاة الصحابه (ج ۲ ص ۱۲۰) کې دحضرت ابوعبیده او دحضرت معاذ رضی الله عنهما یو لیک دحضرت عمر رضی الله عنه په نوم باندې نقل شوی دی، دهغه په اخرکې یې داهم لیکلي دي چې: موږ ته به ویل کیدل چې اخري زمانه کې به ددې امت داحال شي چې په ښکاره باندې به وروڼه وي اوپه پټه کې به دیوبل دښمنان وي، موږدالیک ستاسودهمدردې اوخیرخواهي له پاره لیکلی دی، دالله تعالی پناه! چې تاسوداپه کوم بل ځیزباندې محمول کړئ!

حضرت عمر رضی الله عنه ددې په ځواب کې فرمایلي وچې:

د اخري زمانې باره کې چې څه فرمایل شوي دي، نه تاسو دهغه په شان یئ، اونه دا هغه اخری زمانه ده، دابه هغه زمانه وي په کومه کې به چې رغبت اورهبت ښکاره شي، اود خلکو رغبت به دیوبل سره ددنیاوي کارونو له پاره وي، بې ښکه تاسوحضراتو چې څه لیکلي دي، هغه مودخیرخواهي اوهمدردې له پاره لیکلي دي اوماته ددې په وجه باندې هیڅ تکلیف نشته، مهرباني وکړئ ماته لیکل کوئ!

غرض داچې، دپورته بیان شویو وجوهاتوله امله زه ستاسود"اصلاح مفاهیم"، باره کې دځپل خیال ښکاره کولونه ویریدم، اوزړه مې هم داغوښتل چې هیڅ ونه لیکم، خوبیاراته خیال راغی چې تاسوبه دځواب انتظارکوئاوستاسو به دځواب دنه درسېدو شکایت وي، په دې وجه باندې یواځې دحکم پوره کولو له پاره لیکم، که نه ماته پته ده چې زه څه یم اوزمالیکل څه دی؟ دعا کوم چې زمادالیکل دفتنې دزیاتولوذریعه جوړه نه شي.

**اللهم انی اعوذبک من شر نفسی!** هغه رحيم اوكريم دې زما دليكلو د شرنه خپل بندګان محفوظ وساتي، او زما په غلطيو دې پرده واچوي، **انه رحيم ودود**.

د "اصلاح مفاهيم"، د سرسري لوستلونه چې ماته خبرې يادا ښت کړې دي، که چېرې هغو باندې تفصيل سره خبرې وکړل شي نو يو غټ کتاب ترې جوړيږي، په دې وجه باندې په مسئلو باندې د خبرو کولو په ځاى باندې ديو څو اصولي كارونه وړاندې کوم، **والله ولی التوفيق**

**اول:** د دې ليکونکي صاحب په سعودي کې اوسيږي، او هغه ماحول کې د داسې حضراتو اواز غالب دى، کوم چې په وړه وړه خبره باندې د کفرفتوا ورکوي، د توسل نه بالکل انکارکوي، د حضور ﷺ د مبارکې روضې د زيارت کولو په اراده باندې سفرکول هم صحيح نه ګڼي، د ليکونکو صاحب نظرهم د هغو حضراتو د تشدد پسندی د اصلاح باره کې دى او هغه داغواړي چې د دليلونو په ذريعه باندې د هغو حضراتو په خيالاتو کې اعتدال پيدا کړي، د هندوستان او پاکستان ماحول د ليکونکي حضرت په نظرکې نه دى، هغه ته د دې پته نشته چې د هندوستان او پاکستان عوام په څه څه بدعتونو او ګند ګيو کې مبتلا دي، په دې وجه باندې د جناب په نظرکې د عوامو اصلاح نه ده، دا فطري خبره ده چې د حضرت په کتاب کې د بزرګانو د اصلاح کوشش خو په نظرراځي، چې هم دا د هغه د کتاب موضوع ده، خو د عوامو د کم عقلي اصلاح کول د هغه په کتاب کې په نظر نه راځي، د دې په مقابله کې زمونږ د ديوبند د اکابرينو دواړو فرقو سره تعلق وي، د بزرګانو حضراتو د خشکۍ او شدت سره هم، او د عوامو د عاميانه خيالاتو سره هم، په دې وجه باندې زمونږ اکابرين د افراط او تفريط په مينځ کې اعتدال باندې قائم دي، او هغوى د يرښائسته او کاميابي سره د اعتدال داتله قائمه ساتلې ده.

درکفے جام شريعت درکفے سندان عشق
هر هو سناکے نه داند جام وسندان باختن

غرض داچې، په متنازعه مسئلو کې کوم اعتدال او توازن چې زمونږ اکابرينو کې قائم کړې دى، هغه ته زه "لسان الميزان"، وايم، له همدې ځاى نه معلوميږي چې د جناب مصنف دا کتاب زمونږ د اکابرينو د ذوق کتاب نه دى، بلکې د دې تله د بدعتيانو طرف ته ده، کومو حضراتو چې داګڼلې ده چې د مالکی صاحب رحمه الله دا کتاب زمونږ د اکابرينو ترجماني کوي، زما په خيال کې هغه حضرات خونه زمونږ د اکابرينو په مسلک باندې صحيح طورباندې پوه شوي دي او نه هغوى د مالکي صاحب رحمه الله کتاب غورسره کتلى دى.

**دويم:** کتاب باندې د ډيرو بزرګانو تقريظونه موجود دي، چې د هغو لوستلونه وروسته لوستونکي باندې رعب پريوځي، د دې بزرګانو د تقريظ او تصديق نه وروسته زما په شان کم علمه کس د اختلاف هيڅ ګنجائش نه پاتې کيږي، خو زما په خيال باندې کومو بزرګانو چې دې

کتاب باندې تقریظونه لیکلي دي، هغوی داکتاب مکمل طور باندې نه دې لوستی اونه دلیکونکي صاحب په مقصدباندې پوه شوي دي، یاخودې حضراتودکتاب لوستلو زحمت نه دې کړې او یا هغوی ته دغوراوفکرکولووخت نه دی پیداشوی، دلیکونکي صاحب سره د عقیدت اواحترام په وجه باندې یاداحترام وړ بزرګ تقریظ لیدوسره هغوی هم دکتاب د اعتماد باره کې وویل،داسې تقریظونه داعتمادکولووړ نه دي.
نن سبایواځې دلیکونکي سره دښه تعلقاتوپه وجه باندې د تقریظونو لیکلورواج عام دی، او زما په خیال درواج داصلاح قابل دی اودرواج پرېښودل پکاردي، ماته پخپله ددې ناخوښه تجربه شوې ده، زمادخپلو کتابونوباره کې داسې ذوق دی چې ماخپل کتاب باندې دتبرک له پاره یوبزرګ ته دیوڅوکلماتو لیکلوتکلیف نه دی ورکړی، اونه مې ددې فرمائش کړی دی، ځکه چې همیشه به مې داخیال وچې ددې اکابرینوپه قیمتي وخت کې دومره ګنجائش نه شي کیدای؟ چې زماپه شان خلکولیکل ولولي.اوخپل قیمتي وخت ضائع کړي، چیرته پرته دلوستلونه هغې باندې دتبرک الفاظ ونه لیکي: اودهغه نتیجه به داوي چې زماغلطي به دهغه بزرګانوپه سرشي، زمارساله "اختلاف امت اورصراط مستقیم،، کوم چې ټولو اکابرینو ډیر زیات خوښ کړ اودهندوستان اوپاکستان ډیرو چاپ کونکو اداروهغه د زرګونو په تعدادکې چاپ کړ، خوماهغه باندې چیرته دیوبزرګ تقریظ نه دی لیکلی، اوریدلي مودي چې زمونږشیخ برکة العصرنورالله مرقده په مجلس کې هم داکتاب ټول حرف په حرف بیان شو اوحضرت نورالله مرقدهغه اورېدلی دی، خوزماپه زړه کې چېرې هم داخیال نه دی پیداشوی چې په یوبزرګ باندې په دې باندې تقریظ ولیکم اوخپلې کوټه پیسې دهغو بزرګانودتقریظ په مهر باندې جیدې کړم(زمادوه کتابونوباندې حضرت بنوري رحمه الله مقدمه لیکلې وه، خودخواهش اوفرمائش نه پرته، ددې دتفصیل وخت نشته)
غرض داچې دکتاب لوستلونه پرته دتفریظ لیکلو رواج زماپه خیال باندې صحیح نه دی، درواج داصلاح قابل دی، اوزماپهٔ خیال باندې دجناب علوي.مالکي صاحب په کتاب **مفاهیم یحب ان تصحح**(عربي) باندې چې څومره تقریظات په نظرراځي، دادجناب مصنف په احترام کې دلوستلونه پرته لیکل شوي دي، یاچیرته داحترام دقابل شخصیت لیدوپه وجه باندې دهغه په تقلیدکې لیکل شوي دي، که زه چېرې دې.کتاب باره کې دخپل خیال اظهاروکړم اوهغه دتقریظ لیکونکیو حضراتودخیال اوتصدیق خلاف وي، نودهغو. بزرګانودادب خلاف دې ونه ګڼل شي، اونه دې دهغه اکابرینودعلم اوفضل خلاف وګڼل شي، ځکه چې دبزرګانو ارشاددی چې:

گاه باشدکودک نادان    به غلط برهدف زندتیرے

**دریم**: پورته مې عرض کړې دی چې دلیکونکي حضرت اصل مقصد دبزرګانو حضراتو د تشدد اصلاح کول دی، کوم چې دې مسئلو کې دهغوی په علاقه کې موجوددی او په کومو کې چې هغوی څه نرمي نه کوي،
جناب مصنف په خپل دې شدت کې معذور هم ګڼم، هغه لیکي:
موږ به هغه دخپل حسن ظن په وجه باندې معذور ګڼو. اوداُبه وایوچې دهغوی نیت خو صحیح دی، دامربالمعروف اونهی عن المنکرذمه داري ګڼلوسره هغو حضراتوداسې وکړل. خو موږبه وایوچې دهغو حضراتو نه یوه خبره پاتې شوې ده، چې امربالمعروف او نهی عن المنکرکې دحکمت اومصلحت اوښایسته طریقه اختیارول پکاردي.(اصلاح مفاهیم ص۴۹)
دا دوه اصول کوم چې مصنف دکتاب په شروع کې لیکلي دي، ډیر قیمتي اصول دي، بلکې داسې ویل پکاردي چې ددعوت د اصولوروح دي، یوداچې دخپلو مخالفینو. تنقید کونکو بلکې د کافرانوباره کې هم داصول قائم ساتل پکاردي، ځکه چې دتنقید کولو اصل مقصدکه چېرې اخلاص وي. اوهغه په رښتیاباندې دالله تعالی درضاله پاره وي، نونه یوازې داچې هغه به معذوروي، بلکې انشاء الله ماجور به هم وي.
**دویم** داچې دامربالمعروف اونهی عن المنکرپه شان دلوړې مرتبې کارکې هم دحکمت او مصلحت مطابق ترټولو دښې طریقې اختیارولوضرورت دی.

زما امیددی چې مصنف صاحب ددعوت دکومواصولوباره کې فرمایلي دي. هغه به پخپله هم دې باندې پابندي کوي، اودهغه داکتاب به ددعوت یوه عظیم الشانه ذریعه وي. اوهغه به دتنازعي مسئلولیکلو سره داسې ښه طریقه خپلوي چې دهغه خبره به ډیرښې طریقې سره دلوستونکو زړه ته کوزیږي، بې شکه فطري طورباندې به دازموږخواهش وي چې کومه خبره موږحق او صحیح ګڼو، نورخلک دې هم دهغې دحقانیت قایل شي، خوموږدخپلې خبرې نوروته په صحیح طریقه باندې درسولوپابندیو؛ دهغې په خلکو باندې دمنلوپابندنه یو، که موږپه ښائسته طریقې باندې خپله خبره خلکوته بیان کړه،نو موږ دخپل وفرضو نه بري شو، اوس که مخاطب دامني اوکه نه؟ دادهغه ذمه داری ده، اودهغه په اختیار کې ده.

ماته افسوس دی چې مصنف، کوم حضرات دحسن ظن په وجه باندې معذورګڼي، هغوی ته خطاب کولوکې ددعوت اودمصلحت اندازنه دی خپل کړی، بلکې دمناظرې او بحث مباحثې اندازیې اختیارکړی دی اوکه چېرې داخبره هم دې ځای پورې وه نوبیاهم دا منل کیدای شوه، خوافسوس چې مصنف صاحب په خپل لیک کې دغوسې حالت دومره ډیر کړی دی، چې ددې توقع بالکل نه شي کیدای، چې دهغه خبره به دمخاطب زړه ته پریوځي، مصنف صاحب یوه نکته هم داسې نه ده پریښودې چې هغې کې یې خپل مخاطب ته جاهل، غبي، کم عقل، کم فهمه، تنګ نظریاوبدفهمه په شان القاب نه وي ورکړي.

**مثلاً**: د "خالق اومخلوق دمقام په عنوان کې دې ذکرکولو سره چې الله تعالی حضور ﷺ ته ډیرزیات خصوصیات نصیب کړي وو، چې دهغو په وجه باندې حضور ﷺ د نورو حضراتو نه ممتاز و، مصنف صاحب لیکي:
"داکارونه، ډیروخلکو باندې، دهغوی دکم فهمي، تنګ نظري اوبدفهمي په وجه باندې مشکوک شول، هغوی ددې کارونو په قایل حضراتو باندې دکفراو دمسلمانی نه د بهر کیدو حکم وکړ. (اصلاح مفاهیم ص۵۷)
یوځای کې دمخالفینو دخیال ذکرکولو کې مصنف صاحب لیکي:
"دابنکاره جهالت دی. (اصلاح مفاهیم ص۲۵)
دترجمه کونکي داترجمه دعربي داصلي الفاظو مطابق نه ده، دعربي اصل الفاظ دادي، **وهذاجهل محض**، (اودیواځې جهالت دې، یا خالص جهالت دې)
یوبل ځای کې لیکي:
,,حالانکه حقیقت کې داجهالت اوتعنت دی. (مفاهیم عربی ص ۹۲)
غرض داچې کتاب کې ځای په ځای هم دا اندازاختیار شوی دی، اولیکونکي دخپل خیال سره اتفاق نه کونکي حضراتو باره کې دداسې قسمه الفاظو استعمالولو کې د تکلف نه کارنه دې اخستی، ښکاره خبره ده که چېرې دمصنف صاحب په نظرکې په رښتیا باندې ددې طبقې اصلاح وي، نو دهغوی اصلاح په دې انداز باندې مشکله ده، دغالب دقول مطابق:
*نکالا چاهتا هے کام طعنوں سے تو اے غالب :: ترے بے مهر کهنے پر بهلا وه مهربان کیوں هو؟*
زماخیال دې چې دسعودي دکوموتشددپسندو حضراتو د اصلاح له پاره مصنف صاحب داليکل کړي دي، هغوی به ددې کتاب په لوستلو باندې اصلاح ونه مومي، بلکې ددې الفاظو اوخطاباتو لوستلونه وروسته به دهغوی په خیالاتوکې به نورهم شدت پیداشي، ددې کتاب خلاف به دځوابي کتابونواورسالویوه نوې سلسله شروع شي، بل طرف ته به څه عربان حضرات دمصنف په حق کې ودریږیاوقلمي جهادبه کوي، داکتاب به دهغو حضراتو د اصلاح په ځای باندې دیوې نوې معرکې له پاره لاره هواره کړي.
داخوبه دسعودي په ماحول کې ددې کتاب اثرات وي، ترکومه حده چې زموږ دهندوستان اوپاکستان تعلق دی، ماپورته ذکرکړي دی چې دې مسئلوباره کې دړې فرقې دمخکې نه موجودې دي:
یوډله هم ددې بزرګانو حضراتو ده، دکوموذکرچې پورته شوی دی، هغوی باندې به خوهم هغه اثروي کوم مې چې اوس ذکر کړ.
دویمه ډله زموږ د دیوبند د اکابرینو ده، ما مخکې ویلي دي چې ددې کتاب زموږ د اکابرینو د ذوق سره هیڅ تعلق نشته، دیوبندي حلقه کې به داکتاب انتشارپیداکوي، څه

حضرات به ددې کتاب په تایید او حمایت کې دیوبند د اکابرینو مسلک ددې کتاب مطابق کول غواړي. او څه حضرات به ددې نه دبرات اعلان وکړي، د اهل حق په ډله کې به انتشار او خفګان پیدا شي.

خو دریمه ډله دبریلوي حضراتوده، هغوی به دخپلې عقیدې په تایید او حمایت کې اوزمونږ داکابرینو دتجهیل اوتحمیق له پاره ددې کتاب حوالې ورکوي، اوکتاب باندې دلیکل شوېو تقریظاتو په وجه باندې به ددیوبند په حلقه باندې الزام لګولوکې ښه اساني پیداشي، کاش! چې دچاپ کولونه مخکې دې باره کې مانه مشوره اخستل شوې وای، نوزمادخیال مطابق ددې چاپ کیدل به ستاسو طرف ته نه وشوي.

**څلورم:** څنګه چې دهریو شیخ دنسبت یو خاص رنګ وي، چې دهغه شیخ په اکثره مریدانو کې ښکاري، مثلاً: د رائې پوري حضراتو د نسبت رنګ په هغوی باندې دومره ښکاره وي چې انسان دلیرې نه لیدو سره هغوی پیژندای شي چې دحضرات د رائې پوري سلسلې سره تعلق ساتي، همدارنګه دحکیم الامت تهانوي قدس سره په حلقه باندې دحضرت رحمه الله دنسبت رنګ دومره غالب دې چې یو بصیرت لرونکی انسان اساني سره پیژندګلوي کولای شي چې دې حلقې باندې دحضرت رحمه الله دنسبت رنګ غالب دی، وعلی هذا، غرض داچې څنګه چې د هریو شیخ دنسبت رنګ وي، همدارنګه دهریو لیکونکي هم خپل اندازوي، کوم چې دهغه دعقیدت په ډلې باندې خپل اثرکوي، دمودودي صاحب دلیکنو هم یو خاص رنګ دی، د ډاکټراسرارصاحب دلیکنوهم یوخپل خاص رنګ دی او داسې نور...

جناب علوي صاحب هم دې کتاب "مفاهیم،، کې یو خاص رنګ ښودلی دی، دکوم طرف چې ماپورته اشاره کړې ده، یعنې دهغه دخیال سره اختلاف ساتونکو حضراتو کم عقل، کم فهم، تنګ نظر، جاهل اوبدفهم وغیره ګڼل، اوس چې کوم حضرات دجناب مالکی صاحب رحمه الله سره عقیدت لري، هغوی به هم دغه رنګ خپلوي، اوهم دغه رنګ به هغوی باندې غالب شي، ددې نتیجه به داشي چې جناب مصنف سره دلږشان اختلاف کونکی به هم تنګ نظري او جهالت ګڼل کیږي،، یا دده داختلاف وجه به ضد او عناداومقابله ګڼل کیږي، ښکاره خبره ده چې کوموحضراتوباندې دارنګ غالب وي، هغوی دنوروخلکوخبرې صبر او فکر سره نه اوري اونه دمسئلې په دلیلونوباندې غورکوي اونه به دهغوی له پاره زمونږ د اکابرینوحوالې ګټه ورې وي، ځکه چې کله دهغو حضراتوپه زړونوکې دعقیدت په طور باندې دې خبرې ځای پیداکړي چې یواځې جناب محمدعلوي مالکی صاحب رحمه الله عقل من دی، هماغه عالم اوخوش اخلاقه دی، اوهماغه فیصله کونکی اوانصاف کونکی دی، نو دهغه په مقابله کې دنورو خلکو څه حیثیت دی؟

دا يو داسې حالت دی چې د هغه تصور کولو سره هم انسان پريشانه شي، چې د جناب علوي صاحب عقيدت مندو سره د صلحې او صفايي څنګه صورت اختيار کړل شي؟ او د هغوی په زړه کې څنګه ځای جوړ کړل شي؟ والله المستعان ولاحول ولاقوة الابالله!

او دې پريشاني هغه وخت په دوه چنده باندې شي، کله چې وينم چې زموږ د شيخ نورالله مرقده د ډلې خلک، د جناب مالکي رحمه الله عقيدت کې ګرفتار شوي دي او د خپلو اکابرينو مسلک د جناب د علوي رحمه الله په نظرياتو کې داخلوي.

فإلى الله المشتكى! کاش! الله تعالى موږ ته هم د تواضع او فنائيت کوم چې زموږ د شيخ نورالله مرقده خاص رنګ و، د هغه څه برخه نصيب کړ]، نو په خپلو کې د نفرت او انتشار دا منحوس سوري به زموږ نه ختم شي.

**پنځم:** دې ځای پورې چې ما څه ليکلی دي، هغه په دې وجه باندې دي چې ما دا ګڼل چې جناب شيخ محمد علوي مالکی صاحب د ښې عقيدې والا عالم دی او د هغوی په نزد باندې يو اځې د تشدد پسندو خلکو اصلاح کول دي، خو په "چارحق،، کې د حضرت مولانا قاضي مظهرحسين مدظله العالی بريلوي د ماهنامه رسالې "جهان رضا، لاهور،، په حواله باندې يو عجيبه خبره ښکاره شوه، چې جناب مصنف محمد علوي مالکي په حقيقت کې د بريلوي عقيده لرونکی او پخواني بريلوي جناب مولانا احمد رضاخان مرحوم خليفه دی، او د جناب علوي د دې بريلوي سره د ومره عقيدت دی چې علوي صاحب د هغه باره کې فرمايي:

**نحن نعرف تصنفاته وتاليفاته فحبه علامة السنة، وبغضة علامة البدعة.**

ترجمه: موږ ته د امام رضا د هغو کتابونو په وجه باندې پته لګيږي، د هغو سره مينه ساتل د سنتو نښه، او بغض ساتل د بدعت نښه ده.

د دې ليکلو نه وروسته د حضرت مولانا قاضی مظهرحسين مدظله د ټول مضمون فوټوسټېټ د ماهنامه "چارحق،،نه نقل کيږي:

د حضرت قاضی صاحب مدظله العالی د دې انکشاف نه وروسته د غور او فکرانداز بالکل بدل شي، او ښکاره طور باندې په نظر راځی چې:

۱: "اصلاح مفاهيم،، په حقيقت کې د بريلوي نظريې ديو صاحب جناب مولانا احمد رضاخان بريلوي مرحوم ديو عقيدت مند کتاب دی، کوم چې د بريلوي عقيدې د تبليغ له پاره ليکل شوی دی

۲: د دې کتاب مقصد يو اځې د بزرګانو د تشدد اصلاح کول نه دي، (څنګه چې ما پورته د حسن ظن په وجه باندې بيان کړي و) بلکې د دې اصل مقصد د ديوبندي حضراتو په مقابله کې د بريلوي حضراتو حمايت کول دی.

۳: دجاهل، غبي، کم فهم، بدفهم اومتعنت وغيره الفاظو دتکرار اصل مقصد د ديوبند دټولو اکابرينو (حضرت قطب العالم مولانا رشيد احمد ګنګوهي نه زموږ دشيخ برکة العصر مولانا محمد زکريا مهاجرمدني پورې) تجهيل اوتحميق دی.
۴: مصنف صاحب چې دديوبند دحضراتو کوم تقريظات راجمع کړي دي، ددې اصل مقصد هم دا ښکاري چې د تقريظاتو داسې التزام په حقيقت کې د ديوبند د اکابرينو رحمهم الله خلاف د ديوبند د حضراتو خپله فتوا اخستل دي، چې ټول تقريظ ليکونکي هم خپلو اسلافوته جاهل او ناپوهه ويلوسره اتفاق وکړي.
۵: دبريلوي حضراتوخيالونه دسعودي دمشايخوباره کې ټولوته معلوم دي، خوجناب مالکي داحتياط په وجه باندې دشيخ الاسلام حافظ ابن تيميه رحمه الله اوشيخ محمدبن عبدالوهاب نجدی رحمه الله نوم ډيرپه احترام باندې اخستی دی، اوځای په ځای باندې يې خپل کتاب کې دهغوی حوالې هم ورکړي دي.
يوداسې کس چې هغه دمولانااحمدرضاخان بريلوي مينه دسنت اودهغه مخالفت دبدعت نښه ګڼي، دهغه نه دسعودي داکابرينوتعريف کول څنګه عجيبه شان ښکاري، خوداکيدای شي دهغه مجبوري وي، چې ددې نه پرته دسعودي په ماحول کې ددې کتاب چاپ کيدل به مشکل و.
۶: زمامحترم بزرګ جناب صوفي اقبال صاحب زيدمجده، اودهغه ملګري کوم چې دجناب مصنف علوي مالکي صاحب دکتاب ډير زيات خوښونکي دي، اوددې په چاپ کولوکې ډير مخکې دي، هغوی ته به هم زماپه شان دمصنف صاحب سره حسن ظن شوی وي، اودا خيال به يې و چې دابزرګ (کوم کې چې ډيرنسبتونه راجمع شوي دی) دسلفي تشدد په مقابله کې اکبرجهادکوي، په دې وجه باندې ددوی مددکول واجب دي، دې حضراتوته به دجناب مصنف اصل حقيقت نه وي معلوم، ځکه چې ددې بزرګانوارشاددی، چې:

خبث باطن نه ګردد سالها معلوم!

که چيرې داروايت صحيح وي، چې جناب صوفي صاحب زيدمجده، دجناب علوي مالکي صاحب مريد جوړ شوی دی، نو دا هم دهغه بې دخبرې په وجه اوحقيقت ته دنه رسيدوپه وجه باندې دی، زماامېددی چې زر يا څه وخت وروسته به هغوی ته دحقيقت پته ولګيږي، نوداحضرات به خپل خيال باندې نظرثانی وکړي.
۷: دشيخ علوي مالکی صاحب د بريليانو سره تعلق لرل ښکاره شوي دي، نو دهغه په کتاب باندې د ديوبنديانو او بريليانو داتحاد او مفاهمت دعوت ورکول، په حقيقت کې د ديوبنديانو حضراتو د بريليانو حق کيدل منل دي، او دا خبره هم د اعجوبې نه څه کمه نه ده. چې دا ديوطرف دعوت د ديوبند د اکابرينو منتسبينو ته ورکول کيږي، د مولانا احمد رضاخان مرحوم دډلې يوکس هم دې دعوت کې ښکاره نه دی، نورو الفاظوکې داويل

کیدای شي چې دا دیوبندیانو ته دبریلوي کیدودعوت دی، اوداچې زموږ اکابرین کوم چې د بدعت دطوفانونو اوسه پورې مقابله کوي،دامقابله ختمه کړل شي اوعوام په بدعاتوکې مبتلاکیدو ته پرېښودل شي. **ولا فعل الله ذالک.**

ما عاجز په بیړه یو څو نکات عرض کړل، که زړه مو وغواړي نو قبول یې کړئ،امیدلرم چې ستاسو طبیعت به صحیح وي.

**والسلام! محمد یوسف عفاالله عنه**

## دریم لیک

جناب حضرت اقدس مولانامحمدیوسف لدهیانوي صاحب مدظله، الله تعالی دې ستاسو په ژوند کې برکت واچوي!

السلام علیکم ورحمة الله وبرکاته

عرض دادی چې زه دلیک ډیرخفګان سره لیکم، چې دډیروخت نه دمولاناعزیزالرحمن صاحب دامت برکاتهم مریدیم، اوحضرت سره مې مینه ده. دهغوی باره کې مې زړه صفادی، خو د"اصلاح مفاهیم،، کتاب دتاییدپه وجه باندې یوعالم وایي، چې اوس دهغه عقیده صحیح نه ده، یعنې ستابیعت صحیح نه دی، حضرت چې ماته کوم معمولات ښودلي دي، هغو باندې عمل کوم،تاسوهم هغه سلسلې سره تعلق ساتئ، په دې وجه باندې عرض کوم چې ماته څه کول پکاردي؟ ماته چې کومه لار اختیارول پکاردي،هغه عرض کړئ، ځکه چې تاسو ته هم دحضرت اقدس شیخ الحدیث رحمه الله نه دخلافت دولت نصیب شوی دی، په دې وجه باندې راته صحیح مشوره راکړئ، مهرباني.

ستاسو بزرګانو عقیدت مند د الله تعالی یوبنده.

**نوټ**: داحضرات دتبلیغي جماعت خلاف هم ذهنونه جوړوي، په دې وجه باندې ماته سخت تکلیف رسیږي.

**جواب:** محترم ومکرم.... السلام علیکم ورحمة الله وبرکاته!

حضرت مولانا عزیزالرحمن مدظله سره زماهم دنیازمندي تعلق دی، هغه زماخواجه صاحب دی اودوخت ډیرزیات افضل اوبهترسړی دی، خو د"اصلاح مفاهیم،، په مضمونونوکې ورسره زما اتفاق نشته، اودا زموږ داکابرینوحضرت قطب العالم ګنګوهي نورالله مرقده نه تر شیخ برکة العصرقطب العالم قدس بالکل خلاف دی، مادکتاب چاپ کونکي مولانا احمد عبدالرحمن صدیقی زیدلطفه، په اصرار باندې دکتاب باره کې خپل خیال دهغه په نوم لیک کې ښکاره کړی دی.

دکتاب مصنف جناب علوي مالكي صاحب په حقيقت كې دبريليانو عقيدې سره تعلق ساتي، اوريدلي مودي چې صوفي محمد اقبال صاحب زيد مجده، دهغه سره بيعت كړى دى، په دې وجه باندې دهغه دکتاب اشاعت كوي، والله اعلم!

دارو ايت دكوم حد پورې صحيح دى، جناب مولانا عزيزالرحمن صاحب دصوفي صاحب سره ډيرزيات اخلاص لري، په دې وجه باندې هغه هم دخپلو ملگرو په تاييدكې مصروف شو، اوددې تحريک نوم يې "ديوبندي بريلوي اتحادكى مخلصانه كوشش،، كيښود، حالانكه زموږ داكابرينو له طرف نه چېرې هم افتراق نه وشوى، چې هغه ته داتحاددعوت وركړل شي، دكومو حضراتو (بريليانو) له طرف نه چې افتراق شوى و، هغوى ته داتحاددعوت اوتلقين وركول پكاردي.

په هرحال زما په خيال كې دابزرگان كوم چې د"اصلاح مفاهيم" په بنيادباندې د"ديوبندي بريلوي اتحاد،، ددعوت له پاره پورته شوي دي،دابزرگان په خپل تحريک كې مخلص دي، خو دهغوى دا اخلاص ديو څو وجوهاتو له امله صحيح نه دى. والعلم عندالله!

**لومړى:** داچې حضرت شيخ نورالله مرقده په خدمت كې ډيروخت پاتې كيدو، اودخلافت او اجازه دخلعت ملاويدونه وروسته دعلوي مالكى سره دعقيدت اوبيعت درشتې دقائمولو څه معنا ده؟ دچا طرف ته كتل هم نه وپكار، دادحضرت شيخ نورالله مرقده سره دتعلق سره بې وفايي ده.

**دويم:** داحضرات دجناب مالكي صاحب په حقيقت اودهغه په نظرياتو باندې صحيح طور باندې نه دى پوه شوياونه داچې ددې صاحب دشخصيت جوړيدل دچاسره شوي دي؟ كه دې حضراتوته پته واى چې داحضرت په اصل كې دجناب مولانااحمدرضاخان خانواده باندې ځان قربانوي، نوزمايقين دى چې داحضرات به دهغه په عقيدت مندوكې نه داخليدل او دهغه دنظرياتو په خورولوكې به يې خپل صلاحيتونه نه خرابول.

**دريم:** د"اصلاح مفاهيم، په ذريعه باندې دې حضراتو ددیوبنديانو داصلاح كارشروع كړى دى، ددې مطلب داشوچې ددې دواړوفريقو په مينځ كې چې داختلاف كوم ميدان تقريباً د پنځويشتوكالو نه شروع ده، هغه كې دديوبنداكابرينوغلطي وه، اوس داحضرات غواړي چې دديوبنداكابرينوته دهغوى دغلطي احساس وشي اوددې غلطي په اصلاح كولوباندې راضي شي، بل طرف ته بريلوي حضراتو داصلاح كوشش دنوم ترحدپورې هم نشته، لكه چې ټول قصور د ديوبند داكابرينووي، اهل بدعت په خپل كارونوكې بالكل معصوم اوپه حق وي، بريلوي حضرات داخپله كاميابي گڼي، اوپه رسالوكې ددې په ښكاره باندې اعلان كوي، كه غور وكړل شي چې داصلاح داديوطرف ټريفک، كه هرڅومره داخلاص په جذبه وي، دكوم حدپورې ددې نتيجې راوځي؟

**څلورم:** دا صاغرو کار د اکابرو تقليد او اتباع کول او د هغوی په نقش قدم چليدل دي، د هغوی اصلاح کول نه، زه د خپلو اکابرينو يو کمزوری نوم اخستونکی يم. او خپل اکابرين د قوت حامل ګڼم، نور خلک چې د کلونو محنت نه وروسته په کومه نيتجه رسيدلي دي، زما اکابرين د خپل خپل فراست او قوت قدسيه په وجه باندې په لومړۍ ورځ هغې نتيجې ته رسيدلي دي، خود "اصلاح مفاهيم، د تحريک اصل مقصد دا دی چې زمونږ اکابرينو غلطي کړې وه، اوس دې اصاغرو ته پکار دي چې د خپلو مشرانو د غلطي اصلاح وکړي.

**انا لله وانا اليه راجعون!**

**پنځم:** دې حضراتو خودا وليدل که چېرې ديوبنديان، د بدعاتو په رد کې خپل اصول لږشان نرم کړي، نو دوا ړو فرقو کې اتحاد کيدای شي، خو د دې حضراتو نظر دې طرف ته نه دی تللی، چې بيا به د دين د تجديد او په بدعاتو باندې درد فرض څوک اداکوي؟ او د سنتو د وسلې سره به د دين حفاظت څوک کوي؟ بيا خو به عرس، قوالي او نور داسې قسمه څيزونه د دين په بازار کې پاتې شي. **ولا فعل الله ذالک.**

**شپږم:** د علوي مالکی د نسبت اثر دی چې دا حضرات په ښکاره يا پټه باندې د تبليغ مخالفت کوي او د خلکو د دې "نا روغی" ، نه د بيچ کولو له پاره فکرمن دي، حالانکه دوی ته د دې علم پکار دی چې زمونږ شيخ نورالله مرقده د تبليغ يوه اهمه ستن وها و اهل تبليغ د حضرت شيخ نورالله مرقده، کتابونه او د هغوی تعليمات خپلو لو سره هغه خپروي، که چېرې د علوي مالکي صاحب په نسبت باندې د حضرت شيخ نورالله مرقده رنګ غالب وي نو د دې حضراتو نه به زيات د تبليغ حمايت کونکي څوک نه وو.

په هر حال زه دا ګڼم چې دا حضرات په خپل ځای باندې مخلص دي، خو د دې تحريک د دوی د نظرنه ډير څيزونه پټ کړي دي، او زه اوس هم دا اميدلرم چې اوس يا څه وخت وروسته به دوی ته د خپلې غلطي احساس وشي.

تاسو له پاره زما خطا کار دا مشوره ده چې تاسو د جناب مولانا عزيزالرحمن صاحب په بيعت کې شامل او سئ، او د هغه په ښودل شويو معمولاتو باندې پوره پابندي سره عمل کوئ، خو د علوي مالکي صاحب رنګ مه قبلوئ، بلکې د خپلو اکابرينو په ذوق او مشرب باندې عمل کوئ، که چېرې مولانا صاحب تاسو پخپله باندې د خپل بيعت نه خارج کړي، نو چرته بل بزرګ سره تعلق قائم کړئ، او د هغه نه وروسته هم د مولانا صاحب په حق کې چېرې هم دوري نه وره بې ادبي مه کوئ!

د ارادې نه پرته ځواب اوږد شو، تاسو ته يې په اورولو باندې معافي غواړم، او که چېرې يو لفظ ستاسو يا ستاسو د شيخ د طبيعت خلاف وي نو هغه باندې هم معافي غواړم. والسلام.

محمد يوسف عفا الله عنه ١٤١٥/١٢/٢٥هـ

## د ډارون نظریې ارتقا او اسلام

په تیرو ورځو کې دلته یو ډاکټرصاحب چې د تنظیم اسلامي مشرهم دی امریکې ته راغی او په خپلو خطباتو کې یې وویل چې:

دحضرت ادم علیه السلام د جسماني تخلیق په باره کې چې حضور ﷺ څه فرمایلي دي (کوم چې په صحیح حدیثونو کې محفوظ دي)هغه صحیح نه دي، ځکه چې دا د حضور ﷺ میدان نه و. له دي وجې نه په دې مسئله کې دامت له پاره د حضرت محمد ﷺ دا ارشادات د التفات ورنه دي.بلکې فلاسفه طبیعیین(ډارون واتباعه) چې کومه نظریه وړاندې کړې ده هغه صحیح ده . په دې سلسله کښو حضراتو موږ ته خطونه راولیږل ،په دې کې یو جامع خط دلوستونکو په خدمت کې وړاندې کوم. (سعید احمد بلال پوري)

**سوال:** ددین علماء او مفتیان په دې مسئله کې چې یو کس دا عقیده لري چې حضرت ادم علیه السلام دروح اچولو نه مخکې ژوندی و. خود حیوان په شکل کې و او په حیواني شکل کې هغه هم دجماداتو او نباتاتو د مرحلونه تیرشوی دی" **والله انبتکم من الارض نباتا**"(الاية)د دې ایت کریمه نه هغه کس د خپلې عقیدې له پاره استدلال کوي.حضرت ادم علیه السلام کې د روح اچولو نه مخکې کیفیت هغه کس ،حیوان ادم گرځوي

داکس د حضرت ادم علیه السلام د جسماني تخلیق په باره هم د دغه مرحلونه تیریدو او د حیوان شکل ته د رسید و عقیده لري. د کومو مرحلو تذکره چې ډارون په خپله نظر ارتقا .کې کړې ده.

دحضرت ادم علیه السلام د تخلیق په باره کې د جناب رسول اکرم ﷺ صریح،صحیح او واضح حدیثونه مبارک داکس هیڅ د اعتبار قابل نه گڼي. دهغه په نزد یوا ځې هغه حدیثونه قابل اتباع دي چې د علم الاحکام. یا حلال او حرام په باره کې وي. د علم الحقائق او حکمت په باره کې د حدیثونو خبره د ده په نزد بله ده

داکس وایي چې څوک داگڼي چې د حضرت ادم علیه السلام له خاورې نه قواره جوړه شوې وه او بیا په دې بې روحه قواره کې ساه واچول شوه، نو داکفرخونه دی خو ناپوهي ضرور ده.

داکس د حضرت ادم علیه السلام د جسماني تخلیق په باره کې تفصیل او تحقیق د نیاوي امور گڼي، بیاد حضور نبي کریم ﷺ اود صحابه وو کرامو (رضوان الله اجمعین) د کجورو پیوندکاري په باب: "**أنتم أعلم بأمور دنیاکم**"والا حدیث د خپل دلیل په طور وړاندې کوي.چې د حضرت ادم علیه السلام د جسماني تخلیق په باره کې که حضور ﷺ څه واضح موقف نه دی اختیار کړی، نو دا هیڅ خبره نه ده،دا معامله د دنیاوي امورو نه ده،کومه چې د حضور ﷺ د میدان کار نه دی.

داکس ذکرشوې ټولې خبرې د ممبر دپاسه د جمعې په خطبه کې د خلکو په وړاندې بیانوي، ددې کس د ذکرشویو خبرو په رڼاکې د څواب غوښتنې امور دا دي:

❁د حضرت ادم علیه السلام د جسماني تخليق متعلق او حديثونو په باره کې ددې کس رويه د گستاخي او گمراهي نه ده؟
❁حضرت ادم علیه السلام ته حيوان ادم ويل گستاخي نه ده؟
❁ايا دا کس د تفسير بالرايې مرتکب نه شو؟
❁د حضور صلی الله علیه وسلم او اسلاف امت عقيده د حضرت ادم علیه السلام د خاورې د کالبوت جوړلو ده او که نه؟
❁ددې کس بيعت ياله ده سره څه قسم تعلق ستاسو په نزد څنگه ده؟ د کتاب او سنت په رڼا کې په تفصيلاتو موخبر کړئ او ثواب دارين حاصل کړئ.

**جواب:** تاسو چې ددې صاحب کوم افکار او خيالات نقل کړي دي مناسب به داوي چې اول ددې تنقيدي جائزه واخيستل شي او بيا وروسته ستاسو د سوالونو ځوابونه درکړل شي.
ستاسو سوال نه معلومېږي چې داخبره ددې صاحب په علم کې ده چې حضور صلی الله علیه وسلم د حضرت ادم علیه السلام په باره کې څه تصريحات ارشادات کړي دي، کوم چې دا صاحب امور دنيا گرځولو سره د توجه او التفات وړ نه گڼي، له دې وجې نه دلته په دوو خبرو باندې فکر کول ضروري دي.
۱: حضور صلی الله علیه وسلم د حضرت ادم علیه السلام د جسماني جوړښت په باره کې امت ته څه ويلي دي؟
۲: ايا د حضور صلی الله علیه وسلم دا ارشادات د امت له پاره د توجه وړ نه دي؟

## [لومړی امر]

## دادم علیه السلام د تخليق په باره کې نبوي تصريحات

حضور صلی الله علیه وسلم د حضرت ادم علیه السلام د تخليق جسماني د کيفيت او د هغه د تخليق د مرحلو په سلسله کې چې کوم تصريحات فرمايلي دي، د هغه خلاصه داده چې الله تعالى کله د حضرت ادم علیه السلام د تخليق اراده وکړه، نو د ټولې ځمکې نه يې د خاورې خلاصه واخستله، بيا يې په هغه کې او به گډې کړې او خټه يې ترې جوړه کړله، بيا يې د څه وخته پورې هغه همداسې پرېښودله، تر دې پورې چې هغه خټه توره شوه او هغې بوی وکړ او هغه متېنه (مئينه خټه) په څير شوه، بيا له دې خټې نه يې د حضرت ادم علیه السلام شپېته لاسه اوږد قالب جوړ کړ، بيا دا قالب څه وخته پورې پروت و، تر دې پورې چې وچ شو او کړنگا په کې پيدا شوه او هغه به د کدورې په څير ټنگا کوله، په دې دوران کې به شيطان له دې قالب نه گېرچاپېره گرځېده او هغه به يې ټنگاو اوکوت او ويل به يې چې: ددې مخلوق په خيټه کې خلاده، له دې وجې نه به په خپل ځان باندې قابو نه شي کولی.
بيا په دې بې روحه قالب کې د روح پوک ووهل شو او له هغه ژوندی انسان جوړ شو، کله چې د هغه په نيم پورتني بدن کې روح داخل شو، نو هغه ته پرنجی ورغی او د هغه د ژبې مبارکې نه چې کومه اولني خبره ووتله هغه الحمدلله وه، چې په دې باندې الله تعالى په ځواب کې وفرمايل: ،،يرحمک ربک،، (ستا رب دې په تا رحم وکړي) حضرت ادم علیه السلام چې په کوم وخت

کې پیدا شو، هغه وخت کې دهغه قدشپیته لاسه اوږد و اودهغه ټول جسماني اندامونه ظاهري اوباطني قوي کامل اومکمل و. هغه دغه‌بدا دهغو مرحلونه تیر نه شو چې په هغو باندې دادم اولاد تیریدوسره دغه‌بدا خپل اخري مدارجو پورې رسیږي.

داخلاصه ده دحضورﷺ دګڼو ویناوو چې له هغوی نه دحضرت ادم علیه السلام دتخلیق په باره کې نقل شوي دي،زه ددې ګڼو حدیثونونه دلته یواځې په څلوروباندې اکتفاکول غواړم:

## اول حدیث:

**عن أبي هريرة رضي الله عنه قال : قال رسول الله صلى الله عليه وسلم :خلق الله عزوجل آدم على صورته،طوله ستون ذراعاً،فلما خلقه قال:إذهب فسلّم على اولئک النفر!وهم نفرمن الملئکة جلوس،فاستمع مايحيونک به؟ فإنها تحيتک وتحية ذريتک،قال:فذهب فقال:السلام عليكم! فقالو:السلام عليک ورحمة الله! قال:فزادوه"ورحمة الله"قال:فكل من يدخل الجنة على صورة ادم وطوله ستون ذراعاً،فلم يزل الخلق ينقص بعده حتى الآن. (صحيح بخاري ج:٢ ص:٩١٩،صحيح مسلم ج:٢ ص:٣٨٠،مسنداحمد ج:٢ ص:٢٤٤)**

ترجمه: حضرت ابوهریره رضي الله عنه دحضورﷺ نه روایت کوي چې:الله تعالی حضرت ادم علیه السلام په داسې صورت باندې پیداکړی دی، چې دهغه قدشپیته لاسه و ،کله چې هغه پیدا شو،نوهغه ته یې وفرمایل چې : لاړشه،دې ډلې ته سلام وکړه، دلته دفرښتو یوه ډله ناسته وه. واوره،چې دوی تاته څه ځواب درکوي؟ ځکه چې هم دغه به ستااوستا داولاد سلام وي، حضرت ادم علیه السلام ولاړ اوفرښتوته یې،السلام علیکم، ،وویل.هغوی ورته په ځواب کې وویل:وعلیک السلام ورحمة الله، ،فرښتوپه ځواب کې د "ورحمة الله" لفظ اضافه کړ. حضورﷺ وفرمایل چې: څومره کسان چې جنت ته داخلیږي هغوی به دحضرت ادم علیه السلام په صورت باندې وي اودهغوی قدبه شپیته لاسه وي. بیاوروسته دانسانانوقدونه واړه کیدل چې ددې سلسله تراوسه پورې جاري ده.

حافظ الدنیاابن حجرعسقلاني رحمه الله،دحضورﷺ وینا:الله تعالی حضرت ادم علیه السلام دهغه په صورت باندې پیداکړ،په شرح کې لیکي:

**والمعنى أن الله تعالى أوجده على الهيئة التى خلقه عليها لم ينتقل فى النشأة أحوالا،ولاتردد فى الأرحام أطوارا كذريته،بل خلقه الله رجلا كاملا سويا من اول مانفخ فيه الروح.ثم عقب ذلك لقوله،وطوله ستون ذراعاً.(فتح البارى ج:٦ ص:٣٦٦،كتاب الانبياء باب خلک آدم وذريته)**

ترجمه : ددې حدیث مطلب دادی چې الله تعالی حضرت ادم علیه السلام په کوم شکل اوهیئت باندې پیدا کړ هغه ته یې هم په هغه هیئت اوشکل باندې وجود ورکړ. هغه دخپل اولادپه شان د

پیدائش دمختلفو مرحلونه تیرشو ، نه دمورپه خېټه کې دېو حالت نه بل حالت ته منتقل شو. بلکې الله تعالی دهغه تخلیق داسې وکړ،چې دنفخ روح په وخت کې هغه کامل سړی و اودهغه ټول جسماني طاقتونه دکمال په درجه کې و. له دې وجې نه یې وفرمایل چې دغه وخت کې دهغه قد شپیته لاسه و.

ددې حدیث هم دغه تشریح ډېرعلماووکړې ده.

## دویم حدیث

"عن أبي موسى الأشعري رضي الله عنه قال: قال رسول الله صلى الله عليه وسلم :إن الله تعالى خلق آدم من قبضة قبضها من جميع الأرض فجاء بنو آدم على قدر الأرض ،منهم الأبيض والأحمر والأسود و بين ذلك ,والسهل والحزن والخبيث والطيب. (ترمذي ج:۲ ص:۱۲۰،ابوداود ج:۲ ص:۶۴۴، مسند احمد ج:۴ ص:۴۰۰، مستدرک حاکم ج:۲ ص:۲۶۱،صحيح ابن حبان،الاحسان،ج:۹ ص:۱۱)

ترجمه: دحضرت ابوموسی اشعري رضي الله عنه نه روایت دی چې:رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمایل چې: بې شکه الله تعالی حضرت ادم علیه السلام دخاورې دموټې نه پیداکړ. کومه یې چې دټولې ځمکې نه اخستې وه اودادم اولاد په ځمکه باندې داندازې مطابق ظاهرشول،په دوی کې څوک سپین دي، څوک سره دي ،څوک توردي اوڅوک ددې رنګونوپه مینځ کې،څوک نرم،څوک سخت،څوک خبیث اوڅوک پاک دي.

## دریم حدیث

عن أنس رضي الله عنه أن رسول الله صلى الله عليه وسلم قال:لما صور الله آدم في الجنة تركه ماشاء الله أن يتركه،فجعل إبليس يطيف به ينظر ماهو.فلما رآه أجوف عرف أنه خلق خلقا لا يتمالک. (صحيح مسلم ج:۲ ص:۳۲۷،مسند احمد ج:۳ ص: ۲۴۰،مسند طيالسی ص:۳۷۰ حديث :۲۰۳۴)

ترجمه: دحضرت انس رضي الله عنه نه روایت دي چې حضور صلی الله علیه وسلم وفرمایل چې:کله چې الله تعالی په جنت کې دادم علیه السلام صورت جوړ کړ، نوهغه یې په هغه حالت کې پرېښود څومره موده چې الله تعالی ته منظوره وه، نوشیطان به له هغه نه ګېرچاپېره تاویده ددې دکتوله پاره چې داڅه شی دی؟ کله چې هغه ولیدل چې دده په خېټه کې خلاده، نوهغه پوه شو چې دده تخلیق داسې شوی دی چې دی به په خپل ځان باندې قابوونه کړای شي.

## څلورم حدیث:

عن أبي هريرة رضي الله عنه عن النبي صلى الله عليه وسلم قال:إن الله خلق آدم من تراب،ثم جعله طينا، ثم تركه حتى إذا كان حمأ مسنونا خلقه وصوره،ثم تركه حتى إذا كان صلصالا كالفخار.قال:فكان

إبليس يمر به فيقول: لقد خلقت لأمر عظيم ا. ثم نفخ الله فيه من روحه. فكان أول شيء جرى فيه الروح بصره وخياشيمه. فعطس فلقاه الله حمد ربه. فقال الرب: يرحمك ربك... الخ.

(فتح الباري ج:٦ ص:٣٦٤، مسند ابو على ج:٦ ص:٩٧، حديث :٦٥٤٩، مجمع الزوائد ج:٨ ص:١٩٧)

ترجمه: حضرت ابوهريره رضي الله عنه د حضور صلى الله عليه وسلم ارشاد نقل كوي چې: بې شكه الله تعالى حضرت ادم عليه السلام د خاورې نه جوړ كړ، بيايې په دې خاوره كې اوبه واچولې، بيايې هغه پرېښودله، تردې پورې چې توره خټه ترې جوړه شوه، بيايې د هغه قالب جوړ كړ، تردې پورې چې په اوروكې د پخ شوي په شان وټنګيده، ابليس به د هغه په خواكې تيريده، نو ويل به يې: ته د څه لوى كار له پاره جوړ شوى يې، بيا الله تعالى په دې قالب كې خپل روح واچاو. له ټولونه مخكې چې په كوم شي كې روح جاري شو هغه د حضرت ادم عليه السلام سترګې او سپږمې وې، هغه ته پرنجى ورغى، نو الله تعالى هغه ته د الحمدلله ويلو الهام وكړ، هغه الحمدلله وويله، نو الله تعالى په ځواب كې وفرمايل: ، يرحمك ربك! (ستا رب دې په تا باندې رحم وكړي)

د دې حديثونو خلاصه او مضمون مخكې ذكرشوى دى اوس په دې باندې غور وكړئ چې په دې احاديثو كې د تخليق ادم كوم مدارج چې ذكر شوي دي او د دې تخليق چې كوم كيفيت بيان شوى دى د قران كريم له ډيرايتونو نه د دې تصديق شوى دى:

اول: دا چې حضرت ادم عليه السلام تخليق بلاواسطه د خاورې نه وشو او دا د هغه د تخليق د پيل نقطه ده، د الله تعالى ارشاد دى:

إِنَّ مَثَلَ عِيسَىٰ عِندَ اللَّهِ كَمَثَلِ آدَمَ خَلَقَهُ مِن تُرَابٍ ثُمَّ قَالَ لَهُ كُن فَيَكُونُ (ال عمران:٥٩)

ترجمه: بې شكه د حضرت عيسى عليه السلام عجيبه حالت د الله تعالى په نزد د حضرت ادم عليه السلام په شان دى، چې د هغه قالب يې د خاورې نه جوړ كړ، بيايې ورته حكم وكړ چې ژوندى شه! هغه ژوندى شو (ترجمه حضرت تهانوي)

دويم: دا چې په خاوره كې اوبه واچول شوې، د الله تعالى ارشاد دى:

إِذْ قَالَ رَبُّكَ لِلْمَلَائِكَةِ إِنِّي خَالِقٌ بَشَرًا مِّن طِينٍ (ص: ٧١)

ترجمه:: كله چې ستاسو رب فرښتوته وفرمايل چې: زه د خټې نه د انسان (يعني د هغه د قالب) جوړونكى يم. (ترجمه حضرت تهانوي)

دريم: دا چې خټه د ډيرې مودې پورې پرته وه، تر دې پورې چې توره شوله او د هغې نه بوى راغى، د الله تعالى ارشاد دى:

وَلَقَدْ خَلَقْنَا الْإِنسَانَ مِن صَلْصَالٍ مِّنْ حَمَإٍ مَّسْنُونٍ (الحجر: ٢٦)

ترجمه:: او موږ انسان د كړنګيدلې خاورې نه، چې بدبويه شوې خټې نه جوړه شوې وه پيدا كړ. (ترجمه حضرت تهانوي)

څلورم :داچې د پروخت پورې پرتې وه څکه په کې د انبنتلو صلاحيت پيدا شو ،ارشاددی:

إِنَّا خَلَقْنَاهُمْ مِنْ طِينٍ لَازِبٍ .(الصافات: ١١)

ترجمه :موږ داخلک دسريښناکې خاورې نه پيدا کړل.(ترجمه حضرت تهاوي)

پنځم:داچې ددې خاورې نه يې قالب جوړکړ چې وچ شونو ټنګيده ،ارشاددی:

وَإِذْ قَالَ رَبُّكَ لِلْمَلَائِكَةِ إِنِّي خَالِقٌ بَشَرًا مِنْ صَلْصَالٍ مِنْ حَمَإٍ مَسْنُونٍ .(الحجر:٢٨)

ترجمه: اوکله چې ستاسورب ملائکوته وفرمايل چې زه يوانسان ته چې دټنګيدونکې بدبويه ختې نه پيدا کونکی يم .(ترجمه حضرت تهانوي)

خَلَقَ الْإِنْسَانَ مِنْ صَلْصَالٍ كَالْفَخَّارِ وَخَلَقَ الْجَانَّ مِنْ مَارِجٍ مِنْ نَارٍ .(الرحمان:١٤،١٥)

ترجمه: هغه انسان له داسې خاورې نه چې دکډرې په شان ټنګيدله پيدا کړلاوپيريان يې دخالص اورنه پيدا کړل.(ترجمه حضرت تهانوي)

شپږم :داچې کله دحضرت ادم عليه السلام قالب دپورتنيو مدارجونه تيرشول،نوپه هغه کې روح واچول شو،دادهغه دتخليق تکميل و ،ارشاددی:

إِذْ قَالَ رَبُّكَ لِلْمَلَائِكَةِ إِنِّي خَالِقٌ بَشَرًا مِنْ طِينٍ فَإِذَا سَوَّيْتُهُ وَنَفَخْتُ فِيهِ مِنْ رُوحِي فَقَعُوا لَهُ سَاجِدِينَ(ص: ٧١،٧٢)

ترجمه: اوکله چې ستارب فرښتوته وفرمايل چې زه له ختې نه يوانسان(يعنې دهغه قالب) جوړونکې يم، کله چې زه هغه پوره کړم اوپه هغه کې خپل روح واچوم نوتاسوټول دهغه په وړاندې په سجده پريوځئ! (ترجمه حضرت تهانوي)

## الله تعالی حضرت ادم عليه السلام په خپلو لاسونو جوړکړ

په قران کريم کې داهم وضاحت شوی دی چې دحضرت ادم عليه السلام تخليق الله تعالی په خپلو لاسونو وکړ،لکه چې ارشاددی:

قَالَ يَا إِبْلِيسُ مَا مَنَعَكَ أَنْ تَسْجُدَ لِمَا خَلَقْتُ بِيَدَيَّ أَسْتَكْبَرْتَ أَمْ كُنْتَ مِنَ الْعَالِينَ .(ص:٧٥)

ترجمه: الله تعالی وفرمايل چې:اې ابليسه!ته کوم شي هغه ته له سجدې کولو نه منع کړې.(ترجمه حضرت تهانوي)

داخوظاهره ده چې ټول مخلوق الله تعالی پيدا کړی دی،خودحضرت ادم عليه السلام په باره کې يې چې وفرمايل :مادی په خپلولاسونوجوړکړ،دې سره دحضرت ادم عليه السلام دعظمت اوشرافت اظهار مقصوددی،يعنې دهغه تخليق توالدوتناسل معروفې طريقې سره ونه شو،بلکې الله تعالی په خپلولاسونودخاورې نه جوړکړ اوپه هغه کې يې روح واچاو.

امام ابوالسعود رحمه الله ددې ايت په تفسيرکې ليکي:

أي: خلقه بالذات من غير توسط أب وأم.(تفسيرابي السعود ج:٧ ص:٣٢٦)

ترجمه: يعنې ماد دمورپلار له واسطې پرته پخپله پيدا کړ.
ددې تفسير نه معلومه شوه چې حضرت ادم عليه السلام په باره کې:
**خلقت بيدي** (ماهغه په خپلولاسونوجوړ کړ) سره وفرمايل. دا دلوی حقيقت اظهاردی، چې دده تخليق دتولداوتناسل په معروفې طريقې سره نه دی شوی.هم دې ځای نه دعقل خاوندانو ته پوهيدل پکاردي چې دکوم شخصيت تخليق کې دمورپلار واسطه هم قدرت ته منظورنه وي دهغه په باره کې دادعوه کول چې:هغه جمادات.نباتات.حيواناتاوبيزوګانو شکل بدليدوسره په انساني شکل کې راغی،څومره لوی ظلم به وي....غرض داچې **خلقت بيدي**، قراني الفاظو سره چې يو خوادحضرت ادم عليه السلام دتوالداوتناسل په ذريعې سره دپيدا کيدو نفی کيږي،هلته دې سره دجمادات، نباتات، اوخيوناتواوبيزوګانوارتقايي مرحلونه تيريدونه وروسته په انسان جوړيدل په درجه اولی نفې کيږي،له دې وجې نه داهل ايمان په نزدحق هماغه دي کوم چې رسول الله صلی الله عليه وسلم فرمايلي ،دکوموتفصيلات چې پورته تيرشوي دي.

## دحضرت ادم عليه السلام دتخليق په باره کې دا نبياء عليهم السلام عقيده

دقران کريم دوينا: "**خلقت بيدي**"(ماهغه په خپلولاسونوجوړکړ)مفهوم په ښې طريقې سره ذهن نشين کولونه وروسته اوس په دې باندې غوروکړئ چې په دې باره کې دحضرات انبياکراموڅه عقيده وه؟
دحديثوتقريباًپه ټولومشهوروکتابونو:(صحيح بخاري،صحيح مسلم، ابوداود، ترمذي، ابن ماجه،موطاامام مالکاومسنداحمدوغيره)کې دحضرت موسی اوحضرت ادم عليه السلام مباحثه ذکر ده، حضرت موسی عليه السلام حضرت ادم عليه السلام ته وفرمايل:
**"أنت آدم الذی خلقک الله بيده ونفخ فيک من روحه وأسجدلک ملئکته وأسکنک فی جنته."(مشکوة ص:١٩)**
ترجمه: ته هغه ادم عليه السلام يې چې الله تعالی په خپلو لاسونو جوړ کړې او په تا کې يې خپل روح واچاو ،په خپلو فرښتويې درته سجده وکړله اوته يې په خپل جنت کې اووسولې.
دحضرت موسی عليه السلام په دې وينا کې دحضرت ادم عليه السلام دتخليق په باره کې ټيک هما غه الفاظ استعمال شو ي دي چې په مذکورة الصدرايت شريف کې راغلي دي،يعنې دالله تعالی دحضرت ادم عليه السلام په خپلولاسونوجوړول اودهغه په قالب کې دخپل طرف نه روح اچول،له دې نه واضحه کيږي چې دحضرات انبياء کراموعليهم السلام هم دغه عقيده لرله،چې دحضرت ادم عليه السلام قالب الله تعالی په خپلولاسونوجوړکړ اوپه هغه کې يې روح واچاو،هغه د توالد او تناسل معروفې طريقې سره انسان نه دی جوړشوی،نه دجمادات،ونباتاتاوحيوانات او بيزوګانو شکل بدليدوسره انسان جوړشوی دی.

## دقیامت په ورځ به هم اهل ایمان ددهمدې عقیدې اظهارکوي

حدیث شفاعت کې راځي چې اهل ایمان به دقیامت په ورځ دشفاعت کبری له پاره له ټولو نه وړاندې دحضرت ادم علیه السلام په خدمت کې حاضرشي اوهغه ته به عرض وکړي:

أنت آدم أبوالناس ,خلقک الله بیده, وأسکنک جنته وأسجدلک ملئکته وعلمک اسماء کل شيء. (مشکوة ص:٤٨٨)

ترجمه:: ته ادم یې، دټولو انسانانوپلار، الله تعالی ته په خپلولاسونوجوړکړې اوته یې په خپل جنت کې اووسولې اوپه خپلوفرښتویې درته سجده وکړله اوتاته یې دټولوشیانودنومونه دروښودل.

ددې حدیث نه ثابتیږي چې دقیامت په ورځ به اهل ایمان هم ددې عقیدې اظهارکوي، چې د حضرت ادم علیه السلام تخلیق الله تعالی په خپل لاس سره وکړ، دخاورې نه یې دهغه قالب جوړکړ او روح پکې واچاو اوهغه یې ژوندی انسان جوړکړ، دهغه په تخلیق کې نه دتوالداوتناسل واسطه وه اونه دجماداتونه دبیزوګانوپورې دارتقایي مرحلو تیریدونه وروسته انسان جوړشو. دقران کریم ښکاره ایتونه، دحضور صلی الله علیه وسلم مبارکې ویناوې، دحضرت موسی علیه السلام فرمودات اود محشرپه میدان کې دایمان لرونکو تصریحات ستاسوپه وړاندې موجود دي، کوم کس چې په دې ټولو امورو باندې دانصاف په نظرسره غوروکړئ ،نو هغه ته به درښا ورځې په شان دا حقیقت ښکاره شي چې دحضرت ادم علیه السلام دجسماني تخلیق په باره کې حقیقي واقعه هم دغه ده کومه چې حضور صلی الله علیه وسلم بیان کړې ده اوددې ضاحب دفلاسفه وو دطبیعیینو تقلید او تخلیق ادم علیه السلام ته کرشمه ارتقاء ګرځول په صریح طورسره غلط اودنصوصو نه قطعي انحراف دی. والله یقول الحق وهو یهدی السبیل.

## دویم امر

## د نبوي حدیثونوپه باره کې ددې کس دخیالاتواظهار

ددې کس داویل چې:په دې مسئله کې نبوي حدیثونه دتوجه اواعتباروړ نه دي. په څو وجو دجهل ښکاردي:

اول: پورته چې دقران کریم کوم واضح ایتونه بیان شوي دي که هغه دنبوي ویناوو سره یوځای ولولې ،نوواضحه به شي چې حضرت محمد صلی الله علیه وسلم دتخلیق ادم علیه السلام په باره کې څه فرمایلي دي هغه هم ددې واضحه ایتونوشرح اوتفصیل دی اوکومه مسئله باندې چې قران اوحدیث دواړه متفق وي ، نوهیڅ یومومن ته له هغه نه دانحراف ګنجائش نه وي، کوم کس چې له الهي فرمان اونبوي ارشاداتو تسلیمولونه وروسته کیږي په خپله انصاف وکړئ چې په ایمان اواسلام کې دهغه څومره برخه ده؟

دويم: بالفرض كه دقران كريم سره ددې حديثونو تائيدنه كيداى ،نوبيا هم دحضرت محمد ﷺ د ارشاداتو اوريدلوسره ويل چې :دا دتوجه او اعتبار وړ نه دي.بارګاه رسالت كې بې حده جسارت او ګستاخي ده،چې داوريدلوېې يومومن هم تاب نه شي راوړلى.چې ددې په اوريد وسره دايمان روح په لړزان شي،بياكه يومسلمان داسې موذي الفاظ په ژبه باندې دراويستلوجرات وكړي،لږشان سوچ وكړئ! چې كوم وخت كې حضور ﷺ دحضرت ادم ﷺ دتخليق په باره كې دا حقائق بيانول نوكه يوكس(بالفرض هم داصاحب)به دحضور ﷺ په وړاندې داويل وي چې: نعوذبالله،، داستاميدان كار نه دى،بلكې داد ډارون ميدان تحقيق دى،نووواېئ چې داسې كس به په كوم صف كې شمار يږي؟

حافظ ابن حزم رحمه الله ليكي:

**وكل من يكفر بما بلغه وصح عنده عن النبي صلى الله عليه وسلم أو جمع عليه المومنون مما جاء به النبي عليه السلام فهوكافر اكما قال الله تعالى: ومن يشاقق الرسول من بعد ما تبين له الهدى ويتبع غير سبيل المومنين نوله ماتولى ونصله جهنم.** (المحلى ج:١ ص:١٢)

ترجمه: اوهرهغه كس چې دڅه داسې خبرې نه انكار وكړ،كومه چې دحضور ﷺ نه رارسيدلې وي اودهغه په نزد ددې ثبوت له حضور ﷺ نه صحيح و،ياهغه دداسې خبرې نه انكار وكړ په كومه چې داهل ايمان اجماع وي چې حضور ﷺ فرمايلي ده، نوداسې كس كافردى،لكه دالله تعالى ارشاددى : اوچاچې درسول الله ﷺ مخالفت وكړ.له دې وروسته چې هغه ته هدايت واضح شو اوهغه داهل ايمان لاره پرېښودله ،نوموږ به هغه وګرځو كوم خوا چې ګرځي اوموږ به هغه جهنم ته داخل كړو.

دريم: حضور ﷺ چې دحضرت ادم ﷺ دتخليق په باره كې كوم تفصيلات بيان كړي دي، ددې په باره كې دغور وړ خبره داده چې حضور ﷺ ته ددې خبرې علم كومې ذريعې سره وشو؟ ښكاره ده چې انبياءكرامو عليهم السلام سره له وحې الهي نه پرته كومه ذريعه نه وي، لهذادعقلي دليل نه ثابته ده چې حضور ﷺ په دې سلسله كې چې څه بيان كړيدي دهغو سرچينه وحې الهي كيداى شي اوددې ردكول ګوياوحي خداوندي ردكول دي اوظاهره ده چې داكاردېوكافراومنافق كيداى شي ديومسلمان نه،خصوصاً كله چې دلته داحقيقت په نظركې وساتل شي چې دحضرت ادم ﷺ دتخليق واقعه دهغه دور ده كوم چې مورخين قبل از تاريخ كې شميري اوكله چې هغه وخت كې څوك انسان موجودنه و ،نودهغه دور دتاريخ او واقعاتوتفصيلات به چاليكل ؟اوالله تعالى چاچې دحضرت ادم ﷺ تخليق وكړ داپوره واقعه دهغه په وړاندې وه اوددې ضروري تفصيلاتونه الله تعالى حضور ﷺ خبركړ او حضور ﷺ په دې تفصيلاتوباندې امت خبركړ،ددې باوجود چې دحضور ﷺ داصحيح ارشادات ردكول اودفلاسفه وو دافواهاتو تقليدكول ايا ديوصاحب دايمان شان كيداى شي؟

ځلورم: دحضور ﷺ دافرمایل چې: دحضرت ادم علیه السلام تخلیق داسې وشو..دایوخبر دی او خبربه یاخودواقعې مطابق وي،یابه دواقعې خلاف وي،کوم خبرچې دواقعې مطابق وي ورته رښتونی خبرویل کیږي اوخبرورکونکی رښتونی ګڼل کیږي اوکوم خبرچې دواقعې خلاف وي هغه ته ددروغوخبروایي اوخبرورکونکی دروغژن ګڼل کیږي اوس داصاحب چې کوم څه وایي چې: حضور ﷺ چې دحضرت ادم علیه السلام دتخلیق په باره کې کوم خبرورکړی دی هغه دواقعې خلاف دی،اهل عقل دې غوروکړي چې ددې مطلب څه کیدای شي؟ ایا دا د حضور ﷺ صریح تکذیب نه دی؟ اوایاداخبره عقلاً ممکن ده چې یوکس دحضور ﷺ ورکړل شوی خبرغلط ګڼي اوهغه باندې ایمان هم لري؟هیڅ کله نه! ضدان لا یجتمعان!(دادواړه دیوبل ضد دی،چې کله هم جمع کیدای نه شي)

پنځم: ددې صاحب داویل چې: دحضرت ادم علیه السلام دتخلیق واقعه ددنیا له امورو نه ده،ځکه دحضور ﷺ ارشادات دالتفات وړنه دي،دده ددلیل صغری اوکبری دواړه غلط دي،ځکه چې خبره دحضرت ادم علیه السلام دتخلیق په باره کې ده اوهرکس ته پته ده چې تخلیق دالله تعالی کاردی اوخالقیت دهغه صفت دی اوس دې له دې صاحب نه پوښتنه وکړل شي چې دالله تعالی صفات اوافعال بیانول،دحضور ﷺ منصب دی یا(نعوذبالله)دډارون دمیدان کاردی؟ اوداچې په الهي صفاتو بیانولوکې دهمده دخبرې مطابق،دحضور ﷺ ارشادات عالیه لائق التفات نه دي ،نوبیابه په کوم شی کې درسول الله صلی الله علیه وسلم خبره داعتماد وړ وي؟ نعوذبالله من سوء الفهم وفتنة الصدر!

دالله تعالی دصفاتو اوافعالو هغه میدان دی چیرته چې دعقل پښې شلې دي،داهغه فضاده چیرته چې دعقل اوفکروزرې سوځي اوانساني عقل دالهي حقائقو پوره ادراک کولونه عاجزه دی،چیرته چې سیدالانبیاء صلی الله علیه وسلم پورې په دې ویلوباندې مجبور دی:

اللّٰهم لا أحصی ثناء علیک أنت کما أثنیت علی نفسک. ترجمه :یاالله!زه ستادتعریف حق اداکولونه قاصریم،ته بس هماغه شان یې څنګه چې تاخپله ثناء په خپله کړې ده.

هلته دبل دعقل درسیدلو او دعجز اودرماندګۍ څه پوښتنه کوې؟ همدا وجه ده چې کومو فلاسفه وو دانبیاء کرامو علیهم السلام لمن پرېښې ده اویواځې دخپل نه رسیدونکي عقل په اسونو باندې سواره شوي ،په دې میدان کې توپونه وهي هغوی ته دحیرت اوګمراهي نه پرته نورهیڅ په لاس ورنغلل،دادالله تعالی انعام دی چې ددې انبیاءکرام علیهم السلام په ذریعې سره یې دومره الهي حقایقوکې څه برخه بیان کړه دکومې چې انساني عقل تحمل کولای شو،څومره عجیبه خبره ده چې یودمسلماني دعویدارد انعام الهي شکراداکوي اود حضور ﷺ ارشاداتوته د ناقابل التفات ګرځولوسره دفلاسفه وواومحلدانودلکۍ نیولو تلیقن کوي.

شپږم: ددې صاحب داويل چې:حضورﷺ دحضرت ادمعلیہ السلام دتخليق په باره کې څه واضح موقف نه دی اختيار کړی،خالص دروغ اوحضورﷺ باندې افتراء ده،ځکه چې په تيروکرښوکې تاسوولیدل چې حضورﷺ دپوره وضاحت او تشريح سره فرمايلي دي چې الله تعالی دټولې ځمکې نه خاوره راغونډه کړه ،هغه يې په اوبو خشته کړه،بيايې ددې ختې نه دحضرت ادمعلیہ السلام شپيته لاسه اوږد قالب جوړکړ،بيايې په دغه قالب کې روح واچاو اوداسې نور...

ددې ټولو وضاحتونو نه وروسته څوک داخبره کولی شي چې:په دې مسئله کې حضورﷺ څه واضحه موقف نه دی اختيار کړی؟اوکه ددومره وضاحت اوتاکيدسره بيان شوې مسئلې په باره کې هم دا وويل شي چې:حضورﷺ په دې باندې څه واضح موقف نه دی اختيارکړی ،نوتاسو ووايئ چې ددې نه زيات واضح موقف په کوموالفاظوسره بيانېدای شي؟

## د "أنتم أعلم بأمردنياكم" تشريح

ددې صاحب دحضورﷺ له ارشاد:"أنتم أعلم بأمردنياكم"نه داکليه راويستلې ده چې ددنياپه هېڅ کارکې دحضورﷺ ارشادات دالتفات وړنه دي،په دې سلسله کې څوګزارشات وړاندې کول غواړم:

اول: دې صاحب ددې حديث په کتواودې ته غلطه معنا ورکولونه مخکې که دقران کريم دکتلو زحمت کړی وای ،نوددې حديث دغلطې معنا کولوجرات به يې نه و کړی.

په قران کريم کې دالله تعالی ارشاد دی:

وَمَا كَانَ لِمُؤْمِنٍ وَلَا مُؤْمِنَةٍ إِذَا قَضَى اللَّهُ وَرَسُولُهُ أَمْرًا أَنْ يَكُونَ لَهُمُ الْخِيَرَةُ مِنْ أَمْرِهِمْ وَمَنْ يَعْصِ اللَّهَ وَرَسُولَهُ فَقَدْ ضَلَّ ضَلَالًا مُبِينًا. (الاحزاب: ٣٦)

ترجمه:اوهيڅ ايمان دارسړي اوايمان دارې ښځې ته ګنجائش نشته ،کله چې الله تعالی اودهغه رسول حکم وکړي چې (بيا)دې(مومنانو)نه دې کارکې څه اختيارباقي پاتې شي اوکوم کس چې دالله تعالی اودهغه درسولﷺ حکم ونه مني هغه په صريحه ګمراهي کې پريوت (ترجمه حضرت تهانوي)

داايت شريف ديوې دنياوي معاملې په باره کې نازل شو،ددې واقعه په لنډ ډول داده چې:حضورﷺ دخپلې ترور دلورحضرت زينب بن حجش رضی اللہ عنہا واده دحضرت زيدبن ثابت رضی اللہ عنہ سره کول غوښتل،چونکه زيدغلام پاتې شوی واوديخواحضرت زينب بنت حجش دقريش داعلی ترين خانداندسترګوتور و،له دې وجې نه دهغوی خاندان والاوو ته دخانداني وقارپه لحاظ سره دا رشته بې جوړې محسوسه شوه اوحضرت زينب اودهغې وروړحضرت عبدالله بن حجش ددې رشتې له منلو عذر وړاندې کړ،په دې باندې دا ايت نازل شو،نودواړو دزړه له کومې ددې اطاعت وکړ.

دلته دوه خبرې خاص طورسره دغور وړ دي:
يوه داچې ديوې انجلۍ رشته چرته وکړل شي اوچرته ونه کړل شي؟ديوخالص ذاتي او شخصي قسم دنياوي معامله ده،خو ديوکس خالص ذاتي اوشخصي معامله کې دخل کولو سره چې حضورﷺ يوځاى کې رشته منظوره کړه ،نودقران کريم ددې قطعي حکم په روى سره دهغه خاندان ته په خپله ذاتي دنياوي معامله کې هم اختيارپاتې نه شو،بلکې دحضورﷺ تجويزدزړه له اخلاصه منظورول دايمان شرط وګرځول شو.
دويمه دغورقابل خبره داده چې حضورﷺ ددې رشتې چې کوم تجويزکړى و،په هيڅ يوروايت کې نه دي راغلي،چې داتجويزوحې الهي سره و،خو قران کريم دحضورﷺ دې ذاتي تجويزته، ،دالله تعالى اودرسولﷺ فيصله ګرځولوسره ټولو خلک په دې باندې خبر کړل چې څه دنياوي معامله کې دحضورﷺ ذاتى تجويزهم دالله تعالے فيصله ده،چې دهغې نه انحراف دهيڅ يومسلمان له پاره روانه دى.
قران کريم خودحضورﷺ ذاتي رايه هم دالله تالى حتمي فيصله ګرځوي،خودې بدمذاقي داډاډ ورکړ چې ويونکى داوايي چې:دحضورﷺ فيصله په دنياوي کارکې معتبره نه ده.
بياقران کريم امت ته تلقين کوي:
وَمَا آتَاكُمُ الرَّسُولُ فَخُذُوهُ وَمَا نَهَاكُمْ عَنْهُ فَانْتَهُوا . (الحشر:٧) ترجمه::رسول الله (ﷺ)چې تاسوته څه درکړي هغه واخلئ !اوله څه نه موچې منع کړي له هغه منع شئ!
خونن ويل کيږي چې دحضرت ادمعليه السلام دتخليق په باره کې چې حضورﷺ تاسوته څه خبردرکړى هغه مه قبلوئ،بلکې د ډارون په نظريه کې انسان دبيزو اولاد وګرځوئ!(انالله وانا اليه راجعون)
دويم: حضورﷺ دانساني ژوندبې شميره اړخونه اود انسانيت درهنمايي اودنياوي امورو په زرګونوګرانې خبرې حل کړي دي،کومې چې دامت عالمان دحضورﷺ په معجزاتوکې شميري.
قاضي عياض رحمه الله ليکي: **ومن معجزاته الباهرة ماجمعه الله له من المعارف والعلوم وخصه به من الإطلاع على جميع مصالح الدنيا والدين...الخ.**
ترجمه :او دحضورﷺ له روښانه معجزو نه يوه هغه علوم اومعارف دي چې الله تعالى دهغه له پاره راجمع کړلاو هغه يې (دانسانى ضرورت )دټولو دنياوي مصالحواطلاع سره مخصوص کړ.
حضورﷺ دانسانى ژوندپه ټولو شعبوکې چې کوم ټوليز تعليمات فرمايلي دي بې شکه دې ته معجزات نبوت اوتعليم الهى ويل کيداى شي،دمثال په طورباندې دطب اومعالجې باب واخلئ،ظاهره ده چې علاج معالجه يوخالص بدني ،جسماني اودنياوي شى دى،خو

حضور ﷺ داسې اصول او کليات او فروع وجزئيات بيانکړي دي چې عقل حيران دی، د حافظ شيرازي رحمة الله عليه د قول مطابق:

نگار من که به مکتب نرفت وخط ننوشت بغمزه مسئله اموز صد مدرس شد

د علم خاوندانو د طب نبوي ﷺ په نامه لوی لوی کتابونه ليکل دي او حافظ ابن قيم رحمة الله عليه په زادالمعاد کې د دې ډيره ذخيره راجمع کړې ده، د لته بې واره مې زړه د دې واقعې ذکر کول غواړي چې په صحيح بخاري، صحيح مسلم، ترمذي او حديثو په ډيرکتابونوکې مروي ده چې: يو صاحب راغی او عرض يې وکړچې: زما رورته داسهال (دستونو) تکليف دی. رسول الله صلى الله عليه وسلم وفرمايل: هغه له شهدورکړه! هغه شهدورکړل او وروسته بيا راغی او عرض يې وکړچې: ما شهد ورکړل خو دې سره دستونه نور هم زيات شول، ويې فرمايل: ده ته شهدورکړه! ځلورځله هم دغه کيسه راپيښه شوه، دهغه په دستونوکې اضافه وشو، حضور ﷺ په ځلورم ځل وفرمايل چې:

**صدق الله وكذب بطن اخيك. (جامع الاصول ج: ٧ ص: ٥١٧)**

ترجمه: د الله تعالى کلام رښتونی دی او ستاد ورور ځيټه دروغژنه ده.

هغه بيا شهدورکړل، نو دهغه دستونه بند شول.

حضور ﷺ دقران کريم د اياتونو په رڼاکې دحضرت ادم عليه السلام دتخليق کومه واقعه چې وفرمايله دهغې په مقابله کې ددې صاحب داويل چې: دحضرت ادم عليه السلام تخليق داسې نه دی شوی، په دې باره کې هم دا ويل کيدای شي چې:

**صدق الله ورسوله! وكذب داروين والدكتور.**

ترجمه: د الله تعالى او دهغه درسول فرمان رښتونی دی او ډارون او ډاکټر دروغ وايي.

په يو طب او معالجه باندې څه منحصر دی، دژوند ديوې شعبې نوم خوواخلئ چې په کومه کې حضور ﷺ رهنمايي نه وي کړي او دحضور ﷺ له هداياتونه محرومه پاتې شوي وي، تګ راتګ، ناسته پاسته، ويده کيدل، ښځې، بچوا وخپل خپلوانو سره ملاقات، صلح او امن، جنګ وجګړه، نکاح طلاق، بيع وشراء، سياست او اداب، الغرض دنياوي اموروکې کوم يو داسې امردی چې په هغو کې معلم انسانيت دهداياتواوتعليمات نقوش موجود نه وي، دصحيح مسلم او ابوداود، نسائی او ترمذي کې حديث دی چې يهودواومشرکانو په حضرت سلمان فارسی رضي الله عنه باندې اعتراض وکړ:

**قد علمكم نبيكم كل شيء حتى الخراءة؟ قال: اجل! (جامع الاصول ج: ٧ ص: ١٣٣)**

ترجمه: تاسوته ستاسونبي هرڅه ښائي، تردې پورې چې بول اوبراز (ميتيازې) هم، ويې فرمايل: هو! (موږته حضور ﷺ دبول برازدا اداب هم ښودلي دي)

ددې اعتراض نه ديهودانو مقصد،والله اعلم، ياخوپه مسلمانانوباندې نکته چيني کول و،چې تاسوداسې کم عقل يئ چې تاسوته متيازې کول هم نه درځي،تاسوددې له پاره هم دنبي دتعليم محتاج يئ؟يادډې لعين مقصدرسالت ماب ﷺ باندې اعتراض کول و،چې انبياء کرام داعلى علمونه ښودنې له پاره راځي،داڅه نبي دی چې خلکوته دمتيازو دطريقوتعليم ورکوي.

حضرت سلمان فارسي رضي الله عنه دهغوی دې بيهوده اعتراض نه مرعوب نه شو. بلکې داېې وفرمايل چې:هو!مونږته زمونږ نبي دبول وبراز طريقه هم ښودلې ده اوهغه په دې باره کې دفلاني فلاني اداب تعليم ورکړی دی...که ددې مقصدپه مسلمانانوباندې اعتراض کول و،نوددې ځواب به داوي چې دالله تعالى شکر دی چې مونږ خودحضور ﷺ نه بيت الخلاء ته دتلوطريقه زده کړې ده،تاسوخپل فکرکوئ،چې تاسودځناورپه شان داطبعي ضرورت پوره کوئ،خودانسانانوله طريقې تراوسه پورې محروم يئ اوکه ددې مقصدپه حضور ﷺ باندې نکته چيني کول و، نودځواب حاصل به داوي چې زمونږ دنبي ﷺ کمال دادی چې ددې طبعي انساني ضرورتونوداسې تعليم ورکوي چې دانسان داطبعي حاجات هم دتقرب الى الله ذريعه جوړشي اودا شيان هم دعبادت په ډله کې شمارشي،بې شکه دحضور ﷺ ددتعليماتو خيال ساتلوسره استنجاخانې ته تلل په عبادت کې راځي،لکه چې زمونږ شيخ المشائخ شاه عبدالغني مجددي دهلوي مهاجرمدني قدس سره حاشيه ابن ماجه کې ليکي:

"قال علماءنا أن إتيان السنة ولو كان أمرا يسيرا كإدخال الرجل الأيسر فى الخلا ابتداء أولى من البدعة الحسنة وان كان امرا فخيما كبناء المدارس". (حاشيه ابن ماجه:ص:٣)

ترجمه:زمونږ عالمان فرمايي چې:دسنت پوره کول اګرچې معمولی خبره وي مثلاً:بيت الخلا ته دتلوپه وخت کې چپه پښه مخکې کيښودل ،دبدعت حسنه نه بهتردي،اګرچې هغه عظيم الشان کاروي،لکه مدرسې جوړول.

خلاصه داده چې دانساني ژوندهيڅ يوه شعبه اوهيڅ داسې اړخ نشته چې په هغه کې حضور ﷺ دامت رهنمايي نه وي کړې،ځکه حضور ﷺ فرمايي:

إنما أنا لكم بمنزلة الوالد أعلمكم. (ابوداود:ص:٣)

ترجمه: زه تاسو له پاره دپلارپشان يم، تاسوته تعليم درکوم.

له دې وجې نه ددې صاحب داويل چې:اموردنيادحضور ﷺ دکار ميدان نه و،ځکه په امور دنياکې دحضو ﷺ قول نعوذبالله دالتفات ورنه دی قطعاً غلط اوغلط دی.

دريم: داصاحب دحضور ﷺ دارشاد:"أنتم أعلم بأمر دنياكم"په مدعا پوه شوی نه دی،ځکه يې داوويل،چې په دنياوي معاملاتوکې دحضور ﷺ ارشادلائق التفات نه دی،ښه پوه شئ چې په دې واقعه کې حضور ﷺ څه فرمايلي و هغه دمشورې په طور و ،شيخ المشائخ شاه

عبدالغني محدث دهلوي رحمه الله حاشيه ابن ماجه کې په دې سلسله کې روايات راجمع کولو نه وروسته ليکي:

"فعلم أن هذا الأمر منه صلى الله عليه وسلم كان بطريق الإجتهاد والمشورة فما كان واجب الاتباع. (حاشيه ابن ماجه:١٧٨)

ترجمه: معلومه شوه چې په دې واقعه کې چې حضور ﷺ څه وفرمايل هغه داجتهاد مشورې په طور و، ځکه واجب الاتباع نه و.

دمشورې اوحکم ترمينځه فرق دحضرت بريره رضي الله عنها دقيصې نه واضح دی، حضرت عائشې رضي الله عنها حضرت بريره رضي الله عنها ازاده کړله، داواده شوې وه، دازادي نه وروسته هغې دخپل خاوند مغيث رضي الله عنه دقبلولو نه انکار وکړ، حضور ﷺ ورته شفارس وکړچې: بريرې ته مغيث قبول کړه! هغې ورته عرض وکړ يارسول الله ﷺ! داحکم دی که مشوره؟ ويې فرمايل حکم نه دی مشوره ده، عرض يې وکړ که مشوره وي نوزه دانه قبلوم.[١]

ددې واقعې نه معلومه شوه چې دحضور ﷺ حکم اګر که په دنياوي امورو کې وي واجب التعميل دی، خو که دمشورې په طور څه ارشاداوفرمايي نوددې معامله دويمه ده.

## دايت نه غلط استدلال

دې کس ايت شريف: "والله أنبتكم من الأرض نباتا" سره دډارون په نظريه ارتقا باندې استدلال کې داوويل چې: حضرت ادم عليه السلام هم دجماداتو، نباتاتو اوحيوانات دمرحلونو نه تيريدونه وروسته، انسان ادم، جوړشوی و، سراسرمهمل اولايعني دی ځکه چې:

اولاً: داکس په خپله مني چې حضور ﷺ دحضرت ادم عليه السلام دجسماني تخليق يوکيفيت بيان کړی دی، چې ددې صاحب ذکر شوې نظرې سره متضاددی اوس داصاحب به په دووخبروکې يوه خبره مني، ياخوداچې په خپله صاحب قران ﷺ نعوذبالله دقران دايت په مفهوم باندې پوه نه شو، ځکه که په حضور ﷺ باندې دايت هغه مفهوم منکشف شوی وی کوم چې دې صاحب ته القاشوی دی، نوحضور ﷺ به دحضرت ادم عليه السلام دتخليق جسماني په باره کې داسې متضاد اومختلف کيفيت نه و بيان کړی اويا داصاحب به داتسليموي چې په خپل

---

١] عن عائشة رضى الله عنها ان رسول الله صلى الله عليه وسلم قال لها فى بريرة خذيها فاعتقيها وكان زوجها عبداً فخيرها رسول الله صلى الله عليه وسلم فاختارت نفسها ولو كان حراً لم يخيرها متفق عليه وعن ابن عباس رضى الله عنه قال: كان زوج بريرة عبداً اسود يقال له مغيث كانى انظر اليه يطوف خلفها فى سكك المدينة يبكى ودموعه تسيل على لحيته فقال النبى صلى الله عليه وسلم للعباس: يا عباس! الا تعجب من حب مغيث بريرة، ومن بغض بريرة مغيثاً، فقال النبى صلى الله عليه وسلم لو راجعتيه فقالت يا رسول الله ! تامرنى! قال انما اشفع! قالت لا حاجة لى فيه رواه البخارى مشكوة كتاب النكاح باب الفصل الاول ص:٢٧٦_

ذهن کې جوړې شوې کومې معناوې قران کریم ته وراغوندي هغه سراسر لغو او لایعنې دیاوالله تعالی اودهغه رسول ﷺ ددې نه بري دي.
ممکنه ده چې داکس هم دغلام احمدقادیانی په شان عقیده لري چې هغه دقران حقائق اومعارف دحضور ﷺ نه زیات بیانولی شي،لکه چې مرزاغلام احمد قادني لیکي:
داخیال چې ګویاځه چې حضور ﷺ دقران کریم په باره کې بیان کړي دي دهغه نه زیات بل ځوک نه شي کولی، بدیهي البطلان دي،(کرامات الصادقین ص:۱۹ مندرجه روحانی خزائن ج:۷ ص: ۲۱)
غرض داچې دیوایت نه داسې نظریه استنباط کول چې دحضور ﷺ دتصریحاتونه خلاف وي له دې سره په دووخبروکې یوه خبره لازمیږي، چې یاخوله دې سره_نعوذبالله_دحضور ﷺ تجهیل لازمیږی چې حضور ﷺ ددې ایت په مطلب باندې پوه نه شو ،یاخپل خام خیالات په قران کریم کې ننوستل لازمیږی چې دکوموپه باره کې دحضور ﷺ ارشاددی:
**من قال فی القران برأیه فلیتبوأ مقعده من النار.** (مشکوة ص:۳۵)
ترجمه:کوم کس چې دخپلې رایې نه څه مفهوم په قران کې دننه کړهغه دې خپل داوسېدو ځای په دوزخ کې جوړ کړي.
ثانیاً: دا ایت شریف،کوم نه چې دې صاحب نظریه ارتقا ته دحضرت دادم علیه السلام دجسماني تخلیق باندې دلګولوکوشش کړی دی،دسورت نوح ایت دی،په کوم کې چې الله تعالی دحضرت نوح علیه السلام هغه خطاب نقل کړی دی چې هغه دخپل قوم کافرانوته کړی و ،کوم کس چې دمعمولي غوراوفکرنه هم کاروا خلي ،نودهغه نه به داخبره پټه پاتې نه شي چې حضرت نوح علیه السلام دخپل قوم کسانوته د ډارون دارتقایې نظریې تعلیم اوتلقین نه دی کړی ،بلکې دغو خلکوته دیوفردپه تخلیق دالله تعالی دقدرت دکوموعجائباتواظهارکړی دی هغه ذکر کول فرمایي چې الله تعالی دځمکې دخاورې نه غذاګانې پیداکړي دي،ددې غذاګانونه یې داوبودڅاڅکیو تخلیق وکړدکوم نه چې تاسوپیداشوي یئ،بیایې د اوبو دې قطرو ته د مورپه خېټه کې مختلف شکلونه ورکړل اوپه دې کې یې روح واچاواوتاسوژوندی انسانان جوړ شوئ، بیانفخ روح نه وروسته هم د مورپه خېټه کې دځمکې نه پیدا شویو غذاګانوپه ذریعه ستاسو دنشونما عمل جاري وساته،تردې پورې چې دمور د خېټې نه ستاسوپیدائش وشو اوبیادپیدائش نه وروسته هم ستاسودنشونماسلسله جاري وه اوداهرڅه الله تعالی د ځمکې دخاورې اوددې نه پیداشویو غذاګانوپه ذریعه وکړل.الغرض،،والله انبتکم من الارض نباتا،،کې دانساني افرادو ددې اوږدې سلسلې نشونماطرف ته اشاره کړې ده،چې د کومې نه تیریدوسره هرانسان دنشونمامرحلې تیروي،په دې سلسله کې ابتداء له خاورې نه کیږي اوددې انتهادنشونماپه تکمیل باندې کیږي،لکه چې حضرت مفتي محمدشفیع رحمه الله

په خپل تفسیر، ،معارف القران، ،کې دخلاصه تفسیرپه عنوان سره ددې ایت شریفه لاندې دحضرت حکیم الامت تهانوي رحمه الله دبیان القران په حواله لیکي:
اوالله تعالی دځمکې نه تاسوپه خاص طور پیداکړلئ، (یاخوداسې چې حضرت ادم علیه السلام د خاورې نه جوړ شوی و ،یاداسې چې انسان دنطفې نه جوړشواونطفه د غذانه او غذا د عناصرونه جوړه شوهاوعناصروکې غالب اجزا دخاوري دي...(معارف القران ج:۸ ص:۵۲۲)
لهذادې ایت شریف نه(یادویم ایت کریم)دډارون نظریه ارتقا اخستل دخپل عقل اوفهم سره هم زیاتی کول دي اودقران کریم سره هم بې انصافي ده.
ددې صاحب کوم دلائل چې تاسوذکرکړي دي ددې علمي حیثیت واضح کولونه وروسته اوس زه ستاسودسوالونوځوابونه درکوم، چونکه خبره اوږده شوه له دې وجې نمبرپه نمبرستاسوسوالونه نقلوم اودهغو مختصرځواب لیکم:
**سوال:** ۱.ایادپورته ذکر شوي کس عقائدو ته داهل سنت والجماعت عقائدویل کېدای شي؟
**جواب:** ددې کس داعقائدداهل سنت والجماعت عقائدنه دي،ائمه اهل سنت په اجماع سره ددې خبرې قایل دي کوم چې دحضرت ادم علیه السلام دتخلیق جسماني په باره کې په احادیث نبویه کې بیان شوي دي،ځکه ددې کس دانظریه بدترین بدعت دی.
**سوال:** ۲:...دحضرت ادم علیه السلام دجسماني تخلیق متعلق حدیثونوپه باره کې ددې کس رویه د ګستاخي اوګمراهي ده؟
**جواب:** دحضرت ادم علیه السلام دجسماني تخلیق په باره کې بیان شویو حدیثونوپه باره کې ددې کس رویه پرته دځه شک نه ګستاخانه ده،دکوموتفصیل چې مې پورته ذکرکړی دی اودارویه بې شکه ګمراهي اوکج روي ده.
**سوال:** ۳:حضرت ادم علیه السلام ته (حیوان ادم)ویل ګستاخی نه ده؟
**جواب:** حضرت ادم علیه السلام ته په قطعي نصوصو سره اواجماع سلف سره(حیوان ادم)ویل اودهغه سلسله نسب دبیزوګانونه اخستل ، ،داشرف المخلوقات حضرت انسان توهین دی اودانهیواځې دحضرت ادم علیه السلام په شان کې ګستاخي ده بلکې دهغه په نسل کې پیداشویو ټولو انبیاء کرامو علیهم السلام هم توهین اوتنقیص دی،ظاهره ده چې حضرت ادم علیه السلام دټولوانسانانوپلاردی، اوس که ستاسوپلارته څوک، ،ځناور،یابیزو، ،ووایي، نوسوچ کول پکاردي چې داکنځل دي اوکه نه؟ همدارنګه (مثلاً: که هم دې صاحب ته)دځناوراولاد یا،دبیزواولاد، ، وویل شي ،نوداصاحب به داکنځل ګڼي اوکه نه؟اودابه خپل توهین اوتنقیص ګڼي او که نه؟

**سوال: ۴:** ایا داکس دتفسیربالرایې مرتکب نه دی؟

**جواب:** پورته مې ذکرکړي دي.چې خپله مزعومه نظریه باندې دقران پاک ایت جوړول تفسیر بالرایه ه اوداکس ،دحضورﷺ دارشادمبارک :**فلیتبوا مقعده من النار**،مستحق دی، یعنې ده ته پکاردي چې خپل استوګنځای په دوزخ کې جوړ کړي.

**سوال: ۵:** دحضورﷺ اودامت داسلافو عقیده داده چې دحضرت ادم علیه السلام قالب له خاورې نه جوړشوی دی او که نه؟

**جواب:** پورته مې ذکرکړي دي چې دحضورﷺ،دصحابه کرامواوسلف صالحینوهم دغه عقیده ده چې:دحضرت ادم علیه السلام قالب له خاورې نه جوړ شوی و،بیاپه دې قالب کې ساه واچول شوه،نوژوندی انسان جوړشو،فلاسفه وو چې په دې سلسله کې څه ویلي دي هغه یواځې یوه مفروضه ده،چې دهغو حیثیت دوهم اوظن نه پرته نورهیڅ نه دي اوظن اوتخمین اوتحقیق په بازارکې یې هیڅ قیمت نشته.دالله تعالی ارشاددی:

وَمَا لَهُمْ بِهِ مِنْ عِلْمٍ إِنْ يَتَّبِعُونَ إِلَّا الظَّنَّ وَإِنَّ الظَّنَّ لَا يُغْنِي مِنَ الْحَقِّ شَيْئًا (النجم:۲۸)

ترجمه:اوهغوی سره په دې باندې هیڅ دلیل نشته،یواځې په بې اصله خیالاتوباندې روان دي اویقیناً بې اصله خیالات دحق په مقابله کې هیڅ هم نه دي.

کوم قومونه چې دنبوت له نور نه محروم دي ،اګرکه هغوی له تاریخ وړاندې په میدانونوکې ورک شوي ګرځي ،نوګرځي دې اوظن اوتخمین اسونه که زغلوي نوزغلوي دې،اهل ایمان ته دهغوی دپاتې شویو خوړو هیڅ ضرورت نشته،ددوی په وړاندې دنبوت لمر راختلی دی،دوی چې هرڅه وایي نودورځې په رڼاکې وایي اودوی دقران اوسنت رڼاله ظن اوتخمین نه بې نیازه کړي دي.

**سوال: ۶:** ددې کس بیعت یادده سره تعلق ستاسوپه نزدڅنګه دی؟

**جواب:** دپورته تفصیل سره مې واضحه کړې ده چې څه حضورﷺ فرمایلي دي .هماغه حق دي اوددې کس دفلاسفه وو په تقلیدکېله نبوي ویناوو نه انحراف،دده دکج روي اوګمراهي دلیل دی،له دې وجې نه دې کس له پاره لازم دي چې دخپلو عقائدؤاونظریاتونه توبه وکړي اورجوع الی الحق وکړي اوندامت سره دایمان تجدیدوکړي اوهریوکس له پاره چې په الله تعالی اودهغه په رسول ﷺ باندې یې ایمان راوړي ، ددې کس ملګرتیاجائزنه ده،که یومسلمان دده په بیعت کې داخل وي، نودده نظریات اوخیالات معلومیدونه وروسته دده نه بیعت فسخ کول لازم دي.

## د ډارون نظریه دالله تعالی نفې کول دي

**سوال:** ځناور، مرغۍ او په زرګونو مخلوقات الله تعالی پیدا کړي دي، تاسو په ځواب کې فرمايلي وچې: دې باره کې مې څه وضاحت دنظرنه نه دی تیرشوی. نودې باره کې څه عقیده ساتل پکاردي؟ که مذهب دې باره کې څه رهنمایي نه کوي، نودمخلوق باره کې دډارون نظریه صحیح ثابتیږي.

**جواب:** دډارون نظریه خودالله تعالی نفې کول دي، دومره عقیده ساتل خو لازم دي چې ټولومخلوقات ته وجودالله تعالی ورکړی دی، خوځنګه یې ورکړی دی، دې باره کې څه تفصیل معلوم نه دی.[1]

## انسان څنګه پیداشو

**سوال:** مولاناصاحب دقران اوحدیث نه ثابت ده چې الله تعالی په انسانانو کې حضرت ادام علیه السلام جوړکړ اوموږټول دهغه اولادیو، خوپه ۱۹۸۹،۴،۱۵ باندې دجمعې په ورځ موږ په تې وي دورځې لس بجې یوفلم کتلی و، هغه کې ښودل شوي وچې انسان د مختلفومرحلونه وروسته دې شکل ته رارسیدلی دی، یعنې لومړی جراثیم، بیاکب، بیزو وغیره اواخري شکل یې دنن انسان شو.

اوس تاسووضاحت سره ووایئ چې دشریعت دې باره کې څه فیصله ده، اودیومسلمان دې باره کې څه ایمان پکاردی؟ که چیرې دتې وي والادافلم غلط وي، نوددې ذمه دارڅوک دي؟

**جواب:** داد ډارون دارتقاء نظریه ده، چې دټولونه لومړی انسان (حضرت ادم علیه السلام) سمدستي په وجودکې نه وراغلی، بلکې د یرو ارتقایي منزلونونه وروسته دبیزو شکل وجودکې راغی اوبیا بیز کې نورې تبدیلیانې هم راغلې اودانسان شکل یې اختیارکړ،دانظریه اوس د سائنس په نظرکې کمزورې شوې ده، ځکه چې دې دومره ډیروخت کې انسان کې څه تبدیلي رانغله، بلکې دترقې په وجه باندې ورو ورو دانسان په شان ځناورجوړیږي.

ترکومه حده پورې چې دمسلمانانوتعلق دی،هغوی ته دډارون د ارتقاء په نظریه باندې دایمان راوړلوضرورت نشته، دهغوی مخکې دقران کریم ښکاره اعلان موجود دی، چې الله تعالی د خاورې نه دادم علیه السلام قالب جوړکړ، هغه کې یې روح واچاو اودهغه نه ژوندی انسان جوړشو.[2]

---

۱] تفصیل له پارهه اوګوره خطبات بهاول پور کا علمي جائزه مطبوعة مکتبه لدهیانوی کراچی

۲] اِنَّ مَثَلَ عِیسٰی عِنْدَ اللّٰهِ کَمَثَلِ اٰدَمَ خَلَقَه مِنْ تُرَابٍ ثُمَّ قَالَ لَه کُنْ فَیَکُوْنُ (آل عمران :۵۹)

دکوم فلم چې تاسو ذکرکړی دی، کیدای شي چې دهغوی په قران اوحدیث باندې ایمان نه وي اوکوموخلکوچې په تې وي باندې فلم ښودلی وي، هغوی هم دقران اوحدیث په ځای باندې په ډارون باندې ایمان لري، خوپه کوم شي اندې چې زه حیران یم هغه دادی چې پاکستان کې دې فلم ښودلوباندې چااحتجاج ونه کړوداسې ښکاري چې دپاکستان غیرشعوري طورباندې بې دینه کولو کوشش کیږي.

## په مذهب اوسائنس کې فرق

**سوال:** مولاناصاحب!گزارش دادی چې کوم طالب علمان سائنس لولي دهغوی په نظرکې دمذهب په باره کې عجیبه کش مکش پیداشي اوکه هغوی سائنس مني، نومذهب ته هم دروغ نه نه شي ویلي،خو په سائنس کې ځینې مظاهر داسې دي چې دیوشش وپنج په کیفیت کې مومبتلاکوي اوس موږ په سائنس کې دټولونه مخکې نظریه.ارتقاء اخلو،چې انسان د بیزوګانو بن مانسونه ترقي کړې ده،خو په قران کریم کې ارشاددی چې اول الله تعالی انسان له خاورې نه بت جوړکړ،بیایې پکې ساه واچوله،بیایې حوا د آدم علیه السلام د پښتۍ نه پیداکړه،هرکله چې سائنس وایي چې دکله نه ادم جوړشوی دی، نوحوادده سره ده،بلکې هغمې زیږولی دی اوادم یې دجنت نه ځمکې ته راکوزکړی نه دی،بلکې دی یې په ځمکه باندې پیداکړی.دی،ددې سوال نه ظاهریږي چې نعوذبالله بزوګانواوبن مانس یانورځناوربه هم جنت یادوزخ ته ځي؟ځکه چې دسائنس مطابق دوی هم زموږ په شان دي.

په یوحدیث مبارک کې.دي چې دشپې لمرداللّٰه تعالی په وړاندې په سجده کې پریوځي اوسهاررده ته دلمرخاته نه دراختوحکم کیږي،خو موږ ته ښه پته ده چې دشپې لمرپه امریکه کې وي،یعنې دځمکې دویم طرف ته.

په یوحدیث مبارک کې راغلي دي چې ستوري داسمان دچت سره په رسیو(پړیو)باندې تړل شوي دي .مشره!که خلا ته ورتلوسره وکتل شي ،نوځمکه هم دسپوږمۍ په شان په اسمان کې په نظرراځي،یعنې هرطرف ته اسمان په نظرراځي اوسائنس دانان وایي چې هیڅ چت نشته،داټولې خبرې موپه شک کې اخته کوي.

اودجن،په باره کې داعرض دی چې ایا ،،پیریان یواځې په پیریان منونکوباندې ولې کېني؟ په انګریزانواوروسانواو داسې نورو... باندې چې شراب اونورشیان کوم چې دانسان له پاره ناپاک ګڼل کیږي استعمالوي،خو په هغوی باندې پیریان نه کیني،ایاداټول خیالات دیوانسان دماغ نه منجمدکوي، اوپرته دڅه وجې نه په دخوف او وېرې په کیفیت کې وي؟ ایا مذهب اوسائنس یوځای چلیدای شي؟که تاسوځواب رانکړ،نوزه به اوګڼم چې تاسوهم په شک کې پریوتي یئ؟

**جواب:** ستاسو خط د تفصيلي ځواب غوښتنه کوي هرکله چې ماسره وزګار وخت نشته. داهم داشاراتو په ژبه درته مختصراً عرض کوم اول څه اوصول په ذهن کې کښېنوه:

١: دسائنس بنياد په مشاهده اوتجربه باندې دی اوکوم شی چې دتجربې اومشاهدې نه ماوراء وي هغه دسائنس دوس نه بهردي، ددې په باره کې دسائنس هيڅ يوه دعوه دالتفات وړنه ده، هرکله چې وحې اونبوت هم هغه موضوع ده چې دانساني عقل اوتجربې اومشاهدې نه بالاترده، ظاهره ده چې په داسې معامله کې به دوحې اطلاع قابل اعتباروي.

٢: ډيرشيان زموږ مشاهدې سره تعلق لري، خودهغو پټو علتونو اواسبابو مشاهده موږ نه شوکولی، بلکې دهغو دعلم له پاره موږ دڅه صحيح ذريعه علم محتاج يو، داسې اموريواځې په دې وجې سره انکارکول يواځې بيوقوفي ده چې داشيان زموږ په نظرنه راځي.

٣: دوه شيان که خپل مينځ کې داسې ټکرشي چې د دواړو په يووخت کې تسليمول ممکن نه وي، نودا نه شي ويل کېدای چې دواړه صحيح دي؟ددې فيصله کولوله پاره موږ ته داکتل وي چې دڅه ثبوت په يقيني اوقطعي ذريعې سره شوی دی؟اودڅه په ظن اوتخمين په ذريعې سره؟دڅه شي ثبوت چې په يقيني ذريعې سره وي هغه حق دی اودويم باطل يامؤول.

۴: کومه خبره چې دخپل ذات په اعتبارسره ممکن وي اويورښتونی خبرورکونکی دهغې خبر ورکړی وي دهغې تسليمول لازم دي اوهغې نه انکارکول محض ضداوتعصب ده، چې ديو عاقل شان نه دی.

۵: په انساني عقل باندې اکثره دوهم تسلط وي، ډيرشيان چې قطعي اوبې شکه دي خلک دوهم دغلبې په وجه هغه خلاف عقل تصورکول شروع کړي اوډيرشيان چې دعقل صحيح خلاف وي دوهم دغلبې په وجه خلک نه يواځې صحيح ګڼي، بلکې دهغو دعقل مطابق په نوروهم دمنلوکوشش کوي.

داپنځه اوصول بالکل فطري دي، په دې باندې ښه پوه شئ، که په څه نکته کې ستاسواختلاف وي، نودهغه تشريح به وکړم اوس ددې اوصولوپه رڼاکې ستاسوپه سوالونو باندې غورکوم:

## نظريه ارتقاء

دمسټر ډارون نظريه ارتقا خواوس په خپله په سائنسي دنياکې هم په اخري سلګوده اوپه سائنس دانانوکې بدنامه شوې ده، خو تاسوهغه د قرني وحې په مقابله کې وړاندې کولوسره ددشک اظهارکوئ، داسوال چې دانسان دپيدايښت اغازڅنګه وشو؟ ظاهره ده چې دايوه تاريخي واقعه ده اودڅه اندازې اوتخمين په وجې سره ددې په باره کې دوټوک خبره کېدای نه شي.

دموجوده دور انسان نه خو په خپله په ابتدايي وخت کې موجودو، چې دخپلو سترګو ليدلى حال يې ويلى و،نه دا داسې شى دى،چې انساني تجربې ددې تصديق کړى واى،که نه په زرګونو کلونوکې به دې يوبيزو په انسان جوړيدلوکې ليدلى واى؟يايوبيزو ته دانسان جوړولو تجربه به يې کړې وه، هرکله چې دانظريه دمشاهدې اوتجربې دواړو نه محرومه ده نوددې په بنيادباندې په ګډو وډ انداز او د وهم کرشمه سازو باندې به قائمه وي،ددې په مقابله په خپله دخالق مخلوق قطعي، غير مبهم اوصفاارشادموجود دى،کوم چې تاپه سوال کې نقل کړي دي اوس په دې مسئله کې په خپله انصاف وکړه،کومه چې دانساني تجربې او مشاهدې نه ماورا ده،دمستېر ډارون اودهغه دملګرو له ځان وړاندې شوې تخمينه د اعتبار لائق ده که دالله تعالى علام الغيوب ارشاد؟که وحې په دې معامله کې زموږ رهنمايي نه واى کړې ،نوبياهم دعقل غوښتنه داوه چې موږ دډارون دغير مشاهداتي اوغيرتجرباتي خبرې نه وى اخيستې،ځکه چې دعقل خاوندان،په عقل سره ناپ کول کوي،په غيرعقلي او قياساتو او تخمينو باندې په پټوسترګوايمان نه راوړي، دنظريه ارتقاء په ملګرو کې دانسان نسل دبيزو نه اخستل هرکله چې دوحې الهي اومشاهدې اوتجربې تکذيب کوي نودانظريه داهل عقل په نزدڅنګه دالتفات وړکيداى شي؟

## حضرت ادم عليه السلام او جنت

دنظريه ارتقاجوړونکودانسانی نسل دنسب سلسله بيزوګانو پورې رسولوسره چې دانساني عقل کومه بيعزتي کړې ده له همدې نه پرې بنده پوهيداى شي،چې داول انسان په باره کې ددوى دنوروتخمينواوقياساتوکې به څومره رښتياوي،په خاص ډول دهغوى داوينا:چې انسان په اول کې دجنت نه راکوز شوى نه و ،بلکې په همدې ځمکه باندې دبيزو دجنس نه تبديل شوى و اوکه داچې:حوادده ښځه نه بلکې موربې وه،چاته پته نشته چې جنت اودوزخ دعالم غيب هغه حقيقونه دي چې په دې عالم کې دانساني مشاهدې اوتجربې نه بالاتردي اودکومو په باره کې چې دصحيح معلوماتويواځې يوه ذريعه ده اوهغه انبياء عليهم السلام باندې نازل شوې وحى ده، هغه غيبي حقائق چې دانساني مشاهدې اوتجربې دوس نه قطعي بهردي اودمشاهدې هيڅ يو خوردبين دهغو پورې رسيدوکې کاميابيداى نه شي په خپله سوچ وکړئ چې دهغو په باره کې په وحى الهى باندې اعتمادکول پکاردي که ددې خلکوپه وهم اوقياس باندې چې په اسونوباندې سواره په يوداسې ميدان کې ټوپونه وهي چې دهغوى دعقل اوادراک دحد نه بهرده؟ دسائنس دمشکل نه مشکل اسرارو او رموزو په باره کې ديوبې وقوف خبره چې څومره خندې دونکې ده له دې نه ډيرزيات ددې خلکواندازې او تخمينې مضحکه خيزدي،چې دوحې الهى درڼانه پرته امورالهيه پورې دتلوکوششونه کوي، دې مسکينانوته پته نشته چې ددوى دحقيقاتو دائره دماديت پورې ده،نه چې

دمابعد الطبيعات پورې، کوم شی چې ددوی دعقل او ادراک نه ماورا دی دهغو په باره کې چې دوی څه قیاس هم کوي دهغه حیثیت دتیارې دکاڼي اوپه تیاره کې دغشي چلولو په شان به وي، قطعاً ممکن نه ده چې ددوی داغشي په صحیح نښه باندې ولګیږي اوهغوی په خپله هم له ډیرخت نه دوادی ضلالت لاره ورکه کړې مسافران به ویاودهغوی مقلدین هم، مسلمانانو ته په تیاره کې د ډغرو وهلو ضرورت نشته اونه ورته ددې تیاروپه وادیو کې دورکیدو ضرورت شته، الحمدلله دهغوی سره د نبوت دلمر رڼاموجوده ده اوهغوی چې د امورالهیه په باره کې څه هم وایي بایددورځې په رڼاکې یې وایي.

## د لمر سجده کول

دلمرسجدې کولوکوم حدیث چې تانقل کړی دی هغه صحیح دی اوهغه دڅه سائنسي تحقیقاتواوعامې انساني مشاهدې خلاف نه دی، انساني مشاهده داده چې لمر روان دی، خو ددې رفتار دده خپل ذاتي دی، که دچاقادرمطلق دحکم اومشیت تابع دی؟ داهغه سوال دی چې دهغه ځواب په دې حدیث کې ورکړل شوی دی، چې حاصل یې دادی چې دلمر دراختلو او پریوتلو نظام دخودکارمشین په شان نه دی، بلکې دحق تعالی دمشیت اوارادې لاندې دی اوهغه دخپلو راختلواوپریوتلوله پاره الله تعالی جل شانه نه اجازه اخلي، یووخت به راشي چې حسب معمول دراختلواجازه به وغواړي خواجازه به ورنه کړل شي، بلکې دسرچپه تلوحکم به ورته وشي، په دغه ورځ به لمردمشرق په ځای دمغرب نه راوخیژي اوتقریباً دڅاښت دوخت پورې داوچتیدونه وروسته به بیا مغرب طرف ته لاړشي اوددې نه وروسته دقیامت دقائمیدوپورې به حسب معمول طلوع اوغروب کیږي.

اوس دلته څوموردتوجه ورړ دي:

اول: ددې نظام شمسي دحق تعالی جل وعلی دمشیت تابع کیدل دټولو دینونو اومذهبونو مسلمه عقیده ده اوکوم سائنس دانان چې دالله تعالی دوجوداقرارکوي ،هغوی هم ددې عقیدې نه انکار نه کوي، کوم خلک چې داکارخانه جهان خودکارمشین ګڼي اودادصانع حکیم تخلیق نه ګڼي، ددوی دانظریه دعقل اوحکمت په میزان کې هیڅ وزن هم نه لري، د صانع عالم په وجودباندې دلائلودا موقعه نه ده ځکه چې الحمدلله زمامخاطب مسلمان دی، ددې وجې نه دهغه په وړاندې دوجودباري تعالی باندې بحث کول نه یوائې غیرضروري بلکې بې موقعه هم دی، دلته یوائې په دې خبره باندې خبرداري مقصود ده چې هرکله دامنل شوی حقیقت دی چې نه یوائې نظام شمسي بلکې ټوله کارخانه عالم دالله تعالی دمشیت او ارادې تابع ده ،نود لمر دا راختل اوپریوتل هم باید ددې مشیت تابع کیدل وګڼل شي، دې نکتې ته حضورﷺ دلمرد روزمره سجدې کولو او ائنده ورځې راختلوپه اجازه سره تعبیرکړی ده.

دويم: څنګه چې په سوال کې ذکرشوي دي اومشاهده هم ده چې هره لمحه اوهروخت دلمر د راختلو اوپريوتلوعمل جاري دی،که په يو افق باندې پريوځي ،نوپه دويم افق باندې راخيژي،که په يوځاى کې دسهار رڼاښکاره کيږي ،نوپه بل ځاى کې دشپې دتيارې خورېدو اغازکيږي،ددې وجې نه په حديث پاک کې دوه احتماله دي،يوداچې حضورﷺ ديوخاص افق (مثلاً مدينې طيبې افق،يادعامې ابادۍ اُفق) ترې مراد واخيستل شي،په دې صورت کې به دحديث مطلب داوي چې لمرکله په دغه خاص افق باندې پريوځي ،نوراتلونکې ورځ دراختلوله پاره اجازه غواړي اوپه اجازه باندې راخيږي، تاسوته معلومه ده چې درياضي والا دهغتې دورځودتعين له پاره دلمر يو خاص افق مقررکړی دی،کوم ته چې (ډيټ لائن) وايي، ددې خط فاصل نه ديخوا دجمعې ورځ وي اوبل طرفته دهفتې ورځ،که داصورت اختيار شوی نه وی ، نودورځوتعين ممکن نه و ،ځکه چې لمرخوپه دنياباندې نه پريوځي ،له دې وجې نه د(ډيټ لائن) نه پرته دتاريخ او ورځې د تعين صورت نه و. هرکله چې اهل فن نه دورځودتعين له پاره ديوخاص افق مقررولونه پرته هيڅ چاره نه وه ،هم داسې دطلوع او غروب له پاره به په علم الهي کې هم څه خاص نقطه متعينه وي،چې هغې پورې رسيدونه وروسته به اينده ورځ دراختلوله پاره داجازې ايستل وي،نوپه دې کې هيڅ عقلي شک نشته.

دويم احتمال داد ی چې ددې لمردراختلوله پاره څه خاص افق مقرر نه شي ،بلکې داوويل شي چې دده طلوع په هريوافق باندې له اجازې نه وروسته وي،خو لمر طلوع هره لمحه په څه نا څه افق باندې جاري وي،نو دحديث پاک منشابه داوي چې دافتاب دحرکت يوه يوه لمحه دالله تعالى داجازې اومشيت مرهون منت ده اوديوې لمحې له پاره هم دده حرکت (په کوم باندې چې دطلوع اوغروب نظام قائم دی)له اجازې نه پرته جاری نه شي پاتې کيدای.

دريم: پاتې شوه دلمرسجده کول،نوکه داسې زموږ د امبانوله پاره څه نوې اوعجيبه معلوميږي ، خو اهل عقل ته پته ده چې دمخلوق هرشی دالله تعالى په وړاندې سرپه سجده دی اوهرشی دهغه دعظمت اوتقدس تسبيح وايي،خو دهرشی سجده کولاوتسبيح کول،دهغه دحالت اوفطرت أوشان مطابق دبېل نوعيت سره ده،موږ خلک دهغه ،، بې وينا زبان،،باندې نه پوهيږو،ځکه داخبره موږ ته عجيبه معلوميږي،دې طرف ته په قران کريم کې داسې فرمان سره اشاره شوې ده:"ولكن لا تفقهون تسبيحهم"(خوتاسوددې شيانوپه تسبيح باندې نه پوهيږئ)موږ خلک چې دعقل اوادراک اوشعوراوفهم يوه عامه درجه لرو اوداسې ويلوسره خپل زړه پوهوو چې دمخلوق هرشی دالله تعالى په قبضه اوتصرف کې مسخردی اومسخرکيدل دهغه سجده اوتسبيح دي،خو کوم حضرات چې په علم اوادراک اوعقل وفهم کې دعاموانسانانونه لوړدي دهغوی وينا ده چې مخلوق يواځې په زبان حال سره

هم دالله تعالی تسبیح خواني اودهغه په وړاندې سجده کولوفرائض نه پوره کوي .بلکې هرشي ته الله تعالی دهغه دحال مطابق دشعوراوادراک نعمت هم ورکړی دی اوهریوته یې دهغه مناسب ګویا ژبه هم ورکړې ده،ددې وجې نه هرشی دخپل خپل شعوراوادراک مطابق الله تعالی ته سجده کوي اوپه خپله ژبه کې دهغه تسبیح لولي:

خاک وباد واب واتش بنده اند بامن وتو مرده باحق زنده اند

په هرحال دلمرالله تعالی ته سجده کول بلاشبه حق اوصحیح ده،په خپله په قران کې ددې وضاحت موجود دی اوس دغه سجده زبان حال سره ده یازبان قال سره؟ ددې توجیه هرکس دخپلې اندازې اوپیمانه عقل اوفکرمطابق کولی شي اوکه دچاعقل یې یواځې له دې وجې نه نه مني چې داعجوبه (نااشنا) ده نوهغه ته به داویل بې ځایه نه وي چې دنیادقدرت دعجائبونوم دی.

دا د اور جوړه کره چې ورته لمرویل کیږي ددې وجود په خپله دقدرت دعجایبیوه نمونه ده اوبیاددې راختل اوپریوتل یوه مستقل عجوبه ده.که خدای مکړه لمریوځل نیم راختلی وې، نو دنیا به ددې اعجوبې دمشاهدې طاقت ونه لري، په کومه دنیاکې چې په زرګونو اعجوبې زموږدسترګوپه وړاندې موجودې دي اوموږ پرته دڅه تذبذب اوشرمندګۍ نه په دې عجائبوباندې یقین لرو ،نو محض ددې عجوبه کیدل زموږ دانکار دجواز وجه نه جوړیږي اوددې نه دانکارکولووالا په حق کې دپاګلتوب اوليونتوب فیصله کوو، نوهیڅ وجه نشته چې کوم شی زموږ دمشاهدې اوتجربې،زموږ دعلم اوادراک اوزموږدعقل او شعورنه لوړوي اویوشناسایې راز اودانایې رموز موږ ته ددې خبرراکړي ،نوموږ یواځې د عجوبې په وجه ددې نه انکار وکړو، ایادموجوده دور سائنسي ایجادات دیوعام عقل اوفهم والا انسان له پاره کم عجوبه دي؟ایادیوکم عقل بنده له دې نه دانکارکول یواځې په دې بنیاد باندې به جائزوي چې دهغه عقل دې شیانوباندې ګرفت کولونه قاصردي؟نه! بلکې کوم کس چې ددې جرات وکړي هغه کس به دانتهائي درجې بې وقوف وګرځول شي.سمه ده همدارنګه کوم کسان چې ددې عجائبات قدرت نه انکارکوي کوم چې یواځې دنبوت په علم اوادراک کې راتلای شي ،داخلک دخپل عقل دورسته والي اظهارکوي.

څلورم:دلمردراختلواوپریوتلوله پاره اجازه غوښتلو سره دانه لازمیږي چې ددې په حرکت کې څه دریدل (سکون) راشي،بلکې دا دواړه شیانوپه یوځای جمع کیدای شي،خوزه ددې نکتې نوروضاحت اوتشریح ضروري نه ګنم اواهل فهم له پاره یواځې اشاره هم کافي ده.

## د يو حديث حواله

تاسودیوحدیث حواله ورکړې ده چې ستوري داسمان دچت سره په رسیو(پړیو)باندې تړل شوي دي،ماته هیڅ داسې حدیث یادنه دی،چې دهغه داسې مضمون وي،که تاسوددې حواله

ورکولی شئ ،نوددې دالفاظو اومفهوم په باره کې څه عرض کیدای شي،په قران کریم کې دوه ځایه (الاعراف :۵۴،النحل:۱۲)ستورو ته (مسخرات بأمره،،)فرمایل شوي دي،یعنې ستوري حکم خداوندي سره مسخردي،ددوی په فضاکې معلق کیدل،هم ددې تسخیر یو مظهر دی،هم دغه هغه رنسئ دی چې دکوموسره دافضایي کرې ترل شوې دي اوکله چې ددې مخلوق دورانولو فیصله وکړل شي ،نوددوی دارسۍ به وسپړل شي اوستوری به خپل مینځ کې وجنګیږي اومات به شي اوددوی یه خپل مینځ کې جنګیدل دتصادم قیامت وړاندې خیمه به وي، که په څه حدیث کې دستورو په رسیوسره دترلو ذکرراځي، نوددې نه مراد داراده الهي هغه داوسپنې زنځیرونه دي کوموچې په فضاکې دا محیرالعقول ستوري نیولي دي،دمادي رسیوتکلیف دې ولې وشي؟ که ساتنسدانان ددې خلائي کُرې داستقرار اواستحکام له پاره دکشش ثقل څه اصول وړاندې کوي ،نوموړ ته ددې دنه منلو ضرورت نشته،ظاهري سترګې تحریر دکاتب دلاسودحرکت کرشمه ګڼي ،خودلاس حرکت ددماغو د ارتعاشي لهرونو تابع دی اودماغ دروح دحس اوحرکت تابع دي اودروح ،روح اراده خداوندي ده، همدارنګه ددې خلايي سیارولة پاره په ساتنسي دنیاکې چې کوم اصول وړاندې کیږي، هغه ددوی دخپل عقل معیارپورې صحیح دي،اسلام ددې نفې نه کوي، بلکې په دې اصولوکې داراده الهي دکارکردګې عقیده وړاندې کوي،که یوساتنسدان د اسبابو اوعلتونو دسلسلې دکړیو په مینځ کې ختمولوباندې اصرارکوي ،نوداهغه د بصیرت اومشاهدې قصور دی.

## دپیریانو په باره کې

دپیریانوپه باره کې دوه خبرې قابل ذکردي:

یوه داچې ایادپیریانووجود شته،یانشته؟

دویم داچې پیریان بنده ته تکلیف رسولی شي که نه؟ چې په عام عرف کې ورته دپیریان کیناستل وایي.

ترڅو پورې چې دپیریانودوجوتعلق دی په قران کریم کې دپیریانوذکر(دجن یاجان په عنوان سره)۲۹ځایه راغلی دی اود ،،سوره الجن،،په نامه په قران پاک کې یومستقل سورت دی، دسوره انعام ایت:۱۲۸،کې یواځې دپیریانواوسورت انعام کې ایت: ۱۳۰ اوسوره الرحمان ایت:۳۳کې،،یامعشرالجن والانس،،ویلوسره پیري اوانسان ته خطاب شوی دی،دسورت الرحمان ایت ،،فبای الاء ربکماتکذبن،،کې کوم چې ۳۱ واره ده دواړوته خطاب دی،سوره الجن ایت:۱،سوره الاحقاف ایت:۲۹ کې دپیریانویوې ډلې دحضورﷺپه خدمت کې راتلل اودایمان راوړلو تذکره موجوده او داسې نور...

همدارنګه دحضور ﷺ په پاکو ویناوو کې ځای په ځای دپیریانو ذکر راغلی دی،چې تفصیل یې غیرضروري دی،دقران کریم او احادیث شریفه نه واضح کیږي چې:
۱: پیریان یو مستقل مخلوق دی.
۲: ددوی له اور نه پیدا شوي دي.
۳: دانسانانو په شان په دوی کې هم دتولد او تناسل سلسله جاري ده.
۴:دانسانانو په شان هغوی هم داحکامات الهیه وومکلف دي.
۵: دانسانانو په شان په دوی کې هم ځینې مومنان دي او ځینې کافر.
۶:دوی دانساني نظرنه پټ دي.
۷:دوی کې چې کوم کافراو سرکشه وي هغوی ته (شیطان)یا(مردة الجن)ویل کیږي.
۸:ددوی نیکه ابلیس دی.
په قران کریم اوحادیث نبویه ﷺ کې چې دپیریانو په باره کې څومره ذکرشوی دی که هغه مخې ته کیښودل شي ،نو یو مستقل کتاب پرې لیکل کیدای شي اوعلمایې امت په دې موضوع باندې کتابونه هم لیکلي دي،چې په هغو کې (اکام المرجان فی احکام الجان)په عربي کې یو مشهور کتاب دې،کوم کسان چې په قران کریم اورسول الله ﷺ باندې ایمان لري دهغوی خو دپیریانودوجودمنلونه پرته بله لارنشته اوکوم خلک چې ددوی دوجودنفې کوي دهغوی سره ددې نه پرته بل دلیل نشته چې مخلوق ددوی له سترګونه پټ دی،له دې وجې نه که دااصول صحیح وي چې کوم شی په نظرنه راځی، نودهغه نه دې انکاروکړل شي ،نویواځې دپیریانودوجودنه بلکې دبې شمیره شیانو دوجود نه به انکارکول وي،کوم چې په سترګوپه نظر نه راځي،په دې کې په اول نمبر دانسان خپل روح دی،کوم چې هیچاپه سترګونه دی لیدلی ،موجوده سائنس دداسې جراثیموانکشاف کړی دی چې که هغوی په لکونوچنده لوی هم شي ،خوبیاهم دهغو په نظرراتلل مشکل دي، که دااصول صحیح وي نوخلکوته مشوره ورکول پکاردي چې دټولونظرنه راتلونکو شیانونه دې انکاروکړي،خو ماته پته ده چې داسې مشورې ته به تاسواحمقانه مشوره ووایئ. ځکه که داشیان عاموانسانانوته په نظرنه راځي، خو اثاراوقرائن ددې دوجودپته ورکوي،که داسائنسي دروبین یاخوردبین باندې نظرراتلونکی یوې وړوکې شان جرثومې باندې ایمان راوړل واجب دي اوددې نه منونکی احمق دی ،نودنبوت په دوربین اوخوردبین سره چې دکومو شیانو مشاهده کولوسره دهغو دوجودخبرورورکړل شوی دی ،دهغو په وجودباندې ایمان راوړل ولې ضروري نه دي؟اوددې نه منل ولې حماقت نه دی؟ دنه منونکو په لاس کې له دې نه پرته بل هیڅ دلیل نشته چې دهغوی کوتاه نظرددې شیانو دمشاهدې کولو نه قاصردی.

زما ستاسو نه ګیله ده چې د پیریانو د وجود بحث نه تاسو د سائنسي پیدا کړل شویو شکونو کې ولې ځای ورکړ، ؟سائنس خو (د مادیات ترحده پورې) د علم او تحقیق نوم دی، هرکله چې د پیریانو دوجود نه نفی په علم او تحقیق باندې مبني نه ده، بلکې د نا واقفي او جهل په بنیاد باندې ده، د پیریانو وجود د ځنې سائنسي اصول سره نه ټکریږي او نه سائنسي اصول د پیریانو د وجود نفې کوي، زمونږ د دې جدید دور یو مصیبت دا دی چې په دې کې د . . جهل . . نوم علم کینبودل شوی دی او دا خبره زما په علم کې نه ده چې د دې دوجود نفې باندې د دلیل په طورسره وړاندې کیږي، ګویا دا فرض کړل شوې ده چې که مونږ ته پته نه وي، نو دا ګڼل پکار دي چې په واقعې کې هغه د خپل وجود نه هم محروم دي، دا د دې د دور جدید هغه منفرد اصول دي چې د دې په ذریعه حقائق او واقعات په ډیر جرات سره دروغ ګرځول کیږي.
دویم بحث دا چې ایا پیریان په انسانانو باندې کیناستی شي؟ د دې ځواب دا دی چې عقلاً هیڅ شی د دې مانع نه دی، نن د مسمریزم او عمل تنویم په ذریعه چې د نیا د کوموعجائباتو مشاهده کوي هغه د هیڅ یو صاحب عقل نه پټه نه ده، نو که یو کس په یو خاص مشقي عمل سره خپل معمول مسخرکولی او دلږ ساعت له پاره بې عقل کولی شي او د هغه د روح سره خبرې کولی شي او د هغه نه چې غواړي خبرې ویستلی شي ،نو څه وجه ده چې د دې امکان نه دې انکار وکړل شي، دا غه هرڅه جنات هم کولی شي، هرکله چې د انسان او د پیري دقوت مقابله د میږی او فیل مقابله ده، کوم تصرف چې کمزوری میږی کولای شي ولې ترې انکار وکړل شي چې هم هغه تصرف فیل هم کولای شي؟
دا خبره خو په امکان باندې وه، ترڅو پورې چې د واقعې تعلق دی په دې کې هیڅ شک نشته چې په دې باره کې زمونږ ډیر خلک د توهم پرستۍ ښکار دي او په معمولي طبي مرضونو باندې هم ، ، د پیریانو د ناستې شک کوي، د ځینې صحیح معالج طرف ته رجوع کولو په ځای د غلط قسمه عاملانو په چکرکې داسې بند شي چې ترمودو مودو پورې د دې جال نه یې خلاصیدل نه نصیب کیږي، خو د عوامو د فضول توهم پرستۍ علاج دا نه ده، چې د واقعاتو نه دې هم انکار وکړل شي، واقعه دا ده چې په ځینو شاذ ونادر حالاتو کې د پیریانو اثرهم کیږي، په قران کریم کې د وه ځایه د دې ذکر راغلی دی، یو په سورت بقره کې د سود خورو ذکرکولو کې یې فرمایلي دي:

الَّذِينَ يَأْكُلُونَ الرِّبَا لَا يَقُومُونَ إِلَّا كَمَا يَقُومُ الَّذِي يَتَخَبَّطُهُ الشَّيْطَانُ مِنَ الْمَسِّ. (البقره : ۲۷۵)

ترجمه: کوم کسان چې سود خوري هغوی به په قیامت کې نه پورته کیږي ،خو دهغه چا په شان چې حواس یې ورک شوي وي، د پیریانو د ناستې له امله. (ترجمه شیخ الهند)
حضرت مفتي محمد شفیع صاحب رحمه الله د دې ایت په تفسیر کې لیکلي دي:

ارشاد دی چې کوم کسان سودخوري،هغوی نه دریږي خوداسې دریږي، لکه هغه کس چې شیطان پیري خبط کړی وي،په حدیث کې دي چې د دریدونه مراد محشرکې دقبرنه پورته کېدل دي،چې سودخورکله دقبرنه پورته کیږي ،نودهغه پاګل اولیوني په شان به وي چې شیطان لیونی کړی وي.

ددې جملې نه یوه خبره معلومه شوه چې دجناتو او شیطانانو داثرنه انسان بې هوشه یالیوني کیدای شي اوداهل تجربه متواتر مشاهدات په دې باندې ګواه دي اوحافظ ابن قیم جوزي رحمه الله لیکلي دي چې طبیبانواوفلاسفه ووهم دامنلې ده چې صرع،بیهوشي یاجنون دمختلفو اسبابوله وجې نه وي،په دې کې بعضې وختونوکې دپیریانواوشیطانانوداثرسبب هم وي، کوموخلکوچې ددې نه انکارکړی دی ،دهغوی سره دظاهري استعباد په ځای نورهیڅ دلیل نشته.(معارف القران ج:۱ ص:۲۴۷)

دویم ځای سورت انعام کې دهدایت پریښودلواوګمراهي اختیارو نکومثال ورکولوکې فرمایل شوي دي:

**كَالَّذِي اسْتَهْوَتْهُ الشَّيَاطِينُ فِي الْأَرْضِ حَيْرَانَ لَهُ أَصْحَابٌ يَدْعُونَهُ إِلَى الْهُدَى ائْتِنَا .** (الانعام:۷۱)

ترجمه: دهغه چا په شان چې شیطان په ځنګل کې بې لارې کړی وي،اریان دریان ګرځي په داسې حال کې چې دهغه ملګري بلنه ورکوي . چې راشه زموږ خواته!

دلومړي ایت نه معلومه شوه چې پیریان کیني، نودبنده نه مخبوط الحواس جوړوي اوپه دویم ایت کې هم ددې مخبوط الحواسي مثال ذکرشوی دی چې شیطان هغه دلارې نه بې لارې کړي،هغه حیران اوپریشان ګرځي اودهغه ملګری هغه ته اوازونه کوي چې موږ دلته یو موږ ته راشه،خوهغه دخپلې مخبوط الحواسۍ په وجه دهغوس اوازونو ته توجه نه ورکوي.

پاتې شو ستاداشک چې: پیریان یواځې په منونکوباندې ولې کیني؟ستاداشک هم په اصل کې دناواقفیت له وجې نه ده،تقریب فهم له پاره عرض کوم چې دمثال په طوردیودور افتاده دښته کلي اوسېدونکي صحرایي تصوروکړه،هغه ته څه خطرناکه بیماری لګیږي،خوهغه مسکین دخپلې ناواقفي له وجې نه نه پوهیږي چې دهغه دمرض اسباب څه دي؟دهغه دعلاج صحیح تدبیرځنګه کیدای شي؟ظاهره ده چې دهغه ددې جهل په وجه دمرض داسبابو اوعلتونو نه نفي کول به هیڅ طورسره صحیح نه وي،ددې مثال به وروسته دابیان کړم چې په امریکه اویورپ کې دنفسیاتي مریضانوځومره بهتات دی،هغه الحمدلله زموږ طرفونوته نشته،په دې ملکونوکې دداسې مریضانوله پاره لویې لویې شفاخانې هم موجودې دي، دعلاج معالجې سهولتونه هم ښه ډیردي،داعلی درجې ماهرین اومتخصصین هم موجود دي، نفسیاتي معالج دیوبل نه ښه موجود دی،خو ددې ټولووشیانوباوجودپه هغوی کې دنفسیایي مریضانوتعدادورځ په ورځ په زیاتیدودی اودهغوی هیڅ دارو نه دواء کیږي

اوتاد ابن قیم په ژبه دطبیبانو او فلاسفه وو فیصله اوریدلې ده چې ددې نفسیاتي امراضو په اسبابو کې اسیب او داسیب اثرهم کیدای شي،هرکله چې جدید مغرب ددې سبب نه منکردی اوعرض مې درته کړی دی چې ډدوی ددې انکاروجه دجهل نه پرته نورهیڅ نه ده،ماته ددې خبرې اجازه راکړئ چې دجدید مغرب مثال دهغه صحرایي په شان دی چې دمرض داصل سبب نه بې خبره اوجاهل دی،لطیفه داده چې کوم خلک ددې مرض داصل سبب نشاندهي کوي داجاهلان هغوی پورې ټوکې کوي،تاسووایئ اچې په داسې صورت کې به دهغوی مریضان لاعلاجه نه وي نونوربه څه وي؟ داویل چې انګریزان اوروسان دپیریانودوجودنه منکردي ددې وجې نه په هغوی باندې پیریان هم نه کیني،حقیقت ته ورته خبره نه ده،بلکې صحیح داده چې په مشرق کې پیریان په لکونوکروړونوکې په یوکس کیني،خو په مغرب په په زرګونوکسانوباندې ناست دي اوبې شمیره کسان یې مخبوط الحواس اونفسیاتي مریضان جوړکړي دي ،فرق که دی نوداچې مشرق،دپیریانودوجودقایل دیااودنفسیاتي مرضونوپه فهرست کې پیریان کیناستل هم شماري اوددې صحیح تشخیص په وجه باندې هغوی په علاج کې هم کامیاب دي،الاماشاءالله،ددې برعکس مغرب دخپلې ناواقفی ،تعصباوجهل په وجه باندې دنفسیاتي مرضونوکې اهم سبب نه تشخیص کولی شي اونه ددې دعلاج قدرت لري،خو څومره ستم ظریفی ده چې تاسوقصوروار مشرق ګڼئ اودمغرب جهل هنر تصورکوئ اوپه دې ښکاره خبره باندې سوچ نه کوي چې که په مغربیانوباندې پیریان نه کیني، نودمشرق په مقابله کې ددې لاعلاجه نفسیاتي مریضانودومره ګڼ شمیرولې دی؟

## دمذهب اوسائنس ټکر

پاتې شوداسوال چې:ایامذهب اوسائنس په یوځای تللی شي؟
ارمان چې فرصت وای، نوپه دې نکته به مې په تفصیل سره لیکل کړي و،خودلته یواځې ستاپه ځواب کې دومره عرض کوم چې که دمذهب نه مرادغیرفطري اوباطل مذهبونه وي کوم چې دمثال په طور، ،درې یواویودرې، ،په شان نظریاتوباندې خپل بنیادونه اوچت کړي دي، نو زما ځواب په نفی سره دی،دسائنس په مقابله کې داسې پخواني اوفرسوده مذهبونه له دې سره نه شي تللی اوکه مذهب نه مراد دین فطرت وي دکوم اعلان چې خالق فطرت په (ان الذین عند الله الاسلام) سره کړی دی ، نوزماځواب دادی چې مذهب دسائنس سره تللی شي اوروان دی اوانشاء الله ځی به،ځکه که سائنس(واقعتاً سائنس وي)درموزفطرت نه دپردواچتولونو دی،اسلام په خپله فطرت دی(فطرة الله التی فطر الناس علیها)
فطرت کله هم دفطرت سره ډغره نه خوري،ددې وجې نه اسلام ته دسائنس نه هیڅ خطره نشته،بلکې واقعه داده چې سائنس داسې ډیراسلامي نظریات فهم ته نزدې کړي دي کوم ته

چې به دپخوانۍ زمانې انسان دحيرانتياپه نظرسره کتل،هم ددې ځای نه زموږ په دې يقين کې اضافه کيږي چې اسلام پرته دڅه شک نه دخالق له لوري نازل شوی فطري دين دی اوکه سائنس دانان څه داسې خبره کوي چې داسلام دقطعي نظرياتوسره ډغره خوري، نوزموږ يقين دی چې هغوی دفطرت خلاف وايي،که نن نه وي نوسبابه په هغوی باندې دخپلې نظريې غلطيدل اوباطل کيدل ښکاره شي،خوهغوی نه ددې وجودختمولای شي او نه ددې رڼاغائبولای شي،اسلام دپوره انسانيت له پاره دهدايت لمردی،رانده ددې نه سترګې پټولای شي ګمراه اوکج روخلک دخپلونظرياتو دورې اوچتولای شي ،خو داوريځې به په هرحال ليرې کيږي اوداسلام دلمر رڼاګانې به په هرحال پرقيدلې وي.
غرض داچې:دسائنس هيڅ صحيح نظريه داسلام سره ډغره نه خوري اوکوم نظريات چې په ظاهرکې داسلام سره متصادم په نظرراځي هغه دسائنس فطري نظريات نه دي،بلکې ياخو ورته خام خياله خلکودهوا اوهوس،،سائنسي نظريې،،نوم ورکړی دی،ياهغه دتحقيق او تجسس دخلا او نور دواړو ترمنځ دسفردرميانه منزلونه دي، کوم چې په غلط فهمي او عجلت پسندي کې ،،حرف اخر،، ګڼل شوي دي،له دې وجې نه زموږ ځوانانوته ددې شکونو او شبهاتوپه تياروکې دهلته او دلته ګرځيدوضرورت نشته،ددوی سره دمحمدصلی الله عليه وسلم راوړل شوی قطعي پيغام هدايت اود فطرت دين موجوددی،ځکه اواسمان دځپل ځای نه ليرې کيدای شي ،خوپه پيغام محمدي ﷺ کې دوينښته برابر دکمي زياتي ګنجائش نشته،ضرورت ددې خبرې دی چې زموږ ځوانان دې دايمان اويقين په غيرمتزلزل قوت باندې ځانونه ښائسته کړي اومخکې دې ځي، په خپله دې مسلمانان جوړشي او سائنس دې هم مسلمان کړي،دسائنس مثال دتورې په شان دی،که داداسلام دغازيانوپه لاس کې وي نودجهادفی سبيل الله کاربه ورکوي اوکه دشوکمارو په لاسوکې وي نوپه فسادفی الارض کې به نوره اضافه کوي.والسلام.

## دسائنس دانانو دالحاداسباب

**سوال:** ماهنامه،،بينات،،کراچی بابت ماه جمادی الاولی ١٣٩٣هجری کې دجناب پروفيسر مجتبی کريم صاحب يومضمون دسائنس په ابتدائي معلوماتوباندې خپور شوی دی،موصوف په اولني پرګراف کې ليکلي دي:
ويل کيږي چې دسائنس لوستونکی دهري وي،خوواقعه دانه ده،که دسائنس اصولوته په غورسره وکتل شي.
دالله تعالی دقدرت کرشمې چې وليدل شي ،نو پرته داعتراف کولونه به لاره نه وي،سائنس دانانوباندې دهريه کيدو الزام لګول غلط دي.

**جواب:** زما په خيال کې دا خبره جزءي طورسره خو صحيح ده،ځکه چې په امريکه، يورپ، روس اوکميونسټ ملکونو کې اکثرسائنسدانان نيم ملحد اوددهري نظريې والا په نظر راځي،په دې کې شک نشته چې دسائنس ايجاداتوعقل حيران کړى دى اوپه مادى سطح باندې دانسان دراحت اوسهولت دوه صورتونه په وجودکې راغلل،دکوم چې څه موده مخکې تصورهم نه شو کيداى ، خوسائنس دان دحقيقت کبرى پورې رسايي نه محروم دى.

دايټم زره ځيرولوسره اودهغه بنيادي عناصراوپه هغو کې پټ قوت موندلوکې هغوى ضرورکامياب شوي دي،خودانسانيت اجزاء ترکيبي اودهغوى دقدروقيمت معما هغوى نه حل شوې نه ده،هغوى دټولووعلوياتواوسفلياتودنظام ارتقائي کړي په ډيرمحنت سره تلاش کړي دي،خوپه خپله دانسان دمعراج ارتقاء اومبداء اومنتهاڅه ده ؟ددې ځواب هغوى ته معلوم نه شو،هغوى دمخلوق ديويوشي خواص اواوصاف ولټول خودانسانيت اخلاق اواقداراوددې دجوړيدو اوورانيدواسباب دجستجونه هغوى هميشه عاجزدي،انسان دمختلف اعراض اوجواهرو دپيمائش له پاره الات ايجادکړل،خودپيمائش انسانيت پيمانه دهغوى دلاسونو نه پريوتله اوماته شوه،هغوى په ډيرحساس خوردبينونو باندې ترټولو واړه جراثيم وليدل خوهغوى ته دخودشناسي خوردبين په لاس ور نه غى،چې په هغه کې ورته دخپل نفس څه جرمونه په نظرراغلي وى،غرض داچې دسائنس ترقي يوه دنيابدله کړه،خوافسوس چې دمشرق اومغرب ملحد سائنسدانان دخداشناسي اوانسان شناسي ددولت نه محروم پاتې شول،بيشکه همدارنګه کيدل پکارنه و، خو وشو اودټولوپه وړاندې کيږي،داسې ولې وشو؟ددې ولې ځواب دچا (خضر زاه) نه معلوم کړئ،دحضرت موسى عليه السلام اوحضرت حضر عليه السلام کومه کيسه چې په قران پاک کې ذکر شوې ده،په دې کيسه کې دحضرت حضر عليه السلام يوه فقره په صحيح بخاري حديث کې مروي ده،دکومې سره چې داعقده حل کيږي،يعنې حضرت موسى عليه السلام چې کله دطالب علم په حيثيت سره دحضرت حضر عليه السلام سره درفاقت وړانديزوکړ ،نوددې په ځواب کې حضرت حضر عليه السلام وفرمايل:

**"ياموسى إني على علم من علم الله علمنيه لا تعلمه أنت،وأنت على علم من الله علمک الله، لاأعلمه. (صحيح بخاري ج:٢ ص:٦٨٨)**

ترجمه: اې موسى!زه دالله تعالى دطرف نه راکړل شوې يوداسې علم باندې يم په کوم چې ته نه پوهيږې اوته دالله تعالى دطرف نه درکړل شوي يوداسې علم باندې حاوي يې په کوم چې زه نه پوهيږم.

اوپه دويم روايت کې ددې په ځاى داالفاظ دي:

"أما يكفيك أن التوراة بيديك؟ وأن الوحى تاتيك؟ياموسى!إن لى علمًا لا ينبغى لك أن تعلمه وإن لك علمًا لا ينبغى لى أن أعلمه." (ج:٢ ص:٦٨٩)

ترجمه: ایا ستاله پاره دومره کافي نه ده چې ستا په لاسونو کې تورات دی او دا چې تا ته وحې هم راځي؟اې موسی!زما سره چې کوم علم دی دهغه زده کول ستا شایان شان نه دی او تا سره چې کوم علم دی په هغه باندې حاوي کیدل زما دوس خبره نه ده.

دحضرت حضر علیه السلام په دې حکیمانه فقره کې چې په څه باندې پوهول شوي دي دهغو دتشریح له پاره لاندیني نکات دې ملحوظ وساتل شي:

١: دالله تعالی دطرف نه دوه قسمه علمونه ورکړل شوي دي:

یو دمخلوق داسراراورموزو،دشیانواوصافاودفوائداونقصاناتوعلم،کوم ته چې:.علم مخلوق ،،یا،،علم تکوینی،،ویل کیږي،ټول انساني علمونه اوددې په سوونوشعبې ددې،علم مخلوق، ، ښاخونه دي،خودمعلومات خداوندي په مقابله کې دانسان دامخلوقي علم دسمندرپه مقابله کې دقطرې اودغره په مقابله کې دیوې ذرې نسبت هم نه لري.

دویم هغه علم کوم چې خالق مخلوق دذات اوصفات،دهغه دمرضیاتو اونامرضیاتو او دانسان دسعادت اوشقاوت ښکارندویي کوي دې ته،،علم الشرائع،،یا تشریعی علوم،،ویل کیږي.

٢: دادواړه علمونه هم دالله تعالی دطرف نه بندګانوته ورکول کیږی،خوددواړوذرائع بېل بېل دي،دلومړي قسم له پاره احساس،عقل،تجربه ،فهم اوفراست ورکول شوی دی اوکوم ځای ته چې دانسان دعقل اوسوچ رسېدل کیدای نه شي هلته وحې اوالهام سره دده رهنمائي کیږي،لکه دانسان ددنیاوي ژوندسره متعلق دټولو علمونومبادیات دوحې اوالهام په ذریعه ښودل شوي دي( وعلم ادم الاسماء کلها)نورداچې په انساني فطرت کې عقلي اوتجرباتي علمونوکې دترقي کولوپوره استعدا اېښودل شوی دی.دهمدې علم یوه شعبه حضرت حضر علیه السلام ته وهبي طورسره ورکړل شوه اودخالق مخلوق دذات وصفات دمعرفت اودهغه دمرضیات اونامرضیات پیژندګلوي چونکه دانساني ادراک نه پورته وه،ددې په وجه ددې مداریواځې په عقل اوتجربه باندې کېښودل شو،بلکې ددې دتعلیم له پاره دانبیاء کراموعلیهم السلام یوه مستقله سلسله جاري شوه،دکومې شروع چې دحضرت ادم علیه السلام نه وشوله اوانتهاء یې په حضرت محمد صلی الله علیه وسلم باندې وشوه،حضرات انبیاء کراموته دمعرفت، ذات اوصفات،مبداء ومعاد ،سعادت وشقاوت،فضائل ورذائل،عذاب وثواب تفصیلاتو باندې وحې په ذریعه خبر ورکړل شو.دهغوی په وړاندې الله تعالی پورې درسیدو صفا سوتره لاره پرانستې شوه.دوی ددې صراط مستقیم په دعوت باندې مامور شول او دا

حضرات ادم داولاد مقتدایان جوړ شول اودپوره انسانیت سعادت اوشقاوت ددوی دقدمونوسره وتړل شو،هم داهغه علم و کوم چې موسی علیه السلام ته ورکړل شوی و.

۳: انبیاءکرام چونکې دانساني ورور ولی یومعززه ډله ده اوهغوی سره هم ددې ژوند ضروریات په هرحال لاحق دي،له دې وجې نه هغوی دانسان ددنیوي حاجاتونه بې خبره نه دي نه دکسب معاش حوصله شکني کوي اونه له ژوندسره دمتعلقه علومو نفې کوي،بلکې د ضرورت په اندازه په خپله هم کسب معاش کوي،خو دژوندپه حرکت ،سکون اوکسب معاش په هرطورطریقې باندې په دې نقطه نظرسره بحث کوي چې داد الله تعالی په نزدخوښ دي او که نه ؟اوداداخرت دمسافرله پاره دلارې توښه ده،یادهغه منزل ته نقصان ورکوي؟ غرض داچې هغوی دژونددهرې شعبې په باره کې هرکس ته هدایات ورکوي، جایز او ناجایز ښیي، دښه اوبدښکارندوي کوي،خوپه خپله څه علم اوفن خپله موضوع نه جوړوي، بلکې،، انتم اعلم بامور دنیاکم،،ویلوسره مخکې ځی،ګویادنیاڅه علم یافن اوفلسفه اوسائنس موضوع جوړول دهغوی داعلی اوارفع شان نه فروترشی دی،همدا مطلب دحضرت حضر علیه السلام ددې ارشاددی چې:اې موسی!ماسره چې کوم علم دی دهغه زده کول ستاشایان شان نه دی،همدا وجه ده چې دمادیاتوکومه ترقي ددوی دامتیانو په لاسونوشوه په خپله دهغو حضراتو لاسونه په دې کې ملوث نه شولاوغالباً همدغه نکته ده چې ترکومې پورې ددین دترقۍ تعلق دی حضور ﷺ دهغې محنت پایه تکمیل پورې ورسوله اوکله چې په ده باندې دفتوحاتودروازه پرانستل شوه نولاسونه یې وڅنډل اوله دنیایې تشریف یوړ اوداکارېې خپلوخلیفه ګانوته حواله کړ.

۴: په انبیاء کراموعلیهم السلام باندې چې کوم علمونه پرانستل شوي وو هغه یواځې دهغوی له پاره نه دي،بلکې ټول انسانیت دهغو محتاج دی،ددې وجې نه ددنیاترټولو دانشور، حکیم،سائنس داناوفیلسوف داعلوم دانبیاء کراموعلیهم السلام له وساطت نه پرته نه شی حاصلولی ،دعام انسان همدغه کمال دی چې هغوی دعلوم نبوت څه برخه دهغه حضراتوپه ذریعې سره حاصله کړي ،خونه هغوی دټول علوم نبوت احاطه کولی شي اونه دانبیاء کراموعلیهم السلام نه مستغني کیدای شي اونه دعلوم نبوت څه کرشمه ورته نصیب کیدای شي،هم دغه مطلب دحضرت حضر علیه السلام ددې ارشادی چې:اوتاسره چې کوم علم دی په هغه باندې حاوي کیدل زمادوس خبره نه ده،که دپرائمري طالب علم دریاضي ګرانو مسائلو یادایتمي نظریې تشریحاتوباندې پوهیدو نه قاصردی، نوپه دې کې دهغه مسائلو څه قصورنشته،بلکې دطالبعلم ذهني کمزوري ده،دانبیاء کراموپه وړاندې دټولې دنیا عقلاء،حکماء،افلاطوناوجالینوس طفل مکتب دیاونه د ددوی اساتذه فطرت(علیهم السلام)نه مستغني کیدای شي اونه په دې علمونوباندې دحاوي کیدوحوصله لري.

دفلسفې اوسائنس ماهرين، چې دعلم اودانش ،عقل اوفهم په کومه مرتبه باندې فائزدي ،ددې په وجه دمخلوق له رنګونو په نسبت دنورو نه زيات واقف اودفطرت دنيرنګينو (چل اوفريب) سره زيات اشنا دي،دهغوی نه داتوقع بې ځايه نه وه چې هغوی به دقدرت خداوندي په وړاندې دټولونه زيات سرپه سجده وي،درسالت اونبوت ضرورت اواهميت اودانبياء کراموقدر اومنزلت دټولونه زيات په هغوی باندې ښکاره کيږي اووحي الهي سره کومه چې په انبياء کراموباندې نازليږي دټولونه زياته استفاده هم هغوی کوي.
انبياء کرام عليهم السلام سره وفاداري،وجان نثاري ،اطاعت اودفرمانبرداري مظاهره دټولونه زياته دهغوی له طرف نه وي،خو دبدقسمتي نه دسائنس قيادت چې دچاپه لاسوکې راغلی دی هغوی دمعرفت دروازې ته چې ورغلل نو وروسته شول اوهغوی دانبياء کرامو عليهم السلام اطاعت شرم وګڼه اودتعليمات نبوت نه يې داستغنامظاهره وکړله،همدارنګه ارشادخداوندي: **واضله الله على علم** .(اوګمره کړل الله تعالی دوی له علم سره سره)په دوی باندې صادق راځي،دقديم دور فلاسفه دانبياء کرامودعظمت قايل وو ،خودهغوی وينا وه چې دوی خودعواموداصلاح له پاره رالېږل شوي دي، کله چې موږ دتهذيب اوتربيت په منصب باندې فائزيو،نو دنبوت نه داستفادې ضرورت باقي نه پاتې کيږي"**ونحن قوم هذبنا انفسنا**" دنوي دور فلاسفة (سائنس دانان)په غروراوتکبرکې له هغوی نه زيات ترقي يافته ثابت شول،هغوی انبياء کرام عليهم السلام اودهغوی مشن ته په سپک نظر وکتل،دانبياء کرامو عليهم السلام دزهد اوقناعت اوددنياسره بې رغبتي دکوم دعوت چې دانبياء کرامو خاص موضوع وه،دهغو نه يې دنفرت اوبيزاري اظهاروکړ اومخصوص علوم چې انبياء کرامو ته ورکړل شوي وو ،دهغو په باره کې يې نه يواځې شک اوشبه بلکې ضداو عنادهم ښکاره کړ چې په نتيجه کې نه يواځې دايمان له نورنه محرومه شول بلکې دانسانيت داعلی اخلاقي اقدارونه يې هم لاسونه ووينځل اوس ددوی محنت،انسانانوانسانيت په ځای په خاوره اودخاورې نه راوتوتکيو شيانوباندې خرچ کيږي،شيان جوړيږي اوانسانيت ورانيږي.
سائنس دخپلې ټولې ترقۍ باوجود دامغرور سائنسدانان ددهريت اوالحاد له غولې بهر نه کړای شول،بلکې ددې برعکس دوی دسائنس ملحد اودهري جوړولوکې کامياب شول، دسائنس دنيم پوخته اونيمګړيو نظرياتو په وجه چې( نن په ډيرزور اوشورسره دهغو د ثابتولو کوشش کوي اوسبا ددې غلط ثابتيدو باندې دلائل ورکوي)دسائنس ډيرو زده کوونکو داسلام په مقابله کې دهريت ته په لالچې نظر سره کتل شروع کړي دي،همدارنګه دهريت اوبې ديني دسائنس فيشن جوړشو ،دانبياء کراموعليهم السلام په مقابله کې ددې سائنس دانانو دمتکبرانه عادت سبب دماديت غلطه نشه ده،دسائنس عالمانو دافرض کړه چې دماديت داترقي،دا روښانتيا ،داسيارې اوطيارې،داايټم اوقوت دانسانيت کمال او

خیر بس یواځې هم په همدې شیانوکې دس،په فضا کې الوتل،په دریابونوکې لامبو وهل، سپوږمۍ ته رسیدل،دلمرطول اوعرض ناپ کول او دزهره اومُشتري خبرراوړل.بس دغه دانسانیت اخري معراج دی اوداترقي دانبیاء کرامو په زمانه کې نه ده شوې .ځکه یواځې دا نه چې دسائنس دور،ددورنبوت نه افضل دی،بلکې دا ترقي یافته خلک په خپله دټولو انسانونه بهتردي اودې پروپیګنډې (افواه) ته دومره هوا وکړل شوه چې نن ډیرمسلمانان هم موجوده دور ته(مهذب دور)اوپخواني دورته (چې دانبیاء کرامودور و)په تو دورسره تعبیر کولو باندې نه شرمیږي(انالله واناالیه راجعون)!

سره له دې چې دنبوت نه کټ کیدوسره په کومه ترقۍ چې نن دنیا په جاموکې نه ځاییږي دانبیاء کرامو په نظردې قیمت دماشي دوزر برابرهم نه دی.دحضور ﷺ ارشاد مبارک دی:

**"لوكانت الدنيا تعدل عندالله جناح بعوضة لما سقى كافرًا منها شربة". (مشكوة)**

ترجمه: که دالله تعالی په نزد دپوره دنیاقیمت دماشي دوزر برابر هم وای، نوهیڅ کافرته به یې یوغړپ اوبه هم نه وې ورکړې.

دانبیاء کرامو علیهم السلام په وړاندې داخرت نه ختمیدونکی ژوند دی.دکوم ځای دنعمت اولذت اوراحت ارام چې تصورهم دلته نه شي کیدای.دانسان هیڅ داسې خواهش نشته چې هلته به پوره نه شي اوهیڅ قسمه غم اواندیښنه داسې نشته چې دهغې دلاحق کیدوخطره دې هلته وي،داسې ژوند چې دمرګ به هیڅ ویره نه وي،داسې صحت چې دمرض به هیڅ خطره نه وي، داسې ځواني چې دبوډاوالي(زړښت) تصوربه هم نه وي، داسې راحت چې دتکلیف نوم به هم نه وي،سلطنت دومره لوی چې دهغه په مقابله کې داځمکه اواسمان هیڅ حیثیت نه لري،ظاهره ده چې دچادسترګوپه وړاندې داخرت دابې حده اوبې حسابه ژوند دخپلو ټولو نعمتونوسره وي،هغه چې زموږ له سختیواوحوادثونه ډک ژوند په په لوبې اوتماشې سره تعبیرنه کړي، نوله دې نه زیات صحیح تعبیرڅه کیدای شي؟قران کریم بار بار داسې ویلو سره انسانیت دغفلت له خوب نه رابیدارکړی دی:

وَمَا هَٰذِهِ الْحَيَاةُ الدُّنْيَا إِلَّا لَهْوٌ وَلَعِبٌ وَإِنَّ الدَّارَ الْآخِرَةَ لَهِيَ الْحَيَوَانُ لَوْ كَانُوا يَعْلَمُونَ (العنكبوت:٦٤).

ترجمه:او دادونیاژوند (په حقیقت کې)له لهواولعب نه پرته نورهیڅ نه دی،اصلي ژوند دعالم اخرت دی اوکه ددې پته ورته وای ،نوداسې به یې نه کول(چې په فاني کې مشغول شي اوباقي هیره کړي).(بیان القران)

دځلورو پنځوکالوماشوم که دلرګي یوڅوټکړې له یوې اوبلې خوا راجمع کړي اوګډوډ دسپوږمۍ ګاډۍ(چاندګاړی)ترې جوړکړي، نودالوبه دهغه دذهانت دلیل ده اوکه پلاریې هم دزوی په نقالي کې همدارنګه ګاډي جوړل دخپل ژوندموضوع جوړه کړي، نودا ذهانت نه

دي،بلکې دليونتوب علامت ده.تاسوواړه ماشومان روزانه په شکوخاوروکې کورونه جوړولوباندې وینئ اوکه یوه ورځ یومشرصاحب هم دغه مشغله باندې ووینئ. نوددې صاحب په باره کې به ستاسورایه څه بل ډول وي؟دټوکر وړې وړې ټوټې راجمع کول اودهغې نه دګوډیانو(لانځکو) له پاره جامې جوړول د وړو ماشومانو جینکو خوښه مشغله ده او د هغوی دحوصله افزايي له پاره مورهم کله کله دهغوی رهنمایي کوي.خو که بیګم صاحبه ټول کارونه پریږدي اودګوډیانولوبې دخپل ژوندهدف جوړکړي، نوورته دعلاج ضرورت دی.
بالکل همداسې ددنیاپوره ژونددخپلې ښکلا او فتنو سره سره دانبیاء کراموعلیهم السلام په نظرکې یوه لوبه ده اوکوموکسانوچې دالوبه دخپل ژوند واحد مقصدجوړکړ اوټول محنت يې یواځې په همدې باندې خرچ کیږي او یواځې ددې له پاره ګرځي اومري اوژوندی کیږي اګرکه ډیرې کارنامې وکړي اونوي نوي ایجادونه وکړي، یالوی لوی جمهوریتونه چلوي خودانبیاء کراموعلیهم السلام په نزد ددوی انسانیت دعلاج وړ دی.

قُلْ هَلْ نُنَبِّئُكُمْ بِالْأَخْسَرِينَ أَعْمَالًا . الَّذِينَ ضَلَّ سَعْيُهُمْ فِي الْحَيَاةِ الدُّنْيَا وَهُمْ يَحْسَبُونَ أَنَّهُمْ يُحْسِنُونَ صُنْعًا . (الکهف:۱۰۳،۱۰۴)

ترجمه:تاسو ﷺ(دوی ته )ووایئ چې ایاتاسوته داسې خلک وښایم دچاکارنامې چې دټولونه زیاتې په تاوان کې دي؟(نوواورئ)داهغه خلک دي دچاچې په دنیاباندې شوی محنت هم دلته ضائع شو اوهغوی دجهل په وجه په دې خیال کې دي چې هغوی ډیرښه کارکوي.

غرض داچې دانبیاء کراموعلیهم السلام په دورکې په خپله دهغوی په لاس دمادي ترقۍ نه کیدو وجه دانه ده چې دهغوی دور دنن دورپه نسبت_نعوذبالله_تیاره اوغیرمهذب و اود انسانیت دارتقاء ابتدایي منزلونه يې طی کړي نه وو.بلکې ددې اصلی سبب دادی چې دهغوی دبلندترین منصب اوعظیم هدف په مقابله کې دمادیت داټوله لوبه دماشومانو د لوبې په شان حیثیت لري،انبیاء کرام دایټم موندلوله پاره نه وو راغلي،بلکې هغوی هغه اوچت ذات سره انسانیت اشناکوي دچاپه وړوکې شان اشارې، ،کن، ،کې په زرګونه ایټمونه پټ دي،دهغوی نظریواځې دمخلوق په باهمې ربط کې نه وي، بلکې په دې باندې غورکوي چې ددې مخلوق،خالق قدرت سره څه ربط دی؟دهغوی موضوع په شیانوباندې محنت نه وي ،بلکې په انسان سازۍ باندې محنت وي،دهغوی په نزد ددې چیټروهیڅ حیثیت نشته.کوم چې ددنیانابالغه خلکوپه ډیرښایست سره په الماریوکې ایښې دي ،ددې خاورینوکورکیو هیڅ قیمت نشته،چې دانادان ماشومان يې نقش ونګارسره ښائسته کوي اوددنیاظاهري ښکلا و جلا کې دهغوی له پاره هیڅ کشش نشته،په کوم باندې چې دابې عقله ماشومان مین دي،هغوی ته پته ده چې ددې اصلي حقیقت څه دی؟هغه دیوې فناکیدونکې خاورینې

غونډۍ نه پرته هيڅ هم نه ده،ددې حقيقت اظهارهم هغوی په داسې الفاظوسره کوي:

"مالي وللدنيا؟وما أنا والدنيا إلا كراكب إستظل تحت شجره ثم راح وتركها" (مشكوة)

ترجمه: زماله دنياسره څه ؟زمااوددنيامثال خوداسې دي لکه چې يومسافرديوې ونې دسوري لاندې کيناست،لږ وخت يې ارام وکړ،بيايې هغه پريښود اوروان شو.(اوبياکله هم ورته ددويم ځل راتلوضرورت پيښ نه شو)

اوکله خلک په دې لوی حقيقت باندې داسې پوهوي:

"كن في الدنيا كأنك غريب أو عابر سبيل وعد نفسك في أهل القبور." (صحيح بخاري)

ترجمه: په دنياکې داسې اوسيږئ ګوياتاسودلته ديوڅوورځومسافريئ اوداسې وګڼئ چې تاسوداهل قبورپه صف کې شامل يئ،(نن که نه وي نوسبابه ستاسونوم هم وا نه خستل شي)

مابعدالطبيعات نه ړونداوکوڼ سائنس،دچاپه نزدچې يوشی منلوله پاره دهغه شی مشاهده کول اوپه لاسوسره کتل شرط دي،چونکه په حقيقت باندې دپوهيدونه عاجزدی،ددې وجې نه هغوی د(ايمان بالغيب)دټولې نبوي سرمايې دخندا نذرکوي اوهم ددې ځای نه دهغوی دملحدانه شفقت اغازکيږي.

غرض داچې دسائنس دانانودټولې محرومۍ باعث د..نبوت..نه انحراف دی اوددې انحراف وجه جهل اوغرور ده،که په دوی باندې ددې مخلوق پټ حقيقت ښکاره شوی وای ، نو دوی ته به معلومه شوې وه چې مخلوق يواځې دانه دی دکوم تعلق چې دمرګ نه مخکې دمشاهدې سره دی،بلکې داخواصل دمخلوق يوه وړه شان ذره ده،که داصل مخلوق اوبيادمخلوق نه وروسته دخالق مخلوق رازپه دوی باندې منکشف شي ،نودوی ته به معلومه شي چې په کربونه ډالرخرچ کول اودسپوږمۍ نه يوه دړې خاوره راوړل دترقۍ علامه نه ده ،بلکې دسفاهت اوکم عقلۍ نشان دی،دنبوت دلمن نه کټ کيدوسره ددې سائنس دا..سفيهانه محنت..انسانيت ته دبې قرارۍ ،ناخوښۍ،کرب واضطراب تحفه ورکړې ده اوددې نا ارامۍ دوختې ارام له پاره دمختلف قسم مصنوعي تفريحاتو اومنشياتو نسخه يې تجويزکړه،دنن مفلوج انسان چې دکوم اخلاقي، روحاني،نفسياتي.جسماني مرضونو نمونه جوړه شوې ده اهل عقل ته ددې تجزيه کول پکار دي ، چې په دې کې دسائنسی ترقۍ برخه څومره ده؟زماخپل دا ايمان دی چې ترڅوپورې دسائنس داکوششونه دنبوت تابع شوي نه وي اوترڅوپورې چې سائنس دانان دانبياء کراموعليهم السلام په وړاندې دخپل علمي عجزاعتراف ونه کړي ترهغو پورې به سائنس هم هغه شان ملحدوي اوددې ټول ترقياتي کارنامه به دانسانيت دهلاکت اوبربادۍ په کارراځي.پاتې شوداسوال چې سائنس دنبوت دلمنې سره تړل ممکن دي؟ددې ځواب دمسلم سائنس دانانو دجرات اوهمت اوفهم فراست په انتظاردی.

دسائنس جدید نظریاتو تر ټولو لوی دهریت نوازسائنس دان هم د . .وجود خدا . .په اعتراف کولوباندې مجبورکړی دی،(اګرچې هغوی دومره جرات نه لري چې په ښکاره ددې اعلان وکړي) خوداهم هیرول نه دي پکار چې یواځې د . .وجود خدا . .مبهم تصوردهریت ددې مارخوړلو له پاره ترياق نه دي،نه محض دې تصورسره یوبنده ته . .خداپرست . .ویل کیدای شي ،بلکې هغه لره به دایمان اویقین په رڼاکې نورې مرحلې هم طی کول پکاروي.یعني دخدايي صفات څه دي؟ددې عالم دتخليق مقصد څه دی؟هغه دانسان دښیګړې اوبدۍ څه معیارتجویزکړی دی؟

## دالقران ریسرچ سنټر د تنظیم او ددې د باني محمد شیخ شرعي حکم

**سوال:** مولاناصاحب! نن سبایوه نوې فتنه دقران سنټرپه نامه سره ډیره په ترقۍ ده.ددې باني محمدشیخ په انګلش کې بیان کوي اوددين دضروریاتو نه انکارکوي،موږ په دې انتظارکې ووچې:اپ کے مسائل اوران کاحل . .کې به ستاسوڅه مفصل تحریرخپور شي خواپ کے مسائل کې دیوې زنانه دسوال نامې په ځواب کې تاسومختصرشان ځواب مې ولوست،اګرچې هغه تحریرترڅه حده پورې کافي و،خوپه دې سلسله کې دتفصیلي تحریراوس هم ضرورت دی،که تاسوڅه داسې تحریرلیکلي وي یاخپور شوی وي، نو هغه راته وښایئ اوبیا دامت مسلمه په دې سلسله کې رهنمایي وکړئ!

**جواب:** ستاسوخبره صحیح ده: . .اپ کے مسائل اوان کاحل . .کې زمایومختصرشان ځواب خپور شوی واوددوستانواصرارو چې په دې سلسله کې یومفصل تحریرراتلل پکاردي، چنانچې زمایومفصل تحریرپه ماهنامه . .بینات . .کراچۍ کې . .بصائروعبر.کې خپور شوی دی،مناسبه ده چې داتحریر دعامې فائدې له پاره دلوستونکو په خدمت کې وړاندې شي:

"دهندوستان دمسلمانانوداخواهش اومینه وه چې یوداسې ازاد ریاست اوملک ورته په ګوتوورشي چېرته چې مسلمانان په ازادۍ سره دقران وسنت قانون نافذکړای شي اوهغوی ته په دین اودیني شعائرو کې څه خنډ(مانع) نه وي.چونکه دمسلمانانوجذبه ښه وه له دې وجې نه په دې کې ځوانانو،بوډاګانو،عوامو اوخواصواوعالم اوجاهل ټولوبرابریوشان کوششونه کول.

په اخره کې دلکونوسرونواوعزتونوله قربانۍ نه وروسته په ۱۴اګست ۱۹۴۷کې دیومسلم ریاست په حیثیت سره پاکستان په معرض وجودکې راغی،دقیام پاکستان مقصد داسلامې نظام حکومت یعني حکومت الهیه دقیام باور ورکړل شوی و،دکوم چې عنوان و :(پاکستان کامطلب کیا؟لااله الاالله)اودایوه داسې نعره وه چې دکومې زیراثر ټول مسلمانان دهرقسمه قربانیوله پاره تیاروو،تردې پورې چې هغه مسلمانان دچاعلاقې چې دتقسیم هند نه وروسته دهندوستان په حدودوکې راتلې هغوی هم ددې په قیام کې له هرچانه مخکې وو،خو:(اے .

بسا ارزو که خاک شده،،خومره موچې علاج کاوو هغومره مرض زیاتیده، په شان نن د پنځوسو کلونو نه زیات وخت تیربدو سره سره د پاکستان مسلمانانو ته اسلامي نظام حکومت حاصل نه شو، اناالله وانااليه راجعون!

برعکس پاکستان ورځ په ورځ مسائلستان جوړيده، په دې کې مذهبي، سياسي ،روحاني ،هرقسمه فتنې پيدا کيدل شروع شول، يو طرف ته په انګلينډ کې د مرتد رشدي فتنه رپورته شوه، نو دويم طرف په پاکستان کې د يوسف کذاب په نامه يو بدباطنه د نبوت د دعوې سره ميدان ته راوت، همدارنګه په بلوچستان کې ذکري مذهب ايجاد شو .چاچې هلته کعبه او حج جاري کړ،دلته رافضيت او خارجيت هم ترقي کړې ده،دلته شرک او بدعاتو والا هم شته او د ساز او سرود والا هم،په دې ملک د ګوهر شاهي په نامه يو ملعون هم شته د چا مريدانو ته چې په شپوږمۍ کې د هغه تصوير په نظر راځيا و په خپله هغه ته په متيازو کې د خپل مصلح شکل په نظر راځي،په دې کې يو بدبخته عاصمه جهانګير هم شته چې د تحفظ حقوق انسانيت په نامه باندې د څومره جينکو د عزت لوپټې يې شلولي دي.

همدارنګه په دې ملک د ،،جماعت المسلمين،،په نامه هم يو جماعت شته چې د پوره امت تجهيل او تحميق کوي،دلته د ډاکټر مسعود اولاد هم شته چې د خپل ځان نه پرته بل څوک مسلمان ګڼلو ته تيارنه دي،دلته د غلام احمد پرويز اولاد هم شته چې امت د ذخيره احاديث نه بدظن کول او ځان وروسته لګول غواړي او د دې ټولونه مخکې او ډير مخکې يوه نوې فتنه او نوې ډله ده د کوم تارونه اګرچې د غلام احمد پرويز سره ملاويږي. خو هغوی په ګڼو شيانو کې غلام احمد پرويز هم روسته پريښې دی.غلام احمد پرويز امت له احاديثو د منکرولو ناکام کوشش کړی واو وسره يې په څوقراني ايتونو باندې هم د خپلو باطلو تاويلاتو تيشه چلولې وه،خو د دې نوې جماعت او نوې فتنې سربراه محمد شيخ خو تقريباً د پوره اسلامي عمارت د راغورځولو اراده کړې ده، هغه د تورات، زبور،انجيل او نورو اسماني کتابونو د وجود نه او د حضورﷺ په نور انبياء کرامو باندې فضيلت او اوچتوالی او د نورو انبياء کرامو د مادي وجود نه منکردی،بلکې هغه په اصل کې د مرزا غلام احمد قادياني په شان د نبوت دعويدار دی،خو د غلام احمد قادياني ناکام حکمت عملي په دويم ځل کول نه غواړي.ځکه چې هغه د غلام احمد قادياني په شان نيغ په نيغه د نبوت او عقيده اجراء او د وحې دعوه کولو سره د قران او سنت او علماء امت په پنجه کې ځان راګيرول نه غواړي،په دې خو هغه هم پوه دی چې د نبوت وحې بنده شوې ده او کوم کس چې د حضورﷺ نه وروسته د ځان له پاره اجراء وحې او د نبوت دعوه وکړي هغه دجال،کذاب او واجب القتل دی.له دې وجې نه محمد شيخ د دې عنوان بدل کړ او يې ويل چې کوم کس چې په کوم وخت کې قران لولي.په هغه باندې د قران هم هغه برخه نازليږي او چهرته چې په قران پاک کې ،،قل،،ويل شوي دي هغه د همدغه

انسان له پاره ویل کیږي، همدارنګه هغه دهرکس دنزول وحي په شان جوړول او دخپل ځان له پاره دنزول وحي او اجرایې نبوت په معامله کې دخلکو په نظرکې سپکولو کوشش کوي، لکه هغه داداسې هم تعبیروي:

نبیان، دالله تعالی پیغام رسوي او دخلکو اصلاح کوي او زه هم دغه کارکوم.

نعوذبالله! منصب نبوت دومره سپکولو کوشش کولاو دجرات کول چې زه هم همدغه کار کوم چې۔نعوذبالله۔انبیاء کرامو به کاوو، نوایادادنبوت دعوه او منصب نبوت باندې کیناستلو ناپاکه کوشش کول نه دي؟

دخلکو نفسیات هم عجیبه دي، که هغوی په منلو باندې راشي. نو بوداسې کس چې دهیڅ اعتبارقابل نه دی، دچاشکل اوشباهت هم دمسلمانانو په شان نه دی، دچاوسیدل چې داسلافو سره تعلق نه لري، دمغربی ابلیس نقل کول یې شعار وي، اسوه نبوي سره یې یوه ذره هم مناسبت نه وي، دهغه چال وډال، رفتار وګفتار اولباس پوشاک نه هیڅوک داندازه نه شي لګولی چې داکس مسلمان هم دی او که نه؟ او بله لاداچې دنصوصو نه صریح منکروي اودفاسدو تاویلاتو په ذریعه اسلام ته دکفراوکفرته داسلام باور ورکولو په کوششونو کې دغلام احمد قادیاني غوږونه پریکوي، داجرایې نبوت نه یواځې قایل وي بلکې ددې داعي اومنادی هم وي،

هغه دټولو اسماني کتابونو نه منکردی، هغه دانبیاء کرامو دمادي وجود قایل نه دی. دحضور ﷺ دروحاني وجود ګډوډ ښکاره کولو سره دنبوت اورسالت اومادي وجود نه هم انکاري دی، دبني اسرائیلو په نبیانو کې حضرت موسی علیه السلام ته په حضور ﷺ باندې ترجیح ورکوي.

ذخیره احادیث ته من ګړت (هسې خوشې) کیسې وایي او ناقابل اعتبار یې ګڼي، غرض داچې داسلامې عقائدو دهرجزنه انکاري او دنوي دین دوړاندې کولو کوشش کوي او خلک دي چې دده دعقیدت او اطاعت صفتونه کوي او دی خپل مشراو راهنما ګڼي.

ددې برعکس بل طرف ته دالله تعالی قران دی، دنصوصو او حدیثونو ذخیره ده، دحضور ﷺ اسوه حسنه اودصحابه کرامو رضوان الله اجمعین دسیرت اوکردارلویه لاره ده او اجماع امت ده. چې په چغوچغو دانسانانو دهدایت اوراهنمایي خطونه متعین کوي، خوددوی دازلي محرومي له پاره داهرڅه داعتماد وړ نه دي.

څومره دشرم خبره ده چې دابدنصیبه دنبي اکرم ﷺ داطاعت اوفرمانبرداری په ځای په خپله غاړه کې دملحداوبې دینه دغلامی پټی اچوي او دهغه امتي کیدوباندې .فخر. محسوسوي، افسوس په داسې عقل ،دین اومذهب باندې، دڅه بنیادچې په الحاداوزندقه باندې وي، په کوم کې چې دقران او سنت په ځای دیوجاهل مطلق کفریه نظریاتو او عقائدو ته دسند درجه حاصله وي، رښتیاده چې کله الله تعالی ناراضه شي ،نوعقل ترې هم واخلي، دربنتیا او دروغو تمیز پکې ختم شي او دهدایت توفیق ترې واخستل شي.

د تیرې څه مودې راهیسې داسې شکایات په اوریدو دي چې ساده ګان مسلمانان ددې فتنې ښکار کیږي، په دې سلسله کې د څه لیکلو خیال مې راغی ،نو یوصاحب راقم الحروف ته د دارالعلوم کراچۍ فتوا راوړله اوغوښتنه یې وکړه چې ددې فتنې خلاف دې اواز پورته شي،ځکه چې حکومت اوانتظامیه ددې فتنې په ختمولو کې ډیرغیرسنجیده اوبې حسه دی،هرکله چې دافتنه ورځ په ورځ نوره هم زیاتیږي.ځو مره دافسوس خبره ده چې که یوکس دباني پاکستـن یاموجوده وزیراعظم په شان کې دګستاخي ارتکاب وکړي. نودحکومت پوره مشینري په حرکت کې راشي،خو دلته دقران اوسنت اودین متین اوحضرات انبیاء کرام اودنبوت نه انکارکیږي اودهغوی په شان کې نامناسبې خبرې کیږي ،خوحکومت پرې بیخې غوږ هم نه ګروي .
ځکه راته مناسبه معلومه شوه چې هرهغه تحریرخپور شي چې دادواړه تحریر رایوځای کړي چې ورسره دمسلمانانودین اوایمان محفوظ شي اوخلک ددې فتنې له خطر نه باخبره او بچ وساتل شي.
دراقم الحروف مختصرځواب اګرچې دروزنامه جنګ په کالم،اپ کے مسائل اوران کاحل،، کې خپور شوی دی،خوددارالعلوم فتوا خپره نه شوله، له ټولونه مخکې دیوې داسې ښځې جوړه کړای شوې سوال نامه ده چې مخامخ له دې فتنې نه متاثره شوې اوله دې نه وروسته زماځواب دی اوپه اخره کې ددارلعلوم کراچۍ ځواب دی اودټولونه په اخره کې اختتامي کلمات دي ،خو ددارلعلوم کراچۍ په فتوا کې دقراني ایاتو اونورونصوصو ترجمې نه وې ،دعامې فائدې له پاره دقراني ایتونواوعربي عبارتونو ترجمې هم شوي دي دقراني ایتونوترجمه دحضرت تهانوي له ترجمې نه اخستل شوې ده.

## سوال نامه

**سوال:** محترم مولانا محمد یوسف لدهیانوي صاحب!السلام علیکم ورحمة الله وبرکاته!
حال څه داسې دی چې دیومسلمان په حیثیت سره اوخپلې دیني فریضې ګڼلوسره اودین دنقصان نه بچ کولوله پاره اوددې دعقائدو دعمارت ورانولوچې کوم کوششونه روان دي دهغو متعلق غلط فهمي لېرې کولوله پاره ترخپله حده پوره کوشش کول غواړم.
محترم!دلته دیوڅونام نهاده تنظیمونو له لوري نه پمفلټ،اډیو-ویډیوکیسټوپه ذریعه داسې لټریچر خپریږي چې هغه سره یوه لویه طبقه خلک دشکوکو .شبهاتو اوبې یقینې دکیفیت ښکارکیږي،دپاکستان - چې داسلامې فلسفې د فکرپه ذریعې سره حاصل شوی و - په کراچۍ ښار کې یوتنظیم (القران ریسرچ سنټر)په نامه سره تیروشپږو اووکلنوراهیسې قائم دی،ددې تنظیم بنیادي عقائدپه لاندې ډول دي.

۱:ددنیاپه وجودکې دراتلونه مخکې دانسانیت دښیګړې له پاره قران پاک په معجزانه طورپه یوځای په دنیاکې موجود و،په مختلفونبیانوبندې مختلف کتابونه نازل شوي نه و،بلکې دې کتاب ته،یعنې قران پاک ته مختلفو زمانوکې مختلف نومونه ورکړای شول،کله تورات،کله انجیل اوکله دزبورپه نامه.
قران چې څوک اوکوم وخت کې لولي په هغه باندې هغه وخت کې نازلیږي اوچېرته چې (قل)ویل شوي دي هغه ددې انسان له پاره ویلی شوي دي چې لولي یې.
۲:دانبیاوو علیهم السلام هیڅ مادي وجودنشته،هغوی دې دنیاته نه دي رالیږل شوې، بلکې هغوی یواځې دانساني هدایت له پاره د(symbols)په طورسره استعمال شول اودموجوده دنیاسره دهغوی هیڅ تعلق نشته،په قران کې هغوی دانسان درهنمایي له پاره یواځې دفرضي کردار او کیسوپه شکل کې موجوددي.
۳: قران پاک کې چونکه حضورﷺ ته په زمانه حال یعنې ( present) کې خطاب شوی دی لهذا بحثییت روح حضورﷺهرځای اوهروخت موجود دی اوهغه دمادي وجودنه مبرادی اونه و.
۴: حضورﷺ ته نور و نبیانوباندې هیڅ فضیلت حاصل نه دی اونه د نورو نبیانو برابر دی، بلکې حضرت موسیٰ علیه السلام په ځینومعناوو اوحیثیتونوکې یعنې قران پاک دبنی اسرائیلو او حضرت موسی په کثرت سره ذکرکړی دی چې دهغه په وجې سره دهغه فضیلت په حضورﷺ باندې زیات دی،دحضورﷺ په باره کې چې هرڅومره احادیث اوتاریخ اوتفسیرموجوددی هغه دانسانانو له لوري جوړې شوې کیسې دي.
داټول عقائدمخې ته کیږدئ اودقران اوسنت په رڼاکې دافتوا ورکړئ چې:
۱: داعقائدداسلام په نظر صحیح دی او که نه؟
۲: ددې خپلونکی مسلمان پاتې کېدای شي؟
۳: دداسې تنظیمونو باید مخ نیوی وکړای شي؟
۴:دداسې کس دښځې له پاره څه حکم دی؟دچاعقائدچې دقران اوسنت مطابق وي چې په نبیانوباندې اوټولوکتابونوباندې،داخرت په ورځ باندې اوحدیثونوباندې مکمل یقین اوایمان لري؟
۵: په اخره دمسلمانۍ په نامه یوه غوښتنه کوم چې داسې کس سره دې پوره مناظره وکړل شي څوک چې دادعوه کوي چې موږ سره څوک دخبروکولوجرات نه لري،ځکه چې موږ رښتوني مسلمانان یو.

یوه خور،کراچۍ،

## دراقم الحروف ځواب

**جواب:** السلام عليكم ورحمة الله وبركاته!
زماخوري! دادفتنوزمانه ده اوکوم کس چې په ذهن کې چې کومه راځي هغه دهغې بیانول شروع کوي اوزه پوهيږم چې دادسلف بيزارۍ اوانکارحديث نتيجه ده،کوم خلک چې دحديث نه انکارکوي هغوی دپوره دين نه انکارکوي اودداسې خلکوپه باره کې په خپله رساله (انکارحديث کیون؟) کې ماليکلي دي چې:
..دحضور ﷺ دپاکو ارشاداتوسره بې پروايي اودهغه په اقوالو پورې ټوکې کونکوپه باره کې اعلان شوی دی چې ددوی په زړونوباندې خدايي مهرلګيدلی دی چې دهغه په وجه دوی دايمان اويقين اورشداوهدايت استعدادورک کړی دی اوددې خلکوټول کوششونه د نفسي خواهش دپيروۍ ترحده پورې محدوددي ،لکه چې الله تعالی فرمايي:
**وَمِنْهُمْ مَنْ يَسْتَمِعُ إِلَيْكَ حَتَّىٰ إِذَا خَرَجُوا مِنْ عِنْدِكَ قَالُوا لِلَّذِينَ أُوتُوا الْعِلْمَ مَاذَا قَالَ آنِفًا أُولَٰئِكَ الَّذِينَ طَبَعَ اللَّهُ عَلَىٰ قُلُوبِهِمْ وَاتَّبَعُوا أَهْوَاءَهُمْ** (محمد: ۱۶)
ترجمه: اوځينې کسان داسې دي چې دحضور ﷺ طرف ته يې غوږونه نيولي وي،تردې پورې چې هغوی ستاسونه پورته شي اوبهرته ووځي، نونوروااهل علمو سره(ستاسو ﷺ دارشاداتو دتحقيرپه طورسره)وايي چې:حضرت دا اوس څه خبره کړې وه! داهغه خلک دي چې الله تعالی ددوی په زړونوباندې مهرونه لګولي دي اودوی په خپلونفساني خواهشاتوباندې چليږي (ترجمه حضرت تهانوي)
قران کريم صفاصفادااعلان وکړچې: انبياء کرام ﷺ يواځې ددې مقصدله پاره راليږل شوي دي چې ددوی اطاعت دې وکړل شي، دحضور ﷺ د اطاعت نه انکاراود هغه د ارشاداتونه مخ اړول ګويا انکار رسالت دی اوهمدارنګه دهغه (صلی الله عليه وسلم) اطاعت نه انکار کونکی دانکاررسالت مرتکب دی.

دحضور ﷺ اقوالوته چې کله هم قران وحي خداوندي وايي :(**وما ينطق عن الهوی،إن هو إلاوحی يوحی**)اودحضور ﷺ کلماتوته چې کله هم قران (ګفته اوګفته الله بود)مرتبه ورکوي،نووواييئ چې دحديث نبوي په حجت کيدوکې دڅه شک اوشبهې ګنجائش پاتې کيږي؟ اوايا دحديث نبوي نه انکارکونکي،باندې په خپله دقران نه انکارنه لازميږي؟ او ايا په فيصله نبوت کې بدلون په خپله په قران کې بدلون به نه وي؟اوپه دې باندې هم غورکول پکار دي چې قران کريم هم امت دحضور ﷺ دژبې مبارکې نه اوريدلی دی اوپه هغه يې ايمان راوړ، اود حضور ﷺ دافرمان چې داقران دی .دا ارشادخوهم حديث نبوي دی اوکه حديث نبوي حجت نه دی ،نودقران کريم ،قران کيدل به څنګه ثابتيږي؟اخرداکومه دعقل

اوپوهې خبره ده چې ددې مقدسې اومعصومې ژبې نه صادرېدونکې يوه خبره خوواجب التسليم وي اودويمه نه ؟

اميرشريعت سيد عطاءالله شاه بخاري رحمه الله په يوه موقعه باندې فرمايلي و

"دازمادمحبوب(صلی الله علیه وسلم)کمال و،چې هغه صلی الله علیه وسلم وفرمايل چې:دا دالله تعالی کلام دی اودازما کلام دی،که نه مونږ خودواړه ديوې ژبې نه اوريدلي دي"

کوم خلک چې داوايي چې:قران حجت دی، خوحديث حجت نه دی،دې ظالمانوته څوک ووايي چې څنګه دايمان په معامله کې دخدای اورسول ترمينځه تفريق نه شي کيدای،چې يودې ومنل شي اودويم دې ونه منل شي، همداسې دکلام الله اوکلام رسول په مينځ کې دفرق کولوګنجائش نشته،چې يو دې واجب الاطاعت ومنل شي اودويم نه،يوچې منې نوبل به په هرصورت کې منل وي اوپه دوی کې ديوانکارکول به په خپله دبل نه انکارشي،خدايي غيرت دانه خوښوي چې دهغه دخبرې دمنلودې دعوه وکړل شي اودهغه دنبي صلی الله علیه وسلم کلام دې ردکړل شي اودداسې ظالمانوخلاف صفاصفااعلان کوي:

فَإِنَّهُمْ لَا يُكَذِّبُونَكَ وَلَكِنَّ الظَّالِمِينَ بِآيَاتِ اللَّهِ يَجْحَدُونَ . (الانعام:۳۳)

ترجمه: اې نبي صلی الله علیه وسلم!داخلک ستاسوکلام نه ردکوي ،بلکې داظالمان دالله تعالی له ايتونو نه منکردي.

لهذاکوم کسان چې په الله تعالی باندې دايمان لرلواودکلام الله دمنلودعوه کوي ،هغوی ته به خامخاپه رسول اوکلام رسول(صلی الله علیه وسلم)باندې هم ايمان راوړل وي،که نه دهغوی دايمان دادعوه غلطه ده.

دکوم تنظيم چې تاسوذکرکړی دی ددې عقائدو لرونکي مسلمانان نه دي،ځکه چې دوی ددين دپوره عمارت دراغورځولوکلکه اراده کړې ده،نور داچې دوی دټولو شعائراسلام اوقران اوحديث اوانبياء اوپه هغوی باندې نازل شويو کتابونونه انکارکړی دی اوکوم کسان چې داسلامې عقيدې نه انکاروکړي اوپه هغه کې باطل تاويلات وړاندې کوي اوخپل کفرته داسلام جامه ورکوي ،هغوی ملحداوزنديق دي،[1] اودکافراومرتدنه زيات بددي،ځکه چې هغوی دچيلۍ (بزې) په نامه دخنزيزغوښه خرڅوي اوامت مسلمه ته دوکه ورکوي اودهغوی اسلام خرابوي، په همدې وجه که زنديق ونيول شي اوتوبه اوباسی .نودهغه دتوبې اعتبارنشته[2]، دحکومت پاکستان فرض دي چې داسې کسان دالحاد او زنديقت نه منع

---

۱] قد ظهر ان الكافر اسم لمن لاايمان له....وان كان مع اعترافه بنبوة النبي صلى الله عليه وسلم واظهاره شعائرالاسلام ببطن عقائد هي كفر بالاتفاق خص باسم الزنديق. (شرح مقاصد ج۲ ص۲۶۸)

۲]ان الزنديق لو تاب قبل اخذه، اى: قبل ان يرفع الى الحاكم تقبل توبته عندنا وبعده لا اتفاقاً. (فتاوى شامى ج۴ ص۲۳۶، مطلب مهم في حكم ساب الانبياء)

کړي که دوی منع شي ،نوښه ده ،که نه د اسلامي قانون مطابق په ارتداد دې دوی ته د زندقیت سزا ورکړل شي.
د اهل ایمان دوی سره رشته او تعلق جائز نه دی،که په دوی کې د چاپه نکاح کې څوک مسلمانه ښځه وي ،نو د هغې نکاح هم فسخ کیږي.[1]
او پاتې شوه د مناظرې خبره ،داسې کسانو سره مومناظرې هم وکړلې،خو دوی په زړونو کې چې کومه خبره خښه شوې ده هغه یواځې د قبرخاوره او د جهنم اور لېرې کولی شي.والله اعلم

## د دارالعلوم کراچۍ ځواب

## الجواب حامداً مصلیاً

۱،۲:په سوال کې ذکرشوي اکثرعقائد د قران ، سنت او اجماع امت د تصریحاتو او موقف نه بالکل خلاف دي، له دې وجې نه که په یقین سره دیوکس داسې عقائد وی، نو هغه کافر او د اسلام له دائره نه خارج دی او د دې منونکي هم کافران او د اسلام له دائره نه خارج دي.
مذکوره نظریات او عقائد د قران او سنت سره باطل دي لاندې ترتیب او تفصیل سره دې وکتل شي:
۱: دا (ویل چې قران پاک ته په مختلفو زمانوکې مختلف نومونه ورکړل شوي دي،کله تورات، کله انجیل،کله زبور او په مختلفو زمانوکې مختلف کتابونه نازل نه دي شوي)دا کفریه عقیده ده، ځکه چې دا د امت اجماعي عقیده ده چې د صحف اسماني نه پرته څلور اسماني کتابونه دي او په قران کریم کې د دې تصریح موجوده ده ،له قران کریم نه پرته درې اسماني کتابونه نور دي،په کوم کې چې تورات په موسی علیه السلام ،انجیل په حضرت عیسی علیه السلام او زبور په حضرت داود علیه السلام باندې نازل شوي وو، لهذا د قران نه پرته مذکور درې کتابونه د مستقل وجود نه انکار په حقیقت کې د قران کریم د وجود نه انکار دی.په کوم کې چې د دې کتابونو د مستقل وجود ذکر دی، په لاندې ډول د دې ایتونه او ترجمې وګورئ:

"وَأَنْزَلَ التَّوْرَاةَ وَالْإِنْجِيلَ *مِنْ قَبْلُ هُدًى لِلنَّاسِ". (ال عمران ۳،۴)

ترجمه:او هغه له دې نه وړاندې تورات او انجیل نازل کړي دي ، د خلکو د هدایت له پاره. (ترجمه حضرت تهانوي رحمه الله)

"وَمَا أُنْزِلَتِ التَّوْرَاةُ وَالْإِنْجِيلُ إِلَّا مِنْ بَعْدِهِ". (ال عمران :۶۵)

ترجمه: او تورات او انجیل له هغه نه وروسته نازل شوي دي. (ترجمه حضرت تهانوي رحمه الله)

"وَآتَيْنَاهُ الْإِنْجِيلَ فِيهِ هُدًى وَنُورٌ". (المائده:۴۶)

ترجمه::او موږ هغه ته انجیل ورکړ،چې په هغه کې هدایت او رڼا وه.

---

۱] مایکون کفراً اتفاقاً یبطل العمل والنکاح ...الخ (فتاوی شامی ج۴ ص۲۴۶، عالمگیری ج۲ ص۲۸۳)

"وَلْيَحْكُمْ أَهْلُ الْإِنْجِيلِ بِمَا أَنْزَلَ اللَّهُ فِيهِ" . (المائده: ۴۷)

ترجمه: او انجیل والاوو ته پکار ده چې الله تعالی په دې کې څه نازل کړي دي، د هغه موافق فصله وکړي.

"وَإِذْ عَلَّمْتُكَ الْكِتَابَ وَالْحِكْمَةَ وَالتَّوْرَاةَ وَالْإِنْجِيلَ". (المائده: ۱۱۰)

ترجمه: او چې ما تاته د کتاب او پوهې د خبرو او تورات او انجیل تعلیم درکړ.

"الَّذِينَ يَتَّبِعُونَ الرَّسُولَ النَّبِيَّ الْأُمِّيَّ الَّذِي يَجِدُونَهُ مَكْتُوبًا عِنْدَهُمْ فِي التَّوْرَاةِ وَالْإِنْجِيلِ". (الاعراف: ۱۵۷)

ترجمه: او هغه کسان چې د داسې رسول نبي امي اتباع کوي، کوم چې هغوی د خپل ځان سره په تورات او انجیل کې لیکل شوی موندلی دی.

"وَلَقَدْ كَتَبْنَا فِي الزَّبُورِ مِنْ بَعْدِ الذِّكْرِ أَنَّ الْأَرْضَ يَرِثُهَا عِبَادِيَ الصَّالِحُونَ". (الانبیاء: ۱۰۵)

ترجمه: او موږ (ټولو اسماني) کتابونه کې په لوح محفوظ کې (لیکلو) نه وروسته لیکلي دي چې د ځمکې (جنت) مالکان به زما نېک بندګان وي.

"وَلَقَدْ فَضَّلْنَا بَعْضَ النَّبِيِّينَ عَلَى بَعْضٍ وَآتَيْنَا دَاوُودَ زَبُورًا". (الاسراء: ۵۵)

ترجمه: او بې شکه موږ بعضو نبیانو ته په بعضو باندې فضیلت ورکړ او موږ داود (علیه السلام) ته زبور ورکړی دی.

"فَأْتُوا بِالتَّوْرَاةِ فَاتْلُوهَا إِنْ كُنْتُمْ صَادِقِينَ". (ال عمران: ۹۳)

ترجمه: بیا تورات راوړئ! هغه ولولئ که تاسو رښتوني یئ.

"وَكَيْفَ يُحَكِّمُونَكَ وَعِنْدَهُمُ التَّوْرَاةُ فِيهَا حُكْمُ اللَّهِ". (المائدة: ۴۳)

ترجمه: او هغوی په تاسو ﷺ باندې څنګه فیصلې کوي حالانکه هغوی سره تورات شته په کوم کې چې د الله تعالی حکم دی. (ترجمه حضرت تهانوي رحمه الله)

"إِنَّا أَنْزَلْنَا التَّوْرَاةَ فِيهَا هُدًى وَنُورٌ". (المائده: ۴۴)

ترجمه: موږ تورات نازل کړی و او په هغه کې هدایت او رڼا وه.

"وَقَفَّيْنَا عَلَى آثَارِهِمْ بِعِيسَى ابْنِ مَرْيَمَ مُصَدِّقًا لِمَا بَيْنَ يَدَيْهِ مِنَ التَّوْرَاةِ". (المائده: ۴۶)

ترجمه: او موږ هغوی پسې وروسته عیسی بن مریم په داسې حالت کې ولیږه چې هغه له خپل ځانه مخکې د تورات تصدیق کاو. (ترجمه حضرت تهانوي رحمه الله)

"إِنِّي رَسُولُ اللَّهِ إِلَيْكُمْ مُصَدِّقًا لِمَا بَيْنَ يَدَيَّ مِنَ التَّوْرَاةِ". (الصف: ۶)

ترجمه: زه تاسو ته د الله تعالی رالیږل شوی استازی یم، چې زمانه مخکې کوم تورات (راغلی) دی زه د هغه تصدیق کونکی یم. (ترجمه حضرت تهانوي رحمه الله)

"وَمَنْ يَكْفُرْ بِاللَّهِ وَمَلَائِكَتِهِ وَكُتُبِهِ وَرُسُلِهِ وَالْيَوْمِ الْآخِرِ فَقَدْ ضَلَّ ضَلَالًا بَعِيدًا". (النساء: ١٣٦)
ترجمه: اوكوم كس چې دالله تعالى نه ،دهغه له فرښتونه،دهغه له كتابونونه. دهغه له رسولانونه اودقيامت له ورځې نه انكار وكړي ،بې شكه هغه كس په ګمراهۍ كې ډيرليرې پريوت. (ترجمه حضرت تهانوي رحمه الله)

"كُلٌّ آمَنَ بِاللَّهِ وَمَلَائِكَتِهِ وَكُتُبِهِ وَرُسُلِهِ". (البقره:٢٨٥)
ترجمه: ټول ايمان لري الله تعالى باندې،دهغه په فرښتو،دهغه په كتابونواودهغه په پيغمبرانوباندې.

اودا ويل چې: قران په كوم وخت كې لو ستل كيږي، نوپه هغه باندې هم هغه وخت كې نازليږي او، ،قل، ، هم دهغه له پاره ويل كيږي چې يې لولي، ، ، داهم دتعبيرپه لحاظ سره غلط دي،ځكه چې قران كريم يوځل په حضور ﷺ باندې پوره نازل شوى دى اوددې اولين اواخرين مخامخ مخاطب حضور ﷺ دى ، اوس يې چې كوم كس لولي هغه دقران اولين او مخامخ مخاطب نه دى،بلكې دحضور ﷺ په واسطې سره مخاطب دى اوهم په دې اعتبار سره خپل ځان مخاطب ګڼل پكاردي.

٢:داعقيده هم كفريه ده (چې دنبيانوهيڅ مستقل وجودنه و) ځكه چې دقران كريم ګڼ شمير ايتونه په دې باندې دلالت كوي چې دانبياوومستقل وجود و ،هغوى دنياته دخلكودهدايت له پاره راليږل شوي وو اودبشريت په اعلى مقام باندې فائز وو.هغوى دعاموانسانانوپه شان په دنياكې وخت تيركړ، په هغوى كې بشري حوائج اومادي صفات موجود وو ، هغوى به خوراك څښاك كاوو ،هغوى نكاح ګانې هم كولې اوالله تعالى دهغوى په لاسو معجزات هم ښكاره كړل، هغوى دالله تعالى په لاره كې جهادهم وكړ، داټول شيان داسې دي چې دخپل وجودله پاره دمادي اومستقل وجودغوښتنه كوي اوله دې نه پرته ددې وجوداوپه ظهور كې راتګ محال دى ،لهذا داوينا چې: دانبياوو مادي وجودنشته،په قران كې هغوى يواځې دفرضي قيصوپه صورت كې موجوددي، دا بالكل غلط اودقران اوسنت دنصوصو نه خلاف دي،په دې سلسله كې په لاندې ډول دقران ايتونه وګورئ:

"كَانَ النَّاسُ أُمَّةً وَاحِدَةً فَبَعَثَ اللَّهُ النَّبِيِّينَ مُبَشِّرِينَ وَمُنْذِرِينَ وَأَنْزَلَ مَعَهُمُ الْكِتَابَ بِالْحَقِّ لِيَحْكُمَ بَيْنَ النَّاسِ فِيمَا اخْتَلَفُوا فِيهِ". (البقره :٢١٣)
ترجمه:اول خلك په يو دين باندې وو (بيا كله چې اختلاف پيداشو) الله تعالى نبيان راوليږل، زيري وركونكي او وېرونكي وو اوله هغوى يې برحق كتابونه نازل كړل.چې داختلافاتو په هكله دخلكو ترمنځه فيصلې وكړي.

" وَمَا نُرْسِلُ الْمُرْسَلِينَ إِلَّا مُبَشِّرِينَ وَمُنْذِرِينَ ".(الانعام:٤٨)

ترجمه: موږ پیغمبران یواځې د دې له پاره رالیږلي دي ،زیری ورکونکي او وېرونکي.

"يَامَعْشَرَ الْجِنِّ وَالْإِنْسِ أَلَمْ يَأْتِكُمْ رُسُلٌ مِنْكُمْ يَقُصُّونَ عَلَيْكُمْ آيَاتِي وَيُنْذِرُونَكُمْ لِقَاءَ يَوْمِكُمْ هَذَا". (الانعام: ١٣٠)

ترجمه: اې د پیریانو او انسانانو ډلې! ایا تاسو ته ستاسو نه پیغمبران راغلي نه وو؟ چې تاسو ته به یې زما احکام بیانول او تاسو ته به یې د دنني ورځې له ملاقات نه یې وېرولئ. (ترجمه حضرت تهانوي رحمه الله)

"وَلَقَدْ أَرْسَلْنَا رُسُلًا مِنْ قَبْلِكَ وَجَعَلْنَا لَهُمْ أَزْوَاجًا وَذُرِّيَّةً". (الرعد: ٣٨)

ترجمه: او موږ یقیناً ستاسو نه مخکې ډېر رسولان راولیږل او موږ هغوی ته ښځې او بچي هم ورکړل. (ترجمه حضرت تهانوي رحمه الله)

"وَلَقَدْ بَعَثْنَا فِي كُلِّ أُمَّةٍ رَسُولًا أَنِ اعْبُدُوا اللَّهَ وَاجْتَنِبُوا الطَّاغُوتَ". (النحل: ٣٦)

ترجمه: او موږ په هر امت کې یو نه یو پیغمبر رالیږلی دی چې تاسو د الله تعالی عبادت کوئ او د شیطان نه ځانونه ساتئ. (ترجمه حضرت تهانوي رحمه الله)

"وَمَا كُنَّا مُعَذِّبِينَ حَتَّى نَبْعَثَ رَسُولًا". (الاسراء: ١٥)

ترجمه: او موږ (کله) سزانه ورکوو، ترڅو پورې چې رسول ونه لیږو.

"وَمَا أَرْسَلْنَا قَبْلَكَ مِنَ الْمُرْسَلِينَ إِلَّا إِنَّهُمْ لَيَأْكُلُونَ الطَّعَامَ وَيَمْشُونَ فِي الْأَسْوَاقِ". (الفرقان: ٢٠)

ترجمه: او موږ چې ستاسو نه مخکې څومره پیغمبران هم رالیږلي وو، هغوی ډوډۍ هم خوړله او بازارونو کې هم ګرځیدل. (ترجمه حضرت تهانوي رحمه الله)

وَكَمْ أَرْسَلْنَا مِنْ نَبِيٍّ فِي الْأَوَّلِينَ * وَمَا يَأْتِيهِمْ مِنْ نَبِيٍّ إِلَّا كَانُوا بِهِ يَسْتَهْزِئُونَ (الزخرف: ٦، ٧)

ترجمه: او موږ مخکینو خلکو ته هم ډېر پیغمبران لیږلي وو او د دې خلکو ته هیڅ یو نبي داسې نه دی راغلی، چا پورې چې دوی ټوکې نه وي کړې.

"كَمَا أَرْسَلْنَا فِيكُمْ رَسُولًا مِنْكُمْ يَتْلُو عَلَيْكُمْ آيَاتِنَا وَيُزَكِّيكُمْ وَيُعَلِّمُكُمُ الْكِتَابَ وَالْحِكْمَةَ وَيُعَلِّمُكُمْ مَا لَمْ تَكُونُوا تَعْلَمُونَ". (البقره: ١٥١)

ترجمه: څنګه چې په تاسو کې موږ یو عظیم الشان نبي درولیږه، چې تاسو ته زموږ ایتونه (احکام) دروا وروي او د جهالت نه ستاسو صفايي وکړي او تاسو ته د الله تعالی د کتاب او پوهې خبرې ښیي او تاسو ته دداسې ګټورو خبرو تعلیم هم درکوي چې تاسو ته پرې خبر نه و. (ترجمه حضرت تهانوي رحمه الله)

"وَقَالُوا مَالِهَذَا الرَّسُولِ يَأْكُلُ الطَّعَامَ وَيَمْشِي فِي الْأَسْوَاقِ". (الفرقان: ٧)

ترجمه: او دا (کافر) خلک (د رسول الله ﷺ په باره کې) داسې وايي چې په دې رسول باندې څه وشول (چې زموږ په شان) خوراک کوي او په بازارونو کې ګرځي. (ترجمه حضرت تهانوي رحمه الله)

"لَقَدْ مَنَّ اللّٰهُ عَلَى الْمُؤْمِنِينَ إِذْ بَعَثَ فِيهِمْ رَسُولًا مِنْ أَنْفُسِهِمْ يَتْلُو عَلَيْهِمْ آيَاتِهِ وَيُزَكِّيهِمْ وَيُعَلِّمُهُمُ الْكِتَابَ وَالْحِكْمَةَ". (ال عمران: ۱۶۴)

ترجمه: بې شکه الله تعالی په مسلمانانو باندې احسان کړی دی، چې په دوی کې یې د دوی (د خپل قوم) نه پیغمبر رالیږلی دی، چې هغوی ته د الله تعالی ایتونه اوروي او د دوی صفایي کوي او دوی ته د کتاب او حکمت خبرې ورښيي.

"هُوَ الَّذِي أَرْسَلَ رَسُولَهُ بِالْهُدَى وَدِينِ الْحَقِّ لِيُظْهِرَهُ عَلَى الدِّينِ كُلِّهِ". (الفتح: ۲۸)

ترجمه: هغه داسې الله دی، چې خپل رسول ته یې هدایت ورکړ. ربښتونی دین (یعنې اسلام) یې ورکړ او دنیا ته یې راولیږه چې په ټولو دینونو باندې یې غالب کړي. (ترجمه حضرت تهانوي رحمه الله)

" رَسُولًا يَتْلُو عَلَيْكُمْ آيَاتِ اللّٰهِ مُبَيِّنَاتٍ لِيُخْرِجَ الَّذِينَ آمَنُوا وَعَمِلُوا الصَّالِحَاتِ مِنَ الظُّلُمَاتِ إِلَى النُّورِ ". (الطلاق: ۱۱)

یو رسول مو (ولیږه) چې تاسو ته د الله تعالی څرګند احکام اوروي، چې داسې کسان څوک چې ایمان راوړي او ښه عمل وکړي د کفر او جهل د تیارونه د نور طرف ته راوباسي.

"لَقَدْ جَاءَكُمْ رَسُولٌ مِنْ أَنْفُسِكُمْ عَزِيزٌ عَلَيْهِ مَا عَنِتُّمْ حَرِيصٌ عَلَيْكُمْ بِالْمُؤْمِنِينَ رَءُوفٌ رَحِيمٌ". (التوبه: ۱۲۸)

ترجمه: (اې خلکو) تاسو ته یو داسې پیغمبر راغلی دی چې ستاسو د جنس (بشر) نه دی، څوک چې ستاسو د نقصان خبرې یې خفه کوي او ستاسو د ګټې د خبرو ډیر خواهش مند دی، (دا حالت خو د ټولو سره دی خو) په ایمان دارو ډیر زیات شفیق او مهربانه دی.

"يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا لَا تَرْفَعُوا أَصْوَاتَكُمْ فَوْقَ صَوْتِ النَّبِيِّ وَلَا تَجْهَرُوا لَهُ بِالْقَوْلِ". (الحجرات: ۳)

ترجمه: اې ایمان والاوو! تاسو خپل غږونه د پیغمبر له غږ نه مه پورته کوئ او مه له هغه سره داسې خبرې کوئ څنګه چې تاسو په خپل مینځ کې کوئ.

په قران کریم کې حضور ﷺ په زمانه حال کې مخاطب شوی دی. د دې وجه داده چې په کوم وخت کې د قران کریم نازلیدل په حضور ﷺ باندې شروع و، په هغه وخت کې حضور ﷺ د مادي وجود سره په دې دنیا کې موجود و، له دې وجې نه په زمانه حال کې د حضور ﷺ سره خطاب شو، د دې دا مطلب نه دی چې هغه د روح په حیث هرچیرته موجود دی.

دا عقیده ساتل چې په قران شریف کې د حال صیغه استعمال شوې ده، ځکه نو حضور ﷺ د روح په حیث هرچیرته موجود دی او د مادي وجود نه پاک دی، د قران او سنت د صریحو

نصوصو اوداهل سنت والجماعت دموقف خلاف دي،عثمان ليکي: چې که ديوکس داعقيده وي چې څنګه الله تعالی هروخت په هرځای کې موجوددی، همدارنګه حضورﷺ هم هروخت په هرځای کې موجوددی، نودابنکاره شرک دی اودنصاراوو په شان رسول ته خدايي درجه ورکول دي اوکه يوکس ددې تاويل سره داعقيده لري. نوبياهم ددې عقيدې په غلط اوفاسدکيدوکې هيڅ شک نشته اوداسې کس ګمراه دی،(وګورئ :جواهرالفقه:ج:۱ ص:۱۱۵ تبريدالنواظر مصنف مولانا سرفرازصاحب مدظلهم)

۴:داهل سنت والجماعت متفقه عقيده ده چې حضورﷺ په مجموعي حيث سره دټولو نبيانو نه افضل دی[۱]،خوکه په ځينوجزئياتواوواقعاتوکې که يونبي ته څه فضيلت حاصل دی، نوهغه ددې سره معارض نه دی، څنګه چې حضرت موسیؑ ته د خبروکولوشرف حاصل دی اوحضرت ابراهيمؑ ته د ،،خلت،، صفت حاصل دی اوداسې نور... ،داټول جزئي فضيلتونه دحضورﷺ دمجموعي فضيلت خلاف اوله هغه سره معارض نه دي.

اودا ويل چې:دحضورﷺ په باره کې چې څومره احاديث، تاريخ اوتفسير موجود دي،هغه دانسانانوجوړې شوې قيصې دي، په حقيقت کې دحديثونونه انکاردی،کوم چې ښکاره کفردی[۲]،دامت محمدي په دې باندې اجماع ده چې حديث،دقران کريم نه وروسته ددين دويم اهم ماخذدی[۳]،قران کريم چې څنګه دالله رب العزت داحکامو واجب ګرځونکی دی[۴]،همدارنګه درسول اللهﷺ افعال اواقوال يې واجب الاطاعت ګرځولي دي، لهذاپه قران پاک کې ډيرداسې احکام دي دکوموتفصيل چې په قران کې موجودنه دی، رسول اللهﷺ په حديثونوکې ددې تفصيلات اوپه دې باندې دعمل کولوطريقه په خپل قول اوفعل سره بيان کړله،که احاديث انسانانوخپله جوړکړي دي، نودقران کريم په داسې احکاموباندې به دعمل کولوطريقه څنګه وي؟اوموږ ته به داڅنګه معلوم شي؟

۱]والفضل الانبياء محمد عليه السلام ،لقوله تعالى : كنتم خير امة.....وذلک تابع لكمال نبيهم الذى يتبعونه ......الخ (شرح عقائد ص:۲۱۵،طبع ايچ ايم سعيد )

۲]من انكر المتواتر فقد كفرومن انكر المشهور يكفر عندالبعض وقال عيسى بن ابان يضلل ولا يكفر وهو الصحيح ومن انكرخبرالواحدلايكفرغيرانه ياثم بترک القبول هكذافى الظهيرية(فتاوى عالمگيرى ج:۲،ص:۲۶۵)

۳]واعلم ان من يعتد بعلمه من العلماء قد اتفق على ان السنة المطهرة مستقلة بتشريع الاحكام وانها كالقرآن فى تحليل الحلال وتحريم الحرام، وقد ثبت انه عليه السلام قال اوتيت القرآن ومثله معه اى واوتيت مثله من السنة التى لم ينطق بها القرآن (تيسيرالاصول الى علم الاصول ص:۱۳۷،طبع ادارة الصديق ملتان)

۴]قل اطيعوالله والرسول (آل عمران :۳۲) يٰاَيُّهَا الَّذِينَ اٰمَنُوْا اَطِيْعُوا اللهَ وَاَطِيْعُوا الرَّسُوْلَ (النساء:۵۹) اَطِيْعُوا اللهَ وَرَسُوْلَه وَلَا تَوَلَّوْا عَنْهُ وَاَنْتُمْ تَسْمَعُوْنَ (الانفال :۲۰)

الله رب العزت چې څنګه دقران کريم دالفاظو دحفاظت ذمه اخيستي ده. همدارنګه يې دقران پاک دمعنا دحفاظت ذمه هم اخيستې ده اودقران پاک دمعناوو تعليم دحديثو په ذريعه شوی دی، اوپه کوموذرائعوچې قران کريم موږته راسيدلی دی، نو په دغو ذرائعواحاديث هم موږ ته رارسيدلي دي، که دا احاديث دځان نه جوړ شوي وي اوذرائع يې قابل اعتمادنه وي، نودا امکان په قران کريم کې هم کيدای شي، نوقران کريم لره هم ـنعوذبالله ـ دځان نه جوړ کړل شوی ويل به لازم وي ، لهذاپه دې کې هيڅ شک نشته چې څنګه قران کريم تراوسه پورې محفوظ راروان دی همدارنګه احاديث هم محفوظ راروان دي اوالله تعالی ددې دحفاظتې مثاله انتظام کړی دی، دکوموتفصيل چې دتدوين حديث دتاريخ نه معلوميږي، لهذا حديثونو ته دانسانانوله ځان نه جوړې شوې قيصې ويل صريحه ګمراهي اوښکاره کفردی.

دنور تفصيل له پاره وګورئ: حجيت حديث ،مصنفه مولانامحمدتقي عثماني صاحب مدظلهم ،، کتاب حديث عهدرسالت وعهدصحابه مين، ،مصنفه مولانامحمدرفيع عثماني صاحب مدظلهم ،حفاظت وحجيت حديث، ،مصنفه مولانافهيم عثماني صاحب.

۳: مسلمانانوته پکاردي چې کوم کس ياتنظيم دداسې عقائدو والا وي دهغوی سره دې دهيڅ قسمه تعلق نه ساتي اودهغوی دلټريچراوکيسټووغيره نه دې مکمل احترازکوي، په خپله دې ځانونه ساتي اودنورودبچ کولو کوشش دې هم کوي اودحکومت دواکدارانو توجه دې دداسې تنظيمونو طرف ته راګرځوي چې په دوی باندې پابندي ولګول شي.

۴: کوم کس چې مذکور عقائدپرته دځه مناسب دليل نه مني هغه کس مرتداواسلام نه خارج دی اودهغه مسلمانه ښځه دهغه دنکاح نه ووتله اوس دهغه په عقدکې يوه مسلمانه ښځه نه شي پاتې کېدای اونه ديوې مسلمانې ښځې سره يې نکاح کيدلی شي.

د پورته ذکرشوي کس عقائد دقران اوسنت،اجماع امت اوداکابروعلماوواهل سنت والجماعت دتصريحاتوخلاف دي، ددې له پاره لاندې ذکرشوي تصريحات وګورئ:

**في شرح العقائد ٢١٧: ولله تعالى كتب أنزلها على أنبياءه ,وبين فيها أمره ونهيه ووعده ووعيده وكلها كلام الله تعالى.....وقدنسخت بالقران تلاوتها وكتابتها بعض احكامها,وفى الحاشية قوله ،،ولله كتب،،ركن من أركان مايجب به الإيمان مما نطقت النصوص القرانية والأخبار النبوية.**

ترجمه: شرح عقائدص: ۲۱۷ کې دي چې: دالله تعالی(دقران نه پرته)نورکتابونه هم دي،کوم چې الله تعالی په خپلونبيانوباندې نازل کړي دي اوپه دې کتابونوکې يې امر اونهې ،وعده او وعيدونه بيان کړي دي اوداټول کتابونه کلام الهي دی اودقران کريم په نازليدوباندې ددې سابقه کتابونوتلاوت اوددې ځينې احکام منسوخ شول اوپه حاشيه کې دي چې: قوله ،،ولله کتب،، يعنې دايمان په ارکانوکې يوركن دادی چې په دې سابقه کتابونوباندې ايمان راوړل شي دکومو باره کې چې په قران کريم اواحاديث نبوي کې شهادت موجود دی.

وفيه ص: ٤٥: والرسول انسان بعثه الله تعالى الى الخلق لتبليغ الأحكام.
ترجمه: او په شرح عقائد ص: ۴۵ کې دي چې: رسول هغه انسان ته وايي څوک چې د الله تعالى د مخلوق طرف ته د تبليغ او احکامو رسولو له پاره مبعوث شوى وي.

وفى شرح المقاصد ج: ٥ ص: ٥: النبي انسان بعثه الله تعالى لتبليغ ما أوحى إليه وكذا الرسول.
ترجمه: او په شرح مقاصد کې ج: ۵ ص: ۵ کې دي چې: نبي هغه انسان ته وايي: کوم چې د الله تعالى د احکامو د تبليغ له پاره راليږل شوى وي، چې د هغه طرف ته وحې کيږي او د رسول تعريف هم دغه دى.

وفى شرح العقيده الطحاوية لإبن أبي العز: ص: ٢٩٧٠: قوله: ونؤمن بالملئكة والنبيين والكتب المنزلة على المرسلين نشهد أنهم كانوا على الحق المبين، هذه الأمور من أركان الإيمان. قال تعالى: " آمَنَ الرَّسُولُ بِمَا أُنْزِلَ إِلَيْهِ مِنْ رَبِّهِ وَالْمُؤْمِنُونَ كُلٌّ آمَنَ بِاللَّهِ وَمَلَائِكَتِهِ وَكُتُبِهِ وَرُسُلِهِ لَا نُفَرِّقُ بَيْنَ أَحَدٍ مِنْ رُسُلِهِ". (البقره: ٢٨٥)
وقال تعالى: " لَيْسَ الْبِرَّ أَنْ تُوَلُّوا وُجُوهَكُمْ قِبَلَ الْمَشْرِقِ وَالْمَغْرِبِ وَلَكِنَّ الْبِرَّ مَنْ آمَنَ بِاللَّهِ وَالْيَوْمِ الْآخِرِ وَالْمَلَائِكَةِ وَالْكِتَابِ وَالنَّبِيِّينَ". (البقره: ١٧٧)
فجعل الله سبحانه وتعالى الإيمان هو الإيمان بهذه الجملة وسمى من آمن بهذه الجملة مومنين، كما جعل الكافرين من كفر بهذه الجملة بقوله: " وَمَنْ يَكْفُرْ بِاللَّهِ وَمَلَائِكَتِهِ وَكُتُبِهِ وَرُسُلِهِ وَالْيَوْمِ الْآخِرِ فَقَدْ ضَلَّ ضَلَالًا بَعِيدًا". (النساء: ١٣٦)
ترجمه: او د ابن ابي العز په شرح عقيده طحاويه ص: ۲۹۷ کې دي چې: موږ ايمان راوړو په ملائکو باندې، په نبيانو باندې او په هغوى باندې نازل شويو کتابونو باندې او موږ ګواهي ورکوو چې هغه (رسولان) ټول په حق باندې وو او دا ټول امور د ايمان ارکان دي، د الله تعالى ارشاد دى: پيغمبر په هغه کتاب باندې ايمان راوړى دى کوم چې هغه ته د خپل پروردګار له خوا ورکړل شوى و. او مومنانو هم پرې ايمان راوړى دى، دې ټولو په الله تعالى، د هغه په فرښتو، د هغه په کتابونو او د هغه په پيغمبرانو باندې ايمان راوړى دى او د هغه په پيغمبرانو کې په چا کې تفريق نه کوي.
او د الله تعالى ارشاد دى: په دې کې نيکي نشته چې تاسو واړوى موخونه خپل مشرق يا مغرب طرف ته، بلکې نيکي خو داده چې يوکس ايمان راوړي په مضبوط يقين سره په الله تعالى، په ورځ د قيامت، په فرښتو، کتابونو او پيغمبرانو باندې.
له دې دلائلونه معلومه شوه چې الله تعالى ايمان هم دغه شيان ګرځولي دي، چې په دې ټولو شيانو باندې ايمان وي او الله تعالى په قران کريم کې ،،مومنين،، نوم هم دغو کسانو ته ورکړى دى، چې په دې ټولو شيانو باندې ايمان لري څنګه چې: ،،کافرين،، هغه خلکو ته ويل

کيږي ، چې ددې ټولو شيانو نه انکارکوي څنګه چې دالله تعالى ارشاددى:څوک چې له الله تعالى ، دهغه له فرښتو ،کتابونو ،رسولانو او دورځې دقيامت نه انکاروکړي. يقينا هغه دحق له لارې ډيرليرې دى.

وقال فى الحديث المتفق على صحته ،حديث جبريل ،وسواله للنبي صلى الله عليه وسلم عن إيمان فقال:أن تؤمن بالله وملئكته وكتبه ورسله.....الخ.فهذه الأصول التى اتفقت عليها الأنبياء والرسل صلوات الله عليهم وسلامه ،ولم يؤمن بها حقيقة الإيمان إلا اتباع الرسل.

ترجمه:په حديث جبريل(دکوم په صحت باندې چې بخاري اومسلم متفق دي)کې دي چې: حضرت جبرايل عليه السلام دحضرت محمد صلى الله عليه وسلم نه دايمان په باره کې پوښتنه وکړه. نوحضور صلى الله عليه وسلم وفرمايل :ايمان دادى، چې ته ايمان راوړې په الله تعالى،دهغه په فرښتو ، دهغه په ټولو کتابونواو په ټولو رسولانو باندې، داهغه اصول دي په:کوموباندې چې دټولو رسولانو اوپيغمبرانو( صلوات الله عليهم وسلامه) اتفاق دى اوپه دې باندې چاپه صحيح معناکې ايمان نه دى راوړى ،خوپواځې هغو چې دنبيانواورسولانوصحيح اتباع کونکي دي.

وفيه ص:٣١١:وأما الأنبياء والمرسلون فعلينا الإيمان بمن سمى الله تعالى فى كتابه من رسله، والإيمان بأن الله تعالى أرسل رسلا سواهم وأنبياء لا يعلم أسماء هم وعددهم إلاالله تعالى، الذي أرسلهم ،،،وعلينا الإيمان بأنهم بلغوا جميع ما أرسلوا به على ما أمرهم الله به وأنهم بينوه بيانا لايسع أحدا ممن أرسلوا إليه جهله ولا يحل خلافه.....الخ.

....."وأما الإيمان بالكتب المنزلة على المرسلين فنؤمن بماسمى الله تعالى منها فى كتابه من التوراة والانجيل والزبور،ونؤمن بأن الله تعالى سوى ذلك كتبا أنزلها على أنبياءه لا يعرف أسمائها وعددها إلاالله تعالى."

ترجمه: اوددې کتاب په صفحه ٣١١ کې دي چې :په رسولانواونبيانوباندې، زموږ په ذمه واجب دي چې په دوى کې په هغه ټولوباندې ايمان راوړو چې قران کريم کې الله تعالى ذکرکړي دي،(همدارنګه)په دې باندې هم ايمان راوړوچې الله تعالى له دوى نه پرته نورنبيان او رسولان هم راليږلي وو چې دهغوى په نومونو او تعداد باندې الله تعالى ښه پوهيږي، يعنې دالله تعالى نه پرته پرې څوک نه پوهيږي اوپه موږ باندې لازم دي چې موږ په دې خبره باندې ايمان راوړوچې الله تعالى نبيانو ته دکومو احکامورسولوحکم ورکړى و دوى نبيانو هغه ټول احکام رسولي وو او دوى هغه ټول احکام دومره واضح اوښکاره بيان کړي وو ،چې په امت کې دناخبره نه ناخبره کس ته هم څه شک پاتې نه شو اوددې خلاف کول حلال پاتې نه شو.

او په هغه کتابونو باندې ایمان راوړل کوم چې په رسولانو باندې نازل شوي وو، نومونږ په هغه ټولو کتابونو باندې ایمان راوړو،دکوموچې الله تعالی په قران کې نومونه اخستي دي،یعنې تورات،انجیل اوزبور اومونږ ایمان راوړو دالله تعالی له ذکرشوي کتابونو نه پرته په نورو کتابونو هم ، چې په خپلونبیانو باندې یې نازل کړي دي دکومو نومونه اوتعداد چې بې دالله تعالی نه بل چاته معلوم نه دی.

وفي شرح العقيدة الطحاوية للميداني ص:١٠٤:والإيمان المطلوب من المكلف هوالإيمان بالله وملئكته وكتبه بأنها كلام الله تعالى الأزلي القديم المنزه عن الحروف والأصوات وبأنه تعالى، أنزلها على بعض رسله بألفاظ وحادثة في ألواح أوعلى لسان ملك وبأن جميع ماتضمنته حق و صدق ، ورسله بأنه أرسلهم إلى الخلق لهدايتهم وتكميل معاشهم معادهم وأيدهم بالمعجزات الدالة على صدقهم فبلغوا عنه رسالته........الخ.

ترجمه::اودمیداني په شرح طحاویه ص:۱۰۴ کې دي: مکلف(یعنې انسانان اوپیریان)نه چې کوم ایمان مطلوب دي هغه دادي چې: په الله تعالی،دهغه په فرښتواودهغه په ټولو کتابونو باندې ایمان راوړل اوداسې ایمان راوړل چې دادالله تعالی کلام،کلام ازلي اوقدیم دی،کوم چې دحروف اواواز نه پاک دی، نوداچې الله تعالی دا کلام په خپلوځینونبیانورسولانوباندې دتختو اوالفاظوپه صورت کې نازل کړي و،یادفرښتې په ژبه یې نازل کړ ، نورداچې هغه ټول کلام چې په کتاب باندې مشتمل دي حق اوصادق دي اودالله تعالی رسولان څوک چې الله تعالی دمخلوق طرف ته دهدایت اوتکمیل معاش ومعادله پاره رالیږلي وو او ددوی یې په داسې معجزاتوسره تائیدوکړ،کومې چې ددې نبیانوپه صدق باندې دلالت کوي،دې نبیانودالله تعالی پیغام ورساو.

قال القاضي عياض في شرح الشفاء ص:٣٣٥:واعلم أن من استخف بالقرآن اوالمصحف أوبشيء منه أوسبه أوجحده أوحرف منه أو آية أوكذب به أوبشيء مما صرح به فيه من حكم أو خير أوخبر أوأثبت مانفاه اونفي ما أثبته على علم منه بذلك أوشک في شيء من ذلک فهو كافر عندأهل العلم باجماع.

ترجمه:علامه قاضي عیاض شرح شفاء ص:۳۳۵ کې لیکلي : پوهه شئ چا چې قران کریم یایومصحف یادقران څه شی سپک وګڼه یایې قران ته کنځل وکړل، یا دیوې برخې نه یې انکار وکړ یادیوحرف ،یا دیوایت یې نه یې انکاروکړ،یادقران دڅه داسې برخې نه یې انکاروکړ په کوم کې چې دڅه حکم یا خبر صراحت وي یاڅه داسې حکم یاخبریې ثابت کړ دکوم چې قران نفي کوي، یا داسې شی یې قصداً نفي کړ له کوم چې له قران نه ثابت دی،یادقران په څه شی کې یې شک وکړ،نوداسې کس بالاجماع داهل علم په نزدکافردی.

وفي شرح العقائد ص: ۲۱۵: وأفضل الأنبياء محمد صلى الله عليه وسلم ،لقوله تعالى: ،،كنتم خير امة،،ولاشك أن خيرية الإمة بحسب كمالهم فى الدين وذلک تابع لكمال نبيهم الذى يتبعونه.
ترجمه :شرح عقائد ص: ۲۱۵ کې دي چې: په نبيانوکې دټولونه افضل حضرت محمدصلى الله عليه وسلم دى، دالله تعالى ددې قول له وجې نه چې(تاسو بهترين امت يې )اوپه دې کې هيڅ شک نشته،چې ددې امت بهتر والى په دين کې د دوى دکمال په اعتبارسره دى اوددې امت په دين کې كامل كيدل داتابع دي دهغه نبي دكمال دچا چې دوى اتباع كوي.
وفي المشكوة:عن أبي هريرة رضي الله عنه قال:قال رسول الله صلى الله عليه وسلم :أناسيدولدآدم يوم القيامة وأول من ينشق عنه القبر وأول شافع وأول مشفع.(رواه مسلم)
ترجمه: اوپه مشكوة شريف کې دي: دحضرت ابوهريره رضي الله عنه نه روايت دى ،فرمايي چې:رسول الله ﷺ وفرمايل:زه به دقيامت په ورځ د ادم دا ولاد سرداريم،زه به اولنى هغه كس يم دچا چې قبر اول پرانستل شي اوزه به دټولونه مخکې شفاعت كونكي يم او دټولو نه مخکې به زماشفاعت قبول شي.

وفي المرقاة ج:۸ ص:۱۰:في شرح مسلم للنووي....وفي الحديث دليل على فضله على كل الخلق لأن مذهب أهل السنة أن الآدمي أفضل من الملئكة وهوأفضل الآدميين بهذا الحديث.
ترجمه:اوپه مرقاة ج:۷ ص: ۱۰ کې دي چې: داحديث دحضور ﷺ په ټول مخلوق باندې د فضيلت دليل دى، ځکه چې داهل سنت مذهب دى چې انسان دملائکونه افضل دى او حضور ﷺ ددې حديث په وجه دټولو انسانانو نه افضل دى،(نوګوياحضور ﷺ دټولو مخلوقاتونه افضل شو).

غرض داچې داكس ضال ومضل اومرتد اوزنديق دى، داسلام او قرآن په نامه دمسلمانانو په دين اوايمان باندې ډاکه اچوي اوساده ګانو مسلمانانو ته دنبي اخرالزمان ﷺ يرحمت له لمنې پرې كوي او په ځان پسې يې لګول غواړي.
په حكومت پاكستان باندې فرض دي چې فورا دې ددې فتنې مخه و نيسې اوددې بې دينه په سرګرموباندې دې پابندي ولګوي، دوى ته دې داسې عبرتناكه سزاوركړل شي چې ددوى اينده نسلونه يې هم ياد وساتي اوڅوک بدخت اينده داسې جرات ونه كړي.
نور داچې له دوى نه دې داهم معلوم شي اوداتحقيق دې ترې وشي چې دكوموقوتونوپه اشاره باندې داخلک پاكستان کې اوپه مسلمانانوکې داضطراب اوبې ارامي فضاء پيدا كول غواړي.؟

# صحيح بخاري باندې د عدم اعتماد تحريک

**سوال:** مسئله داده چې دصحيح بخاري په رواياتواواسنادو باندې دعدم اعتمادتحريک روان دی، ددې تحريک ترشا چې کوم خلک دي دهغوی فهرست اوتفصيل کافي اوږد دی، په هرحال دنمونې په ډول يواځې يومثال درته وړاندې کوم، اداره فکراسلامي جنرل سيکرټري جناب طاهرالمکي صاحب،جناب عمراحمدعثماني صاحب کتاب،رجم اصل حد ياتعزير،،په تعارفي يادښت کې ليکي:
داهل حديث حضراتونه پرته دنوراسلامي فکرخصوصا داحنافو دامام بخاري په تحقيقاتو په باره کې چې کوم نقطه نظردی، هغه مولاناعبدالرشيدنعماني مدرس جامعه بنوري ټاون. علامه زاهدالکوثري مصري اوانورشاه کشميري له کتابونونه ظاهر دی.
دمولاناعبدالرشيدنعماني دتحقيقاتونويواځې يواقتباس وګورئ:
،،ايادوه تهائی بخاري غلط دی،،،

ترجمه:....علامه مقبلي په خپل کتاب ،،الأرواح التوفخ،،کې ليکي::
يو ډير زيات دين دار اوباصلاحيته کس مانه دعراقي ،الفيه،،(کوم چې په اصول حديث کې دی) ولوست اوزموږ ترمينځه دصحيحينوپه مقام اومرتبه اوپه خاصه توګه دبخاري د رواياتوپه باره کې خبرې اترې وشولې، نوهغه صاحب حضورﷺ په خوب کې وليده او د حضور ﷺ نه يې پوښتنه وکړه چې ددې کتاب يعنې خصوصاً دبخاري دکتاب په باره کې څه حقيقت امردی؟
حضورﷺ وفرمايل :دوتهائی غلط دي.
په خوب کې دليدونکي غالب ګمان دادی چې درسول اللهﷺ دا ارشاد دبخاري دراويانو په باره کې دی،يعنې په هغوی کې دوه تهائی راويان غيرعدل دي. ځکه چې په بيدارئ کې زموږ موضوع اوبحث دبخاري راويان وو، والله اعلم،(وګورئ دمقبلي کتاب الارواح النوافخ، ص: ۲۸۹، ۲۹۰)
په دې عجيبه دليل باندې ظاهرالمکي صاحب ليکي:
دادبخاري په فني طورسره دټولونه دزيات صحيح کيدوحقيقت، ددې په ايډيټ کولوکې دمولاناعبدالرشيدنعماني سره دجامعه بنوري ټاون مفتي ولي حسن هم شامل دی، څنګه چې دخپل حاشې په اخره کې نعماني صاحب دهغوی په شکريه اداکولوکې ويلي دي،
عبدالرشيد صاحب فرمايي:
کله چې دبخاري دوتهائی راويان غيرعادل دي، نوددې درواياتو څه حيثيت دی،کوم چې يقيناً ددې دبخاري ددوتهائی نه زيات جوړېږي ځکه چې ډيرروايان داسې وي چې څوڅورواياتونه بيانوي،(بحواله رجم اصل حدهے ياتعزير ص:۳۹)

محترم! اوس تاسو ماته ووایئ چې ایاپورته ذکرشوي حوالونه کوم بیان شوي دي ایاهغه صحیح دي یاغلط؟اوکه ستاسوپه نزدصحیح وي، نوایا زه دصحیح بخاري نسخې ضائع کړم؟ او ایا دمدرسو انتظامي ته داخبارپه ذریعه ترغیب ورکړم چې هغوی دې دخپلو مدرسو د نصاب نه صحیح بخاري خارج کړي؟زه امیدلرم چې تاسوبه زمادشک خالص دالله تعالی درضاله پاره لېرې کړئ.

**جواب:** پورته ذکرشوې خط لیدلونه وروسته ماحضرت نعماني مدظله العالي په خدمت کې یوه عریضه ولیکله کوم چې په دې لاندې ډول ده:

**بسم الله الرحمن الرحيم**

حضرت مخدوم ومعظم!مدت فیوضهم وبرکاتهم ،السلام علیکم ورحمة الله وبرکاته-

یوصاحب دطاهرالمکي په حوالي سره دجناب یوعبارت نقل کړی اودهغه په باره کې یې ګرم ګرم سوالونه کړي دي دادهغه کس څلورم خط دی مامناسبه وګڼله چې توجيه القول بما لايرضى به قائلة، په ځای ستاسوسره مشوره وکړل شي ،مختصرشان سره اشاره راته وکړئ چې دطاهرالمکي نقل ترکوم حدپورې صحیح دی؟اوددې صاحب اخذ شوې نتیجې سره دکوم حدپورې اتفاق کېدای شي؟ زه دهفتې په ورځ په سفرباندې تلونکی یم،له دې وجې نه زه ستاسودخط ځواب سباختمول غواړم ،دنېکو دعاګانوغوښتنه هم کوم.

والسلام

خویدکم محمدیوسف عفاالله عنه

حضرت موصوف مدظله العالي:په لاندې ډول ددې ځواب ولیکه:

**محترم ! وفقني الله واياكم لمايحب ويرضى !**

وعلیکم السلام ورحمة الله وبرکاته-

دې وخت کې په درس ګاه کې،،**الأرواح النوافخ**،،موجودنه دی،،،دراسات اللبيب،،دمعين سندهي رحمه الله په تعليقاتو کې ډيروخت شوی دی چې دصحيحينوپه بحث اختلاف کې مې ليکلي دي چې دتلقی مسئله اختلافي ده،په اختلافي حديثونوکې داجماع دعوه صحيح نه ده، په دې باندې بحث کولوکې چېرته ددغه خوب ذکرهم راغلی و،د،،الارواح،،مصنف علامه مقبلي اول زيدي و، بياد مطالعې کولونه وروسته سني شوی و اوبيادعامو يمنيانوپه شان لکه څنګه چې اميريماني،وزيريماني اوقاضي شوکاني وغيره دي غيرمقلدشوی و او هغه دتلقي رواة په سلسله کې ددې خوب ذکرکړی و ،دخوب چې څه حيثيت دی هغه ظاهر دی،درواة په تعديل اوتجريح کې اختلاف دشروع نه راروان دی،څنګه چې په څلورو واړو مذاهبوکې اختلاف دی،دې سره نه دڅه شی باطل کېدل لازمېږي اونه په مختلفو شيانو

باندې اجماع، د دتلقي امت دبحث اصلي حقيقت دی، چې نه خودمتون ټول امت تلقي دي اونه په رواة باندې. څنګه چې د ټولو اختلافي مسائلو حال دی.
دقران کریم ثبوت قطعي دی، خو ددې په تعبیراوتفسیرکې اختلاف دی، نوبیاایاددې اختلاف له وجې نه به قران کریم پرېښودل کیږي ؟هم دغه حال دمتون صحیحینو اورواة دصحیحین دی، چې نه خوددې متن دامت له پاره واجب العمل دی اونه ددې هرروای بالاجماع قابل قبول دی اوس منکرین حدیث په دې سلسله چې څه غوارې طریقه دې اختیارکړي . دقران کریم په تعبیراوتفسیرکې اختلاف و او وي به، درواياتو دقبول، عدم قبول کې دمجتهدینو اختلاف و او وي به.

**فمن شاء فليؤمن و من شاء فليكفر.**

والسلام.
محمدعبدالرشيدنعماني.
۲۵_۲_۱۴۱۵هجری.

**بسم الله الرحمن الرحيم،**

مکرم ومحترم! زیدلطفه السلام علیکم ورحمة الله وبرکاته!
ستاسو دخط په ځواب کې څوامورمختصرا لیکم ،وزګار وخت راسره نشته که نه په دې موضوع به مې پوره مقاله لیکلې وه:
۱: ستاسودتحریک بنیاددطاهرالمکي صاحب هغه تحریردی دکومې حواله چې تاسوپه خط کې نقل کړی ده اوتاسوپه دې تحریرباندې دومره باور وکړ، چې ددې په بنیادباندې زمانه پوښتنه کوئ چې:
دمذکوره حوالې نه چې څه بیان شوي دي ایاهغه صحیح دي او که غلط؟که تاسو(یعنې راقم الحروف )په نزدباندې صحیح هم وي، نوایازه دصحیح بخاري نسخې ضائع کړم؟ او ایا دمدرسوانتظامي ته داخبارپه ذریعه ترغیب ورکړم چې هغوی دخپلومدرسوله نصاب نه صحیح بخاري خارج کړي.؟
دطاهرالمکي صاحب په تحریرباندې دومره لویه فیصله کولونه مخکې تاسوته داسوچ کول پکاروچې د دې صاحب تعلق خوچېرته دمنکرین حدیث دطبقې سره نه وي؟اوایاداکس ددې نتیجې په اخذکولو کې دمکراوفریب نه خوکارنه اخلي؟
دطاهرالمکي تعلق چې دکومې طبقې سره دی مکراوفریب ددې طبقې عادت دی او اوریدل شوي دي چې دطاهرالسکي په نامه کې هم فریب دی، دده والدمرحوم میانجي جی عبدالرحیم به په ..مکي مسجدکراچی..په مکتب کې ماشومانوته سبق ښوده اوددوی رهائش ګاه هم دغلته وه، په دې دوران کې داصاحب پیداشو اودمکي مسجدطرف ته نسبت

سره علامه طاهرالمکي جوړشو اوریدونکي داسې ګڼي چې دې حضرت دمکې نه تشریف راوړی دی.

۲:دمولاناعبدالرشیدنعماني مدظله په حوالې سره هغه قطعا غلطه اوګمراه کونکې نتیجه اخیستې ده،څنګه چې دمولاناصاحب دخط نه ظاهره ده اول خومقبلي زیدي اوبیا غیرمقلد و، بیا دهغه حواله دخوب ده اوهرچاته پته ده چې خوب په دیني مسائلوکې دلیل نه دی[1]، بیا مولاناصاحب داحواله ظاهرولوله پاره نقل کړې ده چې درواة بخاري په باره کې دځینو خلکو دا رایه ده،مولاناعبدالرشیدنعماني مدظله العالي دیوې دیني مدرسې شیخ الحدیث دی اوکه دهغوی دارایه وي کومه چې تاسودطاهرالمکي مکارانه عبارت نه ګڼلې ده، نو هغوی به ستاسو دتحریک،عدم اعتماد..علمبرداروای.نه چې دصحیح بخاري ښودونکی شیخ الحدیث.

۳:.طاهرالمکي امام العصرحضرت مولانامحمدانورشاه کشمیري په کې هسې راښکل کړی دی،حضرت دشلوکالونه زیات دصحیح بخاري درس ورکړی دی اوددرس بخاري دشروع کولومخکې یې ۱۳ځله دصحیح بخاري شریف په ښه غورسره مطالعه کړې ده اوددې دټولو وشرحویې په تدبراوغورسره مطالعه وکړه، دصحیح بخاري دوه لویې شرحې،فتح الباري او،،عمدة القاري،،خوحضرت ته داسې یادې وې لکه چې دهغه په وړاندې پرانستل شوې پرتې وې[2].(مقدمه فیض الباری ص:۳۱)

حضرت شاه صاحب نه یواځې داچې صحیح بخاري ته،،اصح الکتب بعدکتاب الله،، ګڼله بلکې دصحیحینودحدیثونودقطعیت قایل و، په فیض الباري کې فرمایي:

---

۱]قال العلامة ملا علی القاری رحمه الله: ولذا لم یعتبر احد من الفقهاء جواز العمل فی الفروع الفقهیة بما یظهر للصوفیة من الامور الکشفیة او حالات المنامیة(مرقاة شرح مشکوة ج:۹،ص:۳۵۸کتاب الفتن ایضاً قال ابن السمعانی رحمه الله: ویؤخذ من هذا ما تقدم التنبیه علیه ان النائم لو رائ النبی صلی الله علیه وسلم یامره بشئ هل یجب علیه امتثاله ولابد، او لا بد ان یعرضه علی الشرع الظاهر فالثانی هو المعتمد کما تقدم(فتح الباری ج:۱۲،ص:٤٨١،کتاب التعبیر،طبع قدیمی)

۲]المحدث الجلیل امام العصر محمد انورالکشمیری الذی شامت نفحة من ترجمته قد اعتنی بصحیح البخاری درساً واملاء وخوضاً وامعاناً مالم یعتن بماعداه،فطالعه قبل الشروع فی تدریسه ثلاث عشرة مرة من اوله الی آخره مطالعة بحث وفحص وتحقیق، وطالع شروحه المطبوعة من الفتح والعمدة والارشاد وغیرها من المطبوعة والمخطوطة ما تیسر له فی دیار الهند والحجاز وکان العمدة والفتح کانهما صفحة بین عینیه ثم وفق لتدریسه ما یربو علی عشرین مرة دراسة امعان وتدقیق حتی اجهد نفسه شطر عمره فی العکوف علیه تحقیقاً وبحثاً (مقدمة فیض الباری ص:۳۱،طبع قاهرة)

صحيح احاديث دقطعيت فائده ورکوي که نه؟په دې کې اختلاف دی.دجمهوروقول دادی چې دقطعيت فائده نه ورکوي،خودحافظ رضی الله عنه مذهب دی چې قطعيت فائده ورکوي. شمس الائمه سرخسي له احنافونه،په حنابله وو کې حافظ ابن تيميه او شيخ ابن صلاح هم دې طرف ته مائل وو، ددې حضراتوتعداد اګرچې کم دی خوددوی رايه هم صحيح رايه ده. دشاعر دا قول ضرب المثل دی:

زمابنځه ماته پېغورراکوي ، چې زموږ تعدادکم دی .ماهغې ته وويل چې کريم خلک اکثرکم وي.[1] (فيض الباری س:۴۵)

حضرت شاه ولي الله محدث دهلوي رحمه الله په ، ،حجة البالغه ، ،کې ليکي:

دمحدثينو اتفاق دی چې په صحيحينو کې څومره حديثونه متصل مرفوع دي ،صحيح دي اودا دواړه دخپلو مصنفينو پورې متواتردي اوکوم کس چې ددې دواړو توهين کوي هغه مبتدع دی اود مسلمانانو دلارې نه بې لارې شوی دی.[2]

۴:ديوحديث صحيح کيدل يوشی اودهغه واجب العمل کيدل بل شی دی.له دې وجې نه د يوحديث دصحيح کيدوله پاره دانه لازميږي چې هغه دې واجب العمل هم وي،ځکه چې کيدای شي چې هغه منسوخ وي،يامقيدوي،يامؤول وي،له دې وجې نه ديو امي علم کافي نه دی،بلکې ددې له پاره موږ دائمه مجتهدينو رحمهم الله داتباع محتاج يو .دقران کريم قطعي کيدل خودهرقسمه شک اوشبهې نه پاک دي،خو دقران کريم ځيني اياتونه منسوخ اومؤول يامقيد بالشرائط دي،يوائې په دې اجمالي خبروباندې اکتفاکوم،دتفصيل اوتشريح ګنجائش نشته.والله اعلم!

## په خپله نه بدليږي اوقران بدلوي

**سوال:** تاسوته زحمت درکوم ،روزنامه ، ،نوائے وقت، ، اتوار۱۰جون ۱۹۹۰ کې (دنوربصيرت) دمستقل عنوان دلاندې ميا عبدالرشيدصاحب، ،بازاراوبرهيا ، ،په عنوان سره يوتحريرليکلی و ، (هغه څه درليږم) په کوم چې زمادعلم مطابق مصنف دحديث نبوي

---

1] القول الفصل فی ان خبر الصحيحين يفيد القطع، اختلفوا فی ان احاديث الصحيحين هل تفيد القطع ام لا؟ فالجمهور الی انها لا تفيد القطع وذهب الحافظ رضی الله عنه الی انها تفيد القطع واليه جنح شمس الائمة السرخسی رضی الله عنه من الحنفية والحافظ ابن تيمية من الحنابلة والشيخ عمروبن الصلاح رضی الله عنه وهؤلاء وان كانوا اقل عدداً الا ان رايهم هو الرئ وقد سبق فی المثل السائر: تعيرنا انا قليل عددينا فقلت لها ان الكرام قليل (مقدمه فيض الباری ص:٤٥،طبع قاهره )

2] اما الصحيحان فقد اتفق المحدثون علی ان جميع ما فيها من المتصل المرفوع صحيح بالقطع وانهما متواتران الی مصنفيهما وانه كل من يهون امرهما فهو مبتدع متبع غير سبيل المؤمنين (حجة الله البالغة ج:١،ص:١٣٤،باب طبقة كتب الحديث)

دنفي، جهاد بالسيف او د جهاد باللسان په باره کې خپله رايه او د مسواک (سنت رسول ﷺ) په باره کې هرزه سرايي نه کارا خيستي دي، تاسو ته خواست دی چې د ميا عبد الرشيد د کم علمي او هرزه سرائي مدلل ځواب ورکړئ چې د احقريې په دې روزنامه که خپره کړي او د ډيرو مسلمانانو شکونه کوم چې د مصنف په تحريرسره پيداشوي دي ليرې شي، الله تعالی به تاسو ته اجر عظيم در کړي.

د نور بصيرت په عنوان سره ليکل شوی د ميا عبد الرشيد پورته ذکر شوی مضمون دا دی:

## بازاو بوډۍ

رومي رحمة الله عليه يو حکايت ليکلی دی چې ديوې بوډۍ د کور په چت باندې يو باز کېناست او اتفاق سره د بوډۍ لاس ته ورغی، بوډۍ د هغه سره مينه کوله او د هغه منښوکې ته يې وکتل، نو ويې ويل، هاې افسوس! منښوکه دې دومره اوږده شوې ده او د مخې طرف نه کږه شوې ده، بيا د هغه پنجې ته يې وکتل، نو ډير افسوس يې وکړ، چې نوکونه يې دومره لوی شوي دي، بوډۍ قينچی راواخستله اول يې د باز منښوکه کټ کړه، بيايې د هغه پنجې پرې کړلې، بيايې د هغه وزرې کټ کړلې او له دې نه وروسته په خوشالۍ سره يې وويل: اوس ځو مره ښه ښکاري!

رومي رحمة الله عليه له دې نه دا نتيجه اخلي، چې ځينې خلک ښه ښه شيان بيکاره او فضول کړي او دا ګڼي چې هغوی دد ی اصلاح کړې ده، همدغه څه زمونږ د اسلام سره روان دي، چې يو طرف ته ددې د دننه نه د جهاد شوق ويستل کيږي، نو دويم طرف ته رسمونو باندې زورا چول کيږي او د اعمال بې روحه جوړولو کوششونه روان دي، د کومې له وجې نه چې په مسلمانانو کې تنګ نظري، تعصب او فرقه پرستي خبريږي، دريم طرف ته مسلمانان په قيصو راګيروي، چې د هغه په نتيجه کې د حقيقت نه ليرې کيږي.

يو فوځي افسر ما ته وويل چې د هغه د دفتر سره کوم جومات دی په هغه کې د ماسپښين د لمانځه نه وروسته يو کتاب لوستل کيږي، يوه ورځ د ابن ماجه په حوالې سره دا حديث بيان شو، چې دوه کسان و په هغوی کې يو کس د شهادت مرګ ومونډلو او دويم کس په طبعي مرګ مړشو، چا په خوب کې وليدل چې طبعي مرګ باندې مړکيدونکی څو کاله وړاندې د شهيد نه جنت ته داخل شو، په پوښتنه باندې معلومه شوه چې طبعي مرګ باندې مړکيدونکي لمونځونه او روژې زياتې نيولې وې له دې وجې نه هغه ته په شهيد باندې فوقيت حاصل شو، دا دمنلو خبره ده؟ ايا دا خبره د اسلام د تعليم بالکل خلاف نه ده؟ متفقه مسئله ده چې د شهادت مرګ افضل ترين مرګ دی، شهيد پرته د څه حساب کتاب نه جنت ته داخليږي، ايا د فوځيانو د دننه د شهادت د شوق ختمولو يو کوشش نه دی؟

د سورة الصف په څلورم ايت کې دي چې: يقينا الله تعالی هغه کسان خوښوي چې د الله تعالی په لارکې جنګيږي، لکه چې هغوی د اوسپنې ديوالونه وي.

دا په واضح ډول دجنګ په باره کې دی.

خو دې افسرماته وویل چې هلته داایت پرینبودل شوی دی دایت ۱۱ تفسیرهمدارنګه بیان شوی دی، کوم خلک چې دالله تعالی په لاره کې (جهادنه بلکې)کوشش کوي په خپلو مالونو اوجانونو سره.

ظاهره ده چې ددې کوشش نه مرادپه تبلیغي دوره باندې تلل دي

یوبل فوجي افسرراته واقعه واوروله چې دبهاولپورطرف دهغوی درې ټینکونه په نهرکې غورځیدلي وو،ځوانانوهغه ولټول،دوه پیداشول خودریم پیدا نه شو. مابنام کې کرنل صاحب چاچې ماشاءالله ددې پرهیزګاره جماعت سره تعلق لاره،ځوانان راغونډکړل او ویې ویل چې: معلومیږي چې نن تاسومسواک په صحیح طریقې سره نه و استعمال کړی ،له دې وجې نه ټینک (ټانګ) پیدانه شو،سباپه ښه طریقې سره مسواک وکړئ او راشئ،په دویمه ورځ چې ځوانانوپه ښه طریقې سره مسواک وکړ اونهرته کوزشول نودریم ټینک هم پیداشو.

**جواب:** میا صاحب چې دروميﷺ په حوالې سره کوم حکایت ، ،بازاوبوډی، ،نقل کړی دی هغه هم په ځای ده اوددې په نقل کولوسره دمیا صاحب داویناهم په سر سترګوچې:

هم دغۀ څه زموږ د اسلام سره کیږي.

دمیا صاحب زیرنظرمضمون هم ددې یوښه مثال دی،په کوم کې دګنواړخونونه د، ،روایتي بوډۍ، ،کردار ادا شوی دی:

اول: دیوامتي چې دحضورﷺ سره کوم تعلق دی دهغه غوښتنه داده چې دحضورﷺ ارشاد ګرامي اوریدلوسره دهغه سرښکته شي اودهغه له پاره دهیڅ اګر،خوګنجائش پاتې نه شي، ځکه چې دادیوامتی له پاره،که هغه واقعتاً خپل ځان دحضورﷺ امتی ګني.دټولونه اخري فیصله دحضورﷺ فیصله کیدای شي اودحضورﷺ دارشادنه وروسته باید هیڅ داګر اوخو ګنجائش باقي پاتې نه شي اونه دحضورﷺ دفیصلې خلاف اپیل کیدای شي .په قران کریم کې ارشاددی:

"فَلَا وَرَبِّكَ لَا يُؤْمِنُونَ حَتَّىٰ يُحَكِّمُوكَ فِيمَا شَجَرَ بَيْنَهُمْ ثُمَّ لَا يَجِدُوا فِي أَنفُسِهِمْ حَرَجًا مِّمَّا قَضَيْتَ وَيُسَلِّمُوا تَسْلِيمًا". (النساء :۶۵)

ترجمه: ستاپه رب مې دې قسم وي! چې دا خلق به ترهغه ایمان نه رواړي. ترڅوچې په خپلو جګړوکې ستاحکم ونه مني اوبیا چې ته فیصله وکړې،نودوی په خپلو زړونوکې په هغه فیصله کې هیڅ بوج ورته نه وي اوهغه فیصله پوره ومني . (ترجمه حضرت تهانوي)

خو دارشادرباني مطابق،دحضورﷺ فیصله اوریدلوسره دمیا صاحب سرنه ښکته کیږي بلکې هغه دې لره ، ،دجهادجوش اودشهادت شوق ویستل اویواځې په رسمونوباندې زور ورکول اواعمال پرته دروح نه جوړولوغلطي سره تعبیرکوي. هغه داحدیث نبويﷺ.داسلام

اوږده شوې مېنوکه ګڼي اودروایتي بوډۍ په شان فوراً داقینچي سره کټ کوي اوداسلام دادکټ کوټ عمل ددوی په نظرکې ورته، ،نوربصیرت ، ،وايي،حالانکه دروایتي بوډۍ په شان نه دوی ته دامعلومه ده چې ددې حدیث شریف مقصدڅه دی؟اونه په دې خبردي چې دجذبه جهاداوشوق شهادت صحیح مفهوم څه دی،هغه داحدیث شریف دجذبه جهاداوشوق شهادت مخالف ګڼي اوهغوی ته داحدیث شریف هم هغه شان فالتوپه نظرراځي څنګه چې بوډۍ ته دبازمېنوکه او نوکونه اوږده په نظرراغلي وو.

دویم:میا صاحب دیوفوځي افسرپه حوالې سره موږ ته وایي چې: ددوی په جومات کې دماسپښین له لمانځه وروسته یوکتاب لوستل کیږي ،یوه ورځ هلته دابن ماجه په حوالې سره داحدیث بیان کړل شو.

داکتاب چې دماسپښین نه وروسته بیانیده دحضرت شیخ الحدیث مولانا محمدزکریا مهاجرمدني نورالله مرقده کتاب، ،فضائل نماز، ،دی اوپه دې کې داحدیث یواځې دابن ماجه په حوالې سره نه دی ذکرشوی بلکې ددې دحوالوله پاره لاندې ذکرشوي کتابونه دي:

۱:موطاامام مالک. ۲:مسنداحمد. ۳:ابوداود. ۴:نسائي. ۵:ابن ماجه. ۶:صحیح ابن خزیمه.
۷:صحیح ابن حبان. ۸:مستدرک حاکم. ۹:بیهقي. ۱۰:ترغیب وترهیب منذري. ۱۱:درمنثور.

خو دې فوځي افسر وویل چې دابن ماجه حوالې سره داحدیث بیان کړل شو اومیا صاحب پرته دتحقیق نه په خپله کالم کې دننه کړ،شائدمیا صاحب دروایتي بوډۍ په شان دقران کریم ذکر ایت هم (نعوذبالله)فالتوګڼي:

"یَاأَیُّهَا الَّذِینَ آمَنُوا إِنْ جَاءَکُمْ فَاسِقٌ بِنَبَإٍ فَتَبَیَّنُوا أَنْ تُصِیبُوا قَوْمًا بِجَهَالَةٍ فَتُصْبِحُوا عَلَى مَا فَعَلْتُمْ نَادِمِینَ". (الحجرات:۶)

ترجمه: اې ایمان والاوو! که یوشرارتي کس تاسوته خبرراوړي، نوښه تحقیق یې کوئ،چې چرته په ناداني کې یوقوم ته نقصان ونه رسوئ اوبیاپه هغه باندې پښیمانه ئي.(ترجمه حضرت تهانوي رحمه الله)

میا صاحب پرته دتحقیق نه په دې خبرباندې باور وکړ اوداحدیث شریف یې دخپل ناروا تنقیدنښه کړ.

دریم: داحدیث کوم چې دمیا صاحب دقول مطابق دابن ماجه په حوالې سره لوستل کیده، دلاندېنوصحابه کرامونه مروي دي:

۱:حضرت سعدبن ابي وقاص رضي الله عنه:موطاامام مالک ص:۱۲۱،مسنداحمدج:۱ ص:۱۷۰، صحیح ابن خزیمه ج:۱ ص:۱۲۰، مستدرک حاکم ج:۱ ص:۲۰۰.

امام حاکم رحمه الله داد خپل سندسره نقل کولوکې فرمايي :صحیح الإسناد،امام ذهبي رحمه الله په تلخیص مستدرک کې فرمايي :داحدیث صحیح دی،امام نورالدین هیثمي رحمه الله دا د مسند

امام احمد اوطبراني په حوالې سره نقل کړی اوفرمايي :دمسنداحمدټولو راويان صحيح راويان دي.

۲:حضرت عبيدبن خالد رضی الله عنه: مسنداحمد ،ج:۳ ص: ۵۰۰ ،ج:۴ ص:۲۱۹ ،ابوداود ج:۱ ص: ۳۴۲ ،نسائي ج:۱ ص: ۲۸۱ ،سنن کبری بيهقي ج:۳ ص:۳۷۱ ،مصباح السنة ج:۳ ص: ۴۴۲ ،مشکوة ص: ۴۵۱ ،داحديث صحيح دی اوددې ټولو راويان ثقه دي.

۳:حضرت طلحه بن عبيدالله رضی الله عنه: مسنداحمد ج:۱ ص:۱۲۳ ،ابن ماجه ص: ۲۸۱ سنن کبری بيهقي ج:۳ ص:۳۷۲ ،مسندابويعلی ج:۲ ص:۹ صحيح ابن حبان ج:۵ ص:۲۷۷ مسندبزازر(کشف الاستارعن زوائدالبزار ج ۴ ص:۲۲۷).

امام نورالدين هيثمي رحمه الله داحديث دمسنداحمد ،مسندابويعلی اومسندبزار په حوالې سره نقل کړی اوفرمايي چې ددې ټولو روايان صحيح دي.(مجمع الزوائد ج: ۱۰ ص:۲۰۴)

۴:حضرت ابوهريره رضی الله عنه: مسنداحمدج:۲ ص:۳۳۳.

امام هيثمي رحمه الله فرمايي :بإسنادحسن،(مجمع الزوائدج: ۱۰ ص:۲۰۴)اوهمدغه خبره شيخ دامام منذري نه هم نقل ده.

۵:مسنداحمدج:۱ ص:۱۲۳ مشکوة ص: ۴۵۱ ،مجمع الزوائد ج: ۱۰ ص:۲۰۴ (حضرت شيخ هم ددې ټولو حديثونوطرف ته اشاره کړې ده.)

تاسوګورئ چې داحديث دګڼوصحابه کرامو نه مروي دی، ائمه حديث ددې تخريج کړی دی اود دې دراويانوېې توثيق اوتعديل هم کړی دی،خو زموږ دميا صاحب په نزدباندې شائددحضراتومحدثينوجرح اوتعديل اوتصحيح اوتحسين هم يوفالتوشی‌وي اودوی يې دادروايتي بوډی په شان کټ کول غواړي.

څلورم: دصحابه کرامودور نه ترنن دور پورې اهل علم داحديث اوري او اوروي يې لولي يې اودرس کي يې ، خو دچاپه زړه کې هم داخيال رانغی چې دې سره جذبه جهاداودشوق شهادت نفي کيږي،البته په حديث کې دلمونځ فضيلت اوطاعت اوعبادت سره اوږد عمر ورکول سعادت باندې ضرورااستدلال وکړل شو، صاحب مصابيح السنة اوصاحب مشکوة داحديث،، **باب استحباب المال والعمر للطاعة**،،دلاندې ذکرکړی دی،امام نورالدين هيثمي رحمه الله دايوځل د ،،دلمونځ دفضيلت،،په بيان کې اوپه دويم ځل ،،**باب طال عمره من المسلمين**،،دلاندې ذکرکړی دی اوپه صحيح ابن حبان کې داحديث دلاندينې عنوان ترلاندې ذکر شوی دی:

**ذکرالبيان بأن من طال عمره وحسن عمله قديفوق الشهيد في سبيل الله تبارک وتعالی.**

ترجمه: ددې امر بيان چې دکوم کس عمراوږد وي اوعمل يې ښه وي هغه کله دشهيدي سبيل الله نه هم مخکې شي.

غرض دا چې: د جهاد فی سبیل الله او شهادت فی سبیل الله بې شمیره فضائل دي، خو په دې ځوک پوه نه دي چې جهاد فرض کفایه دی او لمونځ فرض عین د لمونځ په پرېښودونکي باندې د کفر اطلاق شوی دی او هم د لمونځ په باره کې فرمایل شوي دي چې لمونځ د دین ستن ده، چاچې دا قائم کړ دین یې قائم کړ او چاچې دا وغورځولو هغه دین وغورځولو. په اسلام کې د داخلیدو نه وروسته د دین د ټولو نه لوی او اهم رکن لمونځ دی، د لمونځ د دې فضائلو ذکر کولو سره دا چېرته لازم راغلل چې جذبه جهاد او شوق شهادت ورسره ختمیږي او کوم کس چې لمونځ نه کوي (ځنګه چې زموږ د معاشري دا کثریت حال دی او په کومو کې چې فوځي افسران او ځوانان هم شامل دي) هغوی به د الله تعالی په لاره کې جهاد ځنګه وکړي؟ او دهغه په زړه کې به ځنګه د شهادت شوق وي؟ خو د میا صاحب په خیال کې شائد جذبه جهاد او شوق شهادت په مقابله کې لمونځ، روژه او د دین نور اعمال او شعائر فالتو شیان وي، ځکه که خضور ﷺ دیو شی فضیلت لره شهادت فی سبیل الله نه زیات بیان کړي، نو میا صاحب به د هغه د منلوله پاره هم تیار نه وي او س انصاف وکړئ چې د اسلام سره د روایتي بوډۍ کردار ځوک ادا کوي؟

میا صاحب د سورة الصف د څلورم ایت ذکر کولو کې د فوځي افسر په حوالې سره موږ ته وایي چې: ، ، هلته دا ایت پرېښودل شوی او د ایت نمبر ۱۱ تفسیر د اسې بیان شوی دی: ځوک چې د الله تعالی په لاره کې (جهاد نه بلکې) کوشش کوي په خپلو مالونو سره او په خپلو جانونو سره، ظاهره ده چې د کوشش نه مراد په تبلیغي دوروه باندې تلل دي.

ما اول د قران ایت حواله د رکړې ده چې پرته د تحقیق نه یواځې په اوریدل شوې خبره باندې کاروایي کول پکار نه دي او میا صاحب د فوځي افسر د روایت حال هم پوره ته معلوم شوی دی، چې حضرت شیخ رحمه الله دیو حدیث له پاره د یو درجن کتابونو حواله ورکوي او د دې فوځي افسر ، ، حافظه یواځې ، ، یواځې ابن ماجه مشکل نوم او چت کړی شو، هم د دې اندازه لګیدلی شي چې خبره به چېرته روانه وي او د میا صاحب راوي به د ادځه نه څه ګڼلي وي؟

کومه خبره چې روانه وي او کیږي هغه به دا وي چې د دین په دعوت او تبلیغ او د مسلمانانو په اسلامي شعائرو قائمولو کې چې کوم محنت هم وي په دې باندې د فی سبیل الله ، ، اطلاق کیږي، په خپله جهاد هم د في سبیل الله د دې محنت یو شکل دی، ټولو ته معلومه ده چې د جهاد نه مخکې د مسلمانانو امیر لشکر د طرف نه کافرانو ته دا دعوت ورکول کیږي:

❁ : تاسو اسلام قبول کړئ، ستاسو حقوق به هماغه وي کوم چې زموږ دي او ستاسو ذمه واري به هم هغه وي کومه چې زموږ ذمه واري ده.

❁ : که تاسو اسلام رانه وړئ ، نو موږ چې کوم د اسلام د قانون نظام نافذ کړی دی د هغه د لاندې او سیدل قبول کړئ او د دې له پاره جزیه ورکړئ.

❁:او که جزیه ورکول او د اسلام د لاندې اوسیدل در ته قبول نه وي، نو د مقابلې له پاره میدان ته راشئ، توره به زموږه او ستاسو تر مینځه فیصله وکړي[۱].

د اسلامي جهاد دا دفعات هر یو طالب علم ته معلوم دي، د کوم نه چې واضح ده چې جهاد هم دعوت الی الله د اعلاء کلمة الله له پاره وي، له دې نه وروسته د دعوت او تبلیغ په ،،في سبیل الله،، کیدو کې څه شک پاتې کیږي، حضراتو مفسرینو ،دفي سبیل الله په تفسیر کې چې کوم څه لیکلي دي چې هغه وکتل شي د کوم نه به چې معلومه شي چې د دین د علم حاصلولو له پاره په سفر باندې تلل هم په ،،في سبیل الله،، کې داخل دي او حج او عمره هم په في سبیل الله کې شامل دی او س یو کس داوایي چې د دین د سربلندي له پاره او د اسلام د ترقي له پاره چې کوم کوششونه وکړل شي، هغه هم په في سبیل الله کې داخل دي او په دې باندې به هم هغه ثواب او اجرورکول کیږي، کوم چې د في سبیل الله له پاره موعود دی. نو ایا د هغه دا خبره بې ځایه ده؟[۲]

زه د میا صاحب نه دا پوښتنه کوم چې په تبلیغي سفرونه باندې تلل خو ستاسو په خیال کې په ،،في سبیل الله،، کې داخل نه دي ،خو د جهاد في سبیل الله هغه درې دفعات کوم چې ما ذکر کړي دي ایا هغه تاسو پوره کړي دي؟

ایا زموږ فوځي افسران کافرانو ته دا دعوت ورکوي چې تاسو هم زموږ په دین کې داخل شئ او زموږ ورونه جوړ شئ؟

ایا دا دعوت ورکول کیږي چې که اسلام نه قبلوئ، نو د اسلام نظام کوم چې موږ قائم کړی دی، جزیه ورکړئ او د دې ماتحتي قبوله کړئ؟او ایا زموږ په ملک کې په یقین سره اسلامي نظام هم نافذ دی؟د کوم په ماتحتي کې چې یو کافر قوم ته دعوت ورکړل شي؟تر څو پورې چې تاسو اسلامي نظام قائم نه کړئ د دې دعوت به څنګه ورکړئ؟او تر څو پورې چې د دې دعوت ورنه کړل شي، اسلامي جهاد به څنګه وي؟او په دې باندې به د اسلامي جهاد فضائل څنګه مرتب کیږي؟ایا میا صاحب به دا معما حل کړای شي؟

---

۱]وَإِذَا دَخَلَ الْمُسْلِمُونَ دَارَ الْحَرْبِ فَحَاصَرُوا مَدِينَةً أَوْ حِصْنًا دَعَوْهُمْ إلَى الْإِسْلَامِ ) لِمَا رَوَى ابْنُ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا " { أَنَّ النَّبِيَّ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ مَا قَاتَلَ قَوْمًا حَتَّى دَعَاهُمْ إلَى الْإِسْلَامِ } قَالَ ( فَإِنْ أَجَابُوا كَفُّوا عَنْ قِتَالِهِمْ ) لِحُصُولِ الْمَقْصَدِ ، وَقَدْ قَالَ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ { أُمِرْت أَنْ أُقَاتِلَ النَّاسَ حَتَّى يَقُولُوا لَا إلَهَ إلَّا اللَّهُ } الْحَدِيثَ.( وَإِنْ امْتَنَعُوا دَعَوْهُمْ إلَى أَدَاءِ الْجِزْيَةِ ) ( فَإِنْ بَذَلُوهَا فَلَهُمْ مَا لِلْمُسْلِمِينَ وَعَلَيْهِمْ مَا عَلَى الْمُسْلِمِينَ ) (هداية ج:۲،ص:۵۵۹،كتاب السير)

۲] في الدرالمختار: في سبيل الله وهو منقطع الغزاة وقيل الحاج وقيل طلبة العلم وفسره في البدائع بجميع القرب (الدرالمختار مع الردالمحتار ج:۲،ص:۳٤۳باب المصرف)

اودمسواک په باره کې چې میا صاحب کومې خبرې کړې دي ددی ځواب په خپله دهغوی په تحریرکې په اخره کې موجوددی چې:
په دویمه ورځ چې کله ځوانانوپه ښې طریقې سره مسواک وکړاونهرته کوزشول ،نودریم تینک (ټانګ )هم پیدا شو.
که په سنت نبوي(علی صاحبهاالف الف صلوة وسلام)باندې عمل کولوسره دالله تعالی مددشامل شي ،نوپه دې کې هیڅ حیرانتیانشته اوترڅوپورې چې مجاهدین اسلام دسنت نبوي پابندنه وي دهغوی سره دالله تعالی نصرت اومدد نه شي کیدای ، دصحابه کراموږضوان الله اجمعین حالات په دې باندې ګواه دي اوپه خپله میا صاحب چې کومه واقعه نقل کړې ده هغه هم ددې روښانه دلیل دی،خو کیدای شي چې دمیا صاحب په زړه کې درسول الله ﷺ دسنتو څه خاص اهمیت نه وي، له دې وجې نه هغو ی ددې صحیح واقعې پورې ټوکې کول غواړي اوددې روایتي بوډۍ په شان وزرونه کټ کول غواړي،حق تعالی شانه دې ورته فهم سلیم ورکړي.

## قران کریم اوحدیث قدسي

**سوال:** ماد خطبات بهاول پورمصنفه ډاکټرمحمدحمیدالله صاحب لوستل شروع کړي دي،صفحه ٦٢ باندې یې دیوسوال ځواب ورکړی دی، هغه سوال اوځواب دلته نقل کوم:

**سوال:** نمبر ١٠: حدیث قدسي دالله تعالی الفاظ دي، نوحدیث قدسي په قران پاک کې ولې نه دی شامل شوی؟ وضاحت وکړئ!

**جواب:** رسول الله ﷺ مناسب نه دي ګڼلي، هم دا اصل ځواب دی، څکه چې دقران مجید د اوږدولو ضرورت نه و، بهتردا و چې قران کریم مختصروي اودضرورت ټول شیان دې کې موجوددي اووخت په وخت سره دې باندې زوراچولو له پاره حضور ﷺ نورشیان هم بیانول، کوم حدیث چې راغلي دي اوکه حدیث قدسي دي، له هغه نه موږ فائده اخستی شو، خودهغه په قران کې دشاملولو ضرورت حضور ﷺ نه دی محسوس کړی، دحدیث قدسي چې کوم کتابونه دي،په هغو کې داسې څه شی نشته کوم چې قران کې اضافه ګڼل کیږي، بلکې هم دقران ځینو خبروباندې په نوروالفاظو کې زور ورکولوسره بیان شوي دي.

زه دلته کې ونښتلم، ځکه چې دډاکټرصاحب خیال زما د بنیادي عقیدې خلاف معلومیږي، زماایمان دی چې قران کریم مکمل طورباندې په لوح محفوظ باندې لیکل شوی دی او جبریل علیه السلام دالله تعالی دفرمان مطابق هغه په حضور ﷺ باندې نازل کړ ، حضور ﷺ به یاداوه اوحضور ﷺ به هغه لیکه اوصحابه کرامو رضی الله عنهم باندې به یې یادولو ،داخبره چې څنګه په قران مجیدکې شامل کړل شي اوڅنګه دحضور ﷺ په اختیار کې نه وه، که چېرې موږدا ومنوچې قران کریم په هغه ایتونوباندې مشتمل دی، کوم چې حضور ﷺ مناسب ګڼلي

دي، نوزموږ کتاب به هم دبائبل په شان شي، تاسوته خواست دی چې دې باره کې زمارهنمائي وکړئ.

**جواب:** ستاسو دا خیال صحیح دی، دقران کریم الفاظ او معنا دالله تعالی دطرف نه دي[1] او حدیث قدسي مضمون خودالله تعالی له طرفه دی، خوهغه مضمون حضور ﷺ په خپلو الفاظو کې بیان کړی دی[2]، قران مجید کې څه کمی زیاتی نه شي کیدای، په دې وجه باندې داسې ویل چې قدسي حدیثونه حضور ﷺ په قران شریف کې نه دي شامل کړي، غلطه خبره ده، ډاکټرحمیدالله صاحب ته چې څه په خوله ورځي هغه وايي، هغه داستاذ علم نه دی حاصل کړی اوپه خطبات بهال پور کې هم ډیرې غلطیانې دي.[3]

## د فکري تنظیم په خلاف اواز پورته کول

**سوال:** موږ دیوې دیني مدرسې دشورا ممبران یو، دشورا مجلس رجسټرډ دی، مهتمم صاحب، دحضرت مولاناخیرمحمدصاحب رحمه الله خلیفه دی، قانون او اصول لیکل شوي دي چې دامدرسه به دحضرت مولانا نانوتوي رحمه الله اومولاناتهانوي رحمه الله دمسلک اومشرب مطابق وي، دمهتمم صاحب دوه زامن دفکري تنظیم سره تعلق ساتي اودشورا دمجلس دناګوارۍ باوجودمهتمم صاحب هغوی په مدرسه کې نوکران کړي دي، دپلاردسادګۍ نه فائده اخستوسره دهغه زامنودلیرې لیرې نه نوراستاذان رااوغوښتل اودځان په شان خیالات لرونکي خلک یې برتی کړل اوخپل پلار(مهتمم صاحب) یې دصدرپه شان بې اختیاره کولو سره مدرسې باندې خپل اثرقائم کړی دی، څنګه به چې ستاسوعلم کې وي چې داحضرات دحضرت شاه ولي الله رحمه الله اومولاناعبیدالله سندهي رحمه الله نوم اخستلوخلک خپل ځان طرف ته متوجه کوي، دهغوی دیواستاذ درپورټ مطابق دغه خلک دخپل ملکیت قایل نه دي، دخمیني مداح، دافغانستان دجهاد خلاف اودروسي نظام خوښونکي، دښځې دمشرۍ قایل، تبلیغي جماعت ته ګمراه وايي، په دې وجه باندې دهغوی دذهنیت خلاف استاذان پریشانه کولوسره په وتلوباندې مجبوروي اوکوم طالبان چې دهغوی دخیالاتومنونکي جوړ نه شول، هغوی یې هم له مدرسې نه وایستل، دپیښوردااخبارنجات مارچ ۱۹۹۸ء مطابق

---

۱] فالقرآن منزل على الرسول صلى الله عليه وسلم .......وهو النظم والمعنى جميعاً فى قول عامة العلماء وهو الصحيح........الخ (حسامى ص:٦)

۲] .......لان القرآن وحى كله بالفاظه ومعانيه نزل به الروح الامين على قلبه،واما السنة فالفاظها من عندالرسول صلى الله عليه وسلم وان كانت السنة كلها ارائة من الله تعالى .....الخ (ما تمس اليه الحاجة على ابن ماجة ص:٥،للشيخ نعمانى)

۳] ''خطبات بهاول پور کا علمی جائزه،، مکتبه لدهیانوی شائع کړی دی.

ددې تنظيم ذهن لرونکوطالبانوداخله يې دصوبه سرحدپه مدرسوکې بندکړې ده.
مولاناسرفرازصاحب صفدرنصرت العلوم والاوو هم ديوسوال په ځواب کې دوی ته
داسلافوخلاف ويلي دي اودشيطان دشراودهغه ددوستانونه يې پناه غوښتې ده.له دې نه
پرته په حساب کتاب کې هم څه ګړ بړ شروع شوی دی. دمجلس شورا کې مهتمم صاحب
اوشيخ الحديث صاحب جامعه خيرالمدارس ملتان. مدرسه خيرالعلوم خيرپورټاميوالي
مهتمم اودمدرسې ناظم جامعه عباسيه صادقيه منچن آباد نه پرته څه مقامي خلک دي.
مهتمم صاحب خودامنې چې زمادزامنونظرېې صحيح نه دي.خووايي چې داولاد کيدوپه
وجه باندې مجبوريم. دهغوی خلاف څه نه شم کولی. دبچوپه وجه باندې مهتمم صاحب
دشورا اجلاس راغوښتل بند کړي دي. د قانون اواصولوخلاف. جمع شوې پيسې په خپل
ذاتي اکاؤنټ کې جمع کوي ددخپلې خوښې مطابق يې استعمالوي، که چېرې دشورا
ممبران دهغوی نه پوښتنه کول پريږدي .نوخلک نظر به نور هم خپرول شروع کړي. دپوښتنې
په وجه باندې بيالړشان احتياط کوي. ددې مثالي اوښې مدرسې په صحيح لاربانډې
راوستلو له پاره دهغوی له مدرسې نه ويستل ضروري دي. پوښتنه داکول غواړم چې ددې
مسئلې په نزدباندې مورږدمجلس شورا ممبران دهغوی دويستلوکوشش وکړواوکه چپ
پاتې شو؟ مهتمم صاحب داهم وايي چې مانن پورې دهغوی پيرصاحب سره دهغه
دغلطوعقيدوپه وجه باندې لاس نه دی ورکړی.

**جواب:** زمامسلک خودخپل اکابرينوپه شان دی. دمدرسې داحضرات که چېرې مدرسه کې
دخپلواکابرينودمسلک مطابق عمل کوي. نو دنيا اواخرت کې به هغوی ته برکتونه نصيب
شي،که نه بيايواځې ويره ده.

پاتې شوه داچې ستاسوحضراتودهغوی خلاف اواز پورته پکاردي اوکه چپ پاتې کيدل
پکاردي؟ دې باره کې خواست دی که چېرې ستاسواوازپورته کول فائده کولی شي نواواز
ضرورر پورته کول پکاردي اوکه چېرې دفتنې اوفساد ويره وي. نوالله تعالی نه
دعاغواړئ چې الله تعالی خپل بندګان دهغوی دشرنه محفوظ وساتي.

## حقا که بنائې لا اله است حسين

**سوال:** خواست دی چې دحضرت خواجه معين الدين اجميري رحمة الله عليه طرف ته منسوب شوې
يوه رباعي کومه چې دشيعه ګانونه پرته داهل سنت والجماعة دمقررينواوعالمانوپه ژبه
وي، زمامراددی:

شاه است حسين بادشاه است حسين دين است حسين دين پناه است حسين
سرداد و نداد در دست يزيد حقا که بنائے لا اله است حسين

همدارنګه د علامه اقبال مرحوم یو شعر دی:

بهرحق در خاک و خون غلیطده است تا بنائے لا اله گر دیده است

او د ظفرعلي خان مرحوم د شعر اخري برخه:

اسلام زنده هوتا هے هر کربلا کے بعد

دا شعرونه او دا پورته بیان شوي شعرونه کوم ته چې کرښه ورکړل شوې ده. دې باندې ډیرحیران یم. زما د ناقص علم مطابق د قران او سنت علم سره مطابقت نه لري. یا د سائل پکار دي چې د حضرت حسین رضی الله عنه مقام زما په زړه کې ډیرزیات اوچت دی. تاسو مهرباني وکړئ د اسلام د تعلیماتو په رڼا کې دلیل سره ځواب راکړئ چې دا صحیح دي او که غلط؟

که چیرې بنائے لا اله حسین رضی الله عنه نه دی، نو د شریعت په نزد باندې لا اله څه دی؟ د دین یو عالم فرمایي چې دا رباعي د ملامعین کاشفي رافضي ده. د حضرت خواجه اجمیري رحمه الله نه ده. چونکه دا دعوی په رسالونو او دیوان کې نشته. ځواب دلیل او تفصیل سره بیان کړئ.

**جواب:** د ظفرعلي خان مرحوم په شعر کې خو هیڅ مشکل نشته. د هر کربلا نه مراد. هر شهادت ګاه ده او د شعر مطلب دا دی چې قرباني او شهادت د اسلام د ژوند ذریعه ده.

د کوم حد پورې چې د لومړي ذکر شوې رباعي او د اقبال د شعر تعلق دی. دا خالص د اشیعه ګانو ترجماني کوي. د خواجه اجمیري رحمه الله طرف ته د دې رباعي منسوب کول غلط دي او د اقبال شعر فې کل واد یهیمون. په شان دی. مزه داده چې رباعي کې سر دا دونه دا دد ست در دست یزید. ته. او د اقبال په شعر کې "بهرحق درخاک وخون غلطیدن. ته بنائے لا اله. کیدو علت ګرځول شوی دی. حالانکه د توحید چې څه مفهوم دی، لا اله د الله تعالی صفت دی، د انسان یو صفت د الله تعالی د توحید او یو اځې والی علت څنګه کیدای شي؟ او کوم خلک چې په معصومانو امامانو کې د الله تعالی د صفاتو قایل وي، د هغوی نه دا سې مبالغه مستبعد نه ده، غرض دا چې دا رباعي چرته د شیعه ده او د اقبال شعر د هغه غلا ده. والله اعلم!

## د زمکې او اسمان په تخلیق کې د تدریج حکمت

**سوال:** د سونو احتراماتو لائق جناب یوسف لدهیانوي صاحب!

السلام علیکم

"الله تعالی په دوو ورځوکې ځمکه جوړه کړه. په دوو ورځوکې یې په دې کې دننه قوتونه او برکت کیښوده او په دوو ورځوکې یې اسمان جوړکړ (حم سجده ایت ۹ تا ۱۲) حواله: تفسیر عثماني رحمه الله).

"الله تعالی چې څه شی پیدا کول غواړي. نو هغه ته وو ایي چې وشه" هغه شی وشي (ال عمران. ایت نمبر ۴۷)، (حواله تفسیر مولانا اشرف علي تهانوي رحمه الله)

ددې اياتونو په باره کې يوشيطاني خيال مادخه مودي نه پريشانه کوي، چې دځمکې او آسمان د وجود په راتلوکې شپږ ورځې ولې لګيدلې چې کله زموږ ايمان دی چې دځمکې او اسمان پيداکولو له پاره دالله پاك يوه اشاره هم کافي ده اوهغه به فوراً په وجودکې راشي.مهرباني وکړئ او په دی اشکال ليرې کولو کې زما سره مرسته وکړئ چې زه ددې شيطاني خيال نه خلاص شم.

**جواب:** د يوشی تدريجًا( په مزه مزه) وجودکې راوستل ددې دوه وجې کيدای شي.يوه دا چې فاعل دهغه په يوځل وجودته راوستلو باندې قادر نه وي ځکه هغه مجبور دی چې دا شی په مزه مزه وجودته راولي او دويم صورت دا دی چې فاعل ددې شیسمدستي وجود ته په راوستلو باندې خوقادر وي ،خو دځه حکمت په بناء باندې يې هغه وجودته سمدستي نه راولي،بلکې په مزه مزه يو خاص مقرره موده کې يې وجود ته راولي.الله پاك چې ځمکه او اسمان په دوو دوو ورځوکې پيدا کړل ددې وجه لومړی نه وه بلکې دويمه وه په دی وجه ستاسوسوال خوختميږي البته داسوال کيدلی شي چې هغه کوم حکمت و چې دهغه په بناء باندې دځمکې او اسمان تخليق تدريجًا وشو.نو ددې ځواب دادی چې دالله دافعالو دحکمت احاطه څوک کولی شي په دې کې چې هرڅنګه حکمتونه هم ملحوظ وي هغه به ټول خير وي،مثلاً يوحکمت بندګانو ته دتدريج اوپه مزه مزه دکولوتعليم ورکول کيدای شي چې هرکله موږ دقادر مطلق کيدلو باوجود خپل تخليق کې دتدريج خيال ساتلی دی، نوستاسو له پاره خوپه څه کارکولوکې په اولی درجه کې دتدريج نه کار اخستل پکاردي،يامثلاً داحکمت کيدای شي چې ددې دنيا نظام به داسبابو اومسبباتودتدريجي سلسلې دلاندی چليږي .څنګه چې الله تعالی قادر دی چې انسان يې په يوه لمحه کې پيداکړی وای او نيغ يې ژوندي درولي وای خو نه! دهغه حکمت ديوخاص نظام دلاندی تدريجًا دهغه پالنه کوي.هم دا حال دنباتاتو وغيره هم دی او که چيرې غور وکړل شي ، نوددې دنياټول ترقيات دتدريج دلاندی چليږي څه تعجب دی چې داسمان اوځمکې ترديجي تخليق کې دا حکمت هم ملحوظ وي.

## دا انسان سپوږمۍ ته رسيدل

**سوال:** زموږ د دوستانو په مينځ کې نن سبا يو بحث کيږي اوهغه داچې انسان سپوږمۍ ته ختلی دی اوکه نه؟ او ځمکه ګردش کوي يانه؟ زماخيال خودا دی چې انسان سپوږمۍ ته ختلی دی او ځمکه ګردش کوي،موجوده نَوي دورته د ټيکنالوجي دور وايي اوپه دې دور کې يوه خبره هم ناممکنه نه ده پاتې شوې چې کله په خلاء کې مصنوعي سيارې ږرينبودل کيږي. نوبيا سپوږمۍ ته ختل ولې ممکن نه دي په دی سلسله کې چې کله موږدخپل جومات د موذن صاحب نه پوښتنه وکړه ، نوهغه وويل چې دقران اوحديث په رڼا کې داخبره بالکل ناممکن ده، چې انسان سپوږمۍ ته وخيږي او ځمکه ګردش کوي.

تاسو مهرباني وکړی د قران او حدیث په رڼا کې زموږ معلوماتو کې اضافه وکړئ چې دا خبره څومره پورې ومنل شي چې انسان سپوږمۍ ته رسیدلی دی او دا چې ځمکه ګردش کوي؟

**جواب:** انسان سپوږمۍ ته خو رسیدلی دی او دنوي تحقیق مطابق ځمکه هم ګردش کوي ،خو دا خبره په پوهه کې نه راځي چې ستاسو دوست په دې نکته باندې مجلس مذاکره ولې منعقد کوي او ددې بحث حاصل څه دی. ستاسو د موذن صاحب دا ویل چې د قران او حدیث په رڼا کې دانسان سپوږمۍ ته رسیدل ناممکن دي بالکل غلطه ده؛ نبي کریم ﷺ خو سپوږمۍ ته نه بلکې عرش پورې رسیدلی او راغلی و .سپوږمۍ ته رسیدل ولې ناممکن شول؟

## ځمکه او اسمان په څو ورځو کې پیدا شوي دي

**سوال:** د جمعې په ورځ باندې "اللہ تعالی کی نشانیاں،، په عنوان باندې د مختلف سورتونو دیو څو ایتونو ترجمه وړاندې کیږي، د سوره حم السجده د۹تر۱۲ ایتونو په بیان کې لیکل شوي دي چې ځمکه دوه ورځوکې پیدا شوه او دوه ورځوکې اووه اسمانونه جوړ کړل شول. د سورت ق په بیان کې لیکل شوي دي چې ځمکه اسمان اوټول مخلوقات په شپږ ورځوکې پیدا شول، اوسه پورې خوموږ داسې اوریدلی و چې ځمکه او اسمان په اووه ورځوکې پیدا شوي دي او دا هم صحیح دي چې الله تعالی لفظ کن وویل او هرڅه وشول. کله چې د کن په ویلو باندې هرڅه شوي دي، نو ددې دوه ورځو .شپږ ورځو او اووه ورځو ضرورت ولې پیښ شو؟ د دې وضاحت وکړئ.

**جواب:** دلته د یو څو خبرو ذکر کول ضروري دي:

۷ ځمکه او اسمان وغیره په اووه ورځوکې نه دي پیدا شوي بلکې په شپږ ورځوکې شوي دي، څنګه چې تاسو د سورت ق په حواله باندې لیکلي دي د پیدا کولو شروع د هفتې په ورځ باندې شوې وه او د زیارت(پانشنبې) په ماښام باندې ختمه شوه.

۸ الله تعالی یو ځمکه او یو اسمان څنګه. په زرګونو جهانونه په یو منټ کې پیدا کولی شي، خو شپږو ورځوکې پیدا کولو کې یې حکمت و، څنګه چې ماشوم په یوه لمحه کې پیدا کولو باندې قدرت لري، خو د مورپه خیټه کې هغه په نهه میاشتو کې جوړوي.

۹ د کن ویلو په وجه باندې هر یو شی پیدا کیږي. خو کوم یو شی چې سمدستي پیدا کول غواړي هغه پیدا شي اوکوم چې څه وخت وروسته پیدا کول غواړي هغه څه وخت وروسته پیدا شي.

۴ دوه ورځوکې اسمان، دوه ورځوکې ځمکه او دوه ورځوکې ځمکه کې موجود ټول شیان یې پیدا کړي دي.

۵ دې جوړولو کې ترتیب څنګه و؟ دې باره کې دعامو مفسرینو خیال دی چې مخکې دځمکې ماده جوړه کړل شوه. بیا اسمان جوړ کړل شو. بیا ځمکه خوره کړل شوه او بیا ځمکه کې موجود شیان جوړ کړل شول. والله اعلم!

## لومړی امر

# دادم علیه السلام دتخلیق په باره کې نبوي صلی الله علیه وسلم تصریحات

حضور صلی الله علیه وسلم دحضرت ادم علیه السلام دتخلیق جسماني دکیفیت اودهغه دتخلیق دمرحلو په سلسله کې چې کوم تصریحات فرمایلي دي. دهغه خلاصه داده چې الله تعالی کله دحضرت ادم علیه السلام دتخلیق اراده وکړه. نودټولې ځمکې نه یې دخاورې خلاصه واخیستله. بیایې په هغه کې اوبه ګډې کړې اوخټه یې ترې جوړه کړله. بیایې دخه وخته پورې هغه همداسې پریښودله. تردې پورې چې هغه خټه توره شوه اوهغې بوی وکړ اوهغه متینه (مئینه خټه) په خیر شوه. بیاله دې خټې نه یې دحضرت ادم علیه السلام شپیته لاسه اوږد قالب جوړکړ. بیادا قالب څه وخته پورې پروت و. تردې پورې چې وچ شو اوکړنګا په کې پیداشوه اوهغه به دکدورې په شان ټنګاکوله. په دې دوران کې به شیطان له دې قالب نه ګیرچاپیره ګرځیده اوهغه به یې ټنګاو اوکوت او ویل به یې چې ددې مخلوق په خیټه کې خلاده. له دې وجې نه به په خپل ځان باندې قابو نه شي کولی.

بیاپه دې بې روحه قالب کې د روح پوک ووهل شو او له هغه ژوندی انسان جوړشو. کله چې دهغه په نیم پورتني بدن کې روح داخل شو. نوهغه ته پرنجی ورغی اودهغه دژبې مبارکې نه چې کومه اولني خبره ووتله هغه الحمدلله وه چې په دې باندې الله تعالی په ځواب کې وفرمایل: ..یرحمک ربک.. (ستارب دې په تارحم وکړي) حضرت ادم علیه السلام چې په کوم وخت کې پیدا شو. هغه وخت کې دهغه قدشپیته لاسه اوږد و اودهغه ټول جسماني اندامونه ظاهري اوباطني قوي کامل اومکمل و. هغه دغټېدا دهغو مرحلونه تیر نه شو چې په هغو باندې دادم اولاد تیریدوسره دغټېدا خپل اخري مدارجو پورې رسیږي

داخلاصه ده دحضور صلی الله علیه وسلم دګڼو ویناوو چې له هغوی نه دحضرت ادم علیه السلام دتخلیق په باره کې نقل شوي دي. زه ددې ګڼو حدیثونونه دلته یواځې په څلورو باندې اکتفاکول غواړم.

## اول حدیث

عن أبي هريرة رضي الله عنه قال رسول الله صلى الله عليه وسلم: خلق الله عزوجل آدم على صورته. طوله ستون ذراعا. فلما خلقه قال: إذهب فسلّم على اولئک النفر! وهم نفر من الملئكة جلوس. فاستمع مايحيونک به؟ فإنها تحيتک وتحية ذريتک. قال: فذهب فقال: السلام

عليكم! فقالو:السلام عليک ورحمة الله! قال:فزادوه"ورحمة الله"قال:فكل من يدخل الجنة على صورة ادم وطوله ستون ذراعاً.فلم يزل الخلق ينقص بعده حتى الآن. (صحيح بخارى ج:٢ ص:٩١٩.صحيح مسلم ج:٢ ص:٣٨٠.مسنداحمد ج:٢ ص:٢٤٤)

**ترجمه**: حضرت ابوهريره رضي الله عنه دحضور ﷺ نه روايت كوي چې الله تعالى حضرت ادم عليه السلام په داسې صورت باندې پيدا كړې دى. چې دهغه قدشپيته لاسه و.كله چې هغه پيدا شو. نوهغه ته يې وفرمايل چې: لاړشه دې ډلې ته سلام وكړه. دلته دفرښتويوه ډله ناسته وه. واوره چې دوى تاته څه ځواب دركوي؟ ځكه چې هم دغه به ستا اوستا داولاد سلام وي. حضرت ادم عليه السلام ولاړ اوفرښتوته يې السلام عليكم..وويل. هغوى ورته په ځواب كې وويل:وعليک السلام ورحمة الله..فرښتوپه ځواب كې د "ورحمة الله" لفظ اضافه كړ. حضور ﷺ وفرمايل چې: څومره كسان چې جنت ته داخليږي هغوى به دحضرت ادم عليه السلام په صورت باندې وي اودهغوى قدبه شپيته لاسه وي. بياوروسته دانسانانوقدونه واړه كيدل چې ددې سلسله تراوسه پورې جاري ده.

حافظ الدنياابن حجرعسقلاني رحمه الله .دحضور ﷺ وينا:الله تعالى حضرت ادم عليه السلام دهغه په صورت باندې پيداكړ. په شرح كې ليكي

**والمعنى أن الله تعالى أوجده على الهيئة التى خلقه عليها لم ينتقل فى النشأة أحوالا،ولاتردد فى الأرحام أطواراكذريته،بل خلقه الله رجلا كاملا سوياً من اول مانفخ فيه الروح ثم عقب ذلک لقوله،وطوله ستون ذراعاً.**(فتح البارى ج:٦ ص:٣٦٦،كتاب الانبياء باب خلک آدم وذريته)

**ترجمه**: ددې حديث مطلب دادى چې الله تعالى حضرت ادم عليه السلام په كوم شكل اوهيئت باندې پيداكړ هغه ته يې هم په هغه هيئت اوشكل باندې وجود وركړ. هغه دخپل اولاد په شان دپيدائښ دمختلفومرحلونه تيرشو. نه دمورپه خيټه كې ديوحالت نه بل حالت ته منتقل شو. بلكې الله تعالى دهغه تخليق داسې وكړ. چې دنفخ روح په وخت كې هغه كامل سړى و اودهغه ټول جسماني طاقتونه دكمال په درجه كې و. له دې وجې نه يې وفرمايل چې دغه وخت كې دهغه قد شپيته لاسه و.

ددې حديث هم دغه تشريح ډيرعلماووكړې ده.

## دويم حديث

"عن أبي موسى الأشعري رضي الله عنه قال:قال رسول الله صلى الله عليه وسلم :إن الله تعالى خلق آدم من قبضة قبضها من جميع الأرض فجاء بنوآدم على قدرالأرض .منهم الأبيض والأحمر

والأسود وبين ذلک ,والسهل والحزن والخبيث والطيب. (ترمذی ج:۲ ص:۱۲۰،ابوداود ج:۲ ص:۶۴٤،مسنداحمد ج:٤ ص:٤۰۰، مستدرک حاکم ج:۲ ص:۲٦۱،صحيح ابن حبان،الاحسان،ج:۹ ص:۱۱)

**ترجمه**: د حضرت ابوموسی اشعري رضي الله عنه نه روایت دی چې: رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمایل چې: بې شکه الله تعالی حضرت ادم علیه السلام د خاورې د موټې نه پیدا کړ، کومه یې چې د ټولې ځمکې نه اخیستې وه او د ادم اولاد په ځمکه باندې د اندازې مطابق ظاهرشول، په دوی کې څوک سپین دي، څوک سره دي، څوک تور دي او څوک د دې رنګونو په مینځ کې، څوک نرم، څوک سخت، څوک خبیث او څوک پاک دي.

## دریم حدیث

عن أنس رضي الله عنه أن رسول الله صلی الله علیه وسلم قال: لما صورالله آدم فی الجنة ترکه ماشاء الله أن یترک، فجعل إبلیس یطیف به ینظر ماهو، فلما رآه أجوف عرف أنه خلق خلقا لا یتمالک. (صحیح مسلم ج:۲ ص:۳۲۷،مسنداحمد ج:۳ ص: ۲٤۰،مسندطیالسی ص:۳۷۰ حدیث : ۲۰۳٤)

**ترجمه**: د حضرت انس رضي الله عنه نه روایت دي چې حضور صلی الله علیه وسلم وفرمایل چې: کله چې الله تعالی په جنت کې د ادم علیه السلام صورت جوړ کړ، نو هغه یې په هغه حالت کې پرېښود څومره موده چې الله تعالی ته منظوره وه، نو شیطان به له هغه نه ګیرچاپیره تاویده د دې د کتوله پاره چې داڅه شی دی؟ کله چې هغه ولیدل چې دده په خېټه کې خلاده، نو هغه پوه شو چې دده تخلیق داسې شوی دی چې دی به په خپل ځان باندې قابو نه کړای شي.

## څلورم حدیث

عن أبي هريرة رضي الله عنه عن النبي صلی الله علیه وسلم قال: إن الله خلق آدم من تراب، ثم جعله طينا، ثم ترکه حتی إذا کان حمأ مسنونا خلقه وصوره، ثم ترکه حتی إذا کان صلصالا کالفخار، قال: فکان إبلیس یمربه فیقول: لقدخلقت لأمرعظیم! ثم نفخ الله فیه من روحه، فکان أول شيء جری فیه الروح بصره وخیاشیمه، فعطس فلقاه الله حمد ربه، فقال الرب: یرحمک ربک...الخ.

(فتح الباری ج:۶ ص: ۳٦٤،مسندابوعلی ج:۶ ص:۹۷،حدیث :۶۵٤۹،مجمع الزوائدج:۸ ص:۱۹۷)

**ترجمه**: حضرت ابوهریره رضي الله عنه د حضور صلی الله علیه وسلم ارشاد نقل کوي چې: بې شکه الله تعالی حضرت ادم علیه السلام د خاورې نه جوړکړ، بیایې په دې خاوره کې اوبه واچولې، بیایې هغه پرېښودله، تردې پورې چې توره خټه ترې جوړه شوه. بیایې د هغه قالب جوړکړ. تردې پورې چې په اورکې د پخ شوي په شان وټنګیده. ابلیس به د هغه په خواکې تېریده. نو ویل به یې: ته د څه

لوی کارله پاره جوړ شوی یې. بیاالله تعالی په دې قالب کې خپل روح واچاو، له ټولونه مخکې چې په کوم شي کې روح جاري شو هغه د حضرت ادم علیه السلام سترګې او سپږمې وې. هغه ته پرنجی ورغی، نو الله تعالی هغه ته د الحمدلله ویلو الهام وکړ. هغه الحمدلله وویله. نو الله تعالی په ځواب کې وفرمایل: ، یرحمک ربک! (ستارب دې په تا باندې رحم وکړي)

ددې حدیثونو خلاصه او مضمون مخکې ذکرشوی دی اوس په دې باندې غورو کړئ چې په دې احادیثو کې د تخلیق ادم کوم مدارج چې ذکر شوي دي او ددې تخلیق چې کوم کیفیت بیان شوی دی د قران کریم له ډیر ایتونو نه ددې تصدیق شوی دی:

**اول:** داچې حضرت ادم علیه السلام تخلیق بلاواسطه د خاورې نه وشو او دا د هغه د تخلیق د پیل نقطه ده. د الله تعالی ارشاد دی:

إِنَّ مَثَلَ عِيسَىٰ عِندَ اللَّهِ كَمَثَلِ آدَمَ خَلَقَهُ مِن تُرَابٍ ثُمَّ قَالَ لَهُ كُن فَيَكُونُ (ال عمران:۵۹)

**ترجمه:** بې شکه د حضرت عیسی علیه السلام عجیبه حالت د الله تعالی په نزد د حضرت ادم علیه السلام په شان دی، چې د هغه قالب یې د خاورې نه جوړ کړ. بیا یې ورته حکم وکړ چې ژوندی شه! هغه ژوندی شو (ترجمه حضرت تهانوی)

**دویم:** داچې په خاوره کې اوبه واچول شوې، د الله تعالی ارشاد دی:

إِذْ قَالَ رَبُّكَ لِلْمَلَائِكَةِ إِنِّي خَالِقٌ بَشَرًا مِّن طِينٍ (ص:۷۱)

**ترجمه:** کله چې ستاسو رب فرښتو ته وفرمایل چې: زه د ختې نه د انسان (یعنې د هغه د قالب) جوړونکی یم. (ترجمه حضرت تهانوی)

**دریم:** داچې خته د ډیرې مودې پورې پرته وه، تردې پورې چې توره شوله او د هغې نه بوی راغی. د الله تعالی ارشاد دی:

وَلَقَدْ خَلَقْنَا الْإِنسَانَ مِن صَلْصَالٍ مِّنْ حَمَإٍ مَّسْنُونٍ (الحجر:۲۶)

**ترجمه:** او موږ انسان د کړنګیدلې خاورې نه، چې بدبویه شوې ختې نه جوړه شوې وه پیدا کړ. (ترجمه حضرت تهانوی)

**څلورم** داچې ډیروخت پورې پرتې وه ځکه په کې د انښتلو صلاحیت پیدا شو. ارشاد دی:

إِنَّا خَلَقْنَاهُم مِّن طِينٍ لَّازِبٍ. (الصافات:۱۱)

**ترجمه** :موږ د اخلک د سرېښناکې خاورې نه پیدا کړل. (ترجمه حضرت تهاوی)

**پنځم:** داچې ددې خاورې نه یې قالب جوړکړ چې وچ شو نو ټنګیده، ارشاد دی:

وَإِذْ قَالَ رَبُّكَ لِلْمَلَائِكَةِ إِنِّي خَالِقٌ بَشَرًا مِّن صَلْصَالٍ مِّنْ حَمَإٍ مَّسْنُونٍ. (الحجر:۲۸)

**ترجمه**: اوکله چې ستاسو رب ملائکو ته وفرمایل چې زه یو انسان ته چې د تنګیدونکې بدبویه خټې نه پیدا کونکی یم. (ترجمه حضرت تهانوی)

(الرحمان: ١٤، ١٥)

خَلَقَ الْإِنْسَانَ مِنْ صَلْصَالٍ كَالْفَخَّارِ وَخَلَقَ الْجَانَّ مِنْ مَارِجٍ مِنْ نَارٍ.

**ترجمه**: هغه انسان له داسې خاورې نه چې د کډرې په شان تنګیدله پیدا کړلو پیریان یې د خالص اور نه پیدا کړل.(ترجمه حضرت تهانوی)

**تشریح**: داچې کله د حضرت ادم علیه السلام قالب د پورتنیو مدارجونه تیرشول. نو په هغه کې روح واچول شو. دا د هغه د تخلیق تکمیل و. ارشاددی

إِذْ قَالَ رَبُّكَ لِلْمَلَائِكَةِ إِنِّي خَالِقٌ بَشَرًا مِنْ طِينٍ فَإِذَا سَوَّيْتُهُ وَنَفَخْتُ فِيهِ مِنْ رُوحِي فَقَعُوا لَهُ سَاجِدِينَ (ص: ٧١، ٧٢)

**ترجمه**: اوکله چې ستا رب فرښتو ته وفرمایل چې زه له خټې نه یو انسان (یعنې د هغه قالب) جوړونکې یم. کله چې زه هغه پوره کړم او په هغه کې خپل روح واچوم. نو تاسو ټول د هغه په وړاندې په سجده پریوځئ! (ترجمه حضرت تهانوی)

## الله تعالی حضرت ادم علیه السلام په خپلو لاسو نو جوړ کړ

په قران کریم کې داهم وضاحت شوی دی چې د حضرت ادم علیه السلام تخلیق الله تعالی په خپلو لاسونو وکړ. لکه چې ارشاددی:

قَالَ يَا إِبْلِيسُ مَا مَنَعَكَ أَنْ تَسْجُدَ لِمَا خَلَقْتُ بِيَدَيَّ أَسْتَكْبَرْتَ أَمْ كُنْتَ مِنَ الْعَالِينَ.(ص: ٧٥)

**ترجمه**. الله تعالی وفرمایل چې: اې ابلیسه: ته کوم شي هغه ته له سجدې کولو نه منع کړې. (ترجمه حضرت تهانوی)

داخو ښکاره ده چې ټول مخلوق الله تعالی پیدا کړی دی. خود حضرت ادم علیه السلام په باره کې یې چې وفرمایل: ما دی په خپلولاسونو جوړ کړی دی سره د حضرت ادم علیه السلام د عظمت او شرافت اظهار مقصود دی. یعنې د هغه تخلیق توالد وتناسل معروفې طریقې سره ونه شو. بلکې الله تعالی په خپلولاسونو د خاورې نه جوړ کړ او په هغه کې یې روح واچاو. امام ابوالسعود رحمه الله د دې ایت په تفسیر کې لیکي:

**أي: خلقه بالذات من غير توسط أب وأم**.(تفسیر ابی السعود ج:٧ ص:٣٢٦)

**ترجمه**: یعنې ماد د مور پلار له واسطې پرته پخپله پیدا کړ.

د دې تفسیر نه معلومه شوه چې حضرت ادم علیه السلام په باره کې.

خلقت بيدي (ماهغه په خپلولاسونوجوړ کړ) سره وفرمايل: دا دلوی حقيقت اظهاردی، چې دده تخليق دتولداوتناسل په معروفې طريقې سره نه دی شوی، هم دې ځای نه دعقل خاوندانو ته پوهيدل پکاردي چې دکوم شخصيت تخليق کې دموړپلار واسطه هم قدرت ته منظورنه وي دهغه په باره کې دادعوه کول چې: هغه جمادات. نباتات. حيواناتاوبيزوګانو شکل بدليدوسره په انساني شکل کې راغی،څومره لوی ظلم به وي.

غرض داچې خلقت بيدي ،قراني الفاظو سره چې يو خوادحضرت ادم عليه السلام دتوالداوتناسل په ذريعې سره دپيداکيدونفی کيږي. هلته دې سره دجمادات. نباتات او حيوناتو او بيزوګانو ارتقايي مرحلونه تيريدونه وروسته په انسان جوړيدل په درجه اولی نفې کيږي. له دې وجې نه داهل ايمان په نزدحق هسی نه دي کوم چې رسول الله صلی الله عليه وسلم فرمايلي. د کومو تفصيلات چې پورته تيرشوي دي.

## دحضرت ادم عليه السلام دتخليق په باره کې دا نبياء عليهم السلام عقيده

دقران کريم دوينا: "خلقت بيدي" (ماهغه په خپلولاسونوجوړکړ) مفهوم په ښې طريقې سره ذهن نشين کولونه وروسته اوس په دې باندې غوروکړئ چې په دې باره کې دحضرات انبياءکراموڅه عقيده وه؟

دحديثوتقريباپه ټولومشهوروکتابونو (صحيح بخاري، صحيح مسلم، ابوداود. ترمذي. ابن ماجه. موطاامام مالک اومسنداحمدوغيره) کې دحضرت موسی اوحضرت ادم عليه السلام مباحثه ذکر ده. حضرت موسی عليه السلام حضرت ادم عليه السلام نه وفرمايل:

**"أنت آدم الذی خلقک الله بيده ونفخ فيک من روحه وأسجدلک ملئکته وأسکنک فی جنته."**(مشکوة ص:١٩)

**ترجمه**: نه هغه ادم عليه السلام يې چې الله تعالی په خپلو لاسونو جوړ کړې اوپه تا کې يې خپل روح واچاو. په خپلو فرښتويې درته سجده وکړله اوته يې په خپل جنت کې ووسولې.

دحضرت موسی عليه السلام په دې وينا کې دحضرت ادم عليه السلام دتخليق په باره کې ټيک هماغه الفاظ استعمال شوي دي چې په مذکورة الصدرايت شريف کې راغلي دي.يعنې دالله تعالی دحضرت ادم عليه السلام په خپلولاسونوجوړول اودهغه په قالب کې دخپل طرف نه روح اچول. له دې نه ښکاره کيږي چې دحضرات انبياء کراموعليهم السلام هم دغه عقيده لرله. چې دحضرت ادم عليه السلام قالب الله تعالی په خپلولاسونوجوړکړ اوپه هغه کې يې روح واچاو. هغه دتوالداوتناسل معروفې طريقې سره انسان نه دی جوړشوی. نه دجمادات.ونباتات اوحيوانات اوبيزوګ نوشکل بدليدو سره انسان جوړشوی دی.

## دقیامت په ورځ به هم اهل ایمان ددهمدې عقیدې اظهارکوي

حدیث شفاعت کې راځي چې اهل ایمان به دقیامت په ورځ دشفاعت کبری له پاره له ټولونه وړاندې دحضرت ادم علیه السلام په خدمت کې حاضرشي اوهغه ته به عرض وکړي:

**أنت آدم أبوالناس ,خلقک الله بیده, وأسکنک جنته وأسجدلک ملئکته وعلمک اسماء کل شيء.** (مشکوة ص:٤٨٨)

**ترجمه**: ته ادم یې.دټولو انسانانو پلار، الله تعالی ته په خپلولاسونوجوړکړې اوته یې په خپل جنت کې ووسولې اوپه خپلوفرښتو یې درته سجده وکړله اوتاته یې دټولوشیانودنومونه دروښودل.

ددې حدیث نه ثابتیږي چې دقیامت په ورځ به اهل ایمان هم ددې عقیدې اظهار کوي، چې دحضرت ادم علیه السلام تخلیق الله تعالی په خپل لاس سره وکړ،دخاورې نه یې دهغه قالب جوړکړاو روح پکې واچاو اوهغه یې ژوندی انسان جوړکړ،دهغه په تخلیق کې نه دتوالداوتناسل واسطه وه اونه دجماداتونه دبیزوګانوپورې دارتقایي مرحلو تیریدو نه وروسته انسان جوړشو.

دقران کریم ښکاره ایتونه،دحضور صلی الله علیه وسلم مبارکې ویناوې،دحضرت موسی علیه السلام فرمودات اودمحشرپه میدان کې دایمان لرونکو تصریحات ستاسوپه وړاندې موجود دي،کوم کس چې په دې ټولو امورو باندې دانصاف په نظرسره غوروکړئ، نوهغه ته به درڼا ورځې په شان داحقیقت ښکاره شي چې دحضرت ادم علیه السلام دجسماني تخلیق په باره کې حقیقي واقعه هم دغه ده کومه چې حضور صلی الله علیه وسلم بیان کړې ده اوددې صاحب دفلاسفه وو دطبیعیینو تقلیداوتخلیق ادم علیه السلام ته کرشمه ارتقاء ګرځول په صریح طورسره غلط اود نصوصو نه قطعي انحراف دی. والله یقول الحق وهویهدی السبیل.

### دویم امر

## د نبوي حدیثونوپه باره کې ددې کس دخیالاتواظهار

ددې کس داویل چې: په دې مسئله کې نبوي حدیثونه دتوجه اواعتباروړ نه دي، په څو وجو دجهل ښکاردی:

**اول**: پورته چې دقران کریم کوم واضح ایتونه بیان شوي دي که هغه دنبوي ویناوو سره یوځای ولولې، نوواضحه به شي چې حضرت محمد صلی الله علیه وسلم دتخلیق ادم علیه السلام په باره کې څه فرمایلي دي هغه هم ددې واضحه ایتونوشرح اوتفصیل دی اوکومه مسئله باندې چې قران اوحدیث دواړه متفق وي، نوهیڅ یومومن ته له هغه نه دانحراف ګنجائش نه وي، کوم کس

چې له الهي فرمان او نبوي ارشاداتو تسلیمولو نه وروسته کېږي په خپله انصاف وکړئ چې په ایمان او اسلام کې د هغه څومره برخه ده؟

**دویم**: بالفرض که دقران کریم سره ددې حدیثونو تائیدنه کیدای، نوبیا هم دحضرت محمد ﷺ د ارشاداتو اوریدلو سره ویل چې: دادتوجه او اعتبار وړ نه دي. بارګاه رسالت کې بې حده جسارت او ګستاخي ده. چې دا اوریدلوېې یو مومن هم تاب نه شي راوړلی. چې ددې په اورید وسره دایمان روح په لړزان شي. بیاکه یو مسلمان داسې موذي الفاظ په ژبه باندې دراویستلوجرات وکړي، لږشان سوچ وکړئ! چې کوم وخت کې حضور ﷺ دحضرت ادم علیه السلام دتخلیق په باره کې دا حقائق بیانول. نوکه یوکس (بالفرض هم داصاحب)به دحضور ﷺ په وړاندې داویل وي چې: نعوذبالله.. داستامیدان کار نه دی، بلکې داد ډارون میدان تحقیق دی. نووواییئ چې داسې کس به په کوم صف کې شمارېږي؟

حافظ ابن حزم رحمه الله لیکي:

**وكل من يكفر بما بلغه وصح عنده عن النبي صلى الله عليه وسلم أو جمع عليه المومنون مماجاء به النبي عليه السلام فهوكافر اكما قال الله تعالى: ومن يشاقق الرسول من بعد ما تبين له الهدى ويتبع غير سبيل المومنين نوله ماتولى ونصله جهنم.** (المحلی ج:۱ ص:۱۲)

**ترجمه**: او هرهغه کس چې دڅه داسې خبرې نه انکار وکړ، کومه چې دحضور ﷺ نه رارسیدلې وي اودهغه په نزد ددې ثبوت له حضور ﷺ نه صحیح و، یاهغه دداسې خبرې نه انکار وکړ په کومه چې داهل ایمان اجماع وي چې حضور ﷺ فرمایلي ده، نوداسې کس کافردی. لکه دالله تعالی ارشاد دی: اوچاچې درسول الله ﷺ مخالفت وکړ. له دې وروسته چې هغه ته هدایت واضح شو اوهغه داهل ایمان لاره پرېښودله، نوموږ به هغه وګرځو کوم خوا چې ګرځي اوموږ به هغه جهنم ته داخل کړو.

**دریم**: حضور ﷺ چې دحضرت ادم علیه السلام دتخلیق په باره کې کوم تفصیلات بیان کړي دي. ددې په باره کې دغور وړ خبره داده چې حضور ﷺ ته ددې خبرې علم کومې ذریعې سره وشو؟ ښکاره ده چې انبیاءکرامو علیهم السلام سره له وحي الهي نه پرته کومه ذریعه نه وي، لهذادعقلي دلیل نه ثابته ده چې حضور ﷺ په دې سلسله کې چې څه بیان کړیدي دهغو سرچینه وحي الهي کیدای شي اوددې ردکول ګویاوحي خداوندي ردکول دي اوظاهره ده چې داکاردیوکافراومنافق کیدای شي دیومسلمان نه.خصوصا کله چې دلته داحقیقت په نظر کې وساتل شي چې دحضرت ادم علیه السلام دتخلیق واقعه دهغه دور ده کوم چې مورخین قبل از تاریخ کې شمیري اوکله چې هغه وخت کې څوک انسان موجودنه و، نودهغه دور دتاریخ او واقعاتوتفصیلات به چالیکل ؟!اوالله تعالی چاچې دحضرت ادم علیه السلام تخلیق وکړ داپوره

واقعه دهغه په وړاندې وه او ددې دضروري تفصيلاتونه الله تعالى حضور ﷺ خبرکړ او حضور ﷺ په دې تفصيلاتوباندې امت خبرکړ.ددې باوجود چې دحضور ﷺ داصحيح ارشادات ردکول اودفلاسفه وو دافواهاتو تقليدکول ايا ديوصاحب دايمان شان کيداى شي؟

**څلورم** دحضور ﷺ دافرمايل چې: دحضرت ادم عليه السلام تخليق داسې وشو..دايوخبر دى اوخبربه ياخودواقعې مطابق وي. يابه دواقعې خلاف وي.کوم خبرچې دواقعې مطابق وي ورته رښتونس خبرويل کيږي اوخبرورکونکى رښتونى ګڼل کيږي اوکوم خبرچې دواقعې خلاف وي هغه ته ددروغوخبروايي اوخبرورکونکى دروغژن ګڼل کيږي اوس داصاحب چې کوم څه وايي چې: حضور ﷺ چې دحضرت ادم عليه السلام دتخليق په باره کې کوم خبرورکړى دى هغه دواقعې خلاف دى. اهل عقل دې غوروکړي چې ددې مطلب څه کيداى شي؟ ايادادحضور ﷺ صريح تکذيب نه دى؟ اواياداخبره عقلاً ممکن ده چې يوکس دحضور ﷺ ورکړل شوى خبرغلط ګڼي اوهغه باندې ايمان هم لري؟ هيڅ کله نه! **ضدان لا يجتمعان!** (دا دواړه ديوبل ضددي. چې کله هم جمع کيداى نه شي)

**پنځم**: ددې صاحب داوس چې:دحضرت ادم عليه السلام دتخليق واقعه ددنيا له امورو نه ده.ځکه دحضور ﷺ ارشادات دالتفات وړنه دي. دده ددليل صغرى اوکبرى دواړه غلط دي. ځکه چې خبره دحضرت ادم عليه السلام دتخليق په باره کې ده اوهرکس ته پته ده چې تخليق دالله تعالى کاردى اوخالقيت دهغه صفت دى اوس دې له دې صاحب نه پوښتنه وکړل شي چې دالله تعالى صفات اوافعال بيانول.دحضور ﷺ منصب دى يا(نعوذبالله)دډارون دميدان کاردى؟ اوداچې په الهي صفاتو بيانولوکې دهمده دخبرې مطابق.دحضور ﷺ ارشادات عاليه لائق التفات نه دي. نوبيابه په کوم شى کې درسول الله صلى الله عليه وسلم خبره داعتماد وړ وي؟ **نعوذبالله من سوء الفهم وفتنة الصدر!**

دالله تعالى دصفاتو اوافعالو هغه ميدان دى چيرته چې دعقل پښې شلې دي.داهغه فضاده چېرته چې دعقل اوفکروزرې سوځي اوانساني عقل دالهي حقائقو پوره ادراک کولونه عاجزه دى.چېرته چې سيدالانبياء صلى الله عليه وسلم پورې په دې ويلوباندې مجبور دى.

**اللّهم لا أحصى ثناء عليک أنت کما أثنيت على نفسک.**

**ترجمه**: ياالله:زه ستادتعريف حق اداکولونه قاصريم، ته بس هماغه شان يې څنګه چې تاخپله ثناء په خپله کړې ده

هلته دبل دعقل درسيدلو او دعجز اودرماندګۍ څه پوښتنه کوې؟ همدا وجه ده چې کوموفلاسفه وو دانبياء کراموعليهم السلام لمن پرينبې ده اويواځې دخپل نه رسيدونکي عقل په اسونو باندې سواره شوي .په دې ميدان کې ټوپونه وهي هغوى ته دحيرت او

ګمراهي نه پرته نورهيڅ په لاس ورنغلل.دا الله تعالى انعام دی چې ددې انبياءكرام عليهم السلام په ذريعې سره يې دومره الهي حقايقوكې څه برخه بيان كړه دكومې چې انساني عقل تحمل كولای شو.څومره عجيبه خبره ده چې يودمسلماني دعويداردانعام الهي شكراداكوي اودحضورﷺ ارشاداتوته د ناقابل التفات ګرځولوسره دفلاسفه وواومحلدانودلكې نيولوتلقين كوي.

| | |
|---|---|
| دگر مرکب عقل را پویه نیست | عنانش بگیرد تحیر که است |
| درین بحر جز مرد داعی نرفت | گم آن شد که دنبال راعی نرفت |
| کسانی که زین راه برگشته اند | برفتند و بسیار سرگشته اند |
| خلاف پیمبر کسی ره گزید | که هرگز به منزل نخواهد رسید |
| پندار سعدی که راه صفا | توان رفت جز در پی مصطفی |

**شېږم**: ددې صاحب داويل چې:حضورﷺ دحضرت ادم عليه السلام دتخليق په باره کې څه واضح موقف نه دی اختيار کړی.خالص دروغ اوحضورﷺ باندې افتراء ده.ځکه چې په تيروكرښوكې تاسوولېدل چې حضورﷺ دپوره وضاحت او تشريح سره فرمايلي دي چې الله تعالى دټولې ځمكې نه خاوره راغونډه كړه، هغه يې په اوبو خشته كړه، بيايې ددې ختې نه دحضرت ادم عليه السلام شپيته لاسه اوږد قالب جوړكړ، بيايې په دغه قالب كې روح واچاو اوداسې نور....

ددې ټولو وضاحتونو نه وروسته څوک داخبره كولی شي چې:په دې مسئله كې حضورﷺ څه واضحه موقف نه دی اختيار كړی؟ اوكه ددومره وضاحت اوتاكيدسره بيان شوې مسئلې په باره كې هم دا وويل شي چې:حضورﷺ په دې باندې څه واضح موقف نه دی اختيار كړی، نوتاسو ووايئ چې ددې نه زيات واضح موقف په كوموالفاظوسره بيانېدای شي؟

## د "أنتم أعلم بأمردنياكم" تشريح

ددې صاحب دحضورﷺ له ارشاد:"أنتم أعلم بأمردنياكم"نه داكليه راويستلې ده چې ددنياپه هېڅ كاركې دحضورﷺ ارشادات دالتفات وړنه دي،په دې سلسله كې څوګزارشات وړاندې كول غواړم:

**اول**: دې صاحب ددې حديث په كتواودې ته غلطه معنا وركولونه مخكې كه دقران كريم دكتلو زحمت كړی وای ،نوددې حديث دغلطې معنا كولوجرات به يې نه و كړی.

په قران کريم کې د الله تعالى ارشاد دى:

وَمَا كَانَ لِمُؤْمِنٍ وَلَا مُؤْمِنَةٍ إِذَا قَضَى اللَّهُ وَرَسُولُهُ أَمْرًا أَنْ يَكُونَ لَهُمُ الْخِيَرَةُ مِنْ أَمْرِهِمْ وَمَنْ يَعْصِ اللَّهَ وَرَسُولَهُ فَقَدْ ضَلَّ ضَلَالًا مُبِينًا. (الاحزاب:٣٦)

**ترجمه:** او هيڅ ايمان دارسړي او ايمان دارې ښځې ته ګنجائش نشته ،کله چې الله تعالى او دهغه رسول حکم وکړي چې (بيا) دې (مومنانو) ته دې کارکې څه اختيارباقي پاتې شي او کوم کس چې د الله تعالى او دهغه د رسول ﷺ حکم ونه مني هغه په صريحه ګمراهي کې پريوت (ترجمه حضرت تهانوي)

دا ايت شريف ديوې دنياوي معاملې په باره کې نازل شو ،ددې واقعه په لنډ ډول داده چې: حضور ﷺ د خپلې ترور دلور حضرت زينب بن حجش رضی الله عنها واده د حضرت زيدبن ثابت رضی الله عنه سره کول غوښتل، چونکه زيد غلام پاتې شوې وا و ديخوا حضرت زينب بنت حجش د قريش داعلى ترين خاندانه سترګو تور و ،له دې وجې نه دهغوى خاندان والاوو ته دخانداني وقار په لحاظ سره دا رشته بې جوړې محسوسه شوه او حضرت زينب او دهغې وررور حضرت عبدالله بن حجش ددې رشتې له منلو عذر وړاندې کړ ،په دې باندې دا ايت نازل شو ،نودواړو دزړه له کومې ددې اطاعت وکړ.

دلته دوه خبرې خاص طورسره دغور وړ دي:

يوه دا چې ديوې انجلۍ رشته چرته وکړل شي او چرته ونه کړل شي؟ ديو خالص ذاتي اوشخصي قسم دنياوي معامله ده ،خو ديوکس خالص ذاتي اوشخصي معامله کې دخل کولو سره چې حضور ﷺ يوځاى کې رشته منظوره کړه ،نو دقران کريم ددې قطعي حکم په روى سره دهغه خاندان ته په خپله ذاتي دنياوي معامله کې هم اختيار پاتې نه شو ،بلکې دحضور ﷺ تجويز دزړه له اخلاصه منظورول د ايمان شرط وګرځول شو.

دويمه دغور قابل خبره داده چې حضور ﷺ ددې رشتې چې کوم تجويز کړى و ،په هيڅ يو روايت کې نه دي راغلي، چې دا تجويز وحي الهي سره و ،خو قران کريم دحضور ﷺ دې ذاتي تجويز ته ،دالله تعالى او د رسول ﷺ فيصله ګرځولو سره ټولو خلک په دې باندې خبر کړل چې څه دنياوي معامله کې دحضور ﷺ ذاتي تجويز هم دالله تعالى فيصله ده ،چې دهغې نه انحراف دهيڅ يو مسلمان له پاره روانه دى.

قران کريم خود حضور ﷺ ذاتي رايه هم دالله تالى حتمي فيصله ګرځوي، خودې بدمذاقي داډاډ ورکړ چې ويونکى داوايي چې: دحضور ﷺ فيصله په دنياوي کارکې معتبره نه ده.

بيا قران کريم امت ته تلقين کوي:

وَمَا آتَاكُمُ الرَّسُولُ فَخُذُوهُ وَمَا نَهَاكُمْ عَنْهُ فَانْتَهُوا. (الحشر:٧)

**ترجمه**: رسول الله (ﷺ) چې تاسوته څه درکړي هغه واخلئ! او له څه نه موچې منع کړي له هغه منع شئ!

خونن ویل کیږي چې دحضرت ادم علیه السلام دتخلیق په باره کې چې حضور ﷺ تاسوته څه خبر درکړی هغه مه قبلوئ. بلکې د ډارون په نظریه کې انسان دبیزو اولاد وګرځوئ! (اناالله وانا الیه راجعون)

**دویم**: حضور ﷺ دانساني ژوندبې شمیره اړخونه اود انسانیت درهنمایي اودنیاوي امورو په زرګونوګراني خبرې حل کړي دي. کومې چې دامت عالمان دحضور ﷺ په معجزاتوکې شمیري.

قاضي عیاض رحمه الله لیکي: **ومن معجزاته الباهرة ماجمعه الله له من المعارف والعلوم وخصه به من الإطلاع على جميع مصالح الدنيا والدين... الخ.**

**ترجمه**: او دحضور ﷺ له روښانه معجزو نه یوه هغه علوم اومعارف دي چې الله تعالی دهغه له پاره راجمع کړلاو هغه یې (دانساني ضرورت) دټولو دنیاوي مصالحو اطلاع سره مخصوص کړ.

حضور ﷺ دانساني ژوند په ټولو شعبوکې چې کوم ټولییز تعلیمات فرمایلي دي بې شکه دې ته معجزات نبوت اوتعلیم الهی ویل کیدای شي، دمثال په طورباندې دطب اومعالجې باب واخلئ، ظاهره ده چې علاج معالجه یوخالص بدني، جسماني اودنیاوي شی دی. خو حضور ﷺ داسې اصول اوکلیات اوفروع وجزئیات بیانکړي دي چې عقل حیران دی. دحافظ شیرازي رحمه الله دقول مطابق:

نګارمن که به مکتب نرفت وخط ننوشت    بغمزه مسئله اموز صد مدرس شد

دعلم خاوندانو دطب نبوي ﷺ په نامه لوی لوی کتابونه لیکل دي اوحافظ ابن قیم رحمه الله په زادالمعاد کې ددې ډیره ذخیره راجمع کړې ده، دلته بې واره مې زړه ددې واقعې ذکرکول غواړي چې په صحیح بخاري، صحیح مسلم، ترمذي اودحدیثو په ډیرکتابونوکې مروي ده چې یوصاحب راغی اوعرض یې وکړچې: زماروړته داسهال (دستونو) تکلیف دی، رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمایل: هغه له شهدورکړه! هغه شهدورکړل او وروسته بیاراغی اوعرض یې وکړچې: ماشهد ورکړل خودې سره دستونه نورهم زیات شول، ویې فرمایل: ده ته شهدورکړه! څلورځله هم دغه کیسه راپیښه شوه، دهغه په دستونوکې اضافه وشو. حضور ﷺ په څلورم ځل وفرمایل چې:

**صدق الله وكذب بطن اخيك.** (جامع الاصول ج:۷ ص:۵۱۷)

**ترجمه**: دالله تعالی کلام رښتونی دی اوستاد ورورخیټه دروغژنه ده.

هغه بیا شهد ورکړل .نو د هغه د ستونه بند شول

حضور ﷺ د قران کریم د ایاتونو په رڼاکې د حضرت ادم علیه السلام د تخلیق کومه واقعه چې وفرمایله د هغې په مقابله کې د دې صاحب دا ویل چې د حضرت ادم علیه السلام تخلیق داسې نه دی شوی. په دې باره کې هم دا ویل کیدای شي چې

صدق الله ورسوله! وکذب داروین والدکتور.

**ترجمه**: د الله تعالی او د هغه د رسول فرمان رښتونی دی او ډارون او ډاکټر دروغ وايي.

په یوطب او معالجه باندې څه منحصر دی، د ژوند د یو یو شعبې نوم خو واخلئ چې په کومه کې حضور ﷺ رهنمایي نه وي کړې او د حضور ﷺ له هدایاتونه محرومه پاتې شوي وي. تګ راتګ. ناسته پاسته. ویده کیدل. ښځې، بچو او خپل خپلوانو سره ملاقات ،صلح او امن. جنګ وجګړه. نکاح طلاق. بیع وشراء. سیاست او ادب. الغرض دنیاوي امورو کې کوم یو داسې امر دی چې په هغو کې معلم انسانیت د هدایاتو او تعلیمات نقوش موجود نه وي. د صحیح مسلم او ابوداود. نسائی او ترمذي کې حدیث دی چې یهودو او مشرکانو په حضرت سلمان فارسی رضی الله عنه باندې اعتراض وکړ:

قد علمکم نبیکم کل شيء حتی الخراءة؟ قال: اجل!(جامع الاصول ج:۷ ص:۱۳۳)

**ترجمه**: تاسو ته ستاسو نبي هرڅه ښائي، تردې پورې چې بول او براز (میتیازې) هم. ويې فرمایل :هو! (موږ ته حضور ﷺ د بول براز دا اداب هم ښودلي دي)

د دې اعتراض نه د یهودانو مقصد ،والله اعلم. یا خو په مسلمانانو باندې نکته چیني کول و .چې تاسو داسې کم عقل یئ چې تاسو ته متیازې کول هم نه ورځي، تاسو د دې له پاره هم د نبي د تعلیم محتاج یئ؟ یا د دې لعین مقصد رسالت ماب ﷺ باندې اعتراض کول و .چې انبیاء کرام د اعلی علمونه ښودنې له پاره راځي، دا څه نبي دی چې خلکو ته د متیازو د طریقو تعلیم ورکوي.

حضرت سلمان فارسي رضی الله عنه د هغوی د دې بیهوده اعتراض نه مرعوب نه شو. بلکې دا يې وفرمایل چې هو! موږ ته زموږ نبي د بول وبراز طریقه هم ښودلې ده او هغه په دې باره کې د فلاني فلاني اداب تعلیم ورکړی دی...که د دې مقصد په مسلمانانو باندې اعتراض کول و .نو د دې ځواب به دا وي چې د الله تعالی شکر دی چې موږ خو د حضور ﷺ نه بیت الخلاء ته د تلو طریقه زده کړې ده .تاسو خپل فکر کوئ، چې تاسو د ځناورپه شان دا طبعي ضرورت پوره کوئ. خو د انسانانو له طریقې تر اوسه پورې محروم یئ او که د دې مقصد په حضور ﷺ باندې نکته چیني کول و . نو د ځواب حاصل به دا وي چې زموږ د نبي ﷺ کمال دا دی چې د دې طبعی انساني ضرورتونو داسې تعلیم ورکوي چې د انسان دا طبعي حاجات هم د تقرب الی الله ذریعه جوړشي او دا شیان هم د عبادت په ډله کې شمارشي، بې شکه د حضور ﷺ د د تعلیماتو

خیال ساتلوسره استنجاخانې ته تلل په عبادت کې راځي.لکه چې زموږ شیخ المشائخ شاه عبدالغني مجددي دهلوي مهاجرمدني قدس سره حاشیه ابن ماجه کې لیکي:

"قال علماءنا أن إتيان السنة ولو كان أمرا يسيرا كإدخال الرجل الأيسر في الخلا ابتداء أولى من البدعة الحسنة وان كان امرا فخيما كبناء المدارس". (حاشیه ابن ماجه:ص:۳)

**ترجمه**: زموږ عالمان فرمايي چې:دسنت پوره کول اګرچې معمولي خبره وي مثلاً بيت الخلا ته دتلوپه وخت کې چپه پښه مخکې کيښودل ،دبدعت حسنه نه بهتردي.اګرچې هغه عظيم الشان کاروي.لکه مدرسې جوړول.

خلاصه داده چې دانساني ژوندهيڅ يوه شعبه اوهيڅ داسې اړخ نشته چې په هغه کې حضور ﷺ دامت رهنمايي نه وي کړي.ځکه حضور ﷺ فرمايي:

إنما أنا لكم بمنزلة الوالد أعلمكم. (ابوداود:ص:۳)

**ترجمه**: زه تاسو له پاره دپلارپشان يم، تاسوته تعليم درکوم.

له دې وجې نه ددې صاحب داويل چې:اموردنيادحضور ﷺ دکار ميدان نه و،ځکه په امور دنياکې دحضو ﷺ قول-نعوذبالله- دالتفات وړنه دی قطعاً غلط اوغلط دی.

**دريم**: داصاحب دحضور ﷺ دارشاد:"أنتم أعلم بأمردنياكم"په مدعا يوه شوی نه دی.ځکه يې داوويل.چې په دنياوي معاملاتوکې دحضور ﷺ ارشادلائق التفات نه دی.نبه پود شئ چې په دې واقعه کې حضور ﷺ څه فرمايلي و هغه دمشورې په طور و.شيخ المشائخ شاه عبدالغني محدث دهلوي رحمه الله حاشيه ابن ماجه کې په دې سلسله کې روايات راجمع کولونه وروسته ليکي:

"فعلم أن هذا الأمرمنه صلى الله عليه وسلم كان بطريق الإجتهاد والمشورة فما كان واجب الاتباع. (حاشيه ابن ماجه:۱۷۸)

**ترجمه**: معلومه شوه چې په دې واقعه کې چې حضور ﷺ څه وفرمايل هغه :اجتهاد مشورې په طور و.ځکه واجب الاتباع نه و.

دمشورې اوحکم ترمينځه فرق دحضرت بريره رضي الله عنها دقيصې نه واضح دی.حضرت عائشې رضي الله عنها حضرت بريره رضي الله عنها ازاده کړله،داواده شوې وه،دازادي نه وروسته هغې دخپل خاوند مغيث رضي الله عنه دقبلولو نه انکار وکړ،حضور ﷺ ورته شفارس وکړچې:بريرې ته مغيث قبول کړه:هغې ورته عرض وکړ يارسول الله ﷺ:داحکم دی که مشوره؟ويې فرمايل حکم نه

دی مشوره ده. عرض یې وکړ که مشوره وي نوزه دانه قبلوم.[1]

ددې واقعې نه معلومه شوه چې دحضور ﷺ حکم اګر که په دنیاوي امورو کې وي واجب التعمیل دی، خو که د مشورې په طور څه ارشاد او فرمايي نو ددې معامله دویمه ده.

## دایت نه غلط استدلال

دې کس ایت شریف: "والله أنبتکم من الأرض نباتا" سره دډارون په نظریه ارتقا باندې استدلال کې داوویل چې: حضرت ادم علیه السلام هم دجماداتو، نباتاتو او حیواناتو دمرحلونو نه تیریدونه وروسته، انسان ادم، جوړشوی و، سراسر مهمل او لایعني دی ځکه چې:

**اولاً**: داکس په خپله منې چې حضور ﷺ دحضرت ادم علیه السلام دجسماني تخلیق یو کیفیت بیان کړی دی، چې ددې صاحب ذکر شوې نظرې سره متضاد دی اوس داصاحب به په دووخبرو کې یوه خبره منې، یاخو داچې په خپله صاحب قران ﷺ نعوذبالله دقران دایت په مفهوم باندې پوه نه شو، ځکه که په حضور ﷺ باندې دایت هغه مفهوم منکشف شوی وی کوم چې دې صاحب ته القاشوی دی، نو حضور ﷺ به دحضرت ادم علیه السلام دتخلیق جسماني په باره کې داسې متضاد او مختلف کیفیت نه و بیان کړی او یا داصاحب به داتسلیموي چې په خپل ذهن کې جوړې شوې کومې معناوې قران کریم ته وراغوندي هغه سراسر لغو او لایعني دیا والله تعالی او دهغه رسول ﷺ ددې نه بري دي.

ممکنه ده چې داکس هم دغلام احمد قادیاني په شان عقیده لرې چې هغه دقران حقائق او معارف دحضور ﷺ نه زیات بیانولی شي، لکه چې مرزاغلام احمد قادني لیکي داخیال چې ګویاڅه چې حضور ﷺ دقران کریم په باره کې بیان کړي دي دهغه نه زیات بل څوک نه شي کولی، بدیهي البطلان دي. (کرامات الصادقین ص:۱۹ مندرجه روحاني خزائن ج:۷ ص:۶۱)

غرض داچې دیو ایت نه داسې نظریه استنباط کول چې دحضور ﷺ دتصریحاتونه خلاف وي له دې سره په دووخبرو کې یوه خبره لازمیږي، چې یا خو له دې سره_ نعوذبالله_

---

[1] عن عائشة رضی الله عنها ان رسول الله صلی الله علیه وسلم قال لها فی بریرة خذیها فاعتقیها وکان زوجها عبداً فتخیرها رسول الله صلی الله علیه وسلم فاختارت نفسها ولو کان حراً لم یخیرها متفق علیه وعن ابن عباس رضی الله عنه قال: کان زوج بریرة عبداً اسود یقال له مغیث کانی انظر الیه یطوف خلفها فی سکک المدینة یبکی ودموعه تسیل علی لحیته فقال النبی صلی الله علیه وسلم للعباس: یا عباس! الا تعجب من حب مغیث بریرة، ومن بغض بریرة مغیثاً. فقال النبی صلی الله علیه وسلم لو راجعتیه فقالت یا رسول الله ! تامرنی! قال انما اشفع! قالت لا حاجة لی فیه رواه البخاری مشکوة کتاب النکاح باب الفصل الاول ص:۲۷۶_

دحضور ﷺ تجهیل لازمیږی چې حضور ﷺ ددې ایت په مطلب باندې پوه نه شو. یاخپل خام خیالات په قران کریم کې ننوستل لازمیږي چې دکوموپه باره کې دحضور ﷺ ارشاددی:

من قال فی القران برأیه فلیتبوأ معقده من النار.(مشکوة ص:۳۵)

**ترجمه**: کوم کس چې دخپلې رایې نه څه مفهوم په قران کې دننه کړهغه دې خپل داوسېدو ځای په دوزخ کې جوړ کړي.

**ثانیاً**: دا ایت شریف کوم چې دې صاحب نظریه ارتقا ته دحضرت دادم علیه السلام دجسماني تخلیق باندې دلګولوکوشش کړی دی، دسورت نوح ایت دی، په کوم کې چې الله تعالی دحضرت نوح علیه السلام هغه خطاب نقل کړی دی چې هغه دخپل قوم کافرانوته کړی و. کوم کس چې دمعمولي غوراوفکرنه هم کاراخلي ،نودهغه نه به داخبره پټه پاتې نه شي چې حضرت نوح علیه السلام دخپل قوم کسانوته د ډارون دارتقايي نظریې تعلیم اوتلقین نه دی کړی ،بلکې دغو خلکوته دیوفردپه تخلیق دالله تعالی دقدرت دکوموعجائباتواظهارکړی دی هغه ذکر کول فرمایي چې الله تعالی دځمکې دخاورې نه غذاګانې پیداکړي دي،ددې غذاګانونه یې داوبودڅاڅکیو تخلیق وکړ دکوم نه چې تاسوپیداشوي یئ.بیایې د اوبو دې قطرو ته د مورپه خیټه کې مختلف شکلونه ورکړل اوپه دې کې یې روح واچاواوتاسوژوندی انسانان جوړ شوئ، بیانفخ روح نه وروسته هم د مورپه خیټه کې دځمکې نه پیدا شویو غذاګانوپه ذریعه ستاسودنشونماعمل جاري وساته،تردې پورې چې دمور د خیټې نه ستاسو دنیا ته راتلو وشو اوبیاد پیدائش نه وروسته هم ستاسودنشونماسلسله جاري وه اودا هرڅه الله تعالی دځمکې دخاورې اوددې نه پیداشویو عذاګانوپه ذریعه وکړل، الغرض،، والله انبتکم من الارض نباتا،،کې دانساني افرادو ددې اوږدې سلسلې نشونماطرف ته اشاره کړې ده،چې دکومې نه تیریدوسره هرانسان دنشونمامرحلې تیروي،په دې سلسله کې ابتداء له خاورې نه کیږي اوددې انتهادنشونماپه تکمیل باندې کیږي،لکه چې حضرت مفتي محمدشفیع رحمه الله په خپل تفسیر،،معارف القران،،کې دخلاصه تفسیرپه عنوان سره ددې ایت شریفه لاندې دحضرت حکیم الامت تهانوی رحمه الله دبیان القران په حواله لیکي:

اوالله تعالی دځمکې نه تاسوپه خاص طور پیداکړلئ.(یاخوداسې چې حضرت ادم علیه السلام د خاورې نه جوړ شوی و ،یاداسې چې انسان دنطفې نه جوړشواونطفه دغذانه او عذا د عناصرونه جوړه شوه اوعناصروکې غالب اجزا دخاورې دي..(معارف القران.ج:۸ص:۵۶۲)

لهذادې ایت شریف نه(یادویم ایت کریم)دډارون نظریه ارتقا اخستل دخپل عقل او فهم سره هم زیاتی کول دي اودقران کریم سره هم بې انصافي ده.

ددې صاحب کوم دلائل چې تاسوذکرکړي دي ددې علمي حیثیت واضح کولونه وروسته اوس زه ستاسودسوالونوځوابونه درکوم. چونکه خبره اوږده شوه له دې وجې نمبرپه نمبرستاسوسوالونه نقلوم اودهغو مختصرځواب لیکم:

**سوال:** ١...ایادپورته ذکر شوي کس عقائدو ته داهل سنت والجماعت عقائدویل کېدای شي؟

**جواب:** ددې کس داعقائدداهل سنت والجماعت عقائدنه دي،ائمه اهل سنت په اجماع سره ددې خبرې قایل دي کوم چې دحضرت ادم علیه السلام دتخلیق جسماني په باره کې په احادیث نبویه کې بیان شوي دي،ځکه ددې کس دانظریه بدترین بدعت دی.

**سوال:** ٢...دحضرت ادم علیه السلام دجسماني تخلیق متعلق حدیثونوپه باره کې ددې کس رویه د ګستاخي اوګمراهي ده؟

**جواب:** دحضرت ادم علیه السلام دجسماني تخلیق په باره کې بیان شویو حدیثونوپه باره کې ددې کس رویه پرته دځه شک نه ګستاخانه ده.دکوموتفصیل چې مې پورته ذکرکړی دی اودارویه بې شکه ګمراهي اوکج روي ده.

**سوال:** ٣ حضرت ادم علیه السلام ته (حیوان ادم)ویل ګستاخي نه ده؟

**جواب:** حضرت ادم علیه السلام ته په قطعي نصوصو سره اواجماع سلف سره(حیوان ادم) ویل اودهغه سلسله نسب دبیزوګانونه اخستل ،،داشرف المخلوقات حضرت انسان توهین دی اودانهیواځې دحضرت ادم علیه السلام په شان کې ګستاخي ده بلکې دهغه په نسل کې پیداشو یو ټولو انبیاء کرامو علیهم السلام هم توهین اوتنقیص دی،ظاهره ده چې حضرت ادم علیه السلام دټولووانسانانوپلاردی، اوس که ستاسوپلارته څوک..ځناور،یابیزو،،ووایي، نوسوچ کول پکاردي چې داکنځل دي اوکه نه؟ همدارنګه (مثلاً: که هم دې صاحب ته)دځناوراولاد یا.دبیزاولاد،، وویل شي ،نوداصاحب به داکنځل ګڼي اوکه نه؟اودابه خپل توهین اوتنقیص ګڼي او که نه؟

**سوال:** ۴ایاداکس دتفسیربالرایې مرتکب نه دی؟

**جواب:** پورته مې ذکرکړي دي چې خپله مزعومه نظریه باندې دقران پاک ایت جوړول تفسیربالرایه ه اوداکس ،دحضور صلی الله علیه وسلم دارشادمبارک :**فلیتبوا مقعده من النار**،، مستحق دی،یعنې ده ته پکاردي چې خپل استوګنځای په دوزخ کې جوړ کړي.

**سوال:** ۵:دحضور صلی الله علیه وسلم اودامت داسلافو عقیده داده چې دحضرت ادم علیه السلام قالب له خاورې نه جوړشوی دی او که نه؟

**جواب:** پورته مې ذکر کړي دي چې د حضور ﷺ، د صحابه کرامو او سلف صالحینو هم دغه عقیده ده چې د حضرت ادم علیه السلام قالب له خاورې نه جوړ شوی و. بیا په دې قالب کې ساه واچول شوه، نو ژوندی انسان جوړ شو. فلاسفه وو چې په دې سلسله کې څه ویلي دي هغه یوائې یوه مفروضه ده. چې د هغو حیثیت د وهم او ظن نه پرته نور هیڅ نه دي او د ظن او تخمین او تحقیق په بازار کې یې هیڅ قیمت نشته. د الله تعالی ارشاد دی:

وَمَا لَهُمْ بِهِ مِنْ عِلْمٍ إِنْ يَتَّبِعُونَ إِلَّا الظَّنَّ وَإِنَّ الظَّنَّ لَا يُغْنِي مِنَ الْحَقِّ شَيْئًا. (النجم:٢٨)

**ترجمه:** او هغوی سره په دې باندې هیڅ دلیل نشته، یوائې په بې اصله خیالاتو باندې روان دي او یقیناً بې اصله خیالات د حق په مقابله کې هیڅ هم نه دي.

کوم قومونه چې د نبوت له نور نه محروم دي، اګر که هغوی له تاریخ وړاندې په میدانونو کې ورک شوي ګرځي، نو ګرځي دې او ظن او تخمین اسونه که زغلوي نو زغلوي دې، اهل ایمان ته د هغوی د پاتې شویو خوړو هیڅ ضرورت نشته، د دوی په وړاندې د نبوت لمر راختلی دی، دوی چې هر څه وایي نو د ورځې په رڼا کې وایي او د دوی د قران او سنت رڼا له ظن او تخمین نه بې نیازه کړي دي.

**سوال: ٢** د دې کس بیعت یا د ده سره تعلق ستاسو په نزد څنګه دی؟

**جواب:** د پورته تفصیل سره مې واضحه کړې ده چې څه حضور ﷺ فرمایلي دي، هماغه حق دي او د دې کس د فلاسفه وو په تقلید کېله نبوي وینا وو نه انحراف، د ده د کج روي او ګمراهي دلیل دی. له دې وجې نه دې کس له پاره لازم دي چې د خپلو عقائدو او نظریاتو نه توبه وکړي او رجوع الی الحق وکړي او ندامت سره د ایمان تجدید وکړي او هر یو کس له پاره چې په الله تعالی او د هغه په رسول ﷺ باندې یې ایمان راوړي، د دې کس ملګرتیا جائز نه ده، که یو مسلمان د ده په بیعت کې داخل وي، نو د ده نظریات او خیالات معلومیدو نه وروسته د ده نه بیعت فسخ کول لازم دي.

## د ډارون نظریه د الله تعالی نفې کول دي

**سوال:** څناور، مرغۍ او په زرګونو مخلوقات الله تعالی پیدا کړي دي، تاسو په څواب کې فرمایلي وچې: دې باره کې مې څه وضاحت د نظر نه نه دی تېر شوی، نو دې باره کې څه عقیده ساتل پکار دي؟ که مذهب دې باره کې څه رهنمایي نه کوي، نو د مخلوق باره کې د ډارون نظریه صحیح ثابتیږي.

**جواب:** دډارون نظریه خودالله تعالی نفې کول دي، دومره عقیده ساتل خو لازم دي چې ټولو مخلوقات ته وجودالله تعالی ورکړی دی، خوځنګه یې ورکړی دی، دې باره کې څه تفصیل معلوم نه دی.[1]

## انسان څنګه پیداشو

**سوال:** مولاناصاحب دقران اوحدیث نه ثابت ده چې الله تعالی په انسانانو کې حضرت ادام علیه السلام جوړکړ اوموږټول دهغه اولادیو. خوپه ۱۹۸۹،۴،۱۵ باندې دجمعې په ورځ موږ په ټي وي دورځې لس بجې یوفلم کتلی و. هغه کې ښودل شوي وچې انسان د مختلفومرحلونه وروسته دې شکل ته رارسیدلی دی. یعنې لومړی جراثیم، بیاکب، بیزو وغیره اواخري شکل یې دنن انسان شو.

اوس تاسووضاحت سره ووایئ چې دشریعت دې باره کې څه فیصله ده. اودیومسلمان دې باره کې څه ایمان پکاردی؟ که چیرې دټی وي والادافلم غلط وي، نوددې ذمه دارڅوک دي؟

**جواب:** داد ډارون دارتقاء نظریه ده، چې دټولونه لومړی انسان (حضرت ادم علیه السلام) سمدستي په وجودکې نه وراغلی، بلکې د یرو ارتقایي منزلونونه وروسته دبیزو شکل وجودکې راغی اوبیا بیز کې نورې تبدیلیانې هم راغلې اودانسان شکل یې اختیارکړ،دانظریه اوس د سائنس په نظرکې کمزورې شوې ده، ځکه چې دې دومره ډیروخت کې انسان کې څه تبدیلي رانغله، بلکې دترقي په وجه باندې ورو ورو دانسان په شان ځناورجوړیږي.

ترکومه حده پورې چې دمسلمانانوتعلق دی،هغوی ته دډارون د ارتقاء په نظریه باندې دایمان راوړلوضرورت نشته، دهغوی مخکې دقران کریم ښکاره اعلان موجود دی، چې الله تعالی د خاورې نه دادم علیه السلام قالب جوړکړ، هغه کې یې روح واچاو اودهغه نه ژوندی انسان جوړشو.[2]

دکوم فلم چې تاسوذکرکړی دی، کیدای شي چې دهغوی په قران اوحدیث باندې ایمان نه وي اوکوموخلکوچې په ټي وي باندې فلم ښودلی وي، هغوی هم دقران اوحدیث په ځای باندې په ډارون باندې ایمان لري، خوپه کوم شي اندې چې زه حیران یم هغه دادی چې پاکستان کې دې فلم ښودلوباندې چااحتجاج ونه کړوداسې ښکاري چې دپاکستان غیرشعوري طورباندې بې دینه کولوکوشش کیږي.

---

[1] تفصیل له پارهه اوګورئ خطبات بهاول پور کا علمی جائزه مطبوعة مکتبه لدهیانوی کراچی
[2] اِنَّ مَثَلَ عِیسٰی عِنْدَ اللهِ کَمَثَلِ اٰدَمَ خَلَقَه مِنْ تُرَابٍ ثُمَّ قَالَ لَه کُنْ فَیَکُوْنُ (آل عمران: ۵۹)

# په مذهب او سائنس کې فرق

**سوال:** مولاناصاحب!گزارش دادی چې کوم طالب علمان سائنس لولي دهغوی په نظرکې دمذهب په باره کې عجیبه کش مکش پیداشي اوکه هغوی سائنس مني، نومذهب ته هم دروغ نه نه شي ویلي.خو په سائنس کې ځینې مظاهر داسې دي چې دیوشش وپنج په کیفیت کې مومبتلاکوي اوس مونږ په سائنس کې دډولونه مخکې نظریه ارتقاء اخلو.چې انسان دبیزوګانو بن مانسونه ترقي کړې ده.خو په قران کریم کې ارشاددی چې اول الله تعالیٰ انسان له خاورې نه بت جوړکړ،بیایې پکې ساه واچوله،بیایې حوا د آدم علیه السلام د پښتۍ نه پیداکړه،هرکله چې سائنس وایي چې دکله نه ادم جوړشوی دی. نوحوادده سره ده،بلکې هغمې زیږولی دی اوادم یې دجنت نه ځمکې ته راکوزکړی نه دی،بلکې دی یې په ځمکه باندې پیداکړی دی،ددې سوال نه ظاهریږي چې نعوذبالله بزوګانواوبن مانس یانورځناوربه هم جنت یادوزخ ته ځي؟ځکه چې دسائنس مطابق دوی هم زمونږ په شان دي.

په یوحدیث مبارک کې دي چې دشپې لمردالله تعالی په وړاندې په سجده کې پریوځي اوسهارزده ته دلمرختاته نه دراختوحکم کیږي،خو مونږ ته ښه پته ده چې دشپې لمرپه امریکه کې وي،یعنې دځمکې دویم طرف ته.

په یوحدیث مبارک کې راغلي دي چې ستوري داسمان دچت سره په رسیو (پړیو) باندې تړل شوي دي .مشره!که خلا ته ورتلوسره وکتل شي ،نوځمکه هم دسپوږمۍ په شان په اسمان کې په نظرراځي.یعنې هرطرف ته اسمان په نظرراځي اوسائنس دانان وایي چې هیڅ چت نشته،داټولې خبرې موپه شک کې اخته کوي.

اودجن،په باره کې داعرض دی چې ایا،،پیریان یواځې په پیریان منونکوباندې ولې کېني؟په انګریزانواوروسانواو داسې نورو... باندې چې شراب اونورشیان کوم چې دانسان له پاره ناپاک ګڼل کیږي استعمالوي،خو په هغوی باندې پیریان نه کیني،ایاداټول خیالات دیوانسان دماغ نه منجمدکوي. اوپرته دڅه وجې نه په دخوف او وېرې په کیفیت کې وي؟ ایا مذهب اوسائنس یوځای چلیدای شي؟که تاسوځواب رانکړ،نوزه به اوګڼم چې تاسوهم په شک کې پریوتي یئ؟

**جواب:** ستاسوخط دتفصیلي ځواب غوښتنه کوي هرکله چې ماسره وزګار وخت نشته.داهم داشاراتوپه ژبه درته مختصراً عرض کوم اول څه اوصول په ذهن کې کښینوه:

۱ ::دسائنس بنیادپه مشاهده اوتجربه باندې دی اوکوم شی چې دتجربې او مشاهدې نه ماوراء وي هغه دسائنس دوس نه بهردي،ددې په باره کې دسائنس هیڅ یود دعود دالتفات وړنه ده،هرکله چې وحې اونبوت هم هغه موضوع ده چې دانساني عقل اوتجربې اومشاهدې نه بالاترده.ظاهره ده چې په داسې معامله کې به دوحې اطلاع قابل اعتباروي.

۲:ډیرشیان زمونږ مشاهدې سره تعلق لري،خودهغو پټو علتونو اواسبابو مشاهده مونږ نه شوکولی.بلکې دهغو دعلم له پاره مونږ دڅه صحیح ذریعه علم محتاج یو.داسې اموریواځې په دې وجې سره انکارکول یواځې بېوقوفي ده چې داشیان زمونږ په نظرنه راځي
۳:دوه شیان که څپل مینځ کې داسې ټکرشي چې د دواړو په یووخت کې تسلیمول ممکن نه وي، نودا نه شي ویل کېدای چې دواړه صحیح دي؟ددې فیصله کولوله پاره مونږ ته داکتل وي چې دڅه ثبوت په یقیني اوقطعي ذریعې سره شوی دی؟اودڅه په ظن اوتخمین په ذریعې سره؟دڅه شي ثبوت چې په یقیني ذریعې سره وي هغه حق دی اودویم باطل یامؤول.
۴:کومه خبره چې دځپل ذات په اعتبارسره ممکن وي اویورښتونی خبرورکونکی دهغې خبر ورکړی وي دهغې تسلیمول لازم دي اوهغې نه انکارکول محض ضداوتعصب ده،چې دیو عاقل شان نه دی.
۵:په انساني عقل باندې اکثره دوهم تسلط وي،ډیرشیان چې قطعي اوبې شکه دي خلک دوهم دغلبې په وجه هغه خلاف عقل تصورکول شروع کړي اوډیرشیان چې دعقل صحیح خلاف وي دوهم دغلبې په وجه خلک نه یواځې صحیح ګڼي. بلکې دهغو دعقل مطابق په نوروهم دمنلوکوشش کوي.
داپنځه اوصول بالکل فطري دي،په دې باندې ښه پوه شئ،که په څه نکته کې ستاسواختلاف وي ،نودهغه تشریح به وکړم اوس ددې اوصولوپه رڼاکې ستاسوپه سوالونوباندې غورکوم:

## نظریه ارتقاء

دمسټر ډارون نظریه ارتقا خواوس په خپله په سائنسي دنیاکې هم په اخري سلګوده اوپه سائنس دانانوکې بدنامه شوې ده،خو تاسوهغه د قرني وحې په مقابله کې وړاندې کولوسره ددشک اظهارکوئ. داسوال چې دانسان دپیدیښت اغازڅنګه وشو؟ ظاهره ده چې دایوه تاریخي واقعه ده اودڅه اندازې اوتخمین په وجې سره ددې په باره کې دوټوک خبره کېدای نه شي.
دموجوده دور انسان نه خوپه خپله په ابتدایي وخت کې موجودو، چې دځپلوسترګولیدلی حال بې ویلی و.نه دا داسې شی دی،چې انساني تجربې ددې تصدیق کړی وای.که نه په زرګونوکلونوکې به دې یوبیزو په انسان جوړېدلوکې لیدلی وای؟یایوبیزو ته دانسان جوړولوتجربه به یې کړې وه. هرکله چې دانظریه دمشاهدې اوتجربې دواړو نه محرومه ده نوددې په بنیادباندې په ګډو وډ انداز او د وهم کرشمه سازو باندې به قائمه وي،ددې په مقابله په خپله دخالق مخلوق قطعي، غیر مبهم اوصفاارشادموجود دی،کوم چې تاپه سوال کې نقل کړي دي اوس په دې مسئله کې په خپله انصاف وکړه،کومه چې دانساني تجربې

اومشاهدې نه ماورا ده،دمستر ډارون اودهغه دملګرو له ځان وړاندې شوې تخمينه داعتبارلائق ده که دالله تعالی علام الغيوب ارشاد؟که وحې په دې معامله کې زموږ رهنمايي نه وای کړې ،نوبياهم دعقل غوښتنه داوه چې موږ دډارون دغير مشاهداتي اوغيرتجرباتي خبرې نه وی اخيستي،ځکه چې دعقل خاوندان.په عقل سره ناپ کول کوي،په غيرعقلي اوقياساتواوتخمينوباندې په ټپوسترګوايمان نه راوړي. دنظريه ارتقاء په ملګرو کې دانسان نسل دبيزو نه اخستل هرکله چې دوحې الهي اومشاهدې اوتجربې تکذيب کوي نودانظريه داهل عقل په نزدڅنګه دالتفات وړکيدای شي؟

## حضرت ادم علیہ السلام او جنت

دنظريه ارتقاجوړونکودانساني نسل دنسب سلسله بيزوګانو پورې رسولوسره چې دانساني عقل کومه بيعزتي کړې ده له همدې نه پرې بنده پوهيدای شي،چې داول انسان په باره کې ددوی دنوروتخمينواوقياساتوکې به څومره ربښتياوي،په خاص ډول دهغوی داوينا:چې انسان په اول کې دجنت نه راکوز شوی نه و ،بلکې په همدې ځمکه باندې دبيزو دجنس نه تبديل شوی و اوکه داچې حوادده ښځه نه بلکې موريې وه،چاته پته نشته چې جنت اودوزخ دعالم غيب هغه حقيقونه دي چې په دې عالم کې دانساني مشاهدې اوتجربې نه بالاتردي اودکوموپه باره کې چې دصحيح معلوماتوبواځې يوه ذريعه ده اوهغه انبياء عليهم السلام باندې نازل شوې وحی ده. هغه غيبي حقائق چې دانساني مشاهدې اوتجربې دوس نه قطعي بهردي اودمشاهدې هيڅ يو خوردبين دهغو پورې رسيدوکې کامياببيدای نه شي په خپله سوچ وکړئ چې دهغو په باره کې په وحی الهی باندې اعتمادکول پکاردي که ددې خلکوپه وهم اوقياس باندې چې په اسونوباندې سواره په يوداسې ميدان کې ټوپونه وهي چې دهغوی دعقل اوادراک دحد نه بهرده؟ دسائنس دمشکل نه مشکل اسرارو او رموزو په باره کې ديوبې وقوف خبره چې څومره خندې دونکې ده له دې نه ډيرزيات ددې خلکواندازې اوتخمينې مضحکه خيزدي،چې دوحې الهی درڼانه پرته امورالهيه پورې دتلوکوششونه کوي،دې مسکينانوته پته نشته چې ددوی دحقيقاتو دائره دماديت پورې ده.نه چې دمابعدالطبيعات پورې.کوم شی چې ددوی دعقل او ادراک نه ماورا دی دهغو په باره کې چې دوی څه قياس هم کوي دهغه حيثيت دتيارې دکاڼي اوپه تياره کې دغشي چلولوپه شان به وي.قطعاً ممکن نه ده چې ددوی داغشي په صحيح ښنه باندې ولګيږي اوهغوی په خپله هم له ډيرخت نه دوادی ضلالت لاره ورکه کړې مسافران به وياودهغوی مقلدين هم،مسلمانانوته په تياره کې د ډغرو وهلو ضرورت نشته اونه ورته ددې تياروپه وادويو کې دورکيدوضرورت شته. الحمدلله دهغوی سره د نبوت دلمر رڼاموجوده ده اوهغوی چې دامورالهيه په باره کې څه هم وايي بايددورځې په رڼاکې يې وايي.

# د لمر سجده کول

دلمر دسجدې کولو کوم حدیث چې تانقل کړی دی هغه صحیح دی او هغه دځه سائنسي تحقیقاتو او عامې انساني مشاهدې خلاف نه دی، انساني مشاهده داده چې لمر روان دی، خو ددې رفتار دده خپل ذاتي دی، که دچا قادر مطلق دحکم او مشیت تابع دی؟ داهغه سوال دی چې دهغه ځواب په دې حدیث کې ورکړل شوی دی، چې حاصل یې دادی چې دلمر دراختلو او پریوتلو نظام دخودکارمشین په شان نه دی، بلکې دحق تعالی دمشیت اوارادې لاندې دی او هغه دخپلو راختلو او پریوتلو له پاره الله تعالی جل شانه نه اجازه اخلي، یووخت به راشي چې حسب معمول دراختلو اجازه به وغواړي خو اجازه به ورنه کړل شي، بلکې دسرچپه تلو حکم به ورته وشي، په دغه ورځ به لمر دمشرق په ځای دمغرب نه راوخیژي او تقریباً دچاښت دوخت پورې داو چتیدو نه وروسته به بیا مغرب طرف ته لاړشي او ددې نه وروسته دقیامت دقائمیدو پورې به حسب معمول طلوع او غروب کیږي.

اوس دلته څو امور دتوجه وړ دي:

**اول**: ددې نظام شمسي دحق تعالی جل وعلی دمشیت تابع کیدل دټولو دینونو او مذهبونو مسلمه عقیده ده او کوم سائنس دانان چې دالله تعالی دوجود اقرار کوي ،هغوی هم ددې عقیدې نه انکار نه کوي، کوم خلک چې داکارخانه جهان خودکارمشین ګڼي اودادصانع حکیم تخلیق نه ګڼي، ددوی دانظریه دعقل او حکمت په میزان کې هیڅ وزن هم نه لري. دصانع عالم په وجودباندې دلائلو داموقعه نه ده ځکه چې الحمدلله زمامخاطب مسلمان دی، ددې وجې نه دهغه په وړاندې دوجودباري تعالی باندې بحث کول نه یواځې غیرضروري بلکې بې موقعه هم دی، دلته یواځې په دې خبره باندې خبرداري مقصود ده چې هرکله دامنل شوی حقیقت دی چې نه یواځې نظام شمسي بلکې ټوله کارخانه عالم دالله تعالی دمشیت اوارادې تابع ده ،نوذ لمر دا راختل او پریوتل هم باید ددې مشیت تابع کیدل وګڼل شي، دې نکتې ته حضور ﷺ دلمرد روزمره سجدې کولو او ائنده ورځې راختلو په اجازه سره تعبیر کړی ده.

**دویم**: څنګه چې په سوال کې ذکرشوي دي او مشاهده هم ده چې هره لمحه او هروخت د لمر دراختلو او پریوتلو عمل جاري دی، که په یو افق باندې پریوځي ،نوپه دویم افق باندې راخیژي. که په یوځای کې دسهار رڼابنکاره کیږي ،نوپه بل ځای کې دشپې دتیارې خورېدو اغاز کیږي، ددې وجې نه په حدیث پاک کې دوه احتماله دي، یو داچې حضور ﷺ دیو خاص افق (مثلاً مدینې طیبې افق، یادعامې ابادۍ اُفق) ترې مراد واخیستل شي، په دې صورت کې به دحدیث مطلب داوي چې لمرکله په دغه خاص افق باندې پریوځي ،نوراتلونکې ورځ د راختلو له پاره اجازه غواړي او په اجازه باندې راخیږي، تاسو ته معلومه ده چې دریاضي والا

دهفتې دورځو دتعين له پاره دلمر يو خاص افق مقرر کړی دی. کوم ته چې (ډيټ لائن) وايي. ددې خط فاصل نه ديخوا دجمعې ورځ وي او بل طرفته دهفتې ورځ. که داصورت اختيار شوی نه وی ، نودورځو تعين ممکن نه و ، ځکه چې لمرخوپه دنياباندې نه پريوځي .له دې وجې نه د (ډيټ لائن) نه پرته دتاريخ اوورځې دتعين صورت نه و. هرکله چې اهل فن ته د ورځو دتعين له پاره ديو خاص افق مقررولو نه پرته هيڅ چاره نه وه .هم داسې دطلوع او غروب له پاره به په علم الهي کې هم څه خاص نقطه متعينه وي، چې هغې پورې رسيدونه وروسته به اينده ورځ دراختلو له پاره داجازې ايستل وي. نوپه دې کې هيڅ عقلي شک نشته.

دويم احتمال دادی چې ددې لمردراختلو له پاره څه خاص افق مقرر نه شي .بلکې داوويل شي چې دده طلوع په هريو افق باندې له اجازې نه وروسته وي، خو لمر طلوع هره لمحه په څه نا څه افق باندې جاري وي، نو دحديث پاک منشابه داوي چې دافتاب دحرکت يوه يوه لمحه دالله تعالى داجازې اومشيت مرهون منت ده اوديوې لمحې له پاره هم دده حرکت (په کوم باندې چې دطلوع اوغروب نظام قائم دی) له اجازې نه پرته جاري نه شي پاتې کيدای.

**دريم:** پاتې شوه دلمرسجده کول، نوکه داسې زمونږ د اميانو له پاره څه نوې اوعجيبه معلوميږي ، خو اهل عقل ته پته ده چې دمخلوق هرشی دالله تعالى په وړاندې سرپه سجده دی اوهرشی دهغه دعظمت اوتقدس تسبيح وايي، خو دهرشی سجده کولاوتسبيح کول. دهغه دحالت اوفطرت اوشان مطابق دبېل نوعيت سره ده. مونږ خلک دهغه ،، بې وينا زبان،، باندې نه پوهيږو ،ځکه داخبره مونږ ته عجيبه معلوميږي. دې طرف ته په قران کريم کې داسې فرمان سره اشاره شوې ده: "ولکن لا تفقهون تسبيحهم" (خوتاسو ددې شيانو په تسبيح باندې نه پوهيږئ) مونږ خلک چې دعقل اوادراک اوشعوراوفهم يوه عامه درجه لرو اوداسې ويلوسره خپل زړه پوهوو چې دمخلوق هرشی دالله تعالى په قبضه اوتصرف کې مسخردی اومسخرکيدل دهغه سجده اوتسبيح دي، خو کوم حضرات چې په علم اوادراک اوعقل وفهم کې دعام وانسانانو نه لوړدي دهغوی ويناده چې مخلوق يواځې په زبان حال سره هم دالله تعالى تسبيح خوانې اودهغه په وړاندې سجده کولو فرائض نه پوره کوي .بلکې هرشي ته الله تعالى دهغه دحال مطابق دشعوراوادراک نعمت هم ورکړی دی اوهريوـه يې دهغه مناسب ګويا ژبه هم ورکړې ده، ددې وجې نه هرشی دخپل خپل شعوراوادراک مطابق الله تعالى ته سجده کوي اوپه خپله ژبه کې دهغه تسبيح لولي:

خاک وباد واب واتش بنده اند بامن وتو مرده باحق زنده اند

په هرحال دلمرالله تعالى ته سجده کول بلاشبه حق اوصحيح ده. په خپله په قران کې ددې وضاحت موجود دی اوس دغه سجده زبان حال سره ده يازبان قال سره؟ ددې توجيه هرکس دخپلې اندازې اوپيمانه عقل اوفکرمطابق کولی شي اوکه دچاعقل يې يواځې له دې

وجې نه نه مني چې داعجوبه (نااشنا) ده نو هغه ته به داویل بې ځایه نه وي چې دنیادقدرت دعجائبو نوم دی.

دا د اور جوړه کړه چې ورته لمرویل کیږي ددې وجود په خپله دقدرت دعجایبو یوه نمونه ده اوبیاددې راختل اوپریوتل یوه مستقل عجوبه ده،که خدای مکړه لمریوځل نیم راختلی وې. نودنیا به ددې اعجوبې دمشاهدې طاقت ونه لري. په کومه دنیاکې چې په زرګونو اعجوبې زموږدسترګوپه وړاندې موجودې دي اوموږ پرته دځه تذبذب اوشرمندګی نه په دې عجائبوباندې یقین لرو .نو محض ددې عجوبه کیدل زموږ دانکار دجواز وجه نه جوړیږي اوددې نه دانکارکولووالا په حق کې دپاګلتوب اولیونتوب فیصله کوو. نوهیڅ وجه نشته چې کوم شی زموږ دمشاهدې اوتجربې،زموږ دعلم اوادراک اوزموږدعقل اوشعورنه لوړوي اویوشناسایې راز اودانایې رموز موږ ته ددې خبرراکړي ،نوموږ یوائې دعجوبې په وجه ددې نه انکار وکړو. ایادموجوده دور سائنسي ایجادات دیوعام عقل اوفهم والا انسان له پاره کم عجوبه دي؟ایادیوکم عقل بنده له دې نه دانکارکول یوائې په دې بنیادباندې به جائزوي چې دهغه عقل دې شیانوباندې ګرفت کولونه قاصردي؟نه! بلکې کوم کس چې ددې جرات وکړي هغه کس به دانتهائي درجې بې وقوف وګرځول شي.سمه ده همدارنګه کوم کسان چې ددې عجائبات قدرت نه انکارکوي کوم چې یوائې دنبوت په علم اوادراک کې راتلای شي .داخلک دخپل عقل دورستیه والي اظهارکوي.

څلورم: دلمردراختلواوپریوتلوله پاره اجازه غوښتلو سره دانه لازمیږي چې ددې په حرکت کې څه دریدل (سکون) راشي،بلکې دا دواړه شیانوپه یوځای جمع کیدای شي.خوزه ددې نکتې نوروضاحت اوتشریح ضروري نه ګنم اواهل فهم له پاره یوائې اشاره هم کافي ده.

## د یو حدیث حواله

تاسو دیوحدیث حواله ورکړې ده چې ستوري داسمان دچت سره په رسیو(پړیو)باندې تړل شوي دي،ماته هیڅ داسې حدیث یادنه دی،چې دهغه داسې مضمون وي،که تاسوددې حواله ورکولی شئ ،نوددې دالفاظواومفهوم په باره کې څه عرض کیدای شي،په قران کریم کې دوه ځایه(الاعراف :٥٤،النحل:١٢)ستورو ته (مسخرات بامره،)فرمایل شوي دي،یعنې ستوري حکم خداوندي سره مسخردي،ددوی په فضاکې معلق کیدل،هم ددې تسخیریومظهردی،هم دغه هغه رسئ دی چې دکوموسره دافضایې کرې تړل شوې دي اوکله چې ددې مخلوق دورانولو فیصله وکړل شي ،نوددوی دارسی به وسپړل شي اوستوری به خپل مینځ کې وجنګیږي اومات به شي اوددوی په خپل مینځ کې جنګیدل دتصادم قیامت وړاندې خیمه به وي، که په څه حدیث کې دستورو په رسیوسره دتړلو ذکرراځي، نوددې نه مراد داراده الهي هغه داوسپنې زنځیرونه دي کوموچې په فضاکې دا محیرالعقول ستوري نیولي دي.

دمادي رسيو تکليف دې ولې وشي؟ که سائنسدانان ددې خلائي کُرې داستقرار او استحکام له پاره دکشش ثقل څه اصول وړاندې کوي ،نوموږ ته ددې دنه منلو ضرورت نشته،ظاهري سترګې تحرير دکاتب دلاسو دحرکت کرشمه ګڼي ،خو دلاس حرکت ددماغو دارتعاشي لهرونو تابع دی او دماغ دروح دحس او حرکت تابع دي او دروح ،روح اراده خداوندي ده، همدارنګه ددې خلايي سيارولـه پاره په سائنسي دنياکې چې کوم اصول وړاندې کيږي، هغه ددوی دخپل عقل معيار پورې صحيح دي،اسلام ددې نفي نه کوي،بلکې په دې اصولوکې داراده الهي دکارکردګي عقيده وړاندې کوي،که يو سائنسدان داسبابو اوعلتونو دسلسلې دکړيو په مينځ کې ختمولو باندې اصرار کوي ،نو دا دهغه دبصيرت او مشاهدې قصور دی.

## د پيريانو په باره کې

دپيريانو په باره کې دوه خبرې قابل ذکردي:

يوه داچې ايادپيريانو وجود شته،يانشته؟

دويم داچې پيريان بنده ته تکليف رسولی شي که نه؟ چې په عام عرف کې ورته دپيريان کيناستل وايي.

ترڅو پورې چې دپيريانو دوجو تعلق دی په قران کريم کې دپيريانو ذکر(دجن يا جان په عنوان سره)٢٩ځايه راغلی دی اود ،،سوره الجن،،په نامه په قران پاک کې يو مستقل سورت دی،دسوره انعام ايت:١٢٨،کې يوائې دپيريانو او سورت انعام کې ايت :١٣٠ او سوره الرحمان ايت:٣٣کې،،**يامعشرالجن والانس**،،ويلو سره پيري او انسان ته خطاب شوی دی،دسورت الرحمان ايت ،،**فبأي الاء ربکما تکذبن**،،کې کوم چې ٣١ واره ده دواړو ته خطاب دی،سوره الجن ايت:١ ،سوره الاحقاف ايت:٢٩ کې دپيريانو يوې ډلې دحضورﷺپه خدمت کې راتلل او دايمان راوړلو تذکره موجوده او داسې نور...

همدارنګه دحضورﷺپه پاکو ويناوو کې ځای په ځای دپيريانو ذکر راغلی دی،چې تفصيل يې غيرضروري دی،دقران کريم او احاديث شريفه نه واضح کيږي چې:

١: پيريان يو مستقل مخلوق دی.

٢: ددوی له اور نه پيداشوي دي .

٣: دانسانانو په شان په دوی کې هم دتولد او تناسل سلسله جاري ده.

٤:دانسانانو په شان هغوی هم داحکامات الهيه وومکلف دي.

٥: دانسانانو په شان په دوی کې هم ځينې مومنان دي او ځينې کافر.

٦:دوی دانساني نظرنه پټ دي.

٧:دوی کې چې کوم کافراو سرکشه وي هغوی ته (شيطان)يا(مردة الجن)ويل کيږي.

٨:ددوی نيکه ابليس دی.

په قران کریم اواحادیث نبویه ﷺ کې چې دپیریانوپه باره کې څومره ذکرشوی دی که هغه مخې ته کیښودل شي ،نویومستقل کتاب پرې لیکل کیدای شي اوعلمایې امت په دې موضوع باندې کتابونه هم لیکلي دي،چې په هغو کې(اکام المرجان فی احکام الجان)په عربي کې یومشهورکتاب دې،کوم کسان چې په قران کریم اورسول الله ﷺباندې ایمان لري دهغوی خو دپیریانودوجودمنلونه پرته بله لارنشته اوکوم خلک چې ددوی دوجودنفې کوي دهغوی سره ددې نه پرته بل دلیل نشته چې مخلوق ددوی له سترګونه پټ دی،له دې وجې نه که دااصول صحیح وي چې کوم شی په نظرنه راځی، نودهغه نه دې انکاروکړل شي ،نویواځې دپیریانودوجودنه بلکې دبې شمیره شیانو دوجود نه به انکارکول وي،کوم چې په سترګوپه نظر نه راځي،په دې کې په اول نمبر دانسان خپل روح دی،کوم چې هیچاپه سترګونه دی لیدلی ،موجوده سائنس دداسې جراثیموانکشاف کړی دی چې که هغوی په لکونوچنده لوی هم شي ،خوبیاهم دهغو په نظرراتلل مشکل ذي، که دااصول صحیح وي نوخلکوته مشوره ورکول پکاردي چې دټولونظرنه راتلونکو شیانونه دې انکاروکړي،خو ماته پته ده چې داسې مشورې ته به تاسواحمقانه مشوره ووایئ، ځکه که داشیان عاموانسانانوته په نظرنه راځي، خو اثاراوقرائن ددې دوجودپته ورکوي،که داسائنسي دروبین یاخوردبین باندې نظرراتلونکی یوې ورکوي.شان جرثومې باندې ایمان راوړل واجب دي اوددې نه منونکی احمق دی ،نودنبوت په دوربین اوخوردبین سره چې دکومو شیانو مشاهده کولوسره دهغو دوجودخبرورورکړل شوی دی ،دهغو په وجودباندې ایمان راوړل ولې ضروري نه دي؟اوددې نه منل ولې حماقت نه دی؟ دنه منونکو په لاس کې له دې نه پرته بل هیڅ دلیل نشته چې دهغوی کوتاه نظرددې شیانو دمشاهدې کولونه قاصردی.

زماستاسونه ګیله ده چې دپیریانو د وجود بحث ته تاسودسائنسي پیداکړل شویو شکونو کې ولې ځای ورکړ؟ سائنس خو(دمادیات ترحده پورې)دعلم اوتحقیق نوم دی،هرکله چې دپیریانو دوجود نه نفی په علم اوتحقیق باندې مبني نه ده،بلکې دناواقفي اوجهل په بنیاد باندې ده، دپیریانووجوددځنې سائنسي اصول سره نه ټکرېږي اونه سائنسي اصول دپیریانو دجودنفې کوي، زموږ ددې جدید دور یومصیبت دادی چې په دې کې د ،،جهل ،،نوم علم کیښودل شوی دی اوداخبره زماپه علم کې نه ده چې ددې دوجود نفې باندې ددلیل په طورسره وړاندې کیږي، ګویادافرض کړل شوې ده چې که موږ ته پته نه وي، نوداګڼل پکاردي چې په واقعې کې هغه دخپل وجودنه هم محروم دي،دا ددې ددور جدید هغه منفرداصول دي چې ددې په ذریعه حقائق اوواقعات په ډیرجرات سره دروغ ګرځول کیږي.

دویم بحث داچې ایاپیریان په انسانانوباندې کیناستی شي؟ددې ځواب دادی چې عقلاً هیڅ شی ددې مانع نه دی،نن دمسمریزم اوعمل تنویم په ذریعه چې دنیا دکومو عجائباتو مشاهده کوي هغه دهیڅ یوصاحب عقل نه پټه نه ده،نو که یوکس په یوخاص

مشقي عمل سره خپل معمول مسخرکولی اودلږ ساعت له پاره بې عقل کولی شي اودهغه دروح سره خبرې کولی شي اودهغه نه چې غواړي خبرې ويستلی شي ،نوڅه وجه ده چې ددې امکان نه دې انکاروکړل شي،دغه هرڅه جنات هم کولی شي،هرکله چې دانسان اودپيري دقوت مقابله دميږي اوفيل مقابله ده، کوم تصرف چې کمزوری ميږی کولای شي ولې ترې انکاروکړل شي چې هم هغه تصرف فيل هم کولای شي؟

داخبرې خوپه امکان باندې وې،ترڅوپورې چې دواقعې تعلق دی په دې کې هيڅ شک نشته چې په دې باره کې زموږ ډيرخلک دتوهم پرستۍ ښکاردي اوپه معمولي طبي مرضونوباندې هم ، ،دپيريانودناستې شک کوي،دځينې صحيح معالج طرف ته رجوع کولوپه ځای دغلط قسمه عاملانوپه چکرکې داسې بندشي چې ترمودو مودو پورې ددې جال نه يې خلاصيدل نه نصيب کيږي،خو دعوامودفضول توهم پرستۍ علاج دانه ده،چې د واقعاتونه دې هم انکار وکړل شي،واقعه داده چې په ځينو شاذ ونادر حالاتوکې د پيريانو اثرهم کيږي،په قران کريم کې دوه ځايه ددې ذکرراغلی دی،يوپه سورت بقره کې دسودخورو ذکرکولوکې يې فرمايلي دي:

الَّذِينَ يَأْكُلُونَ الرِّبَا لَا يَقُومُونَ إِلَّا كَمَا يَقُومُ الَّذِي يَتَخَبَّطُهُ الشَّيْطَانُ مِنَ الْمَسِّ. (البقره:٢٧٥)

**ترجمه**:کوم کسان چې سودخوري هغوی به په قيامت کې نه پورته کيږي ،خودهغه چا په شان چې حواس يې ورک شوي وي، دپيريانودناستې له امله. (ترجمه شيخ الهند)

حضرت مفتي محمد شفيع صاحب رحمه الله ددې ايت په تفسير کې ليکلي دي:

ارشاد دی چې کوم کسان سودخوري،هغوی نه درېږي خوداسې درېږي، لکه هغه کس چې شيطان پيري خبط کړی وي،په حديث کې دي چې د دريدونه مراد محشرکې دقبر نه پورته کېدل دي،چې سودخورکله دقبرنه پورته کيږي ،نودهغه پاګل اوليوني په شان به وي چې شيطان ليونی کړی وي.

ددې جملې نه يوه خبره معلومه شوه چې دجناتو او شيطانانو داثرنه انسان بې هوشه ياليوني کيدای شي اوداهل تجربه متواتر مشاهدات په دې باندې ګواه دي اوحافظ ابن قيم جوزي رحمه الله ليکلي دي چې طبيبانواوفلاسفه ووهم دامنلې ده چې صرع،بيهوشي ياجنون دمختلفو اسبابوله وجې نه وي،په دې کې بعضې وختونوکې دپيريانواوشيطانانوداثرسبب هم وي، کوموخلکوچې ددې نه انکارکړی دی ،دهغوی سره دظاهري استبعاد په ځای نورهيڅ دليل نشته.(معارف القران ج:١ ص:٦٤٧)

دويم ځای سورت انعام کې دهدايت پريښودلواوګمراهي اختيارو نکومثال ورکولوکې فرمايل شوي دي:

كَالَّذِي اسْتَهْوَتْهُ الشَّيَاطِينُ فِي الْأَرْضِ حَيْرَانَ لَهُ أَصْحَابٌ يَدْعُونَهُ إِلَى الْهُدَى ائْتِنَا. (الانعام: ٧١)

**ترجمه**: دهغه چا په شان چې شيطان په ځنګل کې بې لارې کړی وي، اريان دريان ګرځي
په داسې حال کې چې دهغه ملګري بلنه ورکوي ، چې راشه زموږ خواته!

دلومړي ايت نه معلومه شوه چې پيريان کيني، نودبنده نه مخبوط الحواس جوړوي اوپه دويم ايت کې هم ددې مخبوط الحواسي مثال ذکرشوی دی چې شيطان هغه دلارې نه بې لارې کړي،هغه حيران اوپريشان ګرځي اودهغه ملګری هغه ته اوازونه کوي چې موږ دلته يو موږ ته راشه،خوهغه دخپلې مخبوط الحواسی په وجه دهغوس اوازونو ته توجه نه ورکوي.
پاتې شو ستاداشک چې: پيريان يواځې په منونکوباندې ولې کيني؟ستاداشک هم په اصل کې دناواقفيت له وجې نه ده،تقريب فهم له پاره عرض کوم چې دمثال په طورديودور افتاده دښته کئې اوسېدونکي صحرايي تصوروکړه،هغه ته څه خطرناکه بيماری لګيږي،خوهغه مسکين دخپلې ناواقفي له وجې نه نه پوهيږي چې دهغه دمرض اسباب څه دي؟دهغه دعلاج صحيح تدبيرڅنګه کيدای شي؟ظاهره ده چې دهغه ددې جهل په وجه دمرض داسبابو اوعلتونو نه نفي کول به هيڅ طورسره صحيح نه وي،ددې مثال به وروسته دابيان کړم چې په امريکه اويورپ کې دنفيساتي مريضانوڅومره بهتات دی،هغه الحمدلله زموږ طرفونوته نشته،په دې ملکونوکې دداسې مريضانوله پاره لويې لويې شفاخانې هم موجودې دي، دعلاج معالجې سهولتونه هم ښه ډيردي،داعلی درجې ماهرين اومتخصصين هم موجود دي، نفسياتی معالج ديوبل نه ښه موجود دی،خو ددې ټولووشيانوباوجودپه هغوی کې د نفسيايي مريضانوتعدادورځ په ورځ په زياتيدودی اودهغوی هيڅ دارو نه دواء کيږي او تا دابن قيم په ژبه دطبيبانواوفلاسفه وو فيصله اوريدلې ده چې ددې نفسياتي امراضوپه اسبابوکې اسيب اوداسيب اثرهم کيدای شي،هرکله چې جديدمغرب ددې سبب نه منکردی اوعرض مې درته کړی دی چې ددوی ددې انکاروجه دجهل نه پرته نورهيڅ نه ده،ماته ددې خبرې اجازه راکړئ چې دجديدمغرب مثال دهغه صحرايي په شان دی چې دمرض داصل سبب نه بې خبره اوجاهل دی،لطيفه داده چې کوم خلک ددې مرض داصل سبب نشاندهي کوي داجاهلان هغوی پورې ټوکې کوي،تاسووواياست!چې په داسې صورت کې به دهغوی مريضان لاعلاجه نه وي نونوربه څه وي؟ داويل چې:انګريزان اوروسان دپيريانودوجودنه منکردي ددې وجې نه په هغوی باندې پيريان هم نه کيني،حقيقت ته ورته خبره نه ده،بلکې صحيح داده چې په مشرق کې پيريان په لکونوکروړونوکې په يوکس کيني،خو په مغرب په په زرګونوکسانوباندې ناست دي اوبې شميره کسان يې مخبوط الحواس اونفسياتي مريضان جوړکړي دي ،فرق که دی نوداچې مشرق،دپيريانودوجودقايل دياودنفسياتي مرضونوپه فهرست کې پيريان کيناستل هم شماري اوددې صحيح تشخيص په وجه باندې

هغوی په علاج کې هم کامیاب دي،الاماشاءالله،ددې برعکس مغرب دخپلې ناواقفی،تعصباوجهل په وجه باندې دنفسیاتي مرضونوکې اهم سبب نه تشخیص کولی شي اونه ددې دعلاج قدرت لري،خو څومره ستم ظریفی ده چې تاسوقصوروار مشرق ګڼئ اودمغرب جهل هنر تصورکوئ اوپه دې ښکاره خبره باندې سوچ نه کوي چې که په مغربیانوباندې پیریان نه کیني، نودمشرق په مقابله کې ددې لاعلاجه نفسیاتي مریضانودومره ګڼ شمیرولې دی؟

## دمذهب اوسائنس ټکر

پاتې شوداسوال چې:ایامذهب اوسائنس په یوځای تللی شي؟

ارمان چې فرصت وای، نوپه دې نکته به مې په تفصیل سره لیکل کړي و،خودلنډه یواځې ستاپه ځواب کې دومره عرض کوم چې که دمذهب نه مرادغیرفطري اوباطل مذهبونه وي کوم چې دمثال په طور، ،درې یواویودرې، ،په شان نظریاتوباندې خپل بنیادونه اوچت کړي دي، نو زما ځواب په نفی سره دی،دسائنس په مقابله کې داسې پخواني اوفرسوده مذهبونه له دې سره نه شي تللی اوکه مذهب نه مراد دین فطرت وي دکوم اعلان چې خالق فطرت په (ان الذین عند الله الاسلام) سره کړی دی ، نوزماځواب دادی چې مذهب دسائنس سره تللی شي اوروان دی اوانشاء الله ځی به،ځکه که سائنس(واقعتاً سائنس وي)درموزفطرت نه دپردواچتولونو دی،اسلام په خپله فطرت دی(فطرة الله التی فطر الناس علیها)

فطرت کله هم دفطرت سره ډغره نه خوري،ددې وجې نه اسلام ته دسائنس نه هیڅ خطره نشته،بلکې واقعه داده چې سائنس داسې ډیراسلامې نظریات فهم ته نزدې کړي دي کوم ته چې به دپخوانی زمانې انسان دحیرانتیاپه نظرسره کتل،هم ددې ځای نه زموږ په دې یقین کې اضافه کیږي چې اسلام پرته دڅه شک نه دخالق له لوري نازل شوی فطري دین دی اوکه سائنس دانان څه داسې خبره کوي چې داسلام دقطعي نظریاتوسره ډغره خوري، نوزموږ یقین دی چې هغوی دفطرت خلاف وایي،که نن نه وي نوسبابه په هغوی باندې دخپلې نظریې غلطیدل اوباطل کیدل ښکاره شي،خوهغوی نه ددې وجودختمولای شي او نه ددې رڼاغائبولای شي،اسلام دپوره انسانیت له پاره دهدایت لمردی،ړانده ددې نه سترګې پټولای شي ګمراه اوکج روخلک دخپلونظریاتو دوړې اوچتولای شي ،خو داوریځې به په هرحال لیرې کیږي اوداسلام دلمر رڼاګانې به په هرحال پرقیدلې وي.

غرض داچې:دسائنس هیڅ صحیح نظریه داسلام سره ډغره نه خوري اوکوم نظریات چې په ظاهرکې داسلام سره متصادم په نظرراځي هغه دسائنس فطري نظریات نه دي،بلکې یاخو ورته خام خیاله خلکودهوا اوهوس، ،سائنسي نظریې، ،نوم ورکړی دی،یاهغه دتحقیق اوتجسس دخلا او نور دواړو ترمنځ دسفردرمیانه منزلونه دي، کوم چې په غلط فهمي

اوعجلت پسندي کې ،،حرف اخر،، ګڼل شوي دي،له دې وجې نه زموږ ځوانانوته ددې شکونو او شبهاتو په تیاروکې دهلته او دلته ګرځیدوضرورت نشته،ددوی سره دمحمدصلی الله علیه وسلم راوړل شوی قطعي پیغام هدایت اود فطرت دین موجوددی،ځمکه اواسمان دځپل ځای نه لیرې کیدای شي ،خوپه پیغام محمدي ﷺ کې دوینبنته برابر دکمي زیاتي ګنجائش نشته،ضرورت ددې خبرې دی چې زموږ ځوانان دې دایمان اویقین په غیرمتزلزل قوت باندې ځانونه ښائسته کړي اومځکې دې ځي، په ځپله دې مسلمانان جوړشي اوسائنس دې هم مسلمان کړي،دسائنس مثال دتورې په شان دی،که داداسلام دغازیانوپه لاس کې وي نودجهادفي سبیل الله کاربه ورکوي اوکه دشوکمارو په لاسوکې وي نوپه فسادفی الارض کې به نوره اضافه کوي.والسلام.

## دسائنس دانا نو دالحاداسباب

**سوال:** ماهنامه،،بینات،،کراچی بابت ماه جمادی الاولی ۱۳۹۳هجری کې دجناب پروفیسرمجتبی کریم صاحب یومضمون دسائنس په ابتدائي معلوماتوباندې خپور شوی دی،موصوف په اولني پرګراف کې لیکلي دي:

ویل کیږي چې دسائنس لوستونکی دهري وي،خوواقعه دانه ده،که دسائنس اصولوته په غورسره وکتل شي .

دالله تعالی دقدرت کرشمې چې ولیدل شي ،نو پرته داعتراف کولونه به لاره نه وي،سائنس دانانوباندې دهریه کیدوالزام لګول غلط دي.

**جواب:** زماپه خیال کې داخبره جزءي طورسره خوصحیح ده،ځکه چې په امریکه، یورپ، روس اوکمیونسټ ملکونو کې اکثرسائنسدانان نیم ملحد اوددهري نظریې والا په نظر راځي،په دې کې شک نشته چې دسائنس ایجاداتوعقل حیران کړی دی اوپه مادی سطح باندې دانسان دراحت اوسهولت دوه صورتونه په وجودکې راغلل،دکوم چې څه موده مخکې تصورهم نه شو کیدای ، خوسائنس دان دحقیقت کبری پورې رسایي نه محروم دی.

دایټم زره ځیرولوسره اودهغه بنیادي عناصراوپه هغو کې پټ قوت موندلوکې هغوی ضرورکامیاب شوي دي،خودانسانیت اجزاء ترکیبي اودهغوی دقدروقیمت معما هغوی نه حل شوې نه ده،هغوی دټولوعلویاتواوسفلیاتودنظام ارتقائي کړي په ډیرمحنت سره تلاش کړي دي،خوپه ځپله دانسان دمعراج ارتقاء اومبداء اومنتهاڅه ده ؟ددې ځواب هغوی ته معلوم نه شو،هغوی دمخلوق دیویوشي خواص اواوصاف ولټول خودانسانیت اخلاق اواقداراوددې دجوړیدو اوورانیدواسباب دجستجونه هغوی همیشه عاجز دي، انسان دمختلف اعراض اوجواهرو دپیمائش له پاره الات ایجادکړل،خودپیمائش انسانیت پیمانه دهغوی دلاسونو نه پریوتله اوماته شوه،هغوی په ډیرحساس خوردبینونو باندې

ترټولو واړه جراثیم ولیدل خوهغوی ته دخودشناسی خوردبین په لاس ور نه غی، چې په هغه کې ورته دخپل نفس څه جرمونه په نظرراغلي وی، غرض داچې دسائنس ترقی یوه دنیابدله کړه، خوافسوس چې دمشرق اومغرب ملحد سائنسدانان دخداشناسی اوانسان شناسی ددولت نه محروم پاتې شول، بیشکه همدارنګه کیدل پکارنه و، خو وشو اودټولوپه وړاندې کیږي، داسې ولې وشو؟ددې ولې ځواب دچا (خضر راه) نه معلوم کړئ، دحضرت موسی علیه السلام اوحضرت حضر علیه السلام کومه کیسه چې په قران پاک کې ذکر شوې ده، په دې کیسه کې دحضرت حضر علیه السلام یوه فقره په صحیح بخاري حدیث کې مروي ده، دکومې سره چې داعقده حل کیږي، یعنې حضرت موسی علیه السلام چې کله دطالب علم په حیثیت سره دحضرت حضر علیه السلام سره درفاقت وړاندیزوکړ، نوددې په ځواب کې حضرت حضر علیه السلام وفرمایل:

"یاموسی إني علی علم من علم الله علمنیه لا تعلمه أنت، وأنت علی علم من الله علمک الله، لاأعلمه. (صحیح بخاری ج:۲ ص:۶۸۸)

**ترجمه**: اې موسی! زه دالله تعالی دطرف نه راکړل شوي یوداسې علم باندې یم په کوم چې ته نه پوهیږې اوته دالله تعالی دطرف نه درکړل شوي یوداسې علم باندې حاوي یې په کوم چې زه نه پوهیږم.

اوپه دویم روایت کې ددې په ځای داالفاظ دي:

"أما یکفیک أن التوراة بیدیک؟ وأن الوحی تاتیک؟ یاموسی! إن لی علمًا لا ینبغی لک أن تعلمه وإن لک علمًا لا ینبغی لی أن أعلمه" (ج:۲ ص:۶۸۹)

**ترجمه**: ایاستاله پاره دومره کافي نه ده چې ستاپه لاسونوکې تورات دی اوداچې تاته وحې هم راځي؟ اې موسی! زماسره چې کوم علم دی دهغه زده کول ستاشایان شان نه دی اوتاسره چې کوم علم دی په هغه باندې حاوي کیدل زمادوس خبره نه ده.

دحضرت حضر علیه السلام په دې حکیمانه فقره کې چې په څه باندې پوهول شوي دي دهغو دتشریح له پاره لاندیني نکات دې ملحوظ وساتل شي:

۱: دالله تعالی دطرف نه دوه قسمه علمونه ورکړل شوي دي:

یو دمخلوق - داسراراورموزو، دشیانواوصافاودفوائداونقصاناتوعلم، کوم ته چې، علم مخلوق، یا، علم تکوینی، ویل کیږي، ټول انساني علمونه اوددې په سوونوشعبې ددې، علم مخلوق، ښاخونه دي، خودمعلومات خداوندي په مقابله کې دانسان دامخلوقي علم دسمندرپه مقابله کې دقطرې اودغره په مقابله کې دیوې ذرې نسبت هم نه لري.

دویم هغه علم کوم چې خالق مخلوق دذات اوصفات، دهغه دمرضیاتو اونامرضیاتواود انسان دسعادت اوشقاوت ښکارندويي کوي دې ته، علم الشرائع، یا تشریعی علوم، ویل کیږي.

۲: دادواړه علمونه هم دالله تعالی دطرف نه بندګانو ته ورکول کیږی،خوددواړوذرائع بېل بېل دي،دلومړي قسم له پاره احساس،عقل.تجربه ،فهم اوفراست ورکول شوی دی اوکوم ځای ته چې دانسان دعقل اوسوچ رسېدل کیدای نه شي هلته وحي اوالهام سره دده رهنمائي کیږي،لکه دانسانْ ددنیاوي ژوندسره متعلق دټولو علمونومبادیات دوحي اوالهام په ذریعه ښودل شوي دي( وعلم ادم الاسماء کلها) نور داچې په انساني فطرت کې عقلي اوتجرباتي علمونوکې دترقي کولو پ ره استعدا ایښودل شوی دی،دهمدې علم یوه شعبه حضرت حضر علیه السلام ته وهبي طورسره ورکړل شوه اودخالق مخلوق دذات وصفات دمعرفت اودهغه دمرضیات اونامرضیات پیژندګلوي چونکه دانساني ادراک نه پورته وه.ددې په وجه ددې مداریواځې په عقل اوتجربه باندې کېښودل شو،بلکې ددې دتعلیم له پاره دانبیاء کراموعلیهم السلام یوه مستقله سلسله جاري .شوه،دکومې شروع چې دحضرت ادم رحمه الله نه وشوله اوانتهاء یې په حضرت محمد صلی الله علیه وسلم باندې وشوه،حضرات انبیاء کراموته دمعرفت،ذات اوصفات،مبداء ومعاد،سعادت وشقاوت،فضائل ورذائل،عذاب وثواب تفصیلاتوباندې وحي په ذریعه خبر ورکړل شو،دهغوی په وړاندې الله تعالی پورې درسیدو صفاسوتره لاره پرانستی شوه،دوی ددې صراط مستقیم په دعوت باندې مامور شول اوداحضرات ادم داولاد مقتدایان جوړ شول اودپوره انسانیت سعادت اوشقاوت ددوی دقدمونوسره وتړل شو،هم داهغه علم و کوم چې موسی علیه السلام نه ورکړل شوی و.

۳:انبیاءکرام چونکې دانساني ورور ولی یومعززه ډله ده اوهغوی سره هم ددې ژوندضروریات په هرحال لاحق دي،له دې وجې نه هغوی دانسان ددنیوي حاجاتونه بې خبره نه دي نه دکسب معاش حوصله شکني کوي اونه له ژوندسره دمتعلقه علومو نفي کوي، بلکې دضرورت په اندازه په ځپله هم کسب معاش کوي،خو دژوندپه حرکت ،سکون او کسب معاش په هرطورطریقې باندې په دې نقطه نظرسره بحث کوي چې دادالله تعالی په نزد خوښ دي او که نه ؟اوداداخرت دمسافرله پاره دلارې توښه ده،یادهغه منزل ته نقصان ورکوي؟غرض داچې هغوی دژونددهرې شعبې په باره کې هرکس ته هدایات ورکوي، جایز او ناجایز ښیي،دښه اوبدښکارندوي کوي،خوپه خپله څه علم اوفن خپلهِ موضوع نه جوړوي، بلکې،،انتم اعلم بأموردنیاکم،،ویلوسره مخکې ځی،ګویاددنیاڅه علم یافن او فلسفه اوسائنس موضوع جوړول دهغوی داعلی اوارفع شأن نه فروترشي دی،همدا مطلب دحضرت حضر علیه السلام ددې ارشاددی چې:اې موسی!ماسره چې کوم علم دی دهغه زده کول ستاشایان شان نه دی،همدا وجه ده چې دمادیاتوکومه ترقي ددوی دامتیانو په لاسونووشوه په خپله دهغو حضراتو لاسونه په دې کې ملوث نه شولاوغالباً همدغه نکته ده چې ترکومې پورې ددین دترقی تعلق دی حضور صلی الله علیه وسلم دهغې محنت پایه تکمیل پورې ورسوله اوکله چې

په ده باندې دفتوحاتودروازه پرانستل شوه نولاسونه يې وښندل اوله دنيايې تشريف يوړ اوداكاريې خپلوخليفه ګانوته حواله كړ.

۴: په انبياء كراموعليهم السلام باندې چې كوم علمونه پرانستل شوي وو هغه يواځې دهغوی له پاره نه دي،بلكې ټول انسانيت دهغو محتاج دی.ددې وجې نه ددنياترټولو دانشور، حكيم،سائنس داناوفيلسوف داعلوم دانبياء كراموعليهم السلام له وساطت نه پرته نه شي حاصلولی ،دعام انسان همدغه كمال دی چې هغوی دعلوم نبوت څه برخه دهغه حضراتوپه ذريعې سره حاصله كړي ،خونه هغوی دټول علوم نبوت احاطه كولی شي اونه دانبياء كراموعليهم السلام نه مستغني كيدای شي اونه دعلوم نبوت څه كرشمه ورته نصيب كېدای شي،هم دغه مطلب دحضرت حضر عليه السلام ددې ارشادی چې:اوتاسره چې كوم علم دی په هغه باندې حاوي كيدل زمادوس خبره نه ده،كه دپرائمري طالب علم درياضي ګرانو مسائلو يادايټمي نظريې تشريحاتوباندې پوهيدو نه قاصردی، نوپه دې كې دهغه مسائلوڅه قصورنشته،بلكې دطالبعلم ذهني كمزوري ده،دانبياء كراموپه وړاندې دټولې دنياعقلاء،حكماء،افلاطوناوجالينوس طفل مكتب دياونه د ددوی اساتذه فطرت(عليهم السلام)نه مستغني كيدای شي اونه په دې علمونوباندې دحاوي كيدوحوصله لري.

دفلسفې اوسائنس ماهرين، چې دعلم اودانش ،عقل اوفهم په كومه مرتبه باندې فائزدي ،ددې په وجه دمخلوق له رنګونو په نسبت دنورو نه زيات واقف اودفطرت د نيرنګينو (چل اوفريب) سره زيات اشنا دي،دهغوی نه دا توقع بې ځايه نه وه چې هغوی به دقدرت خداوندي په وړاندې دټولونه زيات سرپه سجده وي،درسالت اونبوت ضرورت اواهميت اودانبياء كراموقدر اومنزلت دټولونه زيات په هغوی باندې ښكاره كيږي اووحي الهي سره كومه چې په انبياء كراموباندې نازليږي دټولونه زياته استفاده هم هغوی كوي.

انبياء كرام عليهم السلام سره وفاداري،وجان نثاري ،اطاعت اودفرمانبرداري مظاهره دټولونه زياته دهغوی له طرف نه وي،خو دبدقسمتي نه دسائنس قيادت چې دچاپه لاسوكې راغلی دی هغوی دمعرفت دروازې ته چې ورغلل نو وروسته شول اوهغوی دانبياء كرامو عليهم السلام اطاعت شرم وګڼه اودتعليمات نبوت نه يې داستغنامظاهره وكړله،

همدارنګه ارشادخداوندي: **واضله الله على علم** .(اوګمره كړل الله تعالى دوی له علم سره سره) په دوی باندې صادق راځي،دقديم دور فلاسفه دانبياء كرامودعظمت قايل وو ،خودهغوی وينا وه چې دوی خودعوامودا صلاح له پاره رالېږل شوي دي، كله چې موږ دتهذيب اوتربيت په منصب باندې فائزيو،نو دنبوت نه داستفادې ضرورت باقي نه پاتې كيږي"**ونحن قوم هذبنا انفسنا**" دنوي دور فلاسفه (سائنس دانان)په غروراوتكبركې له هغوی نه زيات ترقي يافته ثابت شول،هغوی انبياء كرام عليهم السلام اودهغوی مشن ته په سپك نظر وكتل،

دانبياء کرامو عليهم السلام دزهد اوقناعت اوددنياسره بې رغبتي دکوم دعوت چې دانبياء کرامو خاص موضوع وه،دهغو نه يې دنفرت اوبيزاري اظهاروکړ اومخصوص علوم چې انبياء کرامو ته ورکړل شوي وو،دهغو په باره کې يې نه يواځې شک اوشبه بلکې ضداو عنادهم ښکاره کړ چې په نتيجه کې نه يواځې دايمان له نورنه محرومه شول بلکې دانسانيت داعلى اخلاقي اقدارونه يې هم لاسونه ووينځل اوس ددوى محنت،انساناوانسانيت په ځاى په خاوره اودخاورې نه راوتوتکيو شيانوباندې خرچ کيږي،شيان جوړيږي اوانسانيت ورانيږي.

سائنس دخپلې ټولې ترقۍ باوجود دامغرور سائنسدانان ددهريت اوالحاد له غولي بهر نه کړاى شول،بلکې ددې برعکس دوى دسائنس ملحد اودهري جوړولوکې کامياب شول،دسائنس دنيم پوخته اونيمګړيو نظرياتو په وجه چې( نن په ډيرزور اوشورسره دهغو دثابتولوکوشش کوي اوسبا ددې غلط ثابتيدو باندې دلائل ورکوي)دسائنس ډيرو زده کوونکودا اسلام په مقابله کې دهريت ته په لالچي نظر سره کتل شروع کړي دي،همدارنګه دهريت اوبې ديني دسائنس فيشن جوړشو،دانبياء کرامو عليهم السلام په مقابله کې ددې سائنس دانانو دمتکبرانه عادت سبب دماديت غلطه نشه ده،دسائنس عالمانو دافرض کړه چې دماديت داترقي،دا روښانتيا،داسيارې اوطيارې،داايټم اوقوت دانسانيت کمال اوخير بس يواځې هم په همدې شيانوکې دس،په فضا کې الوتل.په دريابونوکې لامبو وهل، سپوږمۍ ته رسيدل.دلمرطول اوعرض ناپ کول او دزهره اومُشتري خبرراوړل،بس دغه دانسانيت اخري معراج دى اوداترقي دانبياء کرامو په زمانه کې نه ده شوې ،ځکه يواځې دا نه چې دسائنس دور،ددورنبوت نه افضل دى،بلکې دا ترقي يافته خلک په خپله دټولو انسانونه بهتردي اودې پروپيګنډې (افواه) ته دومره هوا ورکړل شوه چې نن ډيرمسلمانان هم موجوده دور ته(مهذب دور)اوپخوانى دورته (چې دانبياء کرامودور و)په تو دورسره تعبير کولو باندې نه شرميږي(انالله وانااليه راجعون)!

سره له دې چې دنبوت نه کټ کيدوسره په کومه ترقۍ چې نن دنيا په جاموکې نه ځاييږي دانبياء کرامو په نظرددې قيمت دماشي دوزر برابرهم نه دى.

دحضور ﷺ ارشادمبارک دى:

**"لوكانت الدنيا تعدل عندالله جناح بعوضة لما سقى كافرًا منها شربة".** (مشكوة)

**ترجمه**: که دالله تعالى په نزد دپوره دنياقيمت دماشي دوزر برابر هم واى. نوهيڅ کافرته به يې يوغړپ اوبه هم نه وې ورکړې.

دانبياء کرامو عليهم السلام په وړاندې داخرت نه ختميدونکې ژوندى،دکوم ځاى د نعمت اولذت اوراحت ارام چې تصورهم دلته نه شي کېداى،دانسان هيڅ داسې خواهش نشته چې هلته به پوره نه شي اوهيڅ قسمه غم اواندېښنه داسې نشته چې دهغې دلاحق

کیدو خطره دې هلته وي، داسې ژوند چې دمرګ به هیڅ ویره نه وي، داسې صحت چې دمرض به هیڅ خطره نه وي، داسې څواني چې دبوډاوالي(زړښت) تصوربه هم نه وي، داسې راحت چې دتکلیف نوم به هم نه وي، سلطنت دومره لوی چې دهغه په مقابله کې داځمکه اواسمان هیڅ حیثیت نه لري، ظاهره ده چې دچادسترګوپه وړاندې داخرت دابې حده اوبې حسابه ژوند دخپلو ټولو نعمتونوسره وي، هغه چې زموږ له سختیواوحوادثونه ډک ژوندپه په لوبې اوتماشې سره تعبیرنه کړي، نوله دې نه زیات صحیح تعبیرڅه کیدای شي؟قران کریم بار بار داسې ویلو سره انسانیت دغفلت له خوب نه رابیدارکړی دی:

وَمَا هَٰذِهِ الْحَيَاةُ الدُّنْيَا إِلَّا لَهْوٌ وَلَعِبٌ وَإِنَّ الدَّارَ الْآخِرَةَ لَهِيَ الْحَيَوَانُ لَوْ كَانُوا يَعْلَمُونَ.(العنكبوت:٦٤)

**ترجمه**:او داددنیاژوند(په حقیقت کې)له لهواولعب نه پرته نورهیڅ نه دی، اصلي ژوندعالم اخرت دی اوکه ددې پته ورته وای ،نوداسې به یې نه کول(چې په فاني کې مشغول شي اوباقي هیره کړي).(بیان القران)

دځلورو پنځوکالوماشوم که دلرګي یوڅوټکړې له یوې اوبلې خوا راجمع کړي اوګډوډ دسپوږمۍ ګاډی(چاندګاړی)ترې جوړکړي، نودالوبه دهغه دذهانت دلیل ده اوکه پلاریې هم دزوی په نقالي کې همدارنګه ګاډي جوړل دخپل ژوندموضوع جوړه کړي، نودا ذهانت نه دې، بلکې دلیونتوب علامت ده،تاسوواړه ماشومان روزانه په شګوخاوروکې کورونه جوړولوباندې وینئ اوکه یوه ورځ یومشرصاحب هم دغه مشغله باندې ووینئ، نوددې صاحب په باره کې به ستاسورایه څه بل ډول وي؟دټوکر وړې وړې ټوټې راجمع کول اودهغې نه دګوډیانو(لانځکو) له پاره جامې جوړول د وړو ماشومانو جینکو خوښه مشغله ده اود هغوی دحوصله افزایي له پاره مورهم کله کله دهغوی رهنمایي کوي، خو که بیګم صاحبه ټول کارونه پریږدي اودګوډیانولوبې دخپل ژوندهدف جوړکړي، نوورته دعلاج ضرورت دی،

بالکل همداسې ددنیاپوره ژونددخپلې ښکلا او فتنو سره سره دانبیاء کراموعلیهم السلام په نظرکې یوه لوبه ده اوکوموکسانوچې دالوبه دخپل ژوند واحدمقصدجوړکړ اوټول محنت یې یواځې په همدې باندې خرچ کیږي او یواځې ددې له پاره ګرځي اومري اوژوندی کیږي اګرکه ډیرې کارنامې وکړي اونوي نوي ایجادونه وکړي، یالوی لوی جمهوریتونه چلوي خودانبیاء کراموعلیهم السلام په نزد ددوی انسانیت دعلاج وړ دی.

قُلْ هَلْ نُنَبِّئُكُمْ بِالْأَخْسَرِينَ أَعْمَالًا, الَّذِينَ ضَلَّ سَعْيُهُمْ فِي الْحَيَاةِ الدُّنْيَا وَهُمْ يَحْسَبُونَ أَنَّهُمْ يُحْسِنُونَ صُنْعًا. (الكهف :١٠٣،١٠٤)

**ترجمه**::تاسو ﷺ(دوی ته )ووایئ چې ایاتاسوته داسې خلک وښایم دچاکارنامې چې دټولو نه زیاتې په تاوان کې دي؟(نوواورئ)داهغه خلک دي دچاچې په دنیاباندې شوی محنت هم

دلته ضائع شو او هغوی د جهل په وجه په دې خیال کې دي چې هغوی ډیر ښه کار کوي.

غرض دا چې د انبیاء کرامو علیهم السلام په دورکې په خپله د هغوی په لاس د مادي ترقۍ نه کیدو وجه دا نه ده چې د هغوی دور د نن دور په نسبت_نعوذبالله_تیاره او غیرمهذب و او د انسانیت د ارتقاء ابتدایي منزلونه یې طی کړي نه وو، بلکې د دې اصلي سبب دا دی چې د هغوی د بلندترین منصب او عظیم هدف په مقابله کې د مادیت دا ټوله لوبه د ماشومانو د لوبې په شان حیثیت لري، انبیاء کرام دا یې مونږ لوله پاره نه وو راغلي، بلکې هغوی هغه اوچت ذات سره انسانیت اشناکوي د چا په وړوکې شان اشارې، کن، کې په زرګونه ایتمونه پټ دي، د هغوی نظریواخې د مخلوق په باهمي ربط کې نه وي، بلکې په دې باندې غورکوي چې د دې مخلوق، خالق قدرت سره څه ربط دی؟ د هغوی موضوع په شیانو باندې محنت نه وي، بلکې په انسان سازۍ باندې محنت وي، د هغوی په نزد د دې چیټرو هیڅ حیثیت نشته، کوم چې د دنیانابالغه خلکو په ډیرښایست سره په الماریوکې ایښي دي، د دې خاورینوکورکیو هیڅ قیمت نشته، چې د نادان ماشومان یې نقش ونګارسره ښائسته کوي او د دنیا ظاهري ښکلا و جلا کې د هغوی له پاره هیڅ کشش نشته، په کوم باندې چې دا بې عقله ماشومان مین دي، هغوی ته پته ده چې د دې اصلي حقیقت څه دی؟ هغه دیوې فناکیدونکې خاورینې غونډۍ نه پرته هیڅ هم نه ده، د دې حقیقت اظهار هم هغوی په دا سې الفاظو سره کوي:

"مالي و للدنيا؟ وما أنا والدنيا إلا كراكب إستظل تحت شجرة ثم راح وتركها" (مشكوة)

**ترجمه**: زما له دنیا سره څه ؟زما او د دنیا مثال خو دا سې دی لکه چې یو مسافر دیوې ونې د سورې لاندې کیناست، لږ وخت یې ارام وکړ، بیا یې هغه پریښود او روان شو، (او بیا کله هم ورته د دویم ځل راتلو ضرورت پیښ نه شو)

او کله خلک په دې لوی حقیقت باندې دا سې پوهوي:

"كن في الدنيا كأنك غريب أو عابر سبيل وعد نفسک في أهل القبور." (صحيح بخاری)

**ترجمه**: په دنیا کې دا سې اوسیږئ ګویا تاسو دلته دیو څو ورځو مسافریئ او دا سې وګڼئ چې تاسو د اهل قبور په صف کې شامل یئ، (نن که نه وي نو سبا به ستاسو نوم هم وا نه خستل شي)

مابعدالطبیعات نه ړوند او کوڼ سائنس، د چا په نزد چې یو شی منلو له پاره د هغه شی مشاهده کول او په لاس سره کتل شرط دي، چونکه په حقیقت باندې د پوهیدو نه عاجز دی، د دې وجې نه هغوی د (ایمان بالغیب) د ټولې نبوي سرمایې د خندا نذرکوي او هم د دې ځای نه د هغوی د ملحدانه شفقت اغاز کیږي.

غرض دا چې د سائنس دانانو د ټولې محرومي باعث د ، ،نبوت، ، نه انحراف دی او د دې انحراف وجه جهل او غرور ده، که په دوی باندې د دې مخلوق پټ حقیقت ښکاره شوی وای، نو دوی ته به معلومه شوې وه چې مخلوق یوا ځې دا نه دی د کوم تعلق چې د مرګ نه مخکې

دمشاهدې سره دی، بلکې داخواصل دمخلوق یوه وړه شان ذره ده، که داصل مخلوق اوبیادمخلوق نه وروسته دخالق مخلوق رازپه دوی باندې منکشف شي ،نودوی ته به معلومه شي چې په کربونه ډالرخرچ کول او دسپوږمۍ نه یوه دړې خاوره راوړل دترقۍ علامه نه ده ،بلکې دسفاهت اوکم عقلۍ نشان دی، دنبوت دلمن نه کټ کیدوسره ددې سائنس دا ، ،سفیهانه محنت، ،انسانیت ته دبې قرارۍ ،ناخوښۍ، کرب واضطراب تحفه ورکړې ده اوددې نا ارامۍ دوختي ارام له پاره دمختلف قسم مصنوعي تفریحاتو اومنشیاتو نسخه یې تجویزکړه، دنن مفلوج انسان چې دکوم اخلاقي، روحاني، نفسیاتي، جسماني مرضونو نمونه جوړه شوې ده اهل عقل ته ددې تجزیه کول پکار دي . چې په دې کې دسائنسي ترقۍ برخه څومره ده؟زماخپل دا ایمان دی چې ترڅوپورې دسائنس داکوششونه دنبوت تابع شوي نه وي اوترڅوپورې چې سائنس دانان دانبیاء کرامو علیهم السلام په وړاندې دخپل علمي عجزاعتراف ونه کړي ترهغو پورې به سائنس هم هغه شان ملحدوي اوددې ټول ترقیاتي کارنامه به دانسانیت دهلاکت اوبربادۍ په کارراځي، پاتې شوداسوال چې سائنس دنبوت دلمنې سره تړل ممکن دي؟ددې ځواب دمسلم سائنس دانانو دجرات اوهمت اوفهم فراست په انتظاردی.

دسائنس جدیدنظریاتوتر ټولو لوی دهریت نوازسائنس دان هم د ، ،وجودخدا ، ،په اعتراف کولوباندې مجبورکړی دی، (اګرچې هغوی دومره جرات نه لري چې په ښکاره ددې اعلان وکړي) خوداهم هیرول نه دي پکار چې یواځې د ، ،وجودخدا ، ،مبهم تصورددهریت ددې مارخوړلو له پاره تریاق نه دي.نه محض دې تصورسره یوبنده ته ، ،خداپرست ، ،ویل کیدای شي ،بلکې هغه لره به دایمان اویقین په رڼاکې نورې مرحلې هم طی کول پکاروي، یعنې دخدایي صفات څه دي؟ددې عالم دتخلیق مقصدڅه دی؟هغه دانسان دښېګړې اوبدۍ څه معیارتجویزکړی دی؟

## دالقران ریسرچ سنټر د تنظیم او ددې د باني محمد شیخ شرعي حکم

**سوال:** مولاناصاحب! نن سبایوه نوې فتنه دقران سنټرپه نامه سره ډیره په ترقۍ ده،ددې باني محمدشیخ په انګلش کې بیان کوي اوددین دضروریاتو نه انکارکوي،موږ په دې انتظارکې ووچې:اپ کے مسائل اورانکاحل، ،کې به ستاسوڅه مفصل تحریرخپور شي خواپ کے مسائل کې دیوې زنانه دسوال نامې په ځواب کې تاسومختصرشان ځواب مې ولوست،اګرچې هغه تحریرترڅه حده پورې کافي و ،خوپه دې سلسله کې دتفصیلي تحریر اوس هم ضرورت دی، که تاسوڅه داسې تحریرلیکلي وي یاخپور شوی وي، نو هغه راته وښایئ اوبیا دامت مسلمه په دې سلسله کې رهنمایي وکړئ!

**جواب:** ستاسو خبره صحیح ده: ،،اپ کے مسائل اور انکا حل،، کې زمایو مختصر شان ځواب خپور شوی وا ودد وستانو اصرارو چې په دې سلسله کې یو مفصل تحریر راتلل پکار دي، چنانچې زما یو مفصل تحریر په ماهنامه ،،بینات،، کراچۍ کې ،،بصائر و عبر،، کې خپور شوی دی، مناسبه ده چې دا تحریر دعامې فائدې له پاره دلوستونکو په خدمت کې وړاندې شي.

د هندوستان د مسلمانانو دا خواهش او مینه وه چې یو داسې ازاد ریاست او ملک ورته په ګوتو ورشي چېرته چې مسلمانان په ازادۍ سره د قران وسنت قانون نافذ کړای شي او هغوی ته په دین او دیني شعائرو کې څه خنډ (مانع) نه وي، چونکه د مسلمانانو جذبه نېه وه له دې وجې نه په دې کې ځوانانو، بوډاګانو، عوامو او خواصو او عالم او جاهل ټولو برابر یو شان کوشش ونه کول.

په اخره کې دلکونو سرونو او عزتونو له قربانۍ نه وروسته په ۱۴ اګست ۱۹۴۷ کې دیو مسلم ریاست په حیثیت سره پاکستان په معرض وجود کې راغی، دقیام پاکستان مقصد داسلامي نظام حکومت یعنې حکومت الهیه دقیام باور ورکړل شوی و، دکوم چې عنوان و :(پاکستان کا مطلب کیا؟ لااله الاالله) او دا یوه داسې نعره وه چې دکومې زیر اثر ټول مسلمانان دهر قسمه قربانیو له پاره تیار وو، تر دې پورې چې هغه مسلمانان دچا علاقې چې دتقسیم هند نه وروسته دهندوستان په حدودو کې راتلې هغوی هم ددې په قیام کې له هر چانه مخکې وو، خو: (اے بسا ارزو که خاک شده) څومره موچې علاج کاوو هغومره مرض زیاتیده، په شان نن د پنځوسو کلونو نه زیات وخت تیرید وسره سره د پاکستان مسلمانانو ته اسلامي نظام حکومت حاصل نه شو، اناالله وانا الیه راجعون!

برعکس پاکستان ورځ په ورځ مسائلستان جوړیده، په دې کې مذهبي، سیاسي ، روحاني ، هر قسمه فتنې پیدا کیدل شروع شول، یو طرف ته په انګلینډ کې د مرتد رشدي فتنه رپورته شوه، نو دویم طرف په پاکستان کې دیوسف کذاب په نامه یو بدباطنه دنبوت ددعوې سره میدان ته راوت، همدارنګه په بلوچستان کې ذکري مذهب ایجاد شو، چاچې هلته کعبه او حج جاري کړ، دلته رافضیت او خارجیت هم ترقي کړې ده، دلته شرک او بدعاتو والا هم شته او دساز او سرود والا هم، په دې ملک دګوهرشاهي په نامه یو ملعون هم شته دچا مریدانو ته چې په شپوږمۍ کې دهغه تصویر په نظر راځیا وپه خپله هغه ته په متیازو کې دخپل مصلح شکل په نظر راځی، په دې کې یو بدبخته عاصمه جهانګیر هم شته چې دتحفظ حقوق انسانیت په نامه باندې دڅومره جینکو دعزت لوپټې یې شلولې دي.

همدارنګه په دې ملک د ،،جماعت المسلمین،، په نامه هم یو جماعت شته چې د پوره امت تجهیل او تحمیق کوي، دلته دډاکټر مسعود اولاد هم شته چې دخپل ځان نه پرته بل څوک مسلمان ګڼلو ته تیار نه دي، دلته دغلام احمد پرویز اولاد هم شته چې امت دذخیره

احاديث نه بدظن كول اوځان وروسته لګول غواړي اوددې ټولونه مخکې اوډيرمخکې يوه نوې فتنه اونوې ډله ده دکوم تارونه اګرچې دغلام احمدپرويزسره ملاويږي. خوهغوی په ګڼوشيانوکې غلام احمدپرويزهم روسته پريښی دی،غلام احمدپرويزامت له احاديثو د منکرولو ناکام کوشش کړی واووسره يې په ځوقراني ايتونوباندې هم دخپلو باطلو تاويلاتو تيشه چلولې وه،خوددې نوي جماعت اونوې فتنې سربراه محمدشيخ خوتقريباً دپوره اسلامې عمارت دراغورځولواراده کړې ده، هغه دتورات، زبور،انجيل اونوروآسماني کتابونو دوجودنه اود حضورﷺ په نورانبياء کراموباندې فضيلت اواوچتوالی اود نورو انبياء کرامو دمادې وجودنه منکردی،بلکې هغه په اصل کې د مرزاغلام احمدقادياني په شان دنبوت دعويداردی،خودغلام احمد قادياني ناکام حکمت عملي په دويم ځل کول نه غواړي،ځکه چې هغه دغلام احمدقادياني په شان نيغ په نيغه دنبوت اوعقيده اجراء اودوجې دعوه کولوسره دقران اوسنت اوعلماء امت په پنجه کې ځان راګيرول نه غواړي،په دې خوهغه هم پوه دی چې دنبوت وحې بنده شوې ده اوکوم کس چې دحضورﷺ نه وروسته دځان له پاره اجراء وحې اودنبوت دعوه وکړي هغه دجال،کذاب اوواجب القتل دی،له دې وجې نه محمدشيخ ددې عنوان بدل کړ اويې ويل چې کوم کس چې په کوم وخت کې قران لولي،په هغه باندې دقران هم هغه برخه نازليږي اوچېرته چې په قران پاک کې ، ،قل، ،ويل شوي دي هغه دهمدغه انسان له پاره ويل کيږي،همدارنګه هغه دهرکس دنزول وحې په شان جوړول اودخپل ځان له پاره دنزول وحې اواجرايي نبوت په معامله کې دخلکوپه نظرکې سپکولوکوشش کوي،لکه هغه داداسې هم تعبيروي:

نبيان ،دالله تعالی پيغام رسوي اودخلکواصلاح کوي اوزه هم دغه کارکوم.

نعوذبالله!منصب نبوت دومره سپکولوکوشش کولاودجرات کول چې زه هم همدغه کار کوم چې۔نعوذبالله۔انبياء کرامو به کاوو،نواياددنبوت دعوه اومنصب نبوت باندې ګيناستلو ناپاکه کوشش کول نه دي؟

دخلکو نفسيات هم عجيبه دي،که هغوی په منلوباندې راشي، نويوداسې کس چې دهيڅ اعتبار قابل نه دی،دچاشکل اوشباهت هم دمسلمانانوپه شان نه دی،دچااوسيدل چې داسلافو سره تعلق نه لري،دمغربی ابليس نقل کول يې شعار وي،اسوه نبوي سره يې يوه ذره هم مناسبت نه وي،دهغه چال وډال،رفتار وګفتاراولباس پوشاک نه هيڅوک داندازه نه شي لګولی چې داکس مسلمان هم دی اوکه نه؟

او بله لاداچې دنصوصو نه صريح منکروي اود فاسدو تاويلاتوپه ذريعه اسلام.ته دکفر اوکفرته داسلام باور ورکولوپه کوششونوکې دغلام احمدقادياني غوږونه پريکوي، دا جرايي نبوت نه يواځې قايل وي بلکې ددې داعي اومنادی هم وي،

هغه د ټولو اسماني کتابونو نه منکر دی، هغه د انبياء کرامو د مادي وجود قايل نه دی، د حضور ﷺ د روحاني وجود ګډوډ ښکاره کولو سره د نبوت او رسالت او مادي وجود نه هم انکاري دی، د بني اسرائيلو په نبيانوکې حضرت موسی عليه السلام ته په حضور ﷺ باندې ترجيح ورکوي.

ذخيره احاديث ته من ګړت (هسې خوشې) کيسې وايي او ناقابل اعتبارې ګڼي، غرض دا چې د اسلامې عقائدو د هر جزنه انکاري او دنوي دين دوړاندې کولو کوشش کوي او خلک دې چې دده د عقيدت او اطاعت صفتونه کوي او دی خپل مشر او راهنما ګڼي.

ددې برعکس بل طرف ته د الله تعالی قران دی، د نصوصو او حديثونو ذخيره ده، د حضور ﷺ اسوه حسنه او د صحابه کرامو رضوان الله اجمعين د سيرت او کردار لويه لاره ده او اجماع امت ده، چې په څه و څه و د انسانانو د هدايت او راهنمايي خطونه متعين کوي. خو ددوی د ازلي محرومي له پاره دا هر څه د اعتماد وړ نه دي.

څومره د شرم خبره ده چې د ابد نصيبه د نبي اکرم ﷺ د اطاعت او فرمانبردارۍ په ځای په خپله غاړه کې د ملحد او بې دينه د غلامۍ پټۍ اچوي او د هغه امتي کيدو باندې، ،فخر، ، محسوسوي، افسوس په داسې عقل ،دين او مذهب باندې، د څه بنياد چې په الحاد او زندقه باندې وي، په کوم کې چې د قران او سنت په ځای د يو جاهل مطلق کفريه نظرياتو او عقائدو ته د سند درجه حاصله وي، رښتيا ده چې کله الله تعالی ناراضه شي ،نو عقل ترې هم واخلي، د رښتيا او دروغو تميز پکې ختم شي او د هدايت توفيق ترې واخستل شي.

د تيرې څه مودې راهيسې داسې شکايات په اوريدو دي چې ساده ګان مسلمانان ددې فتنې ښکار کيږي، په دې سلسله کې د څه ليکلو خيال مې راغی ،نو يو صاحب راقم الحروف ته د دارالعلوم کراچی فتوا راوړله او غوښتنه يې وکړه چې ددې فتنې خلاف دې اواز پورته شي، ځکه چې حکومت او انتظاميه ددې فتنې په ختمولو کې ډير غير سنجيده او بې حسه دی، هر کله چې د افتنه ورځ په ورځ نوره هم زياتيږي، څومره د افسوس خبره ده چې که يو کس د باني پاکستان يا موجوده وزيراعظم په شان کې د ګستاخي ارتکاب وکړي، نو د حکومت پوره مشينري په حرکت کې راشي، خو دلته د قران او سنت او دين متين او حضرات انبياء کرام او د نبوت نه انکار کيږي او د هغوی په شان کې نامناسبې خبرې کيږي ،خو حکومت پرې بيخي غور هم نه کروي.

ځکه راته مناسبه معلومه شوه چې هر هغه تحرير خپور شي چې دا دواړه تحرير رايو ځای کړي چې ورسره د مسلمانانو دين او ايمان محفوظ شي او خلک ددې فتنې له خطر نه باخبره او بچ وساتل شي.

د راقم الحروف مختصر ځواب اګرچې د روزنامه جنګ په کالم ،اپ کے مسائل اور ان کا حل، کې خپور شوی دی، خود دارالعلوم فتوا خپره نه شوله، له ټولونه مخکې ديوې داسې ښځې جوړه کړای شوې سوال نامه ده چې مخامخ لَه دی فتنې نه متاثره شوې اوله دې نه

وروسته زماځواب دی اوپه اخره کې ددارلعلوم کراچۍ ځواب دی اودټولونه په اخره کې اختتامي کلمات دي ،خو ددارلعلوم کراچۍ په فتوا کې دقراني اياتو اونورونصوصو ترجمې نه وې. د عامې فائدې له پاره دقراني ايتونواوعربي عبارتونو ترجمې هم شوي دي دقراني ايتونوترجمه دحضرت تهانوي له ترجمې نه اخستل شوې ده.

## سوال نامه

**سوال:** محترم مولانا محمد يوسف لدهيانوي صاحب!السلام عليكم ورحمة الله وبركاته!

حال څه داسې دی چې دیومسلمان په حیثیت سره اوخپلې دیني فریضې ګڼلوسره اودین دنقصان نه بچ کولوله پاره اوددې دعقائدو دعمارت ورانولوچې کوم کوششونه روان دي دهغو متعلق غلط فهمي لرې کولوله پاره ترخپله حده پوره کوشش کول غواړم.

محترم!دلته دیوځو نام نهاده تنظیمونو له لوري نه پمفلټ،اډیو-ویډیو کیسټوپه ذریعه داسې لټریچر خپرېږي چې هغه سره یوه لویه طبقه خلک دشکوکو ،شبهاتو اوبې یقینۍ دکیفیت ښکارکېږي.دپاکستان - چې داسلامې فلسفې د فکرپه ذریعې سره حاصل شوی و - په کراچۍ ښار کې یوتنظیم (القران ریسرچ سنټر)په نامه سره تیروشپږو اوو کلنو راهیسې قائم دی.ددې تنظیم بنیادي عقائدپه لاندې ډول دي:

۱:ددنیاپه وجودکې دراتلونه مخکې دانسانیت دښیګړې له پاره قران پاک په معجزانه طورپه یوځای په دنیاکې موجود و،په مختلفونبیانوباندې مختلف کتابونه نازل شوي نه و ،بلکې دې کتاب ته،یعنې قران پاک ته مختلفو زمانوکې مختلف نومونه ورکړای شول؛کله تورات،کله انجیل اوکله دزبورپه نامه.

قران چې څوک اوکوم وخت کې لولي په هغه باندې هغه وخت کې نازلیږي اوچېرته چې (قل)ویل شوي دي هغه ددې انسان له پاره ویلی شوي دي چې لولي یې.

۲:دانبیاوو علیهم السلام هیڅ مادي وجودنشته،هغوی دې دنیاته نه دي رالیږل شوي، بلکې هغوی یواځې دانساني هدایت له پاره د(symbols)په طورسره استعمال شول اودموجوده دنیاسره دهغوی هیڅ تعلق نشته،په قران کې هغوی دانسان درهنمایي له پاره یواځې دفرضي کردار او کیسوپه شکل کې موجوددي.

۳: قران پاک کې چونکه حضور ﷺ ته په زمانه حال یعنې( present)کې خطاب شوی دی لهذابحثییت روح حضور ﷺهرځای اوهروخت موجود دی اوهغه دمادي وجودنه مبرادی اونه و.

۴: حضور ﷺ ته نور و نبیانوباندې هیڅ فضیلت حاصل نه دی اونه د نورو نبیانو برابر دی، بلکې حضرت موسی علیه السلام په ځینومعناوو اوحیثیتونوکې یعنې قران پاک دبنی اسرائیلو او حضرت موسی په کثرت سره ذکرکړی دی چې دهغه په وجې سره دهغه فضیلت

په حضور ﷺ باندې زیات دی، دحضور ﷺ په باره کې چې هرڅومره احادیث اوتاریخ اوتفسیرموجوددی هغه دانسانانو له لورې جوړې شوې کیسې دي.

داټول عقائدمخې ته کیږدئ اودقران اوسنت په رڼاکې دافتوا ورکړئ چې:

١: داعقائدداسلام په نظر صحیح دی او که نه؟

٢: ددې خپلونکی مسلمان پاتې کېدای شي؟

٣: دداسې تنظیمونو بایدمخ نیوی وکړای شي؟

۴: دداسې کس دښځې له پاره څه حکم دی؟دچاعقائدچې دقران اوسنت مطابق وي چې په نبیانوباندې اوټولووکتابونوباندې، داخرت په ورځ باندې اوحدیثونوباندې مکمل یقین اوایمان لري؟

۵: په اخره دمسلمانی په نامه یوه غوښتنه کوم چې داسې کس سره دې پوره مناظره وکړل شي څوک چې دادعوه کوي چې موږ سره څوک دخبروکولوجرات نه لري، ځکه چې موږ رښتوني مسلمانان یو.

یوه خور، کراچئ،

## دراقم الحروف ځواب

**جواب:** السلام علیکم ورحمة الله وبرکاته!

زماخورې!دادفتنوزمانه ده اوکوم کس چې په ذهن کې چې کومه رائې هغه دهغې بیانول شروع کوي اوزه پوهیږم چې دادسلف بیزاری اوانکارحدیث نتیجه ده، کوم خلک چې دحدیث نه انکارکوي هغوی دپوره دین نه انکارکوي اودداسې خلکوپه باره کې په خپله رساله (انکارحدیث کیوں؟) کې مالیکلي دي چې:

،،دحضور ﷺ دپاکو ارشاداتوسره بې پروایی اودهغه په اقوالو پورې ټوکې کونکو په باره کې اعلان شوی دی چې ددوی په زړونوباندې خدایي مهرلګیدلی دی چې دهغه په وجه دوی دایمان اویقین اورشداوهدایت استعدادورک کړی دی اوددې خلکوټول کوششونه د نفسي خواهش دپیروی ترحده پورې محدوددي .لکه چې الله تعالی فرمایي:

وَمِنْهُمْ مَنْ يَسْتَمِعُ إِلَيْكَ حَتَّىٰ إِذَا خَرَجُوا مِنْ عِنْدِكَ قَالُوا لِلَّذِينَ أُوتُوا الْعِلْمَ مَاذَا قَالَ آنِفًا أُولَٰئِكَ الَّذِينَ طَبَعَ اللَّهُ عَلَىٰ قُلُوبِهِمْ وَاتَّبَعُوا أَهْوَاءَهُمْ .(محمد:١٦)

**ترجمه**: اوځینې کسان داسې دي چې دحضور ﷺ طرف ته یې غوږونه نیولې وي، تردې پورې چې هغوی ستاسونه پورته شي اوبهرته ووځي، نونوروااهل علمو سره(ستاسو ﷺ د ارشاداتو دتحقیرپه طورسره)وایي چې حضرت دا اوس څه خبره کړې وه! داهغه خلک دي چې الله تعالی ددوی په زړونوباندې مهرونه لګولي دي اودوی په خپلو نفساني خواهشاتو

باندې چلیږي. (ترجمه حضرت تهانوي)

قران کریم صفاصفاداعلان وکړچې: انبیاء کرام ﷺ یواځې ددې مقصدله پاره رالیږل شوي دي چې ددوی اطاعت دې وکړل شي. دحضور ﷺ د اطاعت نه انکاراود هغه د ارشاداتونه مخ اړول ګویا انکار رسالت دی اوهمدارنګه دهغه (صلی الله علیه وسلم) اطاعت نه انکارکونکی دانکاررسالت مرتکب دی.

دحضور ﷺ اقوالونه چې کله هم قران وحي خداوندي وايي :(**وما ینطق عن الهوی، إن هو إلاوحی یوحی**)اودحضور ﷺ کلماتونه چې کله هم قران (ګفته اوګفته الله بود) مرتبه ورکوي . نو وواییځ چې دحدیث نبوي په حجت کیدوکي دڅه شک اوشبهې ګنجائش پاتې کیږي؟ اوایا دحدیث نبوي نه انکارکونکي،باندې په خپله دقران.نه انکارنه لازمیږي؟
او ایا په فیصله نبوت کې بدلون په خپله په قران کې بدلون به نه وي؟اوپه دې باندې هم غورکول پکاردي چې قران کریم هم امت دحضور ﷺ دژبې مبارکې نه اوریدلی دی اوپه هغه یې ایمان راوړ. اود حضور ﷺ دافرمان چې داقران دی ،دا ارشادخوهم حدیث نبوي دی اوکه حدیث نبوي حجت نه دی ،نودقران کریم ،قران کیدل به څنګه ثابتیږي؟

اخر دا کومه دعقل اوپوهې خبره ده چې ددې مقدسې او معصومې ژبې نه صادریدونکې یوه خبره خو واجب التسلیم وي او دویمه نه ؟

امیرشریعت سید عطاءالله شاه بخاري رحمه الله په یوه موقعه باندې فرمایلي و:

"دازمادمحبوب(ﷺ)کمال و ،چې هغه ﷺ وفرمایل چې:دا دالله تعالی کلام دی او دا زما کلام دی، که نه موږ خودواړه دیوې ژبې نه اوریدلي دي"

کوم خلک چې داوايي چې: قران حجت دی، خوحدیث حجت نه دی،دې ظالمانوته څوک ووايي چې څنګه دایمان په معامله کې دخدای اورسول ترمینځه تفریق نه شي کیدای، چې یودې ومنل شي اودویم دې ونه منل شي، همداسې دکلام الله اوکلام رسول په مینځ کې دفرق کولوګنجائش نشته،چې یو دې واجب الاطاعت ومنل شي اودویم نه،یوچې منې نوبل به په هرصورت کې منل وي اوپه دوی کې دیوانکارکول به په خپله دبل نه انکارشي،خدایي غیرت دانه خوښوي چې دهغه دخبرې دمنلودې دعوه وکړل شي اودهغه دنبي ﷺ کلام دې ردکړل شي اوداسې ظالمانوخلاف صفاصفااعلان کوي:

فَإِنَّهُمْ لَا يُكَذِّبُونَكَ وَلَكِنَّ الظَّالِمِينَ بِآيَاتِ اللَّهِ يَجْحَدُونَ. (الانعام:۳۳)

**ترجمه**: اې نبي ﷺ :داخلک ستاسوکلام نه ردکوي ،بلکې داظالمان دالله تعالی له ایتونو نه منکردي.

لهذاکوم کسان چې په الله تعالى باندې دايمان لرلواودکلام الله دمنلودعوه کوي ،هغوی ته به خامخاپه رسول اوکلام رسول ﷺ باندې هم ايمان راوړل وي.که نه دهغوی دايمان دادعوه غلطه ده
دکوم تنظيم چې تاسوذکرکړی دی ددې عقائدو لرونکي مسلمانان نه دي.ځکه چې دوی ددين دپورد عمارت دراغورځولو کلکه اراده کړې ده.نور داچې دوی دټولو شعائراسلام او قران اوحديث اوانبياء اوپه هغوی باندې نازل شويو کتابونونه انکارکړی دی اوکوم کسان چې داسلامي عقيدې نه انکاروکړي اوپه هغه کې باطل تاويلات وړاندې کوي اوخپل کفرته داسلام جامه ورکوي ،هغوی ملحداوزنديق دي،[1] اودکافراومرتدنه زيات بددي.ځکه چې هغوی دچيلی (بزې) په نامه دخنزيزغوښه خرڅوي اوامت مسلمه ته دوکه ورکوي اودهغوی اسلام خرابوي. په همدې وجه که زنديق ونيول شي اوتوبه اوباسی ،نودهغه دتوبې اعتبار نشته[2]. دحکومت پاکستان فرض دي چې داسې کسان دالحاد او زنديقت نه منع کړي که دوی منع شي ،نوښه ده ،که نه داسلامي قانون مطابق په ارتداد دې دوی ته دزندقيت سزاورکړل شي.
داهل ايمان دوی سره رشته اوتعلق جائزنه دی.که په دوی کې دچاپه نکاح کې څوک مسلمانه ښځه وي ،نودهغې نکاح هم فسخ کيږي.[3]
او پاتې شوه دمناظرې خبره ،داسې کسانو سره مومناظرې هم وکړلې،خوددوی په زړونو کې چې کومه خبره ښه شوې ده هغه يوائې دقبرخاوره اودجهنم اور لېرې کولی شي،والله اعلم

## ددارالعلوم کراچۍ ځواب

## الجواب حامداً مصلياً

۱.۲:په سوال کې ذکرشوي اکثرعقائددقران ، سنت اواجماع امت دتصريحاتو او موقف نه بالکل خلاف دي، له دې وجې نه که په يقين سره ديوکس داسې عقائدوی، نوهغه کافر او د اسلام له دائره نه خارج دی اوددې منونکي هم کافران اود اسلام له دائره نه خارج دي.
مذکوره نظريات اوعقائددقران اوسنت سره باطل دي لاندې ترتيب اوتفصيل سره دې وکتل شي

---

[1] قد ظهر ان الكافر اسم لمن لاايمان له....وان كان مع اعترافه بنبوة النبي صلى الله عليه وسلم واظهاره شعائرالاسلام يبطن عقائد هي كفر بالاتفاق خص باسم الزنديق. (شرح مقاصد ج٢ ص٢٦٨)

[2] ان الزنديق لو تاب قبل اخذه، اى: قبل ان يرفع الى الحاكم تقبل توبته عندنا وبعده لا اتفاقاً. (فتاوى شامى ج٤ ص٢٣٦، مطلب مهم فى حكم ساب الانبياء)

[3] مايكون كفراً اتفاقاً يبطل العمل والنكاح ...الخ (فتاوى شامى ج٤ ص٢٤٦، عالمگيرى ج٢ ص٢٨٣)

۱: دا(ويل چې قران پاک ته په مختلفو زمانوکې مختلف نومونه ورکړل شوي دي،کله تورات،کله انجيل،کله زبور اوپه مختلفو زمانوکې مختلف کتابونه نازل نه دي شوي) دا کفريه عقيده ده، ځکه چې دا دامت اجماعي عقيده ده چې دصحف اسماني نه پرته څلور اسماني کتابونه دي اوپه قران کريم کې ددې تصريح موجوده ده .له قران کريم نه پرته درې اسماني کتابونه نوردي،په کوم کې چې تورات په موسیٰ عليه السلام ،انجيل په حضرت عيسیٰ عليه السلام اوزبورپه حضرت داود عليه السلام باندې نازل شوي وو، لهذاد قران نه پرته مذکور درې کتابونه دمستقل وجودنه انکارپه حقيقت کې دقران کريم دوجودنه انکاردی،په کوم کې چې ددې کتابونودمستقل وجود ذکردی، په لاندې ډول ددې ايتونه اوترجمې وګورئ:

"وَأَنْزَلَ التَّوْرَاةَ وَالْإِنْجِيلَ *مِنْ قَبْلُ هُدًى لِلنَّاسِ". (ال عمران ۳، ٤)

**ترجمه**:اوهغه له دې نه وړاندې تورات اوانجيل نازل کړي دي ، دخلکودهدايت له پاره. (ترجمه حضرت تهانوي رحمه الله)

"وَمَا أُنْزِلَتِ التَّوْرَاةُ وَالْإِنْجِيلُ إِلَّا مِنْ بَعْدِهِ". (ال عمران :۶۵)

**ترجمه**: او تورات او انجيل له هغه نه وروسته نازل شوي دي. (ترجمه حضرت تهانوي رحمه الله)

"وَآتَيْنَاهُ الْإِنْجِيلَ فِيهِ هُدًى وَنُور". (المائده:٤۶)

**ترجمه**::اوموږ هغه ته انجيل ورکړ،چې په هغه کې هدايت اورڼا وه.

"وَلْيَحْكُمْ أَهْلُ الْإِنْجِيلِ بِمَا أَنْزَلَ اللَّهُ فِيهِ". (المائده :٤٧)

**ترجمه**:اوانجيل والاوو ته پکارده چې الله تعالی په دې کې څه نازل کړي دي ،دهغه موافق فصله وکړي.

"وَإِذْ عَلَّمْتُكَ الْكِتَابَ وَالْحِكْمَةَ وَالتَّوْرَاةَ وَالْإِنْجِيلَ". (المائده: ۱۱۰)

**ترجمه**: اوچې ما تاته دکتاب اوپوهې دخبرو اوتورات اوانجيل تعليم درکړ.

"الَّذِينَ يَتَّبِعُونَ الرَّسُولَ النَّبِيَّ الْأُمِّيَّ الَّذِي يَجِدُونَهُ مَكْتُوبًا عِنْدَهُمْ فِي التَّوْرَاةِ وَالْإِنْجِيلِ". (الاعراف :۱۵۷)

**ترجمه**: اوهغه کسان چې دداسې رسول نبي امي اتباع کوي ،کوم چې هغوی دخپل ځان سره په تورات اوانجيل کې ليکلی شوی موندلی دی.

"وَلَقَدْ كَتَبْنَا فِي الزَّبُورِ مِنْ بَعْدِ الذِّكْرِ أَنَّ الْأَرْضَ يَرِثُهَا عِبَادِيَ الصَّالِحُونَ ".(الانبياء :۱۰۵)

**ترجمه**: او موږ (ټولو اسماني) کتابونه کې په لوح محفوظ کې (ليکلو) نه وروسته ليکلي دي چې د ځمکې (جنت) مالکان به زمانبه بندګان وي.

"وَلَقَدْ فَضَّلْنَا بَعْضَ النَّبِيِّينَ عَلَى بَعْضٍ وَآتَيْنَا دَاوُودَ زَبُورًا ".(الاسراء:٥٥)

**ترجمه**: او بې شکه موږ بعضونبيانوته په بعضوباندې فضيلت ورکړ اوموږ دواد (عليه السلام) ته زبور ورکړی دی.

" فَأْتُوا بِالتَّوْرَاةِ فَاتْلُوهَا إِنْ كُنْتُمْ صَادِقِينَ ".(ال عمران :٩٣)

**ترجمه**: بياتورات راوړئ ! هغه ولولئ که تاسورښتوني يئ.

"وَكَيْفَ يُحَكِّمُونَكَ وَعِنْدَهُمُ التَّوْرَاةُ فِيهَا حُكْمُ اللَّهِ ". (المائدة:٤٣)

**ترجمه**: اوهغوی په تاسو ﷺ باندې څنګه فيصلې کوي حالانکه هغوی سره تورات شته په کوم کې چې دالله تعالی حکم دی. (ترجمه حضرت تهانوی رحمه الله)

"إِنَّا أَنْزَلْنَا التَّوْرَاةَ فِيهَا هُدًى وَنُورٌ". (المائده: ٤٤)

**ترجمه**: موږ تورات نازل کړی و او په هغه کې هدايت او رڼا وه.

"وَقَفَّيْنَا عَلَى آثَارِهِمْ بِعِيسَى ابْنِ مَرْيَمَ مُصَدِّقًا لِمَا بَيْنَ يَدَيْهِ مِنَ التَّوْرَاةِ". (المائده:٤٦)

**ترجمه**: او موږ هغوی پسې ورو سره عيسی بن مريم په د سې حالت کې وليږه چې هغه له خپل ځانه مخکې د تورات تصديق کاوه (ترجمه حضرت تهانوی رحمه الله)

"إِنِّي رَسُولُ اللَّهِ إِلَيْكُمْ مُصَدِّقًا لِمَا بَيْنَ يَدَيَّ مِنَ التَّوْرَاةِ ".(الصف:٦)

**ترجمه**: زه تاسوته دالله تعالی راليږل شوی استازی يم.چې زمانه مخکې کوم تورات (راغلی) دی زه د هغه تصديق کونکی يم. (ترجمه حضرت تهانوی رحمه الله)

" وَمَنْ يَكْفُرْ بِاللَّهِ وَمَلَائِكَتِهِ وَكُتُبِهِ وَرُسُلِهِ وَالْيَوْمِ الْآخِرِ فَقَدْ ضَلَّ ضَلَالًا بَعِيدًا". (النساء :١٣٦)

**ترجمه**: اوکوم کس چې دالله تعالی نه ،دهغه له فرښتونه،دهغه له کتابونونه، دهغه له رسولانونه اودقيامت له ورځې نه انکار وکړي .بې شکه هغه کس په ګمراهۍ کې ډيرليرې پريوت. (ترجمه حضرت تهانوی رحمه الله)

"كُلٌّ آمَنَ بِاللَّهِ وَمَلَائِكَتِهِ وَكُتُبِهِ وَرُسُلِهِ". (البقره:٢٨٥)

**ترجمه**: ټول ايمان لري الله تعالی باندې.دهغه په فرښتو .دهغه په کتابونواودهغه په پيغمبرانو باندې.

اودا ویل چې: قران په کوم وخت کې لو ستل کیږي، نوپه هغه باندې هم هغه وخت کې نازلیږي او، ،قل، ، هم دهغه له پاره ویل کیږي چې یې لولي، ، داهم دتعبیرپه لحاظ سره غلط دي،ځکه چې قران کریم یوځل په حضور ﷺ باندې پوره نازل شوی دی اوددې اولین او اخرین مخامخ مخاطب حضور ﷺ دی ، اوس یې چې کوم کس لولي هغه دقران اولین او مخامخ مخاطب نه دی.بلکې دحضور ﷺ په واسطې سره مخاطب دی اوهم په دې اعتبار سره خپل ځان مخاطب ګڼل پکاردي.

۲:داعقیده هم کفریه ده (چې دنبیانوهیڅ مستقل وجودنه و) ځکه چې دقران کریم ګڼ شمیر ایتونه په دې باندې دلالت کوي چې دانبیاوومستقل وجود و.هغوی دنیاته دخلکو دهدایت له پاره رالیږل شوي وو اودبشریت په اعلی مقام باندې فائز وو.هغوی د عامو انسانانوپه شان په دنیاکې وخت تیرکړ. په هغوی کې بشري حوائج اومادي صفات موجود وو ، هغوی به خوراک څښاک کاوو.هغوی نکاح ګانې هم کولې اوالله تعالی دهغوی په لاسو معجزات هم ښکاره کړل. هغوی دالله تعالی په لاره کې جهادهم وکړ. داټول شیان داسې دي چې دخپل وجودله پاره دمادي اومستقل وجودغوښتنه کوي اوله دې نه پرته ددې وجوداوپه ظهور کې راتګ محال دی .لهذا داوینا چې: دانبیاوو مادي وجودنشته،په قران کې هغوی یوازې دفرضي قیصوپه صورت کې موجوددي. دا بالکل غلط اودقران اوسنت دنصوصو نه خلاف دي،په دې سلسله کې په لاندې ډول دقران ایتونه وګورئ:

"كَانَ النَّاسُ أُمَّةً وَاحِدَةً فَبَعَثَ اللَّهُ النَّبِيِّينَ مُبَشِّرِينَ وَمُنْذِرِينَ وَأَنْزَلَ مَعَهُمُ الْكِتَابَ بِالْحَقِّ لِيَحْكُمَ بَيْنَ النَّاسِ فِيمَا اخْتَلَفُوا فِيهِ". (البقره:۲۱۳)

**ترجمه**:اول خلک په یو دین باندې وو(بیاکله چې اختلاف پیداشو) الله تعالی نبیان راولېږل، زیري ورکونکي او وېرونکي وو اوله هغوی یې برحق کتابونه نازل کړل،چې داختلافاتو په هکله دخلکو ترمنځه فیصلې وکړي.

"وَمَا نُرْسِلُ الْمُرْسَلِينَ إِلَّا مُبَشِّرِينَ وَمُنْذِرِينَ ".(الانعام:٤٨)

**ترجمه**: موږ پیغمبران یوازې ددې له پاره رالیږلي دي ،زیری ورکونکي او وېرونکي.

" يَامَعْشَرَ الْجِنِّ وَالْإِنْسِ أَلَمْ يَأْتِكُمْ رُسُلٌ مِنْكُمْ يَقُصُّونَ عَلَيْكُمْ آيَاتِي وَيُنْذِرُونَكُمْ لِقَاءَ يَوْمِكُمْ هَذَا ".(الانعام:۱۳۰)

**ترجمه**: اې دپیریانواوانسانانوډلې:ایا تاسوته ستاسونه پیغمبران راغلي نه وو؟چې تاسوته به یې زمااحکام بیانول اوتاسوته به یې دننۍ ورځې له ملاقات نه یې وېرولئ.

(ترجمه حضرت تهانوي رحمه الله)

"وَلَقَدْ أَرْسَلْنَا رُسُلًا مِنْ قَبْلِكَ وَجَعَلْنَا لَهُمْ أَزْوَاجًا وَذُرِّيَّةً". (الرعد:۳۸)

**ترجمه**: اوموږ یقیناً ستاسونه مخکې ډیررسولان راولیږل اوموږ هغوی ته ښځې اوبچي هم ورکړل. (ترجمه حضرت تهانوی رحمة الله عليه)

"وَلَقَدْ بَعَثْنَا فِي كُلِّ أُمَّةٍ رَسُولًا أَنِ اعْبُدُوا اللَّهَ وَاجْتَنِبُوا الطَّاغُوتَ".(النحل:۳٦)

**ترجمه**: اوموږ په هرامت کې یونه یو پیغمبررالیږلی دی چې تاسودالله تعالی عبادت کوئ اودشیطان نه ځانونه ساتئ. (ترجمه حضرت تهانوی رحمة الله عليه)

"وَمَا كُنَّا مُعَذِّبِينَ حَتَّى نَبْعَثَ رَسُولًا". (الاسراء:۱۵)

**ترجمه**: اوموږ(کله)سزانه ورکوو، ترڅوپورې چې رسول ونه لیږو.

"وَمَا أَرْسَلْنَا قَبْلَكَ مِنَ الْمُرْسَلِينَ إِلَّا إِنَّهُمْ لَيَأْكُلُونَ الطَّعَامَ وَيَمْشُونَ فِي الْأَسْوَاقِ". (الفرقان:۲۰)

**ترجمه**: اوموږ چې ستاسونه مخکې څومره پیغمبران هم راليږلي وو، هغوی ډوډی هم خوړله اوبازارونوکې هم ګرځیدل. (ترجمه حضرت تهانوی رحمة الله عليه)

وَكَمْ أَرْسَلْنَا مِنْ نَبِيٍّ فِي الْأَوَّلِينَ * وَمَا يَأْتِيهِمْ مِنْ نَبِيٍّ إِلَّا كَانُوا بِهِ يَسْتَهْزِئُونَ (الخزفرف:۷،٦)

**ترجمه**: اوموږ مخکینوخلکوته هم ډیرپیغمبران لیږلي وو اودې خلکوته هیڅ یونبي داسې نه دی راغلی، چاپورې چې دوی ټوکې نه وي کړې.

"كَمَا أَرْسَلْنَا فِيكُمْ رَسُولًا مِنْكُمْ يَتْلُو عَلَيْكُمْ آيَاتِنَا وَيُزَكِّيكُمْ وَيُعَلِّمُكُمُ الْكِتَابَ وَالْحِكْمَةَ وَيُعَلِّمُكُمْ مَا لَمْ تَكُونُوا تَعْلَمُونَ".(البقره:۱۵۱)

**ترجمه**: څنګه چې په تاسوکې موږ یوعظیم الشان نبي درولیږه، چې تاسوته زموږ ایتونه(احکام)دراوروي اودجهالت نه ستاسوصفایي وکړي اوتاسوته دالله تعالی دکتاب اوپوهې خبرې ښیي اوتاسوته دداسې ګټوروخبروتعلیم هم درکوي چې تاسوته پرې خبر نه و. (ترجمه حضرت تهانوی رحمة الله عليه)

"وَقَالُوا مَالِهَذَا الرَّسُولِ يَأْكُلُ الطَّعَامَ وَيَمْشِي فِي الْأَسْوَاقِ".(الفرقان:۷)

**ترجمه**: اودا(کافر)خلک (درسول الله صلى الله عليه وسلم په باره کې)داسې وايي چې په دې رسول باندې څه وشول (چې زموږ په شان) خوراک کوي اوپه بازارونوکې ګرځي. (ترجمه حضرت تهانوی رحمة الله عليه)

"لَقَدْ مَنَّ اللَّهُ عَلَى الْمُؤْمِنِينَ إِذْ بَعَثَ فِيهِمْ رَسُولًا مِنْ أَنْفُسِهِمْ يَتْلُو عَلَيْهِمْ آيَاتِهِ وَيُزَكِّيهِمْ وَيُعَلِّمُهُمُ الْكِتَابَ وَالْحِكْمَةَ". (ال عمران:۱٦٤)

**ترجمه**: بې شکه الله تعالی په مسلمانانوباندې احسان کړی دی، چې په دوی کې یې ددوی

(د خپل قوم) نه پېغمبر رالېږلی دی .چې هغوی ته دالله تعالی ایتونه اوروي اوددوی صفايي کوي اوددوی ته دکتاب اوحکمت خبرې ورښيي.

"هُوَ الَّذِي أَرْسَلَ رَسُولَهُ بِالْهُدَىٰ وَدِينِ الْحَقِّ لِيُظْهِرَهُ عَلَى الدِّينِ كُلِّهِ". (الفتح:۲۸)

**ترجمه**: هغه داسې الله دی ،چې خپل رسول ته يې هدايت ورکړ .رښتونی دين(يعني اسلام) يې ورکړ اودنياته يې راولېږه چې په ټولودينونوباندې يې غالب کړي.(ترجمه حضرت تهانوی رحمة الله)

" رَسُولًا يَتْلُو عَلَيْكُمْ آيَاتِ اللَّهِ مُبَيِّنَاتٍ لِيُخْرِجَ الَّذِينَ آمَنُوا وَعَمِلُوا الصَّالِحَاتِ مِنَ الظُّلُمَاتِ إِلَى النُّورِ ".(الطلاق :۱۱)

**ترجمه**: يورسول مو(ولېږه)چې تاسوته دالله تعالی څرګند احکام اوروي ،چې داسې کسان څوک چې ايمان راوړي اوښه عمل وکړي دکفراوجهل دتيارونه دنورطرف ته راوباسي.

"لَقَدْ جَاءَكُمْ رَسُولٌ مِنْ أَنْفُسِكُمْ عَزِيزٌ عَلَيْهِ مَا عَنِتُّمْ حَرِيصٌ عَلَيْكُمْ بِالْمُؤْمِنِينَ رَءُوفٌ رَحِيمٌ ".(التوبه:۱۲۸)

**ترجمه**:(اې خلکو)تاسوته يوداسې پيغمبر راغلی دی چې ستاسو دجنس (بشر) نه دی،څوک چې ستاسو دنقصان خبرې يې خفه کوي اوستاسودګټې دخبروډېرخواهش مند دی.(داحالت خو دټولوسره دی خو) په ايمان دارو ډېرزيات شفيق اومهربانه دی.

"يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا لَا تَرْفَعُوا أَصْوَاتَكُمْ فَوْقَ صَوْتِ النَّبِيِّ وَلَا تَجْهَرُوا لَهُ بِالْقَوْلِ". (الحجرات:۳)

**ترجمه**::اې ايمان والاوو!تاسوخپل غږونه دپيغمبرله غږ نه مه پورته کوئ اومه له هغه سره داسې خبرې کوئ څنګه چې تاسوپه خپل مينځ کې کوئ.

په قران کريم کې حضور ﷺ په زمانه حال کې مخاطب شوی دی،ددې وجه داده چې په کوم وخت کې دقران کريم نازلېدل په حضور ﷺ باندې شروع و ،په هغه وخت کې حضور ﷺ دمادي وجودسره په دې دنياکې موجودو . له دې وجې نه په زمانه حال کې دحضور ﷺ سره خطاب شو ،ددې دامطلب نه دی چې هغه دروح په حيث هرچېرته موجوددی.

داعقيده ساتل چې په قران شريف کې دحال صيغه استعمال شوې ده. څکه نو حضور ﷺ دروح په حيث هرچېرته موجوددی اودمادي وجودنه پاک دی.دقران اوسنت دصريحو نصوصو اوداهل سنت والجماعت دموقف خلاف دي.عالمان ليکي: چې که ديو کس داعقيده وي چې:څنګه الله تعالی هروخت په هرځای کې موجوددی، همدارنګه حضور ﷺ هم هروخت په هرځای کې موجوددی، نوداښکاره شرک دی اودنصاراوو په شان رسول ته خدايي درجه ورکول دي اوکه يوکس ددې تاويل سره داعقيده لري، نوبياهم ددې عقيدې

په غلط او فاسد کيدو کې هيڅ شک نشته او داسې کس گمراه دی.(وگورئ :جواهرالفقه:ج:۱ ص:۱۱۵ تبريدالنواظر مصنف مولانا سرفرازصاحب مدظلهم)

۴: د اهل سنت والجماعت متفقه عقيده ده چې حضور ﷺ په مجموعي حيث سره د ټولو نبيانو نه افضل دی[1]، خو که په ځينو جزئياتو او واقعاتو کې که يو نبي ته څه فضيلت حاصل دی، نو هغه د دې سره معارض نه دی. څنګه چې حضرت موسی عليه السلام ته د خبرو کولو شرف حاصل دی او حضرت ابراهيم عليه السلام ته د ..خلت.. صفت حاصل دی او داسې نور... د اټول جزئي فضيلتونه د حضور ﷺ د مجموعي فضيلت خلاف او له هغه سره معارض نه دي.

اودا ويل چې: د حضور ﷺ په باره کې چې څومره احاديث، تاريخ او تفسير موجود دي. هغه د انسانانو جوړې شوې قيصې دي. په حقيقت کې د حديثونو نه انکار دی، کوم چې په دې کفر دی[2]، د امت محمدي په دې باندې اجماع ده چې حديث، د قران کريم نه وروسته د دين دويم اهم ماخذ دی[3]. قران کريم چې څنګه د الله رب العزت د احکامو واجب ګرځونکی دی[4]. همدارنګه د رسول الله ﷺ افعال او اقوال يې واجب الاطاعت ګرځولي دي، لهذا په قران پاک کې ډير داسې احکام دي د کوم تفصيل چې په قران کې موجود نه دی، رسول الله ﷺ په حديثونو کې د دې تفصيلات او په دې باندې د عمل کولو طريقه په خپل قول او فعل سره بيان کړې ده که احاديث انسانانو خپله جوړ کړي دي. نو د قران کريم په داسې احکامو باندې به د عمل کولو طريقه څنګه وي؟ او موږ ته به دا څنګه معلوم شي؟

الله رب العزت چې څنګه د قران کريم د الفاظو د حفاظت ذمه اخيستې ده، همدارنګه يې د قران پاک د معنا د حفاظت ذمه هم اخيستې ده او د قران پاک د معناو تعليم د حديثو په ذريعه شوی دی. او په کومو ذرائعو چې قران کريم موږ ته راسيدلی دی، نو په د غو ذرائعو احاديث هم موږ ته رارسيدلي دي. که دا احاديث د ځان نه جوړ شوي وي او ذرائع يې قابل

---

[1] والفضل الانبياء محمد عليه السلام ،لقوله تعالى : كنتم خير امة.....وذلک تابع لكمال نبيهم الذى يتبعونه ......الخ (شرح عقائد ص:۲۱۵ ،طبع ايچ ايم سعيد )

[2] من انكر المتواتر فقد كفرومن انكر المشهور يكفر عندالبعض وقال عيسى بن ابان يضلل ولا يكفر وهو الصحيح ومن انكرخبرالواحد لا يكفر غيرانه ياثم بترک القبول هكذا فى الظهيرية(فتاوى عالمگيرى ج:۲،ص:۲۶۵)

[3] واعلم ان من يعتد بعلمه من العلماء قد اتفق على ان السنة المطهرة مستقلة بتشريع الاحكام وانها كالقرآن فى تحليل الحلال وتحريم الحرام، وقد ثبت انه عليه السلام قال اوتيت القرآن ومثله معه اى واوتيت مثله من السنة التى لم ينطق بها القرآن (تيسيرالاصول الى علم الاصول ص:۱۳۷ ،طبع ادارة الصديق ملتان)

[4] قال اطيعوالله والرسول (آل عمران :۳۲) يٰاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا اَطِيْعُوا اللّٰهَ وَاَطِيْعُوا الرَّسُوْلَ (النساء:۵۹) اَطِيْعُوا اللّٰهَ وَرَسُوْلَه وَلَا تَوَلَّوْا عَنْهُ وَاَنْتُمْ تَسْمَعُوْنَ (الانفال :۲۰)

اعتمادنه وي، نو د اامکان په قران کریم کې هم کېدای شي. نوقران کریم لره هم ـنعوذبالله ـ دځان نه جوړ کړل شوی ویل به لازم وي . لهذا په دې کې هیڅ شک نشته چې ځنګه قران کریم تراوسه پورې محفوظ راروان دی همدارنګه احادیث هم محفوظ راروان دي او الله تعالی ددې دحفاظتې مثاله انتظام کړی دی. دکوموتفصیل چې دتدوین حدیث دتاریخ نه معلومیږي،لهذا حدیثونو نه دانسانانوله ځان نه جوړې شوې قیصې ویل صریحه ګمراهي اوښکاره کفردی.

دنورتفصیل له پاره وګورئ حجیت حدیث .مصنفه مولانامحمدتقي عثماني صاحب مدظلهم . .کتاب حدیث عهدرسالت وعهدصحابه مین. .مصنفه مولانامحمدرفیع عثماني صاحب مدظلهم .حفاظت وحجیت حدیث، .مصنفه مولانافهیم عثماني صاحب.

۳:مسلمانانوته پکاردي چې کوم کس یاتنظیم دداسې عقائدو والا وي دهغوی سره دې دهیڅ قسمه تعلق نه ساتي اودهغوی دلټریچراوکیسټووغیره نه دې مکمل احترازکوي.په خپله دې ځانونه ساتي اودنورودبچ کولوکوشش دې هم کوي اودحکومت دواکدارانو توجه دې دداسې تنظیمونوطرف ته راګرځوي چې په دوی باندې پابندي ولګول شي.

۴:کوم کس چې مذکور عقائدپرته دځه مناسب دلیل نه مني هغه کس مرتداواسلام نه خارج دی اودهغه مسلمانه ښځه دهغه دنکاح نه ووتله اوس دهغه په عقدکې یوه مسلمانه ښځه نه شي پاتې کېدای اونه دیوې مسلمانې ښځې سره یې نکاح کېدلی شي.

دپورته ذکرشوي کس عقائد دقران اوسنت،اجماع امت اوداکابروعلماوواهل سنت والجماعت دتصریحاتوخلاف دي، ددې له پاره لاندې ذکرشوي تصریحات وګورئ:

**في شرح العقائد۲۱۷ :ولله تعالى كتب أنزلها على أنبياءه ,وبين فيها أمره ونهيه ووعده ووعيده وكلها كلام الله تعالى.....وقدنسخت بالقران تلاوتها وكتابتها بعض احكامها،وفى الحاشية قوله ،،ولله كتب،،ركن من أركان مايجب به الإيمان مما نطقت النصوص القرانية والأخبار النبوية.**

**ترجمه**: شرح عقائدص:۲۱۷ کې دي چې:دالله تعالی(دقران نه پرته)نورکتابونه هم دي،کوم چې الله تعالی په خپلونبیانوباندې نازل کړي دي اوپه دې کتابونوکې یې امر اونهې ،وعده او وعیدونه بیان کړي دي اوداټول کتابونه کلام الهي دی اودقران کریم په نازلیدوباندې ددې سابقه کتابونوتلاوت اوددې ځینې احکام مسنوخ شول اوپه حاشیه کې دي چې قوله،،ولله كتب،،یعنې دایمان په ارکانوکې یورکن دادی چې په دې سابقه کتابونوباندې ایمان راوړل شي دکومو باره کې چې په قران کریم اواحادیث نبوي کې شهادت موجود دی.

**وفيه ص:٤٥ :والرسول انسان بعثه الله تعالى الى الخلق لتبليغ الأحكام.**

**ترجمه**: او په شرح عقائد ص: ۴۵ کې دي چې: رسول هغه انسان ته وايي: څوک چې د الله تعالى د مخلوق طرف ته د تبليغ او احکامو رسولو له پاره مبعوث شوى وي.

وفي شرح المقاصد ج: ۵ ص: ۵: النبي انسان بعثه الله تعالى لتبليغ ماأوحى إليه وكذا الرسول.

**ترجمه**: او په شرح مقاصد کې ج: ۵ ص: ۵ کې دي چې: نبي هغه انسان ته وايي: کوم چې د الله تعالى د احکامو د تبليغ له پاره راليږل شوى وي، چې د هغه طرف ته وحې کيږي او د رسول تعريف هم دغه دى.

وفي شرح العقيده الطحاوية لإبن أبي العز: ص: ۲۹۷۰: قوله: ونؤمن بالملئكة والنبيين والكتب المنزلة على المرسلين نشهد أنهم كانوا على الحق المبين، هذه الأمور من أركان الإيمان، قال تعالى: " آمَنَ الرَّسُولُ بِمَا أُنزِلَ إِلَيْهِ مِن رَّبِّهِ وَالْمُؤْمِنُونَ كُلٌّ آمَنَ بِاللَّهِ وَمَلَائِكَتِهِ وَكُتُبِهِ وَرُسُلِهِ لَا نُفَرِّقُ بَيْنَ أَحَدٍ مِّن رُّسُلِهِ". (البقرة: ۲۸۵)

وقال تعالى: "لَّيْسَ الْبِرَّ أَن تُوَلُّوا وُجُوهَكُمْ قِبَلَ الْمَشْرِقِ وَالْمَغْرِبِ وَلَٰكِنَّ الْبِرَّ مَنْ آمَنَ بِاللَّهِ وَالْيَوْمِ الْآخِرِ وَالْمَلَائِكَةِ وَالْكِتَابِ وَالنَّبِيِّينَ ".(البقره: ۱۷۷)

فجعل الله سبحانه وتعالى الإيمان هو الإيمان بهذه الجملة وسمى من آمن بهذه الجملة مومنين، كما جعل الكافرين من كفر بهذه الجملة بقوله: " وَمَن يَكْفُرْ بِاللَّهِ وَمَلَائِكَتِهِ وَكُتُبِهِ وَرُسُلِهِ وَالْيَوْمِ الْآخِرِ فَقَدْ ضَلَّ ضَلَالًا بَعِيدًا ".(النساء: ۱۳۶)

**ترجمه**: او د ابن ابي العز په شرح عقيده طحاويه ص: ۲۹۷ کې دي چې: موږ ايمان راوړو په ملائکو باندې، په نبيانو باندې او په هغوى باندې نازل شويو کتابونو باندې او موږ ګواهي ورکوو چې هغه (رسولان) ټول په حق باندې وو او دا ټول امور د ايمان ارکان دي، د الله تعالى ارشاد دى: پيغمبر په هغه کتاب باندې ايمان راوړى دى کوم چې هغه ته د خپل پرودګار له خوا ورکړل شوى و او مومنانو هم پرې ايمان روړى دى، دې ټولو په الله تعالى، د هغه په فرښتو، د هغه په کتابونو او د هغه په پيغمبرانو باندې ايمان روړى دى او د هغه په پيغمبرانو کې په چاکې تفريق نه کوي.

او د الله تعالى ارشاد دى: په دې کې نيکي نشته چې تاسو واړوى موخونه خپل مشرق يا مغرب طرف ته، بلکې نيکي خو داده چې يو کس ايمان راوړي په مضبوط يقين سره په الله تعالى، په ورځ د قيامت، په فرښتو، کتابونو او پيغمبرانو باندې.

له دې دلائلونه معلومه شوه چې الله تعالى ايمان هم دغه شيان ګرځولي دي، چې په دې ټولو شيانو باندې ايمان وي او الله تعالى په قران کريم کې ،، مومنين،، نوم هم دغو کسانو ته ورکړى دى، چې په دې ټولو شيانو باندې ايمان لري څنګه چې،، کافرين،، هغه

خلکوته ویل کیږي . چې ددې ټولو شیانو نه انکارکوي څنګه چې دالله تعالی ارشاددی:څوک چې له الله تعالی . دهغه له فرښتو .کتابونو .رسولانواودورځې دقیامت نه انکاروکړي. یقینا هغه دحق له لارې ډیرلیرې دی.

وقال في الحديث المتفق على صحته،حديث جبريل،وسواله للنبي صلى الله عليه وسلم عن إيمان فقال:أن تؤمن بالله وملئكته وكتبه ورسله.....الخ.فهذه الأصول التي اتفقت عليها الأنبياء والرسل صلوات الله عليهم وسلامه،ولم يؤمن بها حقيقة الإيمان إلا اتباع الرسل.

**ترجمه**:په حدیث جبریل(دکوم په صحت باندې چې بخاري اومسلم متفق دي)کې دي چې حضرت جبرایل علیه السلام دحضرت محمد صلی الله علیه وسلم نه دایمان په باره کې پوښتنه وکړه. نوحضور صلی الله علیه وسلم وفرمایل :ایمان دادی، چې ته ایمان راوړې په الله تعالی،دهغه په فرښتو . دهغه په ټولو کتابونواو په ټولو رسولانو باندې. داهغه اصول دي په کوموباندې چې دټولو رسولانو اوپیغمبرانو( صلوات الله علیهم وسلامه) اتفاق دی اوپه دې باندې چاپه صحیح معناکې ایمان نه دی راوړی .خویواځې هغو چې دنبیانواورسولانوصحیح اتباع کونکي دي.

وفيه ص:۳۱۱:وأما الأنبياء والمرسلون فعلينا الإيمان بمن سمى الله تعالى في كتابه من رسله،والإيمان بأن الله تعالى أرسل رسلا سواهم وأنبياء لا يعلم أسماء هم وعددهم إلاالله تعالى،الذي أرسلهم ،،،وعلينا الإيمان بأنهم بلغوا جميع ما أرسلوا به على ما أمرهم الله به وأنهم بينوه بيانا لايسع أحدا ممن أرسلوا إليه جهله ولا يحل خلافه.....الخ.

....."وأما الإيمان بالكتب المنزلة على المرسلين فنؤمن بماسمى الله تعالى منها في كتابه من التوراة والانجيل والزبور،ونؤمن بأن الله تعالى سوى ذلك كتبا أنزلها على أنبياءه لا يعرف أسمائها وعددها إلاالله تعالى."

**ترجمه**: اوددې کتاب په صفحه ۳۱۱ کې دي چې :په رسولانواونبیانوباندې. زموږ په ذمه واجب دي چې په دوی کې په هغه ټولوباندې ایمان راوړو چې قران کریم کې الله تعالی ذکرکړي دي.(همدارنګه)په دې باندې هم ایمان راوړوچې الله تعالی له دوی نه پرته نورنبیان اورسولان هم رالیږلي وو چې دهغوی په نومونو او تعدادباندې الله تعالی ښه پوهیږي،یعنې دالله تعالی نه پرته پرې څوک نه پوهیږي اوپه موږ باندې لازم دي چې موږ په دې خبره باندې ایمان راوړوچې الله تعالی نبیانو ته دکومواحکاموړسولوحکم ورکړی و دوی نبیانوهغه ټول احکام رسولي وو اودوی هغه ټول احکام دومره واضح اوښکاره بیان کړي وو ،چې په امت کې دناخبره نه ناخبره کس ته هم څه شک پاتې نه شو اوددې خلاف کول حلال پاتې نه شو.

او په هغه کتابونو باندې ایمان راوړل کوم چې په رسولانو باندې نازل شوي وو، نوموړ په هغه ټولو کتابونو باندې ایمان راوړو. د کوموچې الله تعالی په قران کې نومونه اخستي دي، یعني تورات، انجیل او زبور او موږ ایمان راوړو دالله تعالی له ذکر شوي کتابونو نه پرته په نورو کتابونو هم . چې په خپلو نبیانو باندې یې نازل کړي دي د کومو نومونه او تعداد چې بې دالله تعالی نه بل چاته معلوم نه دی.

**وفي شرح العقيدة الطحاوية للميداني ص:١٠٤: والإيمان المطلوب من المكلف هوالإيمان بالله وملئكته وكتبه بأنها كلام الله تعالى الأزلي القديم المنزه عن الحروف والأصوات وبأنه تعالى أنزلها على بعض رسله بألفاظ وحادثة في ألواح أوعلى لسان ملك وبأن جميع ماتضمنته حق وصدق ،ورسله بأنه أرسلهم إلى الخلق لهدايتهم وتكميل معاشهم معادهم وأيدهم بالمعجزات الدالة على صدقهم فبلغوا عنه رسالته........الخ.**

**ترجمه**:: او میداني په شرح طحاویه ص:۱۰۴ کې دي: مکلف (یعني انسانان او پیریان) نه چې کوم ایمان مطلوب دي هغه دادي چې: په الله تعالی، دهغه په فرښتو او دهغه په ټولو کتابونو باندې ایمان راوړل او داسې ایمان راوړل چې دا دالله تعالی کلام، کلام ازلي او قدیم دی، کوم چې دحروف او اواز نه پاک دی، نو داچې الله تعالی دا کلام په خپلو ځینو نبیانو رسولانو باندې دتختو او الفاظو په صورت کې نازل کړي و، یادفرښتې په ژبه یې نازل کړ ، نور داچې هغه ټول کلام چې په کتاب باندې مشتمل دي حق او صادق دي اودالله تعالی رسولان څوک چې الله تعالی دمخلوق طرف ته دهدایت او تکمیل معاش ومعادله پاره رالیږلي وو او ددوی یې په داسې معجزاتو سره تائیدوکړ. کومې چې ددې نبیانو په صدق باندې دلالت کوي. دې نبیانو دالله تعالی پیغام ورساو.

**قال القاضي عياض في شرح الشفاء ص:٣٣٥: واعلم أن من استخف بالقرآن اوالمصحف أوبشيء منه أوسبه أوجحده أوحرف منه أو آية أوكذب به أوبشيء مما صرح به فيه من حكم أوخير أوخبر أوأثبت مانفاه اونفي ما أثبته على علم منه بذلك أوشك في شيء من ذلك فهوكافر عندأهل العلم باجماع.**

**ترجمه**: علامه قاضي عیاض شرح شفاء ص:۳۳۵ کې لیکلي : پوهه شئ چا چې قران کریم یا یو مصحف یادقران څه شی سپک وګڼه یا یې قران ته کنځل وکړل. یا دیوې برخې نه یې انکار وکړ یادیو حرف .یا دیو ایت یې نه یې انکاروکړ، یادقران دڅه داسې برخې نه یې انکاروکړ په کوم کې چې دڅه حکم یا خبر صراحت وي یاڅه داسې حکم یاخبریې ثابت کړ دکوم چې قران نفي کوي، یا داسې شی یې قصداً نفي کړ له کوم چې له قران نه ثابت دی،

یادقران په څه شی کې یې شک وکړ .نو داسې کس بالاجماع داهل علم په نزد کافر دی.

**وفي شرح العقائد ص: ۲۱۵ : وأفضل الأنبياء محمد صلى الله عليه وسلم ،لقوله تعالى: ، كنتم خير امة، ،ولاشك أن خيرية الإمة بحسب كمالهم في الدين وذلك تابع لكمال نبيهم الذي يتبعونه.**

**ترجمه** :شرح عقائد ص: ۲۱۵ کې دي چې: په نبیانوکې دټولو نه افضل حضرت محمد صلی الله علیه وسلم دی، دالله تعالی ددې قول له وجې نه چې(تاسو بهترین امت یې )اوپه دې کې هیڅ شک نشته، چې ددې امت بهتر والی په دین کې ددوی دکمال په اعتبار سره دی اوددې امت په دین کې کامل کیدل داتابع دي دهغه نبي دکمال دچا چې دوی اتباع کوي.

**وفي المشكوة: عن أبي هريرة رضي الله عنه قال: قال رسول الله صلى الله عليه وسلم :أناسيد ولد آدم يوم القيامة وأول من ينشق عنه القبر وأول شافع وأول مشفع.** (رواه مسلم)

ترجمه: اوپه مشکوة شریف کې دي: دحضرت ابوهریره رضي الله عنه نه روایت دی ،فرمایي چې: رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمایل: زه به دقیامت په ورځ د ادم دا ولاد سرداریم، زه به اولنی هغه کس یم دچا چې قبر اول پرانستل شي اوزه به دټولونه مخکې شفاعت کونکې یم او دټولو نه مخکې به زما شفاعت قبول شي.

**وفي المرقاة ج:۸ ص: ۱۰ :في شرح مسلم للنووي....وفي الحديث دليل على فضله على كل الخلق لأن مذهب أهل السنة أن الآدمي أفضل من الملئكة وهو أفضل الآدميين بهذا الحديث.**

**ترجمه**:اوپه مرقاة ج:۷ ص: ۱۰ کې دي چې: داحدیث دحضور صلی الله علیه وسلم په ټول مخلوق باندې دفضیلت دلیل دی، ځکه چې داهل سنت مذهب دی چې انسان دملائکونه افضل دی اوحضور صلی الله علیه وسلم ددې حدیث په وجه دټولو انسانانو نه افضل دی،(نوګویاحضور صلی الله علیه وسلم دټولو مخلوقاتونه افضل شو).

غرض داچې داکس ضال ومضل اومرتد اوزندیق دی. داسلام او قران په نامه د مسلمانانو په دین اوایمان باندې ډاکه اچوي اوسادګانو مسلمانانو ته دنبي اخرالزمان صلی الله علیه وسلم یرحمت له لمنې پرې کوي او په ځان پسې یې لګول غواړي.

په حکومت پاکستان باندې فرض دي چې فورا دې ددې فتنې مخه و نیسي اوددې بې دینه په سرګرموباندې دې پابندي ولګوي، دوی ته دې داسې عبرتناکه سزاورکړل شي چې ددوی اینده نسلونه یې هم یاد وساتي اوڅوک بدخت اینده داسې جراَت ونه کړي.

نورداچې له دوی نه دې داهم معلوم شي اوداتحقیق دې ترې وشي چې دکومو قوتونو په اشاره باندې داخلک پاکستان کې اوپه مسلمانانوکې داضطراب اوبې ارامي فضاء پیدا کول غواړي؟

# صحيح بخاري باندې د عدم اعتماد تحريک

**سوال:** مسئله داده چې دصحيح بخاري په رواياتو او اسنادو باندې دعدم اعتماد تحريک روان دی. ددې تحريک ترشا چې کوم خلک دي دهغوی فهرست او تفصيل کافي اوږد دی، په هرحال دنمونې په ډول يواځې يومثال درته وړاندې کوم. اداره فکراسلامي جنرل سيکرټري جناب طاهرالمکي صاحب. جناب عمراحمدعثماني صاحب کتاب، رجم اصل حد ياتعزير. په تعارفي ياددښت کې ليکي:

داهل حديث حضراتو نه پرته دنوراسلامي فکرخصوصا داحنافو دامام بخاري په تحقيقاتو په باره کې چې کوم نقطه نظردی. هغه مولاناعبدالرشيدنعماني مدرس جامعه بنوري ټاون. علامه زاهدالکوثري مصري اوانورشاه کشميري له کتابونو نه ظاهر دی.

دمولاناعبدالرشيدنعماني دتحقيقاتو نو يواځې يواقتباس وګورئ:

..ايا دوه تهائی بخاري غلط دی،،،

ترجمه. علامه مقبلي په خپل کتاب ،،الأرواح التوفخ،، کې ليکي:

يوډيرزيات دين دار اوباصلاحيته کس مانه دعراقي ،الفيه،، (کوم چې په اصول حديث کې دی) ولوست اوزموږ ترمينځه دصحيحينو په مقام اومرتبه او په خاصه توګه دبخاري درواياتو په باره کې خبرې اترې وشولې، نوهغه صاحب حضور ﷺ په خوب کې وليده اودحضور ﷺ نه يې پوښتنه وکړه چې ددې کتاب يعنې خصوصاً دبخاري دکتاب په باره کې څه حقيقت امردی؟

حضور ﷺ وفرمايل :دوتهائی غلط دي.

په خوب کې دليدونکي غالب ګمان دادی چې درسول الله ﷺ دا ارشاد دبخاري دراويانو په باره کې دی، يعنې په هغوی کې دوه تهائی راويان غيرعادل دي، ځکه چې په بيدارئ کې زموږ موضوع اوبحث دبخاري راويان وو، والله اعلم، (وګورئ دمقبلي کتاب الارواح التوافخ، ص: ٦٨٩، ٦٩٠)

په دې عجيبه دليل باندې ظاهرالمکي صاحب ليکي:

دادبخاري په فني طورسره دټولونه دزيات صحيح کيدوحقيقت، ددې په ايډيټ کولوکې دمولاناعبدالرشيدنعماني سره دجامعه بنوري ټاون مفتي ولي حسن هم شامل دی، ځنګه چې دخپل حاشې په اخره کې نعماني صاحب دهغوی په شکريه اداکولوکې ويلي دي. عبدالرشيد صاحب فرمايي:

کله چې دبخاري دوتهائی راويان غيرعادل دي، نوددې درواياتو څه حيثيت دی. کوم چې يقيناً ددې دبخاري ددوتهائی نه زيات جوړېږي ځکه چې ډيرروايان داسې وي چې څوڅوروايتونه بيانوي، (بحواله رجم اصل حده □ ياتعزير ص:٣٩)

محترم! اوس تاسو ماته ووایئ چې ایاپورته ذکرشوي حوالونه کوم بیان شوي دي ایاهغه صحیح دي یاغلط؟اوکه ستاسوپه نزدصحیح وي. نوایا زه دصحیح بخاري نسخې ضائع کړم؟ او ایا دمدرسو انتظامي ته داخبارپه ذریعه ترغیب ورکړم چې هغوی دې دخپلومدرسودنصاب نه صحیح بخاري خارج کړي؟زه امیدلرم چې تاسوبه زمادشک خالص دالله تعالی درضاله پاره لرې کړئ.

**جواب:** پورته ذکرشوې خط لیدلونه وروسته ماحضرت نعماني مدظله العالي په خدمت کې یوه عریضه ولیکله کوم چې په دې لاندې ډول ده:

**بسم الله الرحمن الرحیم**

حضرت مخدوم ومعظم!مدت فیوضهم وبرکاتهم ،السلام علیکم ورحمة الله وبرکاته-

یوصاحب دطاهرالمکي په حوالې سره دجناب یوعبارت نقل کړی اودهغه په باره کې یې ګرم ګرم سوالونه کړي دي دادهغه کس څلورم خط دی مامناسبه وګڼله چې:**توجیه القول بما لایرضی به قائلة**،، په ځای ستاسوسره مشوره وکړل شي ،مختصرشان سره اشاره راته وکړئ چې دطاهرالمکي نقل ترکوم حدپورې صحیح دی؟اوددې صاحب اخذ شوې نتیجې سره دکوم حدپورې اتفاق کېدای شي؟ زه دهفتې په ورځ په سفرباندې تلونکی یم.له دې وجې نه زه ستاسودخط ځواب سباختمول غواړم ،دنېکو دعاګانوغوښتنه هم کوم.

**والسلام**

**خویدکم محمدیوسف عفاالله عنه**

حضرت موصوف مدظله العالي:په لاندې ډول ددې ځواب ولیکه:

**محترم! وفقنی الله وایاکم لمایحب ویرضی!**

**وعلیکم السلام ورحمة الله وبرکاته**

دې وخت کې په درس ګاه کې،،الأرواح النوافخ،،موجودنه دی،،،دراسات اللبیب،،دمعین سندهي رحمه الله په تعلیقاتو کې ډیروخت شوی دی چې دصحیحینوپه بحث اختلاف کې مې لیکلي دي چې دتلقی مسئله اختلافي ده.په اختلافي حدیثونوکې داجماع دعوه صحیح نه ده، په دې باندې بحث کولوکې چېرته ددغه خوب ذکرهم راغلی و،د،،الارواح،،مصنف علامه مقبلي اول زیدي و، بیادمطالعې کولونه وروسته سني شوی و اوبیادعامو یمنیانوپه شان لکه څنګه چې امیریماني،وزیریماني اوقاضي شوکاني وغیره دي غیرمقلدشوی و او هغه دتلقي رواة په سلسله کې ددې خوب ذکرکړی و ،دخوب چې څه حیثیت دی هغه ظاهر دی، درواة په تعدیل اوتجریح کې اختلاف دشروع نه راروان دی،څنګه چې په څلورو واړو مذاهبوکې اختلاف دی،دې سره نه دڅه شي باطل کیدل لازمیږي اونه په مختلفو

شيانوباندې اجماع، ددتلقي امت دبحث اصلي حقيقت دی، چې نه خودمتون ټول اُمت تلقي دي اونه په رواة باندې، څنګه چې دټولو اختلافي مسائلو حال دی.

دقران کريم ثبوت قطعي دی، خو ددې په تعبيراوتفسيرکې اختلاف دی، نوبياياددې اختلاف له وجې نه به قران کريم پرېښودل کيږي ؟هم دغه حال دمتون صحيحينو اورواة د صحيحين دی، چې نه خوددې متن دامت له پاره واجب العمل دی اونه ددې هررواي بالاجماع قابل قبول دی اوس منکرين حديث په دې سلسله چې څه غواړي طريقه دې اختيار کړي . دقران کريم په تعبيراوتفسيرکې اختلاف و او وي به، درواياتودقبول، عدم قبول کې دمجتهدينو اختلاف و او وي به.

**فمن شاء فليؤمن و من شاء فليکفر.**

والسلام.

**محمدعبدالرشيدنعماني.**

**۲۵_۲_۱۴۱۵هجری.**

**بسم الله الرحمن الرحيم**

**مکرم ومحترم !زيدلطفه السلام عليکم ورحمة الله وبرکاته!**

ستاسودخط په ځواب کې ځوامورمختصرا ليکم ،وزګار وخت راسره نشته که نه په دې موضوع به مې پوره مقاله ليکلې وه:

۱: ستاسودتحريک بنياددطاهرالمکي صاحب هغه تحريردی دکومې حواله چې تاسوپه خط کې نقل کړې ده اُوتاسوپه دې تحريرباندې دومره باور وکړ، چې ددې په بنيادباندې زمانه پوښتنه کوئ چې:

دمذکوره حوالې نه چې څه بيان شوي دي اياهغه صحيح دي او که غلط؟که تاسو (يعني راقم الحروف) په نزدباندې صحيح هم وي، نواياره دصحيح بخاري نسخې ضائع کړم؟ او ايا دمدرسوانتظامي ته داخبارپه ذريعه ترغيب ورکړم چې هغوی دخپلومدرسوله نصاب نه صحيح بخاري خارج کړي ؟

دطاهرالمکي صاحب په تحريرباندې دومره لويه فيصله کولونه مخکې تاسوته دا سوچ کول پکارو چې ددې صاحب تعلق خوچېرته دمنکرين حديث دطبقې سره نه وي؟ او ايا داکس ددې نتيجې په اخذکولوکې دمکراوفريب نه خوکارنه اخلي؟

دطاهرالمکي تعلق چې دکومې طبقې سره دی مکراوفريب ددې طبقې عادت دی او اوريدل شوي دي چې دطاهرالمکي په نامه کې هم فريب دی، دده والدمرحوم ميانجي جی عبدالرحيم

به په ، ،مکي مسجد کراچی، ،په مکتب کې ماشومانو ته سبق ښوده او د دوی رهائش گاه هم دغلته وه،په دې دوران کې داصاحب پيداشو او دمکي مسجد طرف ته نسبت سره علامه طاهرالمکي جوړشو اوريدونکي داسې گڼي چې دې حضرت دمکې نه تشريف راوړی دی.

۲:دمولاناعبدالرشيدنعماني مدظله په حوالې سره هغه قطعا غلطه اوگمراه کونکې نتيجه اخيستې ده.څنگه چې دمولاناصاحب دخط نه ظاهره ده اول خومقبلي زيدي اوبيا غيرمقلد و، بيا دهغه حواله دخوب ده اوهرچاته پته ده چې خوب په ديني مسائلوکې دليل نه دی[1]، بيا مولاناصاحب داحواله ظاهرولوله پاره نقل کړې ده چې درواة بخاري په باره کې دځينو خلکو دا رايه ده،مولاناعبدالرشيدنعماني مدظله العالي ديوې ديني مدرسې شيخ الحديث دی اوکه دهغوی دارايه وي کومه چې تاسودطاهرالمکي مکارانه عبارت نه گڼلې ده ،نوهغوی به ستاسو دتحريک،عدم اعتماد، ،علمبرداروای،نه چې دصحيح بخاري ښودونکی شيخ الحديث.

۳:: طاهرالمکي امام العصرحضرت مولانامحمدانورشاه کشميري په کې هسې رانښکل کړی دی،حضرت دشلوکالونه زيات دصحيح بخاري درس ورکړی دی اوددرس بخاري د شروع کولومخکې يې ۱۳ځله دصحيح بخاري شريف په ښه غورسره مطالعه کړې ده اوددې دټولو وشرحويې په تدبراوغورسره مطالعه وکړه، دصحيح بخاري دوه لويې شرحې،فتح الباري او، ،عمدة القاري، ،خوحضرت ته داسې يادې وې لکه چې دهغه په وړاندې پرانستل شوې پرتې وې[2].(مقدمه فيض الباری ص:۳۱)

---

[1] قال العلامة ملا على القاری رحمه الله: ولذا لم يعتبر احد من الفقهاء جواز العمل فی الفروع الفقهية بما يظهر للصوفية من الامور الكشفية او حالات المنامية(مرقاة شرح مشكوة ج:۹،ص:۳۵۸كتاب الفتن ايضاً قال ابن السمعانی رحمه الله: ويؤخذ من هذا ما تقدم التنبيه عليه ان النائم لو رائ النبی صلى الله عليه وسلم يامره بشئ هل يجب عليه امتثاله ولابد، او لا بد ان يعرضه على الشرع الظاهر فالثانی هو المعتمد كما تقدم(فتح الباری ج:۱۲،ص:٤٨١،كتاب التعبير،طبع قديمی)

[2] المحدث الجليل امام العصر محمد انورالكشميری الذی شاممت نفحة من ترجمته قد اعتنى بصحيح البخاری درساً واملاء وخوضاً وامعاناً مالم يعتن بماعداه،فطالعه قبل الشروع فی تدريسه ثلاث عشرة مرة من اوله الى آخره مطالعة بحث وفحص وتحقيق، وطالع شروحه المطبوعة من الفتح والعمدة والارشاد وغيرها من المطبوعة والمخطوطة ما تيسر له فی ديار الهند والحجاز وكان العمدة والفتح كانهما صفحة بين عينيه ثم وفق لتدريسه ما يربو على عشرين مرة دراسة امعان وتدقيق حتى اجهد نفسه شطر عمره فی العكوف عليه تحقيقاً وبحثاً (مقدمة فيض الباری ص:۳۱،طبع قاهرة)

حضرت شاه صاحب نه يواځې داچې صحيح بخاري نه،،اصح الكتب بعدكتاب الله،، گڼه بلکې دصحيحينو دحديثونو دقطعيت قايل و. په فيض الباري کې فرمايي:
صحيح احاديث دقطعيت فائده ورکوي که نه؟په دې کې اختلاف دی،دجمهوروقول دادی چې دقطعيت فائده نه ورکوي،خودحافظ رضی الله عنه مذهب دی چې قطعيت فائده ورکوي.
شمس الائمه سرخسي له احنافونه.په حنابله ووکې حافظ ابن تيميه اوشيخ ابن صلاح هم دې طرف ته مائل وو. ددې حضراتوتعداد اګرچې کم دی خودددوی رايه هم صحيح رايه ده. دشاعر دا قول ضرب المثل دی:
زمانښځه ماته پېغورراکوي ، چې زمونږ تعدادکم دی ،ماهغې ته وويل چې کريم خلک اکثرکم وي.[1] (فيض الباری س:٤٥)
حضرت شاه ولي الله محدث دهلوي رحمه الله په ،،حجة البالغه ،،کې ليکي:
دمحدثينواتفاق دی چې په صحيحينوکې څومره حديثونه متصل مرفوع دي، صحيح دي اودا دواړه دخپلومصنفينوپورې متواتردي اوکوم کس چې ددې دواړو توهين کوي هغه مبتدع دی اود مسلمانانودلارې نه بې لارې شوی دی.[2]
۴:ديوحديث صحيح کيدل يوشی اودهغه واجب العمل کيدل بل شی دی،له دې وجې نه د يوحديث دصحيح کيدوله پاره دانه لازميږي چې هغه دې واجب العمل هم وي،ځکه چې کيدای شي چې هغه منسوخ وي.يامقيدوي.يامؤول وي،له دې وجې نه ديو امي علم کافي نه دی،بلکې ددې له پاره مونږ دائمه مجتهدينو رحمهم الله داتباع محتاج يو،دقران کريم قطعي کيدل خودهرقسمه شک اوشبهې نه پاک دي،خو دقران کريم ځينې اياتونه منسوخ او مؤول يامقيد بالشرائط دي،يواځې په دې اجمالي خبرو باندې اکتفا کوم. د تفصيل او تشريح ګنجائش نشته.والله اعلم!

**(دلومړي جلد پای)**

---

[1] القول الفصل فی ان خبر الصحيحين يفيد القطع، اختلفوا فی ان احاديث الصحيحين هل تفيد القطع ام لا؟ فالجمهور الی انها لا تفيد القطع وذهب الحافظ رضی الله عنه الی انها تفيد القطع واليه جنح شمس الائمة السرخسی رضی الله عنه من الحنفية والحافظ ابن تيمية من الحنابلة والشيخ عمروبن الصلاح رضی الله عنه وهؤلاء وان كانوا اقل عدداً الا ان رايهم هو الرئ وقد سبق فی المثل السائر: تعيرنا انا قليل عددينا فقلت لها ان الكرام قليل (مقدمه فيض الباری ص:٤٥،طبع قاهره )

[2] اما الصحيحان فقد اتفق المحدثون علی ان جميع ما فيهما من المتصل المرفوع صحيح بالقطع وانهما متواتران الی مصنفيهما وانه كل من يهون امرهما فهو مبتدع متبع غير سبيل المؤمنين (حجة الله البالغة ج:١،ص:١٣٤،باب طبقة كتب الحديث)

وَلَقَدْ يَسَّرْنَا الْقُرْآنَ لِلذِّكْرِ فَهَلْ مِنْ مُّدَّكِرٍ

مُقَدِّمَةٌ

# تفسیر شاہ منصوری

دقرآن لغوی او اصطلاحي معنی، تعریف، دعلم تفسیر، دتفسیر اوتاویل په مینځ کښې فرق، دتفسیراومطالبودقرآن دپوهې آداب اوشرطونه، دتفسیرماخذ، دقرآن کریم نومونه، دوحي ضرورت، دوحي اقسام، دوحی کاتبان، فرق په مابین دوحی، کشف او الهام کښې،

افادات

شیخ القرآن والحدیث حضرت مولانا

نورالهادی المعروف بصاحب حق صاحب مد ظله

مرتب

مولوی صدیق الله حقانی

مدرس: جامعه عربیه منارالقرآن اکوړه خټک


ناشـــر

جدید مکتبه رشیدیه

قصه خوانی بازار محله جنگی پشاور 091-2580074

النحو في الكلام كالملح في الطعام

# دروس الكافیه

پښتو شرح

## کافیه ابن حاجب

افادات


حضرت العلامه مولانا حافظ محمد ابراهیم فانی مدظله العالی

مدرس دارالعلوم حقانیه اکوره خټک

مرتب: مولوی محمد سلیم سواتی



ناشر:

مَنْ لَمْ يَعْرِفِ الْمَنْطِقَ فَلَا ثِقَةَ لَهُ فِي الْعُلُوْمِ (غزالی رحمۃ اللہ علیہ)

تالیف


حضرت مولانا نعیم احمد مدظلہ
استاذ جامعہ خیر المدارس ملتان


ژباړن


مولانا لائق زادہ حقانی

